# تفسیر

# حکمۃ القرآن

## ۱۱

تالیف

فضیلۃ الشیخ ابو محمد امین اللہ البشاوری
حفظہ اللہ تعالیٰ

جمع وترتیب : ابوزهیر سیف الله

المکتبۃ المحمدیۃ

Scanned by CamScanner

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ○

| آیاتها (۲۹) | (۴۸) سورة الفتح مدنية (۱۱۱) | رکوعاتها (۴) |
| --- | --- | --- |

سورتِ فتح مدنی دے، په دے کښې نهیشت آیتونه، او څلور رکوع دی۔

## تفسیر سورة الفتح

نوم : د ﴿ إِنَّا فَتَحْنَا لَكَ فَتْحًا مُّبِيْنًا ﴾ آیت نه اخستے شوے۔

مناسبت :

۱- مخکښې قتال وو، دلته بشارت دے په فتح او اِنْزَالُ السَّكِيْنَه سره۔

۲- هلته په منافقانو رد وو، دلته بیا په منافقانو رد۔ او هلته د مؤمنانو اتلس صفات ذکر شو چه هغه د قتال فی سبیل الله دپاره علتونه وو، نو دلته داسے اتلس صفات ذکر کوی چه هغه د الله تعالىٰ د رضا کیدو اسباب دی۔

۳- هلته منع وه د دعوت کولو نه صلح ته، نو دلته وائی چه که چرے کافران صلحے ته دعوت ورکړی نو صلح وکړئ۔ (احسن الکلام)

### موضوع د سورت

بشارت دے په ډیرو فتوحو سره، اوله فتح د حُدیبیه، دویمه فتح د خیبر، دریمه فتح د مکے او څلورمه فتح د هوازن او حنین ذکر ده۔ او بیا ﴿ هُوَ الَّذِيْٓ اَرْسَلَ رَسُوْلَهٗ بِالْهُدٰى ﴾ کښې فتح ده په غلبه د اسلام سره۔

د نازلیدو زمانه : قرطبیؒ لیکی چه دا سورت د ټولو په نیز مدنی دے۔ د ابن عباس ﷺ

Scanned by CamScanner

او ابن الزبیر ﷛ هم دا قول دے۔ ابن اسحاقؒ، حاکمؒ او بیهقیؒ د مسور بن مخرمةؓ او مروان قول نقل کړے چه ټول سورتِ فتح د مکے او مدینے ترمینځه د حُدیبیه د صلح په باره کښې نازل شوے۔

امام مسلمؒ په خپل صحیح کښې د قتادةؒ نه روایت کړی دی، هغه وائی، مونږ ته انس بن مالك ﷛ بیان وکړو چه د ﴿إِنَّا فَتَحْنَا لَكَ فَتْحًا مُّبِينًا﴾ نه تر ﴿فَوْزًا عَظِيمًا﴾ پورے د حُدیبیه نه د واپس کیدو په وخت نازل شو، هر کله چه د صحابو زړونه د غم او درد نه ډك وو، او دویٔ د عُمرے قربانی په حُدیبیه کښې کړے وه۔

نو د الله رسول ﷺ وفرمایل: [لَقَدْ أُنْزِلَتْ عَلَيَّ آيَةٌ هِيَ أَحَبُّ إِلَيَّ مِنَ الدُّنْيَا وَمَا فِيهَا] چه په ما باندے یو داسے آیت نازل شوے چه هغه زما په نیز د دنیا او ما فیها نه زیات بهتر دے۔

(صحیح مسلم: ٤٧٣٧)

محمد بن سعدؒ لیکلی دی چه دا ځائے (ضجنان) دے چرته چه دا سورت نازل شوے۔

سیوطیؒ په (الاکلیل) کښې لیکلی چه دا ځائے (کراع الغمیم) وو، او ابو معسرؒ وائی جُحفه وه۔ حافظ ابن حجرؒ وائی چه دا درے واړه ځیونه یو بل ته نزدے دی۔

حافظ ابن کثیرؒ لیکی چه دا سورت په رسول الله ﷺ باندے هغه وخت نازل شو کله چه په ذی القعده (٦) هجری کال نبی ﷺ د حُدیبیه نه مدینے ته واپس راتللو۔ مشرکانو نبی ﷺ د عُمرے اداء کولو دپاره د مسجد حرام نه منع کړے وو، او آخر خبره په صلح باندے ختمه شوه چه د هغے تفصیل لاندے راځی۔

## د واقعے تفصیل

د صلح حدیبیه واقعه بیانولو سره ددے سورت په جملو باندے بنه پو هیدل راځی۔

چه د هغے بعض خاکه دا ده: رسول الله ﷺ چه کله مدینے ته هجرت وکړو مشرکان ډیر زور کښې وو، د مسلمانانو نه ئے هیڅوك مکے ته نهٔ پریخودل، هیڅ عمره او حج نشو کولے، د مکے مؤمنانو باندے هم تکلیف وو۔ پدے کښې د بدر غزا وشوه بیا د اُحد وشوه بیا د خندق غزا نه روستو لږ ساړه شول، لکه رسول الله ﷺ وفرمایل:

[اَلْآنَ نَغْزُوْهُمْ وَلَا يَغْزُوْنَنَا] اُوس به مونږ په دوی حملے کوو او دوی به ئے په مونږ نشی کولے۔ تر شپږم کاله پورے تقریباً څه دپاسه درے زره مسلمانان پیدا شویدی، دا په نولسو

کالو کښې، بیا د صلح حدیبیه نه روستو ډیر زیات شو ددې وجه دا وه چه مخکښې د کافرانو سره میل جول (تعلق) نهٔ وو، نو دعوت مخکښې نهٔ تللو او کله چه د صلح حدیبیه په موقعه راشه درشه شروع شوه نو خلق د اسلام د حقانیت نه خبر شو۔

په شپږم کال د هجرت کښې رسول الله ﷺ خوب ولیدو چه زهٔ عمرې ته تلې یم او ملګری هم راسره دی، او طواف د بیت الله مو کړیدې او په هغې کښې بعض ملګرو سرونه خرئیلی او بعضو لنډ کړیدی۔

دا خوب ئې صحابه کرامؓ ته بیان کړو، هغوی پدې ډیر سخت خوشحاله شو (ځکه چه د نبی خوب وحی وی) (او دلته د کعبې پسې هم خفه دی) لیکن په خوب کښې د کال تعیین نهٔ وو شوې۔ نو رسول الله ﷺ اعلان وکړو چه عمرې له به ځو (او دا عمره پدې وخت کښې فرض وه ځکه چه د رسول الله ﷺ د اتباع د وجه نه وه) تقریباً (څوارلس نیم سوه) مسلمانان تیار شو، دوی ځان سره هدایا واخستې (عمره کښې هدایا وړل نشته لیکن دلته دا ګمان کیدې شو چه کافران به ئې عمرې ته پرینږدی نو ددې هدایاؤ په ذبح کولو سره به د احرام نه ځانونه وباسی) او تورې او وسلې ئې هم ځان سره واخستې روان شول، مکې ته نزدې ورسیدل۔

(دلته منافقان پاتې شول ځکه چه دوی ویل چه دا خو د زمری په خوله کښې ځان ورکول دی) صرف یو منافق لاړو۔ (مګر هغه هم الله د حدیبیه په علاقه کښې رانښکاره کړو) کله چه دوی حدیبیه علاقې ته ورسیدل، هلتهٔ ئې دمه وکړه او صحابه کرامؓ ته ئې وویل چه که مشرکان ما سره هر قسم صلح کوی نو زهٔ تیار یم کله چه په هغې کښې د الله د حرم تعظیم راځی۔ بیا ئې اُوښه پورته کړه نو مکې طرفته نهٔ تلله او کله چه به ئې بل طرفته متوجه کړه نو منډه به ئې کړه، صحابه کرامؓ وویل :

(خَلَتِ الْقَصْوَاءُ) اُوښې خو د خپل عادت خلاف وکړو۔ رسول الله ﷺ وفرمایل : (حَبَسَهَا حَابِسُ الْفِيْلِ) دا هغه ذات بنده کړه چه فیل (هاتی) ئې بند کړې وو۔ (مونږ هم حرم ته نهٔ پریدی) اُوښه ئې چه بیا پورته کړه نو هغه حدیبیه علاقې ته لاړه چه هلته یو کوهې وود هغې غاړې ته کیناسته نو رسول الله ﷺ هملته پړاؤ واچولو۔

او وې فرمایل چه څه به کوؤ۔ نو پدې کښې مشرکان خبر شو چه نبی ﷺ د عمرې په نیت راغلې دې۔ نو هغوی مشوره وکړه چه حرم ته ئې نهٔ پریدو (پدې کښې زمونږ شرم

Scanned by CamScanner

دي، عرب به وائي چه په زوره ئې ترې عمره وکړه) نو دلته ورسره خبرو اترو دپاره راغلل۔
یو تن ئې راولیږلو (بدیل بن ورقاء الخزاعی) د هغه سره خبرې وشوې چه مونږ جنګ له نهٔ یو راغلي او عمره کول غواړو، هغه واپس راغلو، مکې والو ته ئې وویل چه که زما خبره آورئ نو کوم ئې او که نهٔ وي نو نهٔ ئې کوم؟ کشرانو وویل : نهٔ آورو، مشرانو وویل چه وایه : وې ویل هغه وائي چه زهٔ صرف عمرې له راغلي یم او جنګ له نهٔ یم، او هر چه زما اسلام دې نو تاسو ما عربو ته پریدئ که زهٔ پرې غالب شوم نو ستاسو خوښه ده چه اسلام ته راځئ او که نهٔ ؟ خو هغه وخت پورې به په راحت کښې شئ او که تاسو زما مقابله کوئ نو زهٔ به ستاسو سخته مقابله کوم۔ نو دهٔ وویل چه زما رائې دا ده چه دا به عربو ته پریدو۔ نو خلق ورته په غصه شو چه تهٔ ترې متأثره شوې۔
بیا عروه بن مسعود ثقفي راغې هغه د صحابه کرامؓ حالت وځارلو نو رسول الله ﷺ ته ئې وویل چه زما ګمان دې چه تا سره ګډوډ خلق رایوځای شویدي او کیدې شي چه دوي به تا نه وتښتي نو ابوبکر صدیق ﷺ ورته کنځلې وکړې :
[اُمْصُصْ بَظَرَ اللَّاتِ، آنَحْنُ نَفِرُّ عَنْهُ وَنَدَعُهُ]، آیا مونږ به ترې تښتو او دې به یواځې پریدو؟ هغه وویل دا څوک دې؟ وویل شو، دا ابوبکر دې، وې وئیل : که ستا ما سره یو احسان نهٔ وې چه ما د هغې بدله لا نهٔ ده درکړې نو ما به تا ته جواب درکړې وې۔ دهٔ هم رسول الله ﷺ سره ډیرې خبرې وکړې، بیا قریشو ته واپس شو او دا ئې ورته وویل چه اې قومه !
[لَقَدْ وَفَدْتُ عَلَى الْمُلُوْكِ وَوَفَدْتُ عَلٰى قَيْصَرَ وَكِسْرىٰ وَالنَّجَاشِيِّ فَمَا رَاَيْتُ مَلِكًا قَطُّ يُعَظِّمُهٗ اَصْحَابُهٗ مَا يُعَظِّمُ اَصْحَابُ مُحَمَّدٍ مُحَمَّدًا]۔
زهٔ د ډیرو بادشاهانو ملاقات ته ورغلي یم او هرقل او کسرئ او نجاشي ته ورغلي یم، خو ما هیڅ یو بادشاه داسې نهٔ دې لیدلې چه د هغهٔ ملګري داسې تعظیم او اکرام کوي څرنګ چه د محمد (ﷺ) ملګري د هغهٔ کوي۔ قسم په الله هغه خرا چکې نهٔ ګوزاري مګر د یو تن په لاس کښې واقع کیږي او نږدې ده چه دوي د هغه د اوداسه په اُوبو باندې جنګ وکړي۔ او هغه تاسو ته ستاسو د فائدې یوه خطه (مشوره) پیش کړیده دا قبوله کړئ۔
بیا بل مشرك (مکرز بن حفص) راغې۔
پدې کښې رسول الله ﷺ عثمان ولیږلو چه تهٔ لاړ شه او هلته خبره وکړه چه مونږ جنګ له نهٔ یو راغلي، او بله دا چه په مکه کښې څه مؤمنان دي هغوي ز مونږ د راتګ

Scanned by CamScanner

نـه خبر کړه، عثمان ؓ چـه مـکـے ته ورغـے نو آل العاص چه ددهٔ خپلوان وو، هغوی ځان سره په اُوښ باندے کینولو او امن ئے ورکړو، پینځه ئے ډیرے اُوچتے کړے وے نو مشرکانو ورته وویل چه دا دِے څه کړیدی؟ (آیا اُویه خور خو نهٔ کوے) هغه وویل :

[هٰکَذَا یَتَّزِرُ صَاحِبُنَا] دا زمـونږ د رسول طریقه ده۔ پداسے مقام کښې ئے هم دعوت وکړو، او مشرك ته ئے ددے دعوت ورکړو۔ بیا هغوی ورته وویل چه تهٔ عمره وکړه نو هغه وویل : قسم په الله ! که زهٔ ئے وکړم، چه محمد رسول الله ﷺ نهٔ وی کړی او زهٔ به ئے کوم۔ (دے ته د صحابه کرامو فقاهت وائی) د رسول الله ﷺ نه ځان نهٔ مخکښې کوی۔

دلتـه کښې شیطان خبر خور کړو چه عثمان ئے شهید کړو نو رسول الله ﷺ ډیر خفه شو او د ملګـرو نـه ئے بیعت واخستو چا په قتال بیعت وکړو او چا په مرګ باندے چه مونږ به ځان وژنو ترڅو چه د عثمان بدل مو نهٔ وی اخستے۔

تولو مسلمانانو بیعت وکړو او تول جنګ ته تیار شو (الله ورله په نیت باندے اجر ورکړو او د خپلے رضا اعـلان ئے ورته وکړو) صرف یو منافق (جد بن قیس) ددے بیعت نه پاتے شـو د هـغـه نـه سور اُوښ ورك شوے وو، هغه وویل چه زما بیعتونو ته ضرورت نشته۔ رسـول الله ﷺ وفـرمـایـل : تول د ونے لاندے بیعت کونکو صحابه کرامو ته بخنه وشوه سوئ د سور اُوښ والا نه۔

لږ وخت روستو عثمان ؓ راغـے۔ نو پدے کښې قریش پو هه شو چه دا خلك جنګ له نهٔ دی راغـلـی نـو هـغـوی هـم صـلـحے تـه تیار شو نو سهیل بن عمرو ئے راولیږلو (چه دا روستـو جلیـل القدر صحابی ګرزیدلے دے ؓ) رسـول الله ﷺ د هـغـه د سهیل د نوم نه فـال ونیـولـو چـه اُوس بـه کـار آسانیږی، هغه د څه خبرو اترو نه روستو د صلح شرطونه مقرر کړل چه د هغے بیان دا دے :

۱ – سږ کال به عمره نهٔ کوے ځکه چه دے کښې زمونږ شرم دے، عرب به وائی چه عمره ئے ترے په زوره وکړه۔

۲ – کال له چه راځے نو مکه کښې به صرف درے ورځے تیروئ۔

۳ – تورے به مو په تیکو کښې بندے وی۔

٤ – کـه ستـا نـه کـوم شـخـص دلتـه پاتے کیږی هغه به پاتے وی، او که زمونږ نه څوك درغـلـو نو مونږ ته به ئے بیرته واپس کوئ۔ دا شرط په صحابه کرامو ډیر دروند ولګیدو

Scanned by CamScanner

چه دا څرنګ وشي۔ د الله رسول وفرمایل چه که مونږ نه څوك لاړو نو هغه خو مرتد شو، الله دې ئې هلاك کړي په هغه څه کوو؟ او که د هغوی نه څوك راشي بیرته به ئې ورکړو، الله به ورله یوه لاره پیدا کړي۔

پدې شرطونو کښې د زنانو تذکره ونشوه،

۵- زمونږ او ستاسو به تر لسو کالو پورې صلح وي۔

٦- که ستا په صلح کښې کومه قبیله داخلیږي او که زمونږ هر چا ته اختیار دې، نو خزاعه د رسول الله ﷺ سره او بنو بکر د قریشو سره داخل شول۔

۷- او دا شرط هم وو چه چا په خزاعه حمله وکړه هغه به په رسول الله ﷺ حمله وي او که چا په بنو بکر وکړه نو هغه به په قریشو حمله وي۔ ددې وجه نه د مکې فتح هم پدې طریقه راغله چه بنو بکر په خزاعه حمله وکړه نو دوی دا وعده ماته کړه، رسول الله ﷺ د خپلو حلیفانو په مدد کښې مکې طرفته روان شو۔

رسول الله ﷺ خپلو ملګروته حکم وکړو چه پاڅیږئ اول ځاروی ذبح کړئ، بیا احرام کوز کړئ۔ ملګری ډیر جذبه کښې وو چه دا خو زمونږ ذلت دې چه د دوی سره ئې منو۔ دې وخت کښې عمر فاروق ﷺ وفرمایل :اې د الله رسوله ! آیا تا مونږ ته نۀ وو وئیلی چه مونږ به عمره کوو؟ رسول الله ﷺ وفرمایل :آیا ما وئیلی وو چه سږ کال به ئې کوو، نۀ، کال له به ئې وکړو۔ بیا ئې ووېل : آیا زمونږ مړي په جنت کښې نۀ دي، او د هغوی مړي په اُور کښې؟ نو بیا مونږ په دین کښې ولې دوی ته خپل ذلت ورکوو؟۔

نبي علیه السلام وفرمایل : همداسې ده۔ لیکن ما ته د الله حکم دې۔ او زۀ د الله رسول یم او الله به ما نۀ ضائع کوي۔ بیا ئې ابوبکر صدیق ﷺ ته دغسې خبرې وکړې نو هغه هم دغسې جوابونه ورکړل څرنګ چه رسول الله ﷺ ورکړي وو۔

عمر فاروق ﷺ فرمائي : ما روستو ددې دپاره ډیر عملونه وکړل چه ولې ما داسې تیزي وکړه (لیکن دا تیزي د الله د خاطره وه)۔

پدې کښې رسول الله ﷺ سره خیمه کښې ام سلمه وه، رسول الله ﷺ هغې ته شکایت وکړو نو هغه ډیره هوښیاره وه، دا مشوره ئې ورکړه چه اې د الله رسوله ! تۀ بهر ووځه او خپل سر وخرئیوه، خلق به تا وینی، هغوی ستا تابعداری ضرور کوي۔

نو رسول الله ﷺ ځاروې ذبح کړو او بیا ئې یو صحابي راوغوختو او سر ئې پرې

Scanned by CamScanner

وخرئیلو۔ او ددے نه روستو مدینے طرفته واپس شول۔ په واپسئ کښې دا سورت هغه ځائے نازل شو چه د هغے تذکره مخکښې وشوه۔
په خط کښې چه لیکل کیدل نو اول ئے بسم الله الرحمن الرحیم ولیکل نو سهیل بن عمرو وویل چه دا مهٔ لیکه (مونږ رحمٰن نهٔ پیژنو) بلکه (بِاسْمِهٖ تَعَالٰی) ولیکه۔
(هٰذَا مَا قَاضٰی مُحَمَّدٌ رَّسُوْلُ اللّٰهِ) دا هغه شے دے چه پدے سره محمد رسول الله ﷺ د قریشو سره صلح کوی۔ نو سهیل وویل چه (رسول الله) لفظ پکښې مهٔ لیکه، که مونږ تهٔ د الله رسول گنړلے نو آیا تا سره به مو جنگ کولے او د بیت الله نه به مو منع کولے؟۔ محمد بن عبد الله ولیکه۔ رسول الله ﷺ وفرمایل: زهٔ محمد بن عبد الله هم یم او د الله رسول هم یم۔ لیکن خبره نهٔ جوړیده، بیا ئے محمد بن عبد الله ولیکلو، علی ﷜ ته ئے وویل (رسول الله) لفظ وران کړه نو هغه وویل قسم په الله که زهٔ ئے وران کړم، بیا رسول الله ﷺ ته ئے وخودو هغه په خپل لاس وران کړو۔
په دے سورت کښې الله تعالیٰ صلح حدیبیه ته (فتح مبین) (یعنی ښکاره فتح) وئیلے ده۔او د سیرتِ نبوی پاڼړے گواه دی چه دا صلح د مسلمانانو په حق کښې د نتیجو په لحاظ سره زبردسته فتح ثابته شوه۔ امام بخاریؒ د براء بن عازب ﷜ نه روایت کوی [تَعُدُّوْنَ أَنْتُمُ الْفَتْحَ فَتْحَ مَكَّةَ وَقَدْ كَانَ فَتْحُ مَكَّةَ فَتْحًا وَنَحْنُ نَعُدُّ الْفَتْحَ بَيْعَةَ الرِّضْوَانِ يَوْمَ الْحُدَيْبِيَةِ] چه تاسو خلق د مکے فتح ته فتح وایئ، او د مکے فتح یقیناً فتح وه، لیکن مونږه د حُدیبیه په ورځ بیعتِ رضوان ته فتح وایو...... الحدیث۔ (بخاری: ٤١٥٠)
نو په راتلونکو ورځو کښې د صلح لاندینی نتائج راښکاره شو:
١ – دا صلح په حقیقت کښې د قریشو او د نورو عربو کافرانو له طرفه په مدینه منوره کښې د نبی کریم ﷺ په قیادت او سردارئ کښې د موجود اسلامی حکومت اولنے اقرار وو۔
٢ – دا اولنئ موقع وه چه قریشو دا خبره اُومنله چه مسلمانان هم د نورو عربانو غونته د خانه کعبے د زیارت حق لری۔
٣ – د صلح یو شرط دا هم وو چه لسو کالو پورے به د دواړو ډلو ترمینځه جنگ نهٔ کیږی۔ ددے فائده دا شوه چه مسلمانانو ښکاره طور سره د اسلام تبلیغ وکړو، او د امام زهریؒ د قول مطابق په درے کالو کښې دننه دننه اسلام دومره تیزئ سره خور شو چه د

Scanned by CamScanner

مکے د فتح په وخت نبی کریم ﷺ سره لس زره مجاهدین موجود وو۔

٤ - د صلح یوه لویه فائده دا اوشوه چه نبی کریم ﷺ او صحابه کرامو د اطمینان ساه واخسته، او د اسلامی معاشرے بنیادونه مضبوط شول او د اسلام دار السلطنت (پائے تخت مدینه) د اسلام یوه محکمه او مضبوطه قلعه جوړه شوه۔

٥ - د قریشو او د جنوبی عربی قبائلو نه د مطمئن کیدو فائده دا شوه چه نبی ﷺ شمال او وسطِ عرب طرفته توجه وکړه۔ اول د یهودیانو دویمه قلعه خیبر د مسلمانانو په قبضه کښې راغله، بیا فدك، وادی القریٰ، تیماء، او تبوك د یهودیانو کلی یو یو د مسلمانانو د فرمان تابع شول۔

امام شعبیؒ وائی چه رسول الله ﷺ ته د حُدیبیه په صلح کښې هغه څهٔ ملاؤ شو چه هغه په بل هیڅ یوه غزا کښې ملاؤ شوی نهٔ وو:

١ - الله د هغهٔ مخکنی او روستنی گناهونه معاف کړل۔

٢ - بیعتِ رضوان د صحابه کرامو دپاره یو ډیر لوئے نعمت وو۔

٣ - مسلمانان د خیبر د کهجورو مالکان شول۔

٤ - د قربانئ څناور د حلالیدو ځائے ته اورسیدل۔

٥ - رومیانو ته په فارس والو باندے غلبه حاصله شوه، چه ددے په وجه په مسلمانانو کښې د خوشحالئ چرچه شوه۔

امام ابن القیمؒ په خپل کتاب (زاد المعاد) کښې د صلح حُدیبیه دا عظیم حکمتونه په تفصیل سره بیان کړی۔

د صلح حدیبیه د مذکوره لویو فائدو د وجے نه په دوه کالو کښې دننه د قریشو او د نورو مشرکانو قوت خپله ختم شو، او اسلام یو عظیم قوت جوړیدو سره راښکاره شو، چه ددے د ټولو نه ړومبنے اثر د مکے د فتح په صورت کښې راښکاره شو۔

Scanned by CamScanner

| إِنَّا فَتَحْنَا لَكَ فَتْحًا مُّبِينًا ﴿۱﴾ لِّيَغْفِرَ لَكَ اللَّهُ مَا |
| --- |
| یقیناً مونږ فتح درکړه تا ته فتح ښکاره۔ دے دپاره چه بخنه وکړی تا ته د هغه |
| تَقَدَّمَ مِن ذَنبِكَ وَمَا تَأَخَّرَ وَيُتِمَّ |
| چه مخکښ تیر شویدی د خطائی ستا نه او هغه چه روستو شوی وی او پوره کوی |
| نِعْمَتَهُ عَلَيْكَ وَيَهْدِيَكَ صِرَاطًا مُّسْتَقِيمًا ﴿۲﴾ وَيَنصُرَكَ |
| نعمت خپل په تا باندے او روان کړی تا لره په لاره نیغه باندے۔ او مدد وکړی تا سره |
| اللَّهُ نَصْرًا عَزِيزًا ﴿۳﴾ هُوَ الَّذِي أَنزَلَ السَّكِينَةَ فِي قُلُوبِ |
| الله تعالیٰ مدد عزت والا۔ الله هغه ذات دے چه راوے لیږله تسلی (آرام) په زړونو |
| الْمُؤْمِنِينَ لِيَزْدَادُوا إِيمَانًا مَّعَ إِيمَانِهِمْ |
| د مؤمنانو دے دپاره چه زیات شی دوی په ایمان کښ سره د ایمان ددوی نه، |
| وَلِلَّهِ جُنُودُ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ |
| او خاص د الله په اختیار کښ دی لښکرے د آسمانونو او د زمکے |
| وَكَانَ اللَّهُ عَلِيمًا حَكِيمًا ﴿۴﴾ |
| او دے الله تعالی پوهه حکمتونو والا۔ |

**تفسیر:** د (فتح) نه مراد (د حُدیبیه صلح) ده۔ امام بخاریؒ د براء بن عازب ﷺ قول نقل کړے چه ((مونږه به د حُدیبیه په ورځ بیعتِ رضوان ته فتح وئیله))

امام احمدؒ، ابوداوْدؒ او حاکمؒ وغیره د مجمّع بن جاریه انصاری ﷺ نه روایت کړے چه کله د حُدیبیه نه د واپسئ په وخت رسول الله ﷺ (کُراع الغمیم) نومے ځائے کښ د ﴿إِنَّا فَتَحْنَا لَكَ فَتْحًا مُّبِينًا﴾ تلاوت وکړو، نو یو صحابی (چه هغه عمر فاروق ﷺ وو) د هغهٔ نه تپوس وکړو (أَفَتْحٌ هُوَ ؟ قَالَ : نَعَمْ، وَالَّذِي نَفْسُ مُحَمَّدٍ بِيَدِهِ إِنَّهُ لَفَتْحٌ) چه آیا دا (فتح) ده؟ نو نبی ﷺ وفرمایل (هاؤ ! په هغه ذات مے دِے قَسَم وی د چا په لاس کښ چه زما ساه ده، دا خامخا فتح ده)۔ (ابوداود : ۲۷۳۸)

Scanned by CamScanner

دے تہ ئے فتح ځنګه ووئیله نو ددے وجے مخکښ بیان شوے چه دا د مکے او د حنین د فتح دپاره مقدمه شوه۔

او دارنګه ددے په وجه د دعوت لارے کولاوے شوے نو غلبه د اسلام راغله، په ځلورو کالو کښ یو لاکھ ځلویښت زره کسان مسلمانان شول۔

او دے نه چه چا فتح د مکے مراد اخستے ده نو هغه تفسیر باللازم دے۔

لِيَغْفِرَ لَكَ اللَّهُ : لام د عاقبت (انجام) او غائے دپاره دے۔ یعنی فتح سبب دے دپاره ددے ځلورو فائدو، یعنی ددے فتح انجام دا شو چه الله تا ته بخنه کوی الخ۔ بیا ځرنګ فتح سبب د مغفرت ده؟ نو وجه دا ده چه دا فتح د جهاد او د تکلیفونو د برداشت کولو په وجه حاصل شوه چه د رسول الله ﷺ د مزاج خلاف شرطونه ئے د الله د حکم د وجه نه ومنل نو الله ورته دا انعام ورکړو چه تا ته به بخنه کوی، ځکه چه دا قانون دے [إِنَّ الْعَطَايَا عَلَى مَتْنِ الْبَلَايَا] بخششونه (تحفے) د مصیبتونو په شاګانو باندے وی۔ او ﴿إِنَّ الْحَسَنَاتِ يُذْهِبْنَ السَّيِّئَاتِ﴾ (هود: ۱۱٤) یقیناً نیکیانے ګناهونه ختموی۔

بیا **سوال** دا دے چه د رسول الله ﷺ کوم ګناهونه وو چه الله ورته فرمائی چه تا ته د ګناهونو بخنه کوی؟ حال دا چه نبی ﷺ خو د ګناهونو نه معصوم وو؟

(۱) **جواب** دا دے چه دا په تعلیق باندے بناء دے، یعنی که بالفرض ستا مخکنی ګناهونه وی یا روستو درنه وشی نو هغه به درته معاف وی۔

(۲) جواب: دا جمله مستلزم ګناه لره نهٔ ده ځکه چه ذهن نه مراد خلاف افضل کارونه دی چه هغه ګناه نهٔ ده، لیکن د انبیاء علیهم السلام شان ډیر اُوچت وی، دغه خلافِ افضل کارونه د هغوی دپاره د خفګان سبب وی، نو الله تعالیٰ ورته د هغه خفګان لرے کیدو اعلان وکړو۔

مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِكَ وَمَا تَأَخَّرَ: (۱) یعنی د نبوت نه مخکښ او د نبوت نه روستو۔ (دا قول د مجاهدؒ دے)۔ (۲) مخکښ د فتح نه او روستو د فتح نه۔

(۳) ددے وخت نه مخکښ او ددے وخت نه روستو۔

وَيُتِمَّ نِعْمَتَهُ عَلَيْكَ : دا بله فائده ده: د نعمت پوره کیدو نه مراد غلبة الاسلام (د اسلام غلبه) ده۔ دارنګه نورو فتوحو ته اشاره ده۔

(۳) او اشاره ده نزول د هغه احکامو ته چه روستو د فتح نه نازل شویدی۔

Scanned by CamScanner

(٤) او اشاره ده چه ستا ډير دشمنان به په دين اسلام کښې داخل شي او د اسلامي حکومت فراخي به در کړي.
وَيَهْدِيَكَ صِرَاطاً مُّسْتَقِيماً: نبي ﷺ ته خو الله هدايت کړے نو بيا څرنګ وائي چه الله تا ته هدايت د نيغې لارے کوي؟ نو بعض دے کښې دا معنیٰ کړيده چه خطاء ده چه تا ته د جنګ طريقے ښائي. آيا اوسه پورے رسول الله ﷺ د جنګ په طريقو نهٔ پوهيدو؟!
نو ظاهر دا ده چه دلته شرعي هدايت مراد دے نو بيا د هدايت نه مراد (تَثَبُّت) دے په نيغه لاره. يعني الله تا په دين اسلام باندے مضبوطوي چه دے ته استقامت وئيلے شي، نو دا فتح سبب شوه دپاره د استقامت في الدين.
مګر ظاهر دا ده چه هدايت کښې ډيرے مرتبے دي، او د هغے انتهاء الله ته معلومه ده نو د رسول الله ﷺ هدايت به وخت په وخت زياتيږي تر مرګه پورے. لکه په ايمان کښې اعلیٰ مرتبے شته نو دغه شان د هدايت هم درجات دي.
وَيَنصُرَكَ اللهُ نَصْراً عَزِيزاً: دا څلورمه فائده ده: يعني داسے مدد به درسره وکړي چه ددے نه پس به اسلام د قوي نه زيات قوي شي، کافران خوار او ذليله شو، د دوئ شماره او د دوئ قوت کم شو، او د مسلمانانو شماره زياته شوه، او د دوئ اجتماعي او مالي حالت هم بهتر شو.
نصر عزيز داسے مدد چه عزتمند وي. ستا عزت به ورسره د خلقو ترمينځ زيات شي.
يا غالب مدد چه د هغے نه روستو به شکست نهٔ وي. نو په رسول الله ﷺ باندے بيا هيڅکله کافرانو غلبه نهٔ وه کړے. يا عزيز الوجود (بے مثله) مدد مراد دے.
هُوَ الَّذِيٓ: اوس مؤمنانو ته زيرے بيانيږي په نازلولو د سکينه (آرام) سره. يعني د صلح د شرطونو د وجه نه ډيره پريشاني وه نو آخر ددے خبرے منلو ته تيار شو چه په هر حال کښې د الله او د هغهٔ د رسول په خبره منلو کښې خير وي. ددے فوري نتيجه دا شوه چه د تمامو صحابه کرامو زړونه مطمئن شو او د دوئ پريشاني لرے شوه.
لِيَزْدَادُوا إِيمَاناً: د سکينه د نازليدو څلور فائدے راښکاره شوے، يو دا چه د دوئ د زوړ ايمان سره نور ايمان هم زيات شو، او د رسول الله ﷺ د اطاعت جذبه پکښې پيدا شوه. د رسول الله ﷺ ډير معجزات ئے پدے سفر کښې وليدل.
دا صريح دليل دے چه ايمان کښې زيادت راځي لکه چه امام بخاريؒ او نورو ائمه کرامو

د همدے آیتِ کریمه نه د ایمان په زیاتیدو او کمیدو باندے استدلال کړے۔

نو ددے تاویل په پوخ والی یا په ښکاره والی د ایمان سره کول تحریف دے، او د ایمان د زیاتیدو هیڅ مانع نشته۔

وَلِلَّهِ جُنُودُ السَّمَاوَاتِ: یعنی په آسمانونو او زمکه کښې د هغهٔ ډیرے لښکرے دی. هغهٔ ډیر ملائك آسمانونو لپاره او ډیر د زمکے دپاره پیدا کړی دی، ددے نه علاوه د کائناتو هره ذره د الله د فرمان تابع ده، ددے لښکرو په ذریعه چه کله اوغواړی د کافرانو لښکرے نیست او نابود کولے شی، لیکن هغهٔ په خپلو مومنانو بندګانو باندے جهاد او قتال د خپلو حکمتونو د وجے نه فرض کړے، چه هغه ئے ښهٔ پیژنی۔

| لِيُدْخِلَ الْمُؤْمِنِيْنَ وَالْمُؤْمِنَاتِ جَنَّاتٍ تَجْرِىْ |
|---|
| دے دپاره چه داخل کړی مؤمنان سړی او مؤمنے ښځے جنتونو ته چه بهیږی |
| مِنْ تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ خَالِدِيْنَ فِيْهَا وَيُكَفِّرَ عَنْهُمْ سَيِّئَاتِهِمْ |
| لاندے د هغے نه ولے، همیشه به وی په هغے کښې او وُبه رژوی د دوی نه ګناهونه د |
| وَكَانَ ذٰلِكَ عِنْدَ اللّٰهِ فَوْزًا عَظِيْمًا ﴿٥﴾ وَيُعَذِّبَ الْمُنَافِقِيْنَ |
| دوی، او دے دا کار په نیز د الله تعالیٰ کامیابی لویه۔ او عذاب ورکړی منافقانو سړو |
| وَالْمُنَافِقَاتِ وَالْمُشْرِكِيْنَ وَالْمُشْرِكَاتِ الظَّانِّيْنَ بِاللّٰهِ |
| او منافقو ښځو ته او مشرکان سړو او مشرکو ښځو ته چه ګمانونه کوی په الله |
| ظَنَّ السَّوْءِ عَلَيْهِمْ دَائِرَةُ السَّوْءِ وَغَضِبَ |
| باندے ګمان بد، په دوی باندے حادثه ده بده (مصیبتونه ناکاره)۔ او غضب کړیدے |
| اللّٰهُ عَلَيْهِمْ وَلَعَنَهُمْ وَأَعَدَّ لَهُمْ جَهَنَّمَ |
| الله په دوی باندے او لعنت ئے کړیدے په دوی باندے او تیار کړے ئے دے دوی لره جهنم |
| وَسَاءَتْ مَصِيْرًا ﴿٦﴾ وَلِلّٰهِ جُنُوْدُ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ |
| او بد دے هغه ځائے د ورګرځیدو۔ او خاص الله لره لښکرے د آسمانونو او د زمکے دی |

Scanned by CamScanner

وَكَانَ اللّٰهُ عَزِيْزًا حَكِيْمًا ﴿٧﴾

او دے الله تعالیٰ غالبه حکمتونو والا۔

**تفسير** : کله چه مخکښې آیت نازل شو نو صحابه کرامو وفرمایل: [يَا رَسُوْلَ اللّٰه ! هَنِيْئًا لَكَ مَا اَعْطَاكَ اللّٰهُ فَمَا لَنَا؟] اے د الله رسوله ! تا ته چه الله څه درکړل دا دِے ستا مبارك وی خو زمونږ دپاره به څه وی؟ نو الله تعالیٰ ﴿لِيُدْخِلَ الْمُؤْمِنِيْنَ وَالْمُؤْمِنَاتِ﴾ آیت نازل کړو۔ (مسند احمد : ١٢٢٤٨) وسنده صحيح)

**لِيُدْخِلَ**: دا هم متعلق دے د (انزل السكينه) سره، او دا دویمه فائده ده۔ یا دا متعلق دے د (لِيَزْدَادُوْا اِيْمَانًا) سره او مطلب دا دے چه جهاد سبب د سیکنه دے، او په انزال السکینه سره ایمان مضبوط شو، او د ایمان په مضبوطوالی سره جنت ته داخلیدل کیږی۔ نو څومره چه د بنده ایمان زیاتیږی نو جنت ته به نزدے کیږی۔

**وَالْمُؤْمِنَاتِ** : دلته دا وَهم کیدو چه جنت به د قتال په وجه حاصلیږی او هغه خو د نارینو کار دے، نو د دفع د وَهم دپاره ئے وفرمایل چه د جنت دپاره څانله یو سبب نهٔ دے بلکه نور صفات هم شته چه هغه په زنانو کښې هم راتلے شی، په هغے سره هم جنت ملاویږی۔

**وَيُكَفِّرَ عَنْهُمْ**: دا دریمه فائده ده چه الله به د دوی گناهونه خلقو ته نهٔ راښکاره کوی، او دوئ ته به په هغے باندے عذاب نهٔ ورکوی بلکه د اول نه به ئے جنت ته داخل کړی۔ او دلته ئے جنت ته داخلول د گناهونو رژولو نه مخکښې ذکر کړو اگرکه ترتیب برعکس دے دا ددے دپاره چه مؤمنانو ته زرتر زره خوشحالی حاصل شی۔

**وَيُعَذِّبَ** : دا څلورمه فائده ده : یعنی سکون او نصرت د مؤمنانو سبب د غمونو او خفگانونو د دشمنانو دے، او دلته د عذاب نه دنیاوی عذاب مراد دے، یعنی د کافرانو او منافقانو ذلیله کول او مغلوبه کول دی په قتل او قید کولو سره۔

**الظَّآنِّيْنَ** : یعنی دوئ گمان کوی چه الله لره شریکان او اولاد شته، شرك د بد گمانئ نه پیدا کیږی۔

دارنگه الله تعالیٰ په غیر د وسیلو نه حاجتونه نهٔ پوره کوی، څکه ئے مونږ باباگانو ته وایو۔

Scanned by CamScanner

یا د الله صفتونه د مخلوق صفتونو سره مشابه کوی، الله د مخلوق په شان گنړی۔ دارنګه د دوئ په الله باندے دا غلط ګمان هم دے چه هغه به د خپل رسول او مسلمانانو مدد نهٔ کوی۔ او د کفر کلمه به په کلمه د اسلام باندے غالبه کیږی، او روستو یو بل ګمان ذکر دے ﴿بَلْ ظَنَنْتُمْ اَنْ لَّنْ يَّنْقَلِبَ الرَّسُوْلُ﴾۔

او دا قانون دے چه په الله باندے حسن ظن کول د هرے نیکئ سبب دے او په الله باندے بدګمانی کول د هرے ګناه سبب دے۔ په الله چه بد ګمانه شی نو شرك، منافقت، او وسوسے او نا امیدئ اوبے صبری به پکښ راځی۔

ظَنَّ السَّوْءِ : سوء صفت د موصوف محذوف دے اَىْ ظَنَّ الْاَمْرِ السَّوْءِ۔ ګمان د بد کار۔ یا اضافت د موصوف دے صفت ته۔ یعنی بد ګمان۔

عَلَيْهِمْ دَائِرَةُ السَّوْءِ: یعنی دوئ چه په مؤمنانو کوم ګمان کوی او انتظار د بدئ کوی نو همدغه بد انجام ډے په دوی باندے راشی۔ نو الله به دوئ په دنیا کښ په قِسما قِسم عذابونو ګرفتار کړی، منافقت باندے همیشه پریشانی راځی۔

او دا جمله خبریه ده۔ الله خبر ورکړیدے چه په دوئ به بدے حادثے راځی۔ یا دعائیه ده، او مؤمنانو ته تعلیم د دعاء دے چه منافقانو ته دغه شان ښیرے وکړی۔

وَغَضِبَ اللهُ: د حادثاتو سره سره دوی د الله د طرفه د غضب او لعنت او د جهنم د عذاب مستحق دی۔ یعنی په دوئ به د هغهٔ غضب نازلیږی، او د قیامت په ورځ به دوئ د خپل رحمت نه لرے کوی، او هغهٔ د دوئ استوګنه جهنم مقرر کړے، چه ډیر زیات خراب ځائے دے۔

وَلِلّٰهِ جُنُوْدُ السَّمٰوٰتِ : داسے آیت مخکښ (۷) کښ هم تیر شو، فرق دا دے چه مخکښ ئے وفرمایل: چه الله به تاسو سره مدد کوی ځکه چه د ټولو لښکرو اختیار د الله سره دے، دلته په منافقانو او مشرکانو رد دے چه تاسو دا ګمان کوئ چه رسول الله ﷺ او مؤمنان به ختم شی، ځکه چه دوی کمزوری دی نو دا ګمان ستاسو غلط دے ځکه چه الله به د خپل رسول مدد کوی او هغه هیڅکله خپل رسول او مؤمنان د دشمنانو په لاس کښ نهٔ ورکوی۔ نو دا وئیل شویدے دپاره د رد د بد ګمان د دوئ۔

Scanned by CamScanner

| |
|---|
| إِنَّا أَرْسَلْنَاكَ شَاهِدًا وَّمُبَشِّرًا وَّنَذِيرًا ﴿٨﴾ |
| یقیناً رالیږلے ئے مونږ تهٔ گواه (بیان کونکے) او زیرے ورکونکے او یره ورکونکے۔ |
| لِتُؤْمِنُوا بِاللهِ وَرَسُولِهِ وَتُعَزِّرُوهُ |
| دے دپاره چه تاسو ایمان راوړئ په الله او په رسول د هغه، او مدد اُوکړئ تاسو د هغهٔ |
| وَتُوَقِّرُوهُ وَتُسَبِّحُوهُ بُكْرَةً وَّأَصِيلًا ﴿٩﴾ إِنَّ |
| (د دین) او عزت ئے وکړئ او پاکی اُووایئ د هغهٔ صبا او بیگاه۔ یقیناً |
| الَّذِينَ يُبَايِعُونَكَ إِنَّمَا يُبَايِعُونَ اللهَ يَدُ |
| هغه کسان چه بیعت کوی ستا سره یقیناً دوی بیعت (لوظ) کوی د الله سره، لاس د |
| اللهِ فَوْقَ أَيْدِيهِمْ فَمَنْ نَّكَثَ فَإِنَّمَا يَنْكُثُ |
| الله دپاسه د لاسونو د دوی دے نو چا چه وعده ماته کړه نو یقیناً وعده ماتوی دے |
| عَلَىٰ نَفْسِهِ وَمَنْ أَوْفَىٰ بِمَا |
| چه ضرر به ئے په نفس ددهٔ وی او چا چه پوره والے وکړو په هغه څه |
| عَاهَدَ عَلَيْهُ اللهَ فَسَيُؤْتِيهِ أَجْرًا عَظِيمًا ﴿١٠﴾ |
| چه لوظ ئے کړیدے په هغے باندے د الله سره نو زر دے چه ورېه کړی دهٔ ته اجر لوئی۔ |

**تفسیر**: اُوس د رسول الله ﷺ شان بیانوی چه ددهٔ په وجه فتح او مددونه او غلبه د اسلام راغله نو په ټول امت باندے ددهٔ توقیر (احترام) او اتباع فرض کوی۔

نبی کریم ﷺ ته خطاب کوی فرمائی چه اے زما نبی ! مونږ تهٔ د الله لپاره د وحدانیت او د مطلقِ کمال گواهئ ورکولو دپاره نبی جوړولو سره رالیږلے ئے، یعنی تا د دنیا والو مخے ته ددے خبرے اعلان وکړو چه د الله ذات یواځے دے، د هر عیب نه پاك، او هر لحاظ سره کامل دے، او مونږ تهٔ ستا د امت لپاره ددے خبرے گواهی ورکولو سره رالیږلے ئے چه تا د خپلِ رب دین دوئ ته رسولے دے۔ یا به تهٔ په قیامت کښ په دوی باندے گواهی کوے۔

لِتُؤْمِنُوا: اُوس د رسول د رالیږلو څلور فائدے بیانوی۔ یو دا چه د رسول د رالیږلو

مقصد دا دے چه خلق په الله او د هغه په رسول باندے ایمان راوړی۔ او پدے کښ اشاره ده چه تفصیلی ایمان د رسول الله ﷺ په تابعداریٔ سره حاصلیږی۔ او د رسول الله ﷺ تول دعوت ایمان ته وو۔ لکه سورتِ حدید کښ به راشی۔

وَتُعَزِّرُوْهُ: (۱) (ه) ضمیر الله ته راجع دے۔ یعنی د هغه د دین مدد وکړئ، یا د هغه دپاره اولاد او شریکان مهٔ وایئ۔ (۲) یا ضمیر راجع دے رسول ته یعنی چه تاسو د هغه د دین او د سنت د مخالفت نه خلق منع کړئ او د هغهٔ مدافعت وکړئ۔ (قتادة)

او د هغهٔ په ملګرتیا کښ په توره جنګ وکړئ۔ (عکرمة)

وَتُوَقِّرُوْهُ: توقیر، تعظیم او اجلال او اکرام کولو ته وئیلے شی۔

(۱) او ضمیر یا الله ته راجع دے، یعنی چه تاسو د هغهٔ نوم په عزت سره واخلئ او د هغهٔ بندګی وکړئ، او د هغهٔ په ټولو صفتونو د کمال باندے ایمان وساتئ۔

(۲) یا ضمیر رسول ته راجع دے یعنی تاسو ددے رسول احترام وکړئ، په دهٔ باندے آواز مهٔ پورته کوئ، هغهٔ ته په نوم سره آواز نهٔ کول، د هغهٔ د سنتو احترام کول، د هغهٔ د نوم سره درود او سلام وئیل او د هغهٔ په ژبه او توره او عمل سره مدد کول، او د هغهٔ پوره تابعداری کول د هغهٔ احترام او توقیر دے۔

وَتُسَبِّحُوْهُ: دا څلورمه فائده ده: دا ضمیر صرف الله ته راجع دے۔ یعنی ددے رسول د راتللو فائده دا ده چه بندګان د الله هر وخت تسبیحات ووائی، او په دنیا کښ د الله بندګی زیاته وشی۔ بعض وائی چه دے کښ هم ضمیر رسول ته راجع کیدل صحیح دی، او د تسبیح نه مراد لغوی معنیٰ ده، یعنی هغه د ګناهونو او عیبونو نه پاک ګنړل۔

یا د سبحة نه دے په معنیٰ د درود سره۔ یعنی په هغهٔ باندے صلاة او سلام ووایئ لیکن په عرف او شرع کښ د تسبیح مشهوره معنیٰ د الله دپاره تسبیحات وئیل دی۔ نو اول احتمال غوره دے۔

إِنَّ الَّذِيْنَ يُبَايِعُوْنَكَ: دلته د بیعت نه مراد بیعتِ رضوان دے، یعنی هغه بیعت چه د هغے په باره کښ الله تعالیٰ فرمایلی: ﴿لَقَدْ رَضِيَ اللّٰهُ عَنِ الْمُؤْمِنِيْنَ إِذْ يُبَايِعُوْنَكَ تَحْتَ الشَّجَرَةِ﴾ (الله د مؤمنانو نه راضی شو کله چه دوئ ستا په لاس د ونے لاندے بیعت کولو)۔ صحابه کرامو د حُدیبیه په مقام کښ د یوے ونے لاندے د نبی کریم ﷺ په لاس بیعت وکړو چه دوئ به مکے والو سره جنګ کوی او په هیڅ حالت کښ به میدان نهٔ

Scanned by CamScanner

پریدې او د ټینګښتې لاره به نهٔ غوره کوي. بیعت وعده کول او چا ته لاس ورکول دي.
ددې بیعـت په باره کښې الله تعالیٰ وفرمايل چه اګرکه په ظاهره کښې مسلمانان دا بیعت د رسول الله ﷺ په لاس کـوي، لیـکـن په حقیقت کښې دا معاهده او بیعت د الله سره دې، بیعت کولو په وخت د الله تـعالیٰ لاس د دوئ د لاسونو دپاسه وو، دوئ د جنت په بدله کښې الله سره د خپلو ځانونو سودا کړې ده. دې وجې نه اُوس چه څوك بیعت ماتوي، او کافرانو سره جنګ نهٔ کوي، نو ددې نقصان به صرف دهٔ ته رسیږي، یعنی ددې وبال او ددې سزا به صرف دهٔ ته ملاویږي. او څوك چه الله سره د کړې معاهدې پابندي کوي، او رسول الله ﷺ سره مـلګرې کیږي او کافرانو سره جنګ کوي، نو الله تعالیٰ به دهٔ ته لوئې اجر ورکوي، یعنی دا به په جنت کښې داخلوي.
**يُبَايِعُوْنَ اللّٰهَ:** څـکه چه د رسول الله ﷺ تـابـعداري په حقیقت کښې د الله تعالیٰ تابعداري ده.
**يَدُ اللّٰهِ:** یعنی الله تـعالیٰ بـه د دوئ نـه خپـل لاس نـهٔ راکاږي که چرې دوئ خپل لاس نهٔ راکاږي. یعنی الله تعالیٰ خپله وعده نهٔ ماتوي که چرې دوي وعده ماته نهٔ کړي، الله تعالیٰ وعـده کړې چه څوك ددې نبي سره بیعت کوي، زهٔ به ترې راضي کیږم او جنت ته به ئې داخلوم مـګـر کـه دوئ ددې نبـي مـدد پریخودو او په لوظ کلك پاتې نشول نو بیا به الله تعالیٰ د دوئ سره وعده نهٔ پوره کوي.
او دا ښکاره دلیـل دې چه د الله تعالیٰ دپاره لاس شته څرنګ چه د هغهٔ د شایان شان سره مـناسب وي، او همدا معنیٰ ئې مراد ده، او دې کښې تاویل ته ضرورت نشته. څکه چه په نـصـرت یـا احسـان کولو یا حفاظت کولو یا په قوت وغیره سره ددې تاویل کول تحریف دې، او انکار دې د الله تعالیٰ د خوږ صفت نه.
د فـوق أَيْـدِيهِـمْ نـه مـعلومه شوه چه په بیعت کښې لاس ورکول شرط دې، البته د زنانو دپاره په خوله باندې بیعت کافي دې، لکه چه عائشه رضی الله عنها فرمائي:
[وَاللّٰهِ مَـا مَسَّتْ يَدُ رَسُوْلِ اللّٰهِ ﷺ يَدَ امْرَأَةٍ قَطُّ] قسم په الله د رسول الله ﷺ لاس د هیڅ (پردې) زنانه د لاس سره نهٔ وو لګیدلې. (بخاري: ۴۸۹۱) و (۵۲۸۹).
**يَـنْـكُثُ عَلَىٰ نَفْسِهِ:** یـعـنـي وعـده ئې پـه ځـان بـانـدې ماته کړه، یعنی ځان ته ئې ضرر ورکړو، د الله تعالیٰ به هیڅ نقصان ونکړي.

Scanned by CamScanner

بیا دا وعده تهولو صحابه کرامو پوره کړه، او رسول الله ﷺ وفرمایل: چه حُدیبیه والا تهول جنتیان دی سوئ د یو منافق (جد بن قیس) نه۔ او روستو قرآن هم وویل چه الله تعالیٰ ترے راضی شو۔

**فائده** : دا آیت دلیل دے په مشروعیت د بیعت باندے، او د رسول الله ﷺ سره ډیر بیعتونه په مختلفو عملونو باندے شویدی لکه کله په هجرت او جهاد، او کله په اقامت د ارکان الاسلام، او کله د کفارو په معرکو کښ په ثابت قدمئ او نهٔ تښتیدو، او کله د فواحشو او منکراتو په پریخودو، او کله په تمسك بالسنة او اجتناب د بدعت نه، او په حرص علی الطاعات لکه د انصارو زنانو سره ئے پدے بیعت وکړو چه دوی به خیانت نهٔ کوی۔ او د بعض فقراؤ مهاجرینو سره ئے بیعت وکړو چه دوئ به د چا نه هیڅ شے نهٔ غواړی، نو د هغوی دیو تن نه به چابك راپریوتو نو هغه به پسے راکوزیدو او هغه به ئے راخستو او د هیچا نه به ئے نهٔ غوختل۔ (ابن ماجه فی الجهاد باب ٤١)۔

(فتح البیان)

لیکن ددے نه د پیرانو بیعتونه اخستل مراد نهٔ دی، ځکه چه مونږ تولو د رسول الله ﷺ سره بیعت کړے کله چه مونږ په هغه ایمان راوړو، نو د رسول الله ﷺ په هر امر باندے مونږ وعده کړے او د هغه سره مو بیعت کړے چه دا به منو او پدے به عمل کوو۔

| سَيَقُولُ لَكَ الْمُخَلَّفُونَ مِنَ الْأَعْرَابِ شَغَلَتْنَا |
|---|
| زر دے چه وائی به تا ته روستو پاتے کړے شوی د باندو والو نه مشغوله کړی وو مونږ |
| أَمْوَالُنَا وَأَهْلُونَا فَاسْتَغْفِرْ لَنَا يَقُولُونَ بِأَلْسِنَتِهِمْ |
| لره مالونو زمونږ او بال بچ زمونږ نو بخنه وغواړه مونږ لره، وائی دوی په ژبو خپلو |
| مَّا لَيْسَ فِي قُلُوبِهِمْ قُلْ فَمَنْ يَمْلِكُ لَكُمْ مِنَ |
| هغه څه چه نهٔ وی په زړونو د دوی کښ، اُووایه! نو څوك به اختیار لری تاسو لره د |
| اللَّهِ شَيْئًا إِنْ أَرَادَ بِكُمْ ضَرًّا أَوْ أَرَادَ |
| عذاب د الله نه څه شے که اراده اُوکړی هغه تاسو ته د ضرر درکولو یا اراده وکړی |

Scanned by CamScanner

| |
|---|
| بِكُمْ نَفْعًا بَلْ كَانَ اللّٰهُ بِمَا تَعْمَلُوْنَ خَبِيْرًا ﴿١١﴾ بَلْ |
| تاسو ته د فائدے بلکه دے الله په هغه عملونو چه تاسو ئے کویٔ خبردار۔ بلکه |
| ظَنَنْتُمْ أَنْ لَّنْ يَّنْقَلِبَ الرَّسُوْلُ وَالْمُؤْمِنُوْنَ إِلٰى أَهْلِيْهِمْ |
| گمان اُوکړو تاسو چه هیچرے به راواپس نشی رسول او مؤمنان خپل اهل ته |
| أَبَدًا وَّزُيِّنَ ذٰلِكَ فِيْ قُلُوْبِكُمْ وَظَنَنْتُمْ |
| هیڅ کله، او ښائسته کړے شوے وو دا (گمان) په زړونو ستاسو کښې او گمان کوو تاسو |
| ظَنَّ السَّوْءِ وَكُنْتُمْ قَوْمًا بُوْرًا ﴿١٢﴾ وَمَنْ لَّمْ يُؤْمِنْ بِاللّٰهِ وَرَسُوْلِهٖ |
| گمان بد او وئ تاسو قوم هلاك شوی۔ او چا چه ایمان رانۀ وړو په الله او په رسول د |
| فَإِنَّا أَعْتَدْنَا لِلْكَافِرِيْنَ سَعِيْرًا ﴿١٣﴾ وَلِلّٰهِ مُلْكُ |
| نو یقیناً مونږ تیار کړیدے کافرانو لره لمبو والا اُور۔ او الله لره بادشاهی |
| السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ يَغْفِرُ لِمَنْ يَّشَاءُ وَيُعَذِّبُ |
| د آسمانونو او د زمکے ده، بخنه کوی چا له چه اُوغواړی او عذاب ورکوی |
| مَنْ يَّشَاءُ وَكَانَ اللّٰهُ غَفُوْرًا رَّحِيْمًا ﴿١٤﴾ |
| چا له چه اُوغواړی، او دے الله ډیره بخونکے رحم کونکے۔ |

**تفسیر:** په دے آیت کریمه کښې د مدینے خوا اوشاته د اُوسیدونکو باندو چې قبیلو حال بیانیږی، چه ددے نوم غِفار، مُزینه، جُهینه، اسلم، اشجع او دِئل وو۔ د صلح حُدیبیه په کال د عمرے دپاره مکے طرفته د روانیدو نه مخکښې رسول الله ﷺ دوئ ته هم د خپل ځان سره د تللو دپاره وئیلی وو، لیکن د قریشی کافرانو د ویرے نه دا خلق لا نۀ ړل، د دوئ خیال وو چه قریش به مسلمانان ختم کړی، او د دوئ نه به هیڅ یو هم واپس رانشی۔ د دوئ ددے بد نیتئ د وجے نه الله تعالیٰ دوئ لره هم د خپل رسول د ملګرتیا او د بیعتِ رضوان غونډے برکتی بیعت او ددے د فضائلو او برکاتو نه محرومه اوساتل۔

کله چه رسول الله ﷺ د عمرے نه راواپس شو نو دے وخت کښې دا منافقان حاضر شول

Scanned by CamScanner

او د دروغو بهانې ئې شروع کړې چه الله تعالیٰ دلته د هغوی د زړه راز راښکاره کړو چه د دوی بهانې مهٔ منئ۔ یعني اې زما نبي ! کله چه تهٔ مدینې ته اُورسې نو دغه بانډه چیان به ستا خواته راځي، او د دروغو عذرونه به پیش کوي، او وائي به چه مونږ په خپل کاروبار کښې مشغول پاتې شو، او زمونږ په نشتوالي کښې زمونږ د بال بچ پرورش والا څوک نهٔ وو، دې وجې نه مونږ تاسو سره لاړ نهٔ شو، تهٔ زمونږ د رب نه مونږ لپاره بخښنه وغواړه۔

الله تعالیٰ د دوئ نفاق راښکاره کړو، او دوئ ئې دروغژن کړل او وې فرمایل چه دوئ په خپلو ژبو سره هغه خبرې کوي کومې چه د دوئ په زړونو کښې نهٔ وي، دوئ خو په شك او منافقت کښې مبتلا دي، او تا نه په بخښنه غوښتلو کښې هم رشتینې نهٔ دي، ځکه چه دوئ په خپلو کړو باندې خپیمانه او د خپلې گناه نه توبه گار نهٔ دي۔ بلکه صرف تاسو نه ځان خلاصوي او ستاسو د ملامته کولو نه یریږي۔

قُلْ فَمَنْ يَمْلِكُ: اُوس الله تعالیٰ دوئ ته دعوت او د همکی ورکوي۔ یعني که الله تاسو ته نقصان رسول غواړي، یا تاسو ته نفع رسول غواړي، نو هغه به د هغهٔ د ارادو نه څوك منع کړي، یعني ستاسو د منافقت او دروغژن بیانئ د وجې نه ستاسو دپاره د رسول الله ﷺ د بخښنې غوښتلو هیڅ فائده تاسو ته نهٔ رسیږي۔ او الله ستاسو د کړو نه ښهٔ واقف دې، هغه به تاسو ته ددې بدله ضرور درکوي۔

بَلْ ظَنَنْتُمْ : دا متعلق دې د (شَغَلَتْنَا) سره، یعني تاسو مشغوله نهٔ وئ بلکه ستاسو نیت خراب وو، او دا بد گمان مو کولو چه رسول او مؤمنان به خپل کور والو ته راواپس نشي ځکه چه د کافرانو عظمت او د مسلمانانو سپکوالې ستاسو په زړونو کښې موجود وو، او بیا دا خبره تاسو ته ښائسته ښکاره شو چه مسلمانان او نبي ختم شي چه دا علاقه ترې وزگاره شي، او همدا کفر دې۔

ظَنَّ السَّوْءِ: یعني دا په الله بدگماني وه چه هغه به خپل نبي او مؤمنان دشمن ته حواله کړي او هغوی به ئې ختم کړي۔ یا عام گمانونه مراد دي۔ او دا د مخکښې ظن السوء دپاره تاکید دې یا د هغې نه هم عام دې۔

وَكُنْتُمْ: په خپله معنیٰ دې یعني تاسو د مخکښې نه هم بیکاره او شریان خلق وئ۔ یعني د نفاق او دروغ بیانئ او د مسلمانانو سره د غدارئ د وجې نه د الله د ناراضگئ او د خپل هلاکت او بربادئ حقدار جوړ شوي یئ۔ یا په معنیٰ د (صِرْتُمْ) سره دې، یعني اُوس

Scanned by CamScanner

بیکارہ اوبے خیرہ وګرځیدئ۔

بُوراً: جمع د بَائِرٌ ده، هلاك شده ته وئیلے شی۔ (مجاهدؒ) جو هرئ وائی: بور هغه سړی ته وئیلے شي چه فاسق هلاك شده وی او هیڅ خیر پکښې نۀ وی۔

وَمَن لَّمْ يُؤْمِن: دا د هلاکت تشریح ده۔ او اشاره ده چه د منافقانو په الله او په رسول ایمان نشته بلکه کافران دی۔

وَلِلّٰهِ مُلْكُ السَّمَاوَاتِ: یعنی د آسمانونو او د زمکے مالك اوحاکم هم هغه دے، او هم هغه په دے کښې د خپلے خوښے مطابق تصرف کوی، هغه چه چاله وغواړی، معاف کوی ئے او چاله چه وغواړی عذاب ورکوی۔ دے وجے نه ایے هغه خلقو چه هغوئ د رسول الله ﷺ سره د عمرے لپاره تللو نه روستو پاتے شوی یئ! اُوس هم موقع شته دے چه د خپلے دے ګناه معافی د الله نه وغواړئ، او د رسول کریم ﷺ د طاعت لوظ وکړئ، دے دپاره چه هغه ستاسو ګناه معاف کړی، ځکه چه هغه ډیر زیات بخښونکے او نهایت مهربانه دے۔

او پدے کښې اشاره ده چه پدے منافقانو کښې به بعض کسان ایمان راوړی۔

| سَيَقُوْلُ الْمُخَلَّفُوْنَ إِذَا انْطَلَقْتُمْ إِلٰى مَغَانِمَ |
|---|
| زر دے چه وائی به روستو پاتے کړے شوی کله چه روان شئ تاسو غنیمتونو ته، |
| لِتَأْخُذُوْهَا ذَرُوْنَا نَتَّبِعْكُمْ يُرِيْدُوْنَ |
| دے دپاره چه اُونیسئ هغه، پریږدئ مونږ لره چه روان شو تاسو سره، اراده لری دوی |
| أَنْ يُّبَدِّلُوْا كَلَامَ اللّٰهِ قُلْ لَّنْ تَتَّبِعُوْنَا كَذٰلِكُمْ قَالَ |
| چه بدل کړی خبره د الله، تۀ اُووایه هیچرے نشئ تلے تاسو مونږ سره، دغه شان وئیلی |
| اللّٰهُ مِنْ قَبْلُ فَسَيَقُوْلُوْنَ بَلْ |
| دی الله تعالیٰ مخکښې ددے نه، نو زر دے چه وائی به دوی بلکه |
| تَحْسُدُوْنَنَا بَلْ كَانُوْا لَا يَفْقَهُوْنَ إِلَّا قَلِيْلًا ﴿١٥﴾ |
| تاسو حسد (کینه) کوئ مونږ سره بلکه دوی نۀ پوهیږی مګر لږ۔ |

Scanned by CamScanner

**تفسیر:** کوم بانډه چیان منافقان چه د رسول الله ﷺ سره عُمرة الحدیبیه دپاره د تللو نه بهانـه جوړه کړه او روستو پاتې شول، د همدوئ په باره کښې الله تعالیٰ خپل رسول ﷺ ته خبر ورکړے چه کله تهٔ د خپلو مخلصو صحابه کرامو سره د خیبر فتح کولو دپاره روان شے نو دوئ به د مالِ غنیمت په لالچ کښې تاسره تلل غواړي، تهٔ دوئ ته د خپل ځان سره د تـللو اجازت مـهٔ ورکـوه، ځـکـه چه الله تـعالیٰ د خیبر د مالِ غنیمت وعده صرف هغه صحابوٌ سره کړے کوم چه د حُدیبیه د صلح په وخت هلته موجود وو، بل چا دپاره په دے کښې هیڅ برخه نشته۔

الْمُخَلَّفُونَ: یعنی الله تـعالیٰ د خپـل رسـول د مـلـګـرتیا نه پاتې کړیدی، یا شیطان پاتې کړیدی په وسوسو سره۔

إِلَىٰ مَغَانِمَ: ددے نـه د خیبر غـنیمـتونـه مراد دی، ځـکـه چـه خیبر کـښې مـالونـه او غنیـمتونه زیات وو، او دشمن کمزورے وو، نو دے ته د منافقانو طمعے هم راپورته شوے او زاری ئے کـولـه چه مـونږ ځان سره بوځه۔ په سیرت کښې راځي چه رسول الله ﷺ د منـافـقـانـو سره دا شـرط ولـګـولو چه صحیح ده تاسو به ځان سره بوځو خو غنیمت به تـاسـو تـه نهٔ مـلاویږي، نـو دوی بیا وویل چه غنیمت پکښې نهٔ وي بیا څه دپاره ځو۔ نو روستو پاتې شول۔

يُرِيدُونَ أَنْ يُبَدِّلُوا كَلَامَ اللَّهِ: (دوئ غواړي چه د الله خبرے بدلے کړي) مجاهدؒ، قتادهؒ او جـویبرؒ وغیـره ددے هـمدا مفهوم بیان کړے، یعنی دا بانډه چیان منافقان حُدیبیه والو سره د الله تعالیٰ کړے وعده بدلول غواړي۔ الله پته وحي کړے وه خپل نبي ته چه منافقان بـه تـا سره خیبر تـه تـلل غواړي لیکن تهٔ به ئے نهٔ بوځې نو که اُوس دوی لاړ شي نو د الله وعده به بدله شي۔

كَلَامَ اللَّهِ: دا ښـکـاره دلیـل دے چه د رسول الله ﷺ حدیث هم د الله تـعالیٰ کلام دے، او هغه هم حجت دے د قرآن کریم په شان۔

قُلْ لَنْ تَتَّبِعُونَا: یـعـنـی تـهٔ دوئ تـه اووایه چه تاسو مونږ سره نشئ تللے، ځکه چه الله تعالیٰ مـونږ ته زمونږ مدینے ته د راتللو نه مخکښې دا خبر راکړے چه د خیبر مالِ غنیمت بـه صرف هـغـه خـلـقـو ته ملاویږي چه هغوئ په عُمرة الحدیبیه کښې شریك وو۔ یا الله مونږ ته وئیلي چه منافقان ډیے تاسو سره خیبر ته لاړ نشي۔

Scanned by CamScanner

فَسَيَقُولُونَ بَلْ تَحْسُدُونَنَا : یعنی منافقان به ستا د دے خبرے آوریدو نه پس مسلمانانو ته وائی چه تاسو مونږ سره حسد کوئ، ځکه مونږ د ځان سره بوتللو نه بندوئ، یعنی دا د الله تعالیٰ حکم نهٔ دے، بلکه تاسو مونږ سره د حسد د وجے نه داسے خبرے کوئ۔

دلته وګوره منافقان مؤمنانو ته کینه ګروائی۔ حال دا چه د منافقانو سره څه کمال وو چه مسلمانانو د هغوی سره کینه کړے وے۔ ضد او کینه خو د هغه چا سره کولے شی چه د هغهٔ سره کمال وی، او کمال خو د مؤمنانو سره وو چه قرآن او حدیث او ایمان ورسره وو، نو په حقیقت کښې منافقانو ضد او کینه کوله۔ ۔ رَمَتْنِیْ بِدَائِهَا فَانْسَلَّتْ۔

بَلْ كَانُوا لَا يَفْقَهُونَ: الله تعالیٰ د دین په پوهه کښې د دوئ کموالے بیان کړے چه دا خلق بیخی د دین هیڅ پوهه نهٔ لری، صرف د دنیا د کارونو لږ شان پوهه لری، چه د دے په وجه په خپلے دوپرقیٔ باندے د پردے اچولو کوشش کوی۔

او دا آیت دلیل دے چه د دوی د ګناه دنیاوی سزا هم شته چه د آینده غنیمتونو نه به محرومه وی او اخروی سزا هم شته۔

قُلْ لِّلْمُخَلَّفِيْنَ مِنَ الْاَعْرَابِ سَتُدْعَوْنَ

اُووایه ته! روستو پاتے کړے شوو ته د باندچیانو نه زر دے چه را وُبه بللے شئ تاسو

اِلٰى قَوْمٍ اُولِیْ بَاْسٍ شَدِیْدٍ تُقَاتِلُوْنَهُمْ اَوْ

یو قوم ته چه خاوندان د جنګ سخت دی، جنګ به کوئ تاسو د هغوی سره تردے

يُسْلِمُوْنَ فَاِنْ تُطِيْعُوْا يُؤْتِكُمُ اللّٰهُ اَجْرًا

چه هغوی اسلام راوړی، نو که تاسو خبره اُومنله، دربه کړی تاسو ته الله تعالیٰ اجر

حَسَنًا وَاِنْ تَتَوَلَّوْا كَمَا تَوَلَّيْتُمْ مِّنْ قَبْلُ يُعَذِّبْكُمْ

ښائسته او که چرته واوړیدئ لکه څنګه چه اوړیدلی وئ مخکښې ددے نه عذاب به

عَذَابًا اَلِيْمًا ﴿١٦﴾ لَيْسَ عَلَى الْاَعْمٰى حَرَجٌ وَّلَا عَلَى الْاَعْرَجِ حَرَجٌ

درکړی تاسو ته عذاب دردناک۔ نشته په ړوند باندے ګناه او نهٔ په ګوډ باندے ګناه

Scanned by CamScanner

| وَلَا عَلَى الْمَرِيضِ حَرَجٌ ۗ وَمَن يُطِعِ اللَّهَ وَرَسُولَهُ |
|---|
| او نۀ په مریض باندے گناه او چا چه تابعداري اوکړه د الله او د رسول د هغه |
| يُدْخِلْهُ جَنَّاتٍ تَجْرِي مِن تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ |
| داخل به ئے کړي جنتونو ته چه بهیږي به لاندے د هغے نه ولے |
| وَمَن يَتَوَلَّ يُعَذِّبْهُ عَذَابًا أَلِيمًا ﴿١٧﴾ |
| او چا چه مخ واړو عذابه ورکړي هغه ته عذاب دردناك. |

**تفسیر**: اُوس ددے منافقانو په امتحان کښ اچول غواړي، یعنی که تاسو د جهاد شوقیان یئ او د زړهٔ نه دا دعوه کوئ نو زر دے چه ستاسو حال به معلوم شی، نزدے زمانه کښ به تاسو یو زبردست طاقتور قوم سره د جنګ کولو دپاره را اوبللے شئ.

طاقتور قوم څوك وو؟

ددے طاقتور قوم په تعیین کښ د تفسیر د علماؤ ګنړ اقوال دی، چا فارس، چا روم، چا دواړه مراد کړیدی چه دوئ ته عمر فاروق ﷜ دعوت ورکړے وو.

(ابن عباس ﷜، عطاء بن ابی رباحؒ، عطاء الخراسانیؒ، والحسنؒ).

چا هوازن او ثقیف مراد کړي یعنی غزوه د حنین او د اَوطاس او طائف. چه دوی ته رسول الله ﷺ دعوت ورکړے وو (سعید بن جبیرؒ، عکرمهؒ، قتادهؒ)

او دے قول ته خازنؒ اَقویٰ وئیلے دے. ځکه چه د رسول الله ﷺ په زمانه کښ قوی قوم همدغه وو. او د هغه په زمانه کښ یا مؤمن طاهر او یا کافر مجاهر وو.

او چا بنو حنیفه یعنی د مسلیمه کذاب منونکی مراد کړي چه دوی ته ابوبکر ﷜ دعوت ورکړے وو. (زهريؒ ومقاتلؒ)

رافع بن خدیج وائی ﷜: مونږ به (سَتُدْعَوْنَ إِلَىٰ قَوْمٍ أُولِي بَأْسٍ) لوستلو خو نهٔ پو هیدو چه دوی به څوك وی؟ تردے چه مونږ ته ابوبکر صدیق دعوت راکړو قتال د بنو حنیفه ؤ ته نو مونږ ته پته ولګیده چه هم دوی مراد دی.

پدے کښ اشاره ده چه الله تعالیٰ به دا ټولے علاقے فتح کړي او اسلامی خلافتونه به

Scanned by CamScanner

راځي۔

واحدیؒ د اکثرو مفسرینو نه آخري قول نقل کړے، ځکه چه دلته صرف دوه صورتونه ښودلے شوي دي، یا خو به دا خلق اسلام راوړي، یا به د دوئ فیصله توره وکړي، دوئ نه به جزیه نهٔ اخستل کیږي۔ او د مسیلمه کذاب منونکي هم هغه خلق وو چه د هغوئ نه جزیه اخستل جائز نهٔ وو۔ اهلِ فارس او اهلِ روم نه خو جزیه اخستلے کیږي، ځکه چه دا خلق د اسلام راوړو نه پس مرتد شوي نهٔ وو۔

او چا چه ثقیف او هوازن مراد کړے په هغه باندے اعتراض دا دے چه دلته خو (لَنْ تَتَّبِعُوْنَا) راغلے دے، او په سورت توبه (: ۸۳) کښ تیر شویدي (وَلَنْ تُقَاتِلُوْا مَعِيَ عَدُوًّا) د هغے نه معلومیږي چه دوي ته نبی ﷺ بیا د قتال کولو دعوت نهٔ دے ورکړے؟

**جواب** دا دے چه دواړو آیتونو کښ فرق دے، د سورت توبه آیت د غزا د تبوك په باره کښ دے، او هغه خو ډیر روستو نازل شویدے، او دلته لَنْ تَتَّبِعُوْنَا کښ منع خاص وه د خیبر د غزا پورے، او دا په اوم کال د هجرت نازل شوے وو۔

سَتُدْعَوْنَ: دا آیت دلیل دے په فضیلت د خلفاء راشدینو کوم چه جهاد طرفته دعوت ورکونکي وو او پدے خبره چه د هغوی طاعت پدے باره کښ واجب دے۔ (السعدیؒ)

تُقَاتِلُوْنَهُمْ اَوْ يُسْلِمُوْنَ: یعني دے دواړو کښ به یو کار وي قتال یا اسلام لیکن د سورت توبه (۲۹) آیت نه معلومیږي چه دا حکم د اهل کتابو په باره کښ نهٔ دے بلکه د هغوی نه جزیه اخستل هم جائز دي۔

یعني که د مخکښ ذکر شوي (سَتُدْعَوْنَ اِلٰى قَوْمٍ) کښ د قوم نه مراد عام واخستے شي، نو بیا به دا حکم د هغه کفارو وي چه د هغوی نه جزیه نهٔ اخستلے کیږي۔

یا په واقع کښ ترے وانخستے شوه بلکه د هغوی سره جنګ وکړے شي او چا په کښ اسلام راوړو۔ یعني جزیه اخستل به جائز وو لیکن الله پیشنګوئي ورکړه چه دوی سره به یا جنګ وي یا به دوی اسلام قبلوی او جزیه ته به نهٔ تیاریږي۔

حافظ ابن جریرؒ لیکي: چه ددے قوم په تعیین کښ هیڅ دلیل نقلي او عقلي نهٔ دے موجود نو ددے وجه نه مونږ دا په خپل اجمال باندے پریدو، او تعیین ته هیڅ حاجت نهٔ وینو۔

فَاِنْ تُطِيْعُوْا: یعني که تاسو په هغه زمانه کښ هم د هغوی قتال ته تیار شوئ نو الله به

Scanned by CamScanner

ستاسو توبه قبوله کړی وی او اجر به درکړی۔
پدے کښې اشاره وه چه روستو پاتے کیدونکی ډیر قبائل وو او په هغوی کښې هغه خلق هم وو چه د هغوی د توبے امید کیدے شو نو الله تعالیٰ د هغوی د توبے د قبلولو علامه دا وخودله چه که تاسو د طاقتور قوم سره مقابلے دپاره تیار شوئ نو تاسو به د ایمان والو نه شئ او اجر به درکړی۔ (خازن)
أَجْرًا حَسَنًا: ددے نه مراد په دنیا کښې غنیمت او په آخرت کښې جنت دے۔
وَإِن تَتَوَلَّوْا: یعنی که چرے دا ځل هم تاسو جهاد ته د تللو نه ځان راښکلو، نو هغه به تاسو له دردناك عذاب درکړی چه قتل، قید او په دنیا کښې مغلوبه کیدل او په آخرت کښې دوچنده عذابونه به ستاسو انتظار کوی۔
مِّن قَبْلُ: اشاره ده تښتیدو ته په ورځ د اُحد او د حدیبیه او نورو واقعاتو ته۔
لَّيْسَ عَلَى الْأَعْمَىٰ: کله چه مخکنی آیتونه نازل شول نو بعض معذور صحابه کرامؓ ویریدل چه زمونږ خو وس نهٔ کیږی، او مونږ د عمرے او د جهادونو نه پاتے کیږو آیا مونږ ته به هم عذاب راکړے کیږی؟ نو الله پدے آیت کښې د هغوی عذر نازل کړو۔
او د پورتنی وعید (عذاب بیانولو) نه ئے دوی مستثنیٰ کړل او وے فرمایل چه ړندو، ګوډانو او مریضانو لپاره هیڅ حرج نشته که دوئ په جنګ کښې نهٔ شریکیږی۔
ړوند دشمن نشی لیدلے، دے وجے نه جنګ نشی کولے، او نهٔ د دشمن نه خپل ځان بچ کولے شی، او ګوډ د تللو طاقت نلری، دے وجے نه دا د جنګ او حملے نه مجبوره وی، او ناجوړه اګرکه لیدل کولے شی او پاسیدلے شی، لیکن د خپلے بیمارئ او کمزورئ په وجه په دشمن نشی غالب کیدلے، بلکه د خپل ځان نه د دشمن حمله هم نشی دفع کولے۔
حَرَجٌ: یعنی ګناه نشته که د حدیبیه د عمرے نه پاتے شوی وی۔ یا د نورو فرضی جهادونو نه پاتے شی۔
وَمَن يُطِعِ اللَّهَ وَرَسُولَهُ: دے ته اشاره ده چه اګرکه داسے مجبوره خلق په جهاد کښې برخه نهٔ اخلی، لیکن که چرے د دوئ په زړونو کښې د الله او د هغهٔ د رسول (ﷺ) د اطاعت جذبه موجوده وی، نو الله به دوئ داسے جنتونو ته داخل کړی چه د هغے لاندے به نهرونه بهیږی، او څوك چه د الله او د هغهٔ د رسول (ﷺ) د خبرے نه مخ اړوی، الله به هغهٔ له دردناك عذاب ورکړی۔

Scanned by CamScanner

لَقَدْ رَضِيَ اللّٰهُ عَنِ الْمُؤْمِنِيْنَ اِذْ يُبَايِعُوْنَكَ تَحْتَ الشَّجَرَةِ

یقیناً رضا شویدے الله د مؤمنانو نه کله چه بیعت کولو دوی تا سره لاندے د ونے نه

فَعَلِمَ مَا فِيْ قُلُوْبِهِمْ فَاَنْزَلَ السَّكِيْنَةَ عَلَيْهِمْ

نو الله خبر وو په هغه خبرو چه په زړونو د دوی کښې وو نو راوے لیږلو آرام په دوی

وَاَثَابَهُمْ فَتْحًا قَرِيْبًا ﴿۱۸﴾ وَمَغَانِمَ كَثِيْرَةً يَّاْخُذُوْنَهَا وَكَانَ

او بدله کښې ئے ورکړه دوی ته فتح نزدے۔ او غنیمتونه ډیر چه اخلی ئے دوی او دے

اللّٰهُ عَزِيْزًا حَكِيْمًا ﴿۱۹﴾ وَعَدَكُمُ اللّٰهُ مَغَانِمَ كَثِيْرَةً

الله تعالیٰ زورور حکمتونو والا۔ وعده کړیده تاسو سره الله تعالیٰ د غنیمتونو ډیرو

تَاْخُذُوْنَهَا فَعَجَّلَ لَكُمْ هٰذِهٖ وَكَفَّ اَيْدِيَ

چه اخلئ به تاسو هغه نو په جلتئ سره ئے درکړل تاسو ته دا او بند ئے کړل لاسونه

النَّاسِ عَنْكُمْ وَلِتَكُوْنَ اٰيَةً لِّلْمُؤْمِنِيْنَ وَيَهْدِيَكُمْ

د خلقو ستاسو نه او دے دپاره چه شی دا نخه دپاره د مؤمنانو او هدایت وکړی تاسو

صِرَاطًا مُّسْتَقِيْمًا ﴿۲۰﴾ وَّاُخْرٰى لَمْ تَقْدِرُوْا عَلَيْهَا

ته د لارے نیغے۔ او نور غنیمتونه چه تاسو قادر نهٔ یئ (اُوس) په هغے باندے

قَدْ اَحَاطَ اللّٰهُ بِهَا وَكَانَ اللّٰهُ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرًا ﴿۲۱﴾

یقیناً راګیر کړیدی الله تعالیٰ هغه (په علم خپل کښې) او دے الله په هر شی پوره قدرت لرونکے۔

**تفسیر**: پدے آیتونو کښې اُوس د صلح حدیبیه فوائد او ښکلے نتیجے بیانوی، یعنی کوم صحابه کرامؓ چه په حدیبیه مقام کښې د یوے وُنے لاندے د رسول الله ﷺ په قتال او جهاد باندے بیعت وکړو چه د قریشو کافرانو سره به په جنګ کولو کښې هر یو کس په خپل ځان لوبے کوی، او په هیڅ حال کښې به میدان پرینښودو سره نهٔ تښتی، نو د دوی

Scanned by CamScanner

نه الله تعالىٰ د خپلې رضا او خوشحالۍ اعلان وکړو دې وجه نه دې بيعت ته بيعتِ رضوان وئيلې کيږي.

الشَّجَرَةِ: دا يوه ونه وه چه روستو زمانه کښې امير المؤمنين عمر فاروق ﷺ ووهله، ځکه چه بعض خلق به ورتلل او د هغې لاندې به ئې مونځ کولو، او دا به ئې وئيل چه دلته رسول الله ﷺ بيعت کړيدې، پدې سره يو بدعت ته لاره کولاويده نو عمر ﷺ وفرمايل: پخوانی قومونه پدې هلاك شو چه هغوی به د پيغمبرانو د آثارو پسې ګرزيدل او د ځان نه ئې عبادتونه رائج کړل نو الله مونږ ته پګې باندې امر نۀ دے کړے نو هغه ونه ئې ووهله، بيا به چا دغه ځای نۀ پيژندلو.

فَعَلِمَ: کله چه الله تعالىٰ د مومنانو په زړونو کښې رشتينوالې او په لوظ باندې د دوئ مضبوطه اراده اوپيژندله، نو دوئ له ئې صبر او ثابت قدمی او د زړۀ سکون ورنصيب کړو.

مَا فِيْ قُلُوبِهِمْ: ١- د ما نه مراد خير او رشتينوالې دے.

٢- يا اَلْقَلَقُ عَلَى الشُّرُوْطِ الْجَائِرَةِ ده. (يعنی په ظالمانه شرطونو باندې پريشانی).

وَاَثَابَهُمْ فَتْحاً قَرِيْباً: او د دوئ د صبر او کنټرول په بدله کښې ئې دوئ ته د مکې والو د غنيمتونو په ځائې ډير زر د خيبر فتح او هلته د ملاويدونکو ډيرو غنيمتونو زيرے ورکړو. په دې زمانه کښې د خيبر زمکه ډيره زياته زرخيزه ګڼړل کيده، او د هغه ځائې يهوديانو سره ډير لوی دولت وو. نبی کريم ﷺ دا ټولې ميوې، زمکې او مال او دولت په بيعتِ رضوان کښې د برخه اخستونکو صحابه کرامو ترمينځه تقسيم کړل.

وَعَدَكُمُ اللّٰهُ مَغَانِمَ كَثِيْرَةً: دې نه مراد نور غنيمتونه دی چه هغه په اتم کال باندې د هوازن او ثقيف نه په حنين غزا کښې ونيولې شو چه دا شپږ زره اوښان او اته څلويښت زره ګډې بزې او شپږ زره غلامان زنانه او ماشومان وو. او داسې غنيمتونه به مؤمنانو مجاهدينو ته تر قيامته پورې ملاويږی.

فَعَجَّلَ لَكُمْ: يعنی تاسو ته ئې اوس دغه د خيبر غنيمتونه په جلتۍ سره درکړل، او نور به روستو درکوی.

وَكَفَّ اَيْدِيَ النَّاسِ: يعنی په حديبيه مقام کښې ئې د قريشو لاسونه ستاسو نه بند وساتل لکه بعض خوانانو اراده وکړه چه په مسلمانانو حمله وکړی دې دپاره چه دا صلح

Scanned by CamScanner

ونشی لکه روستو راځی۔
دارنګه د یهودیانو لاسونه ئې د مدینې نه بند کړل کله چه نبی کریم ﷺ حدیبیه ته راووتو، هغوی اراده کړې وه چه په مدینه حمله وکړی لیکن رعب پرې راغے۔ (قتادة ورجحه ابن جریرؒ)
دارنګه کله چه رسول الله ﷺ خیبر والا محاصره کړل نو عُیینه بن حِصن فَزاری او عوف بن مالك النضری او ددوی ملګرو اراده وکړه چه د خیبر والو مدد وکړی او په مدینه حمله وکړی، او د دوی ماشومان او زنانه قتل کړی۔
خو په هره زمانه کښې الله تعالیٰ د کافرانو لاسونه د ایمان والو نه بند ساتی او د هغوی په زړونو کښې رعب غورزوی۔
وَلِتَكُونَ: ددے نه مخکښې عبارت پټ دے [لِتَطْمَئِنَّ قُلُوبُكُمْ/ وَلِتَنْتَفِعُوا/ وَلِتَشْكُرُوهُ]
یعنی دا کارونه ئې دے دپاره وکړل چه ستاسو زړونه مطمئن شی او تاسو ددے غنیمتونو نه فائدے واخلئ او د الله شکر وکړئ۔ او دے دپاره چه دا د ایمان والو دپاره نښه شی په رشتینوالی د رسول الله ﷺ په تولو وعدو کښې، چه الله تعالیٰ وعده کړے وه نو هغه ئې پوره کړه۔
وَيَهْدِيَكُمْ صِرَاطًا مُّسْتَقِيمًا: او دے دپاره چه ستاسو هدایت او بصیرت او یقین او د الله په احسان او مهربانئ باندے اعتماد زیات شی، او جهاد سبب د هدایت دے۔
وَأُخْرَىٰ لَمْ تَقْدِرُوا : اَیْ وَعَدَكُمْ مَغَانِمَ أُخْرَىٰ یعنی الله تاسو سره د نورو غنیمتونو وعدے کړیدی چه اُوس لا تاسو د هغے په حاصلولو قدرت نهٔ لرئ۔
ابن عباس رضی الله عنهما فرمائی: چه ددے نه مراد نور غنیمتونه دی (چه هغه د روم (یرموك) او فارس او بنو حنیفه او د عراق غنیمتونه وو) چه روستو زمانه کښې مسلمانانو ته حاصل شول۔
بعض وائی : واخری عطف دے په (هٰذِهٖ) باندے اَیْ فَعَجَّلَ لَكُمْ هٰذِهٖ وَمَغَانِمَ أُخْرَىٰ۔
یعنی تاسو ته ئې په جلتئ سره دا غنیمتونه هم درکړل او نور غنیمتونه چه تاسو پرے قادر نهٔ وئ چه هغه د خیبر او د حنین والو غنیمتونه دی۔
أَحَاطَ اللّٰهُ بِهَا: یعنی الله په خپل علم کښې هغه راګیر کړیدی۔ یا الله تعالیٰ تاسو لپاره محفوظ ساتلی دی۔

Scanned by CamScanner

| وَلَوْ قَاتَلَكُمُ الَّذِينَ كَفَرُوا لَوَلَّوُا |
|---|
| او که چرته جنګ کړے وے تاسو سره هغه کسانو چه کفر ئے کړیدے خامخا اړولے به |
| الْأَدْبَارَ ثُمَّ لَا يَجِدُونَ وَلِيًّا وَلَا نَصِيرًا ﴿٢٢﴾ سُنَّةَ اللَّهِ |
| ئے شاګانے بیا به ئے نهٔ موندلے دوست او نهٔ مددګار۔ پښان د طریقے د الله تعالیٰ |
| الَّتِي قَدْ خَلَتْ مِنْ قَبْلُ وَلَنْ تَجِدَ لِسُنَّةِ اللَّهِ تَبْدِيلًا ﴿٢٣﴾ |
| هغه چه تیره شویده مخکښ، او هیچرے به ونهٔ مومے دپاره د طریقے د الله بدلول۔ |
| وَهُوَ الَّذِي كَفَّ أَيْدِيَهُمْ عَنْكُمْ وَأَيْدِيَكُمْ |
| او الله هغه ذات دے چه بند ئے کړل لاسونه د دوی ستاسو نه او لاسونه ستاسو |
| عَنْهُمْ بِبَطْنِ مَكَّةَ مِنْ بَعْدِ أَنْ أَظْفَرَكُمْ |
| د دوی نه په خیټه د مکه کښ روستو د هغے نه چه کامیاب ئے کړئ تاسو |
| عَلَيْهِمْ وَكَانَ اللَّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ بَصِيرًا ﴿٢٤﴾ |
| په هغوی باندے او دے الله تعالیٰ په هغه عملونو چه تاسو ئے کوئ لیدونکے۔ |

**تفسیر**: اُوس ددے حکمت بیانوی چه صلح د حدیبیه چه وشوه نو ددے دا مطلب نهٔ دے چه ګنے الله تعالیٰ د مسلمانانو په مدد قادر نهٔ وو ځکه ئے د صلح کولو حکم وکړو بلکه که بالفرض جنګ هم شوے وے نو تاسو به خامخا غالبه کیدے لیکن جنګ ونکړے شو پدے کښ د الله تعالیٰ ډیر حکمتونه وو۔

ثُمَّ لَا يَجِدُونَ: یعنی ضرور به هغوی شاګانے راړولے او څوك به ورله مدد ته هم نهٔ راتللے۔

سُنَّةَ اللَّهِ: دا د الله تعالیٰ طریقه ده چه کوم کافر سخت کفر کوی، او د نبی او د مؤمنانو په خلاف کښ ودریږی نو الله تعالیٰ ئے ذلیله کوی۔ او د الله تعالیٰ طریقه هیڅکله نهٔ بدلیږی ځکه چه د الله تعالیٰ ذات نهٔ بدلیږی نو پخوا چه ئے څرنګ کافران ذلیله کول اُوس به ئے هم ذلیله کوی۔

Scanned by CamScanner

وَهُوَ الَّذِیْ كَفَّ: ددے مثال راوړی چه الله تعالیٰ تاسو ته غلبه درکولے شی۔
رسول الله ﷺ په حدیبیه کښې وو، د مشرکانو ځوانانو شر جوړولو اراده وه، په خپلو مشرانو پوهه شو چه دوی صلحے ته مائله کیږی نو اتیا کسانو مشوره وکړه چه حمله به وکړو، جنګ به جوړ شی نو صلحه به خرابه شی، نو د تنعیم په غر باندے راواوریدل چه د دوی اراده وه چه د نبی علیه السلام او د هغهٔ د ملګرو غفلت مونده کړی او حمله پرے وکړی، دا د سهار مانځه وخت وو نو رسول الله ﷺ ملګرو ته حکم وکړو نو هغوی ټول ئے راونیول او د هغوی نه ئے وسلے واخستے، او دلته ئے راوستل بیا رسول الله ﷺ هغوی ټولو لره آزاد کړل، احسان ئے ورسره وکړه او دا آیت نازل شو۔
(احمد : ۱۲۲٤۹، مسلم : ٤٧٧٩، ابوداود، ترمذی او نسائی وغیره د انس ﷺ روایت دے)
په دے آیتِ کریمه کښې الله تعالیٰ دے واقعے طرفته اشاره کړے او په مسلمانانو ئے خپل احسان زباتلے دے چه هغهٔ مشرکانو لره تاسو ته د ضرر رسولو نه منع کړل، او تاسو ئے هغوئ سره د مسجدِ حرام په خوا کښې د جنګ کولو نه منع کړئ، او صلح دپاره ئے حالات سازګار کړل چه د نتائجو په لحاظ مسلمانانو لپاره ډیره زیاته مفیده ثابته شوه۔
أَظْفَرَكُمْ عَلَيْهِمْ: یعنی تاسو ئے پرے کامیاب او غالب او قادر کړئ۔ مسلمانان په عامو مشرکانو باندے غالبه وو او مشرکان مرعوبه وو، پدے وجه خو صلح ته تیاریدل۔

| هُمُ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا وَصَدُّوْكُمْ عَنِ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ وَالْهَدْيَ |
|---|
| دا هغه کسان دی چه کفرئے کړیدے او منع کړی یئ تاسو د مسجد حرام نه او هدیو |
| مَعْكُوْفًا أَنْ يَّبْلُغَ مَحِلَّهٗ ؕ وَلَوْلَا |
| لره چه بندے کړے شویدی ددے نه چه اورسیږی ځائے د حلالے ته، او که چرته نهٔ وے |
| رِجَالٌ مُّؤْمِنُوْنَ وَنِسَآءٌ مُّؤْمِنٰتٌ لَّمْ تَعْلَمُوْهُمْ أَنْ تَطَئُوْهُمْ |
| سړی مؤمنان او ښځے مؤمنے چه تاسو هغوی نهٔ پیژندل چه تاسو به ئے د خپو |
| فَتُصِيْبَكُمْ مِّنْهُمْ مَّعَرَّةٌۢ بِغَيْرِ عِلْمٍ |
| لاندے کړئ پس چه ورسی تاسو ته د دوی نه نقصان په غیر د پوهے نه |

Scanned by CamScanner

| لِيُدْخِلَ اللّٰهُ فِيْ رَحْمَتِهٖ مَنْ يَّشَاءُ لَوْ |
|---|
| دے دپاره چه داخل کړی الله تعالیٰ په رحمت خپل کښې چا له چه اُوغواړی، که چرته |
| تَزَيَّلُوْا لَعَذَّبْنَا الَّذِيْنَ |
| دوی (مؤمنان) لرے شوی وے خامخا عذاب به ورکړے وے مونږ هغه کسانو ته |
| كَفَرُوْا مِنْهُمْ عَذَابًا اَلِيْمًا ﴿۲۵﴾ اِذْ جَعَلَ الَّذِيْنَ |
| چه کفرئے کړیدے د دوی نه عذاب دردناك. کله چه اُوګرځوو هغه کسانو |
| كَفَرُوْا فِيْ قُلُوْبِهِمُ الْحَمِيَّةَ حَمِيَّةَ الْجَاهِلِيَّةِ فَاَنْزَلَ اللّٰهُ |
| چه کفرئے کړیدے په زړونو خپلو کښې غیرت، غیرت د جاهلیت نو راولیږلو الله |
| سَكِيْنَتَهٗ عَلٰى رَسُوْلِهٖ وَعَلَى الْمُؤْمِنِيْنَ وَاَلْزَمَهُمْ |
| آرام خپل په رسول خپل او په مؤمنانو باندے او مضبوطه ئے کړه په دوی باندے |
| كَلِمَةَ التَّقْوٰى وَكَانُوْا |
| کلمه د تقویٰ (توحید) (یا: او الله لازمه کړه د دوی سره خبره د تقویٰ) او وو دوی |
| اَحَقَّ بِهَا وَاَهْلَهَا وَكَانَ اللّٰهُ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيْمًا ﴿۲۶﴾ |
| ډیر حقدار د هغې او لائق د هغې او الله تعالیٰ دے په هر څه باندے پوهه. |

**تفسیر:** اُوس دا بیانوی چه دا مشرکان د قتال لائق وو که دوی سره جنګ شوے وے، نو هیڅ اعتراض به نهٔ وے ځکه چه دوی کښې سبب د قتال موجود وو، لیکن روستو بیا مانع د قتال بیانوی. یعنی کافران خو د قتال لائق وو لیکن بل طرفته په قتال نهٔ کولو کښې حکمت وو. نو په دے آیتِ کریمه کښې الله تعالیٰ د قریشو د کافرانو او د نورو عربو مشرکانو بدی بیانوی، او مسلمانان هغوئ سره په جنګ کولو باندے راپورته کوی.

فرمائی چه همدا هغه خلق دی چه دوئ د الله تعالیٰ د توحید او د نبی کریم ﷺ د نبوت نه انکار کړے دے، او نبی کریم ﷺ او صحابه کرام ئے مسجدِ حرام او د عمرے کولو نه منع کړی دی، او د قربانئ آویا (۷۰) اوښان کوم چه نبی ﷺ د مدینے نه ځان سره اخستی

Scanned by CamScanner

وو، هغه ئې هم د حرم حدودو ته د دننه تللو نه منع كړې دي.
د كفارو او مشركانو دا جرمونه ددې تقاضا كوي چه دوئ سره جنګ اُوكړې شي، ليكن ركاوټ دادې چه په مكه كښې د مشركانو ترمينځه څۀ مومنان سړي او ښځې دي، چه د دوئ د قتل كيدو ويره ده. كه چرې دا مومنان سړي او ښځې هلته نۀ وې چه ددې پته به د مدينې مجاهدينو ته نۀ وې، او چه د دوئ په باره كښې ويره ده چه د جنګ كيدو په صورت كښې به كافرانو سره دوئ هم اُووژلې شي، او په ناپوهئ كښې به د مسلمانانو نه ګناه وشي، او كفار به وائي چه مسلمانانو خپل مسلمانان ورونه اُووژل، كه چرې دا ويره نۀ وې نو الله به مسلمانان مكې ته داخل كړي وې، او د جنګ كولو صورت به ئې جوړ كړې وې.
وَالْهَدْيَ: دا عطف دې په صَدُّوْكُمْ كښې په كُمْ ضمير باندې. اَىْ صَدُّوا الْهَدْيَ او مَعْكُوْفًا حال دې. يعنې دوي منع كړيده هَدْيَ په داسې حال كښې چه بنده كړې شويده ددې نه چه ځاى د حلالې او نازليدو ته ورسيږي چه هغه مكه ده.
لَّمْ تَعْلَمُوْهُمْ: يعنې تاسو ته د هغوي د ايمان علم نشته. يا تاسو هغوي شخصي طور سره نۀ پيژنئ.
اَنْ تَطَؤُوْهُمْ: دا بدل اشتمال دې د (رِجَالٌ او نِسَآءٌ) نه او ددې نه د قتال په وخت كښې د هغوي پائيمال كول مراد دي په قتل او زخمي كولو سره.
فَتُصِيْبَكُمْ مِّنْهُمْ مَّعَرَّةٌ: نو ددې په وجه به تاسو ته نقصان رسيدلې وې. معرة په اصل كښې ځاى د خارخ ته وئيلې شي، او دارنګه ګناه او سخت اذى (تكليف) او جنايت او تاوان ته وئيلې كيږي. (لسان العرب)
يعنې كه تاسو مؤمنان په ناخبرئ كښې وژلي وې، نو تاسو ته به لوى نقصان رسيدلې وې، هغه دا چه د كافرانو بدنامه لګول او د قتيلانو ديتونه وغيره ځكه چه په دار حرب كښې يو مؤمن وي او قاتل ته د هغه د ايمان علم نۀ وي او هغه ئې قتل كړي نو ديت لازميږي.
بِغَيْرِ عِلْمٍ: پدې كښې عذر د مؤمنانو مجاهدينو بيانوي چه دا كار به دې مؤمنانو په ناخبرئ كښې كړې وې ځكه چه كامل مؤمن بل مؤمن لره قصداً هيځكله نۀ وژني.
وَلَوْلَا: ددې جواب پټ دې [لَاَذِنَ اللّٰهُ لَكُمْ فِىْ قِتَالِهِمْ] الله تعالىٰ به تاسو ته د هغوي سره

Scanned by CamScanner

د قتال اجازت درکړې وې۔
لِيُدْخِلَ اللّٰهُ: پدې کښې د قتال نه کولو دویم حکمت بیانیږي، یعنې الله تعالیٰ مسلمانانو له د جنګ کولو اجازت ځکه ورنهٔ کړو چه هغه په خپلو بندګانو کښې چاله چه غواړي په خپل رحمت کښې داخل کړي، د مدینې مجاهدین د ننګ او شرم نه، او په مکه کښې پټ مسلمانان د وژلو نه بچ کړي، او د مکې کوم مشرکان چه په اسلام کښې داخلیدل غواړي دوئ له د کفر نه پس ایمان، او د ګمراهئ نه پس هدایت ورکړي۔
رِجَالٌ مُّؤْمِنُونَ وَنِسَاءٌ مُّؤْمِنَاتٌ: دا دوه قسمه وو، یو هغه وو چه في الحال ئې ایمان راوړے وو او په مکه کښې د ظلمونو ښکار شوي وو، او هغه رسول الله ﷺ او مؤمنانو ته نهٔ وو معلوم۔ او دویم بالقوه مؤمنان مراد دي، لکه اُوس د کفر په حالت کښې دي لیکن روستو به مؤمنان کیږي لکه سهیل بن عمرو، ابو سفیان، معاویه، عکرمه بن ابی جهل، صفوان بن امیه، خالد بن الولید وغیره روستو په اسلام مشرف شو۔ (رضی الله عنهم اجمعین) که جنګ شوے وے نو دوي به په کفر کښې تلي وے لیکن الله تعالیٰ ته د دوئ د ایمان معلومات وو۔ نو ګویا که دے کښې د مشرکانو فائده هم وه۔
فِي رَحْمَتِهِ: د رحمت نه مراد ایمان او بیا جنت ته داخلول دي۔
لَوْ تَزَيَّلُوا: یعنې که چرے په مکه کښې موجود نارینه او زنانه مومنان د مشرکانو نه یو طرفته شوي وے، نو مونږ به د مدینې مجاهدین په مکه کښې ورداخل کړي وے، او کفارو سره به مو د جنګ اجازت ورکړے وے، او کافرانو له به مو د دوئ په لاس دردناك عذاب ورکړے وے، یعنې وژلے شوي به وے، او کوم چه ژوندي پاتې شوي وے هغه به قید شوي وے۔ نو دوي دے مؤمنانو ته دعا کوي۔
قتادهٔ نه نقل دي چه دا آیت دلیل دے چه د مؤمنانو په وجه الله تعالیٰ د کافرانو نه عذاب دفع کوي۔
علامه قرطبیؒ لیکي: [فِي الْآيَةِ دَلِيْلٌ عَلٰى مُرَاعَاةِ الْكَافِرِ فِيْ حُرْمَةِ الْمُؤْمِنِ]
دا آیت دلیل دے چه کافر ته به ضرر نهٔ ورکړے کیږي کله چه په هغے کښې مسلمان ته تکلیف رسیږي۔
إِذْ جَعَلَ الَّذِيْنَ: دا بل سبب د قتال بیانوي چه دوئ د قتال ځکه لائق وو چه د جاهلیت غیرت ئې کړیدے، او هغه دا چه دوي وئیلي وو [قَتَلُوْا أَبْنَاءَ نَا وَإِخْوَانَنَا ثُمَّ يَدْخُلُوْنَ

Scanned by CamScanner

عَلَيْنَا فِي مَنَازِلِنَا، فَتَتَحَدَّثُ الْعَرَبُ اَنَّهُمْ دَخَلُوْا عَلَيْنَا رَغْمَ اَنْفِنَا، وَاللَّاتِ وَالْعُزّٰى لَا يَدْخُلُوْنَهَا اَبَدًا] چه ((دے مسلمانانو زمونږ ورونه او ځامن قتل کړی دی، او اُوس زمونږ کورونو ته ننوتل غواړی۔ که چرے داسے وشی نو د عربو قبائل به وائی چه مسلمانان د مکے والو کورونو ته په زبردستئ سره ننوتل، په لات او عُزیٰ قسم! مونږ به دوئ مکے ته راننوتو نه نهٔ پریږدو))۔ (فتح الرحمن فی تفسیر القرآن والقرطبی)

دے ته ئے د جاهلیت غیرت ځکه ووئیلو چه غلط وو، ځکه چه حرم خو یو اځے د قریشو جاګیر نهٔ وو، دا خو په اصل کښں مؤمنانو لره جوړ دے، نو چه مؤمن خپل کور ته راننوتو نو دے کښں تا ته څه ضرر دے، لکه دا د جاهلانو طریقه ده چه په حق به پابندی لګوی، او دا به وائی چه دا زمونږ د غیرت خلاف ده، خلق به وائی چه په زوره ئے ترے سنت طریقه عملی کړه۔

او حمية الجاهلية دا هم وو چه د رسول الله ﷺ په رسالت ئے اقرار نکولو۔ دارنګه هغهٔ ئے مکے ته نهٔ پریخودو، دارنګه د بسم الرحمن الرحیم او د محمد رسول الله لفظ لیکلو نه ئے انکار کولو، ابن بحرؒ وائی: د خپلو آلهو دپاره ئے تعصب کولو نو د هغوی نه علاوه د الله بندګی ئے نهٔ کوله۔ (قرطبی)

فَاَنْزَلَ اللّٰهُ سَكِيْنَتَهٗ : لیکن د دوئ د تمامو شرونو او تکلیفونو سره سره، الله تعالیٰ د خپل رسول او د مومنانو په زړونو کښں سکون او اطمینان واچولو، دے وجے نه دوئ مشرکانو سره د جنګ کولو سوچ ونهٔ کړو، د الله تعالیٰ په فیصله ئے صبر وکړو، او د صلح د شرطونو پابندی ئے وکړه۔ او د پیغمبر په خبره ئے تسلی وکړه۔

وَاَلْزَمَهُمْ كَلِمَةَ التَّقْوٰى : یعنی پیوسته ئے کړه د دوی سره کلمه د تقویٰ، یعنی دوی له ئے غوره کړه، نو دا د دوی اکرام او تشریف دے۔

د کلمة التقویٰ (۱) یو مصداق دے لا اله الا الله۔ یعنی داسے کلمه چه په هغے سره بچاؤ کیدے شی د شرك نه، او بعضو ورسره محمد رسول الله هم زیاتی کریده۔ لکه بیهقیؒ په ((الاسماء والصفات)) کښں ذکر کریدی او ابن کثیرؒ وئیلی دی چه هغه د زهریؒ اِدراج دے۔

او مطلب ددے دا دے چه مشرکان په شرك باندے کلك وو نو الله تعالیٰ مؤمنانو لره په توحید باندے کلك کړل۔

یا مقصد دا دے چه لازم ئے کړو په دوی باندے رعایت او لحاظ کول د کلمے د توحید

Scanned by CamScanner

یعنی داسې طریقه اختیار کړئ چه په هغې سره کلمه د توحید اُوچتیږي.

(۲) دویم : کلمه د تقوی بعینه تقوی ته هم وئیلې شي. نو دا اضافت بیانی دے. یعنی الله د دوی سره لازمه کړه تقوی، او تقوی د الله د حدودو پابندئ ته وئیلې شي. او دا د الله قانون دے چه په وخت د تکلیف کښې مؤمن ته د ایمان فائده راښکاره کوي. یو وخت کښې به ته هلاکت ته نزدے شې، او سخت تکلیف او مصیبت کښې به راګیر شې نو زړه نیکی او زور ایمان به تا ته فائده درکړي او مصیبت نه به خلاص شې.

(۳) مجاهدؒ نه دا هم نقل دي چه د کلمة التقوی نه مراد اخلاص دے.

(٤) زهریؒ وائي : ددے نه بسم الله الرحمن الرحیم کلمه مراد ده چه مشرکانو پدے اقرار نکولو. (قرطبی)

وَكَانُوا أَحَقَّ بِهَا : یعنی دوی کښې الله تعالیٰ ددے استعداد او لیاقت اچولے وو چه دوی کښې تقوی راتللے شوه. پدے کښې اشاره ده چه په دوی باندے دا الزام جبراً او کرهاً نهٔ وو او نهٔ په دے کښې د دوئ اهانت او سپکوالے وو بلکه دوئ ددے حقدار وو. او اَحق اسم تفضیل کښې اشاره ده چه کوم خلق د دوئ نه روستو ایمان راوړي هغوی هم ددے کلمے حقدار دي لیکن د حدیبیه والا صحابه کرامؓ ئے زیات حقدار وو.

وَأَهْلَهَا : یعنی دوی ئے لائق هم وو. پدے کښې اشاره ده چه د دوئ حقداري عارضی نهٔ وه بلکه دوئ په علم د الله تعالیٰ کښې ددے کلمے اهل وو. یعنی دا خلق د دینِ اسلام او د رسول الله ﷺ د ملګرتیا د وجے نه همدوئ ددے لوئے نعمت لائق وو. او چونکه الله تعالیٰ هر یو شے پیژني، دے وجے نه هغهٔ ته ښه پته ده چه ددے نعمت حقدار څوك دے.

انسان د یو شي حقدار کیږي هله چه سخته پرے تیره کړي، او اهل هله ګرځي چه استعداد پکښې وي. نو احق کښې اشاره ده چه (جَاهَدُوْا) دوی مجاهده کړے ده او (أَهْلَهَا) کښې اشاره ده چه (اِسْتَعَدُّوْا) دوی کښې قابلیت او استعداد موجود وو.

| كَأَنَّ رَبَّكَ لَمْ يَخْلُقْ لِخَشْيَتِهِ ۞ سِوَاهُمْ مِنْ جَمِيعِ النَّاسِ إِنْسَانَا |
|---|

ګویا که ستا رب د خپلے یرے (تقوی) دپاره د دوی نه سوی نور انسانان نهٔ وو پیدا کړي.

نو دے نه دا معلومه شوه چه څوك په کلمه د توحید خواري نهٔ کوي، او دا ورته دومره اهمه نهٔ ښکاره کیږي نو الله ئے ترے د مرګ په وخت بیرته اخلي. والعیاذ بالله.

Scanned by CamScanner

او دا آیت ښکاره دلیل دے چه څوك د صحابه کرامو پسے خبرے کوی نو هغه مسلمان او تقویٰ والا نشی کیدے، بلکه د الله تعالیٰ په ضد کښې ولاړ دے۔

| لَقَدْ صَدَقَ اللّٰهُ رَسُوْلَهُ الرُّؤْيَا بِالْحَقِّ لَتَدْخُلُنَّ |
| --- |
| یقیناً رشتینی کړو الله رسول خپل سره خوب په حق سره خامخا داخلیږئ به تاسو |
| الْمَسْجِدَ الْحَرَامَ إِنْ شَاءَ اللّٰهُ آمِنِيْنَ مُحَلِّقِيْنَ رُؤُوْسَكُمْ وَمُقَصِّرِيْنَ |
| مسجد حرام ته که اُوغواړی الله امن والا به یئ خریونکی د سرونو خپلو او لنډونکی |
| لَا تَخَافُوْنَ فَعَلِمَ مَا |
| (د ویختو)، نۀ به یریږئ (د دشمن نه) نو الله ته معلوم وو هغه څه (فائدے) چه |
| لَمْ تَعْلَمُوْا فَجَعَلَ مِنْ دُوْنِ ذٰلِكَ فَتْحًا قَرِيْبًا ﴿۲۷﴾ |
| تاسو ته نۀ وو معلوم، نو وے ګرځول مخکښې ددے نه فتح نزدے۔(صلح حدیبیه)۔ |

**تفسیر:** نبی کریم ﷺ په (٦) هجری کښې خوب اولیدۀ چه هغه د خپلو صحابه کرامو سره مکے ته ننوځی، او د خانه کعبے طواف کوی، دے وجے نه هغۀ د صحابه کرامو سره د عُمرے کولو اعلان وکړو، او په لاره کښې ئے هغوئ ته د خوب خبردارے ورکړو، نو تمام صحابه کرامٌ ډیر زیات خوشحاله شو، لیکن کله چه مکے ته داخل نشول او د صلح تراخۀ شرطونه ئے قبول کړل، او بیرته مدینے ته واپس کیدل نو دوئ رسول الله ﷺ نه تپوس وکړو چه تاسو چه کوم خوب لیدلے وو، د هغے تعبیر څۀ دے؟

او منافقانو ویل چه مونږ نۀ ویښتۀ خرئیلی، نۀ مو پریکړی، او نۀ مسجدِ حرام ته ننوتی یو، آخر دا څنګه عمره ده؟! پداسے حالاتو کښې منافقانو دا شکونه راپورته کړل چه د الله رسول خو مونږ سره وعده کړے وه چه عمره به کوو نو مونږ خو ونکړه، مطلب ئے دا وو چه دا خبر دروغژن وو۔

او بعض مؤمنانو ته هم د حالاتو د ناخبرئ د وجه نه وسوسه راغله څکه چه د حالاتو نه خو روستو خبر شو، کله د علم د کموالی د وجه نه انسان ته یو اشکال راځی نو دے کښې ښه خبره دا وی چه خبره سمدست رد کول نۀ دی پکار بلکه تسلیمیدل پکار دی، روستو

Scanned by CamScanner

خبره واضحه كيږي.

نو الله تعالىٰ دا آيتونو نازل كړل چه په دے كښې الله تعالىٰ خبر وركړو چه هغه به د خپل رسول خوب خامخا رشتينى څرګندوى، د هغهٔ خوب حق دے.

اے مسلمانانو! كه چرے الله غواړى نو تاسو به خامخا مسجدِ حرام ته داخليږئ، په داسے حال كښې چه تاسو به د هر خوف او خطر نه بيغمه ئے، او د عُمرے كولو نه پس به د خپلو سرونو وينستهٔ يا خو خروئ اويابه ئے وړوكى كوئ، تاسو ته به هيڅ قِسم ويره نهٔ وى.

او مطلب دا دے چه خوب كښې خو دا خبره نهٔ وه چه سږ كال به عمره كوو، بلكه رسول الله ﷺ د خپل اجتهاد مطابق او د زياتے خوشحالئ په توګه سمدست روان شو. خوب رشتينى وو ليكن تعبير كښې ئے وخت لګيدو.

بِالْحَقِّ: اَىِ الَّتِىْ كَانَتْ بِالْحَقِّ. يعنى هغه خوب چه هغه په رشتيا سره وو، او شيطانى خوب نهٔ وو. يعنى رشتينى خوب وو.

يا د حق نه مراد حكمة دے، يعنى هغه خوب چه مشتمل وو په كامل حكمة باندے ځكه چه پدے خوب سره ابتلاء راغله، او د مخلص مؤمن او د هغه چا چه په زړه كښې ئے مرض وو تميز او جدائى راغله.

لَتَدْخُلُنَّ: اَىْ فِى الْعَامِ الْقَابِلِ. يعنى تاسو به راتلونكى كال كښې عمره كوئ.

إِنْ شَاءَ اللّٰهُ: دا خوب اګركه رشتينى دے ليكن ان شاء الله پكښې د تبرك دپاره راوړى، او همدا ظاهره وجه ده، ځكه چه په الله تعالىٰ باندے خو يوه خبره هم لازمه نهٔ ده، كه الله وغواړى او يوه خبره هم رشتينى نهٔ كړى هم په هغه هيڅ ملامتيا او زور د هيچا نشته.

نو په ان شاء الله راوړو كښې تفويض (خبره الله ته سپارل) او تبرك وى. او پدے كښې مسلمانانو ته ادب هم دے چه دوى دے په هره خبره كښې ان شاء الله وائى.

مُحَلِّقِيْنَ: حلق ئے مخكښې راوړو ځكه چه حلق په حج او عمره كښې د قصر نه زيات بهتر دے، او په عامو اوقاتو كښې سر پريخودل افضل دى د خرئيلو نه.

فَعَلِمَ مَا لَمْ تَعْلَمُوا: يعنى الله تعالىٰ ته معلومے وے هغه فائدے چه تاسو ته نهٔ وے معلومے، نو پدے وجه ئے خبره صلحے ته برابره كړه، كه دا نهٔ وه شوے او عمره ئے دربانديے كړے وے، نو دغه ايمانى او ظاهرى فائدے به نهٔ حاصليدے كوم چه د صلحے په وجه

Scanned by CamScanner

حاصلے شوے۔

دے وجے نه هغهٔ په دے کال کښې تاسو مکے ته د داخلیدو نه منع کړئ، او د خوب مطابق مکے ته د داخلیدو نه وړاندے ئے د صلح حُدیبیه لپاره حالات جوړ کړل کوم چه په حقیقت کښې د نتائجو په لحاظ سره د مسلمانانو لپاره یوه عظیمه فتح وه۔

بعضِ خلقو دلته د ﴿ فَتْحًا قَرِيبًا ﴾ (نزدے فتح) نه مراد (د خیبر فتح) اخستے ده، لیکن د زیاتو خلقو رائے داده چه ددے نه مراد (صلح حُدیبیه) ده۔

حافظ ابن کثیرؒ لیکی چه د نبی کریم ﷺ خوب په ذی القعده (۷) هجری کښې د عُمرة القضاء په صورت کښې پوره شو۔ ذی القعده (٦) هجری کښې د حُدیبیه نه واپس کیدو نه پس، نبی کریم ﷺ ذی الحجه او محرم دوه میاشتے په مدینه کښې پاتے شو، په صفر کښې ئے خیبر فتح کړو، او په ذی القعده (۷) هجری کال کښې د عُمرے په نیت سره مکے ته روان شو۔ نبی ﷺ سره هم هغه صحابه کرامؓ وو کوم چه په بیعتِ رضوان کښې برخه اخستے وه، او دا ځل هغهٔ د خپل ځان سره (٦٠) شپیتهٔ اوښان اخستی وو۔

مکے ته د رسیدو نه پس نبی ﷺ صحابه کرامؓ سره عمره اداء کړه، چه ددے تفصیل د سیرت او تاریخ په کتابونو کښې موجود دے۔

| هُوَ الَّذِىٓ أَرۡسَلَ رَسُوۡلَهٗ بِالۡهُدٰى وَدِيۡنِ الۡحَقِّ |
|---|
| الله هغه ذات دے چه را وے لیږلو رسول خپل په هدایت او دین حق باندے |
| لِيُظۡهِرَهٗ عَلَى الدِّيۡنِ كُلِّهٖ وَكَفٰى بِاللّٰهِ شَهِيۡدًا ﴿۲۸﴾ |
| دے دپاره چه غالبه کړی دا په دینونو ټولو باندے او پوره دے الله گواه۔ |

**تفسیر**: پدے آیت کښې بل بشارت دے په فتح عام سره چه هغه غلبة الاسلام ده۔ یعنی فتح د مکے لا څه چه الله تعالیٰ به دا دین ټولے دنیا ته ورسوی، کافران غواړی چه دا دین خکته کړی لیکن الله به ئے غالب کوی۔ او دا وعدے الله تعالیٰ زمونږ د نبی کریم ﷺ سره پوره کړیدی، نو ددے آیتونو وعدے مخکښې هم تیرے شوے، او روستو هم راتلونکی دی۔ د مهدی آخر زمان او د عیسیٰ علیه السلام په دور کښې به الله تعالیٰ ټولے دنیا باندے دین اسلام غالب کړی، او یو اسلامی خلافت به راولی۔ او دا آیت دلته دویم کرت

Scanned by CamScanner

ذکر کیږی، او دریم کرت به په سورة الصف کښې راځی۔ او تفصیلی تشریح ئے په سورة التوبه کښې ذکر ده۔

بِالْهُدَى : ۱ - (بِالْعِلْمِ النَّافِعِ وَالْعَمَلِ الصَّالِحِ)۔ (ابن کثیرؒ) یعنی الله خپل رسول ته نفعمن علم او د عمل طریقے ورکړے او راوے لیږه چه دا حق دین دے۔

(۲) بِالتَّوْحِيْدِ وَالسُّنَّةِ۔ هدیٰ توحید ته وائی او دین الحق سنت ته وائی۔

(۳) هدیٰ ایمانیات او دین الحق اعمالو ته وائی۔ چه دے ته اصول او فروع هم وائی۔ اشاره ده چه د رسول د رالیږلو مقصد دا دے چه د بندګانو عقیدے صحیح شی او هغوی د الله دپاره صحیح عملونه وکړی او همدا مقصد د انسانانو د پیدائش دے۔

لِيُظْهِرَهُ: یعنی د هغهٔ وعده ده چه هغه به دا دین د دنیا په تمامو آدیانو باندے اُوچت او غالبه کوی۔ نو همدغسے اوشوه چه دینِ اسلام په ټوله دنیا کښې خور شو، او نور باطل دینونه په کمزورتیا شو۔

ابن جریر طبریؒ د ﴿لِيُظْهِرَهُ عَلَى الدِّيْنِ كُلِّهِ﴾ (دے دپاره چه په ټولو ادیانو ئے غالبه کړی) په تفسیر کښې لیکلی دی چه دا به هغه وخت وی کله چه عیسیٰ ﷺ آسمان نه راکوز شی، او دجال قتل کړی۔ هغه وخت به تمام ادیان باطل شی، او هر طرفته به د اسلام چرچه شی۔ نو دا وعده د رسول الله ﷺ په زمانه کښې هم رشتینی شوه او روستو به بیا راښکاره کیږی۔

وَكَفَى بِاللَّهِ شَهِيْدًا : یعنی الله تعالیٰ پدے هرڅه د مخکښې نه خبردار دے، او ددے ګواهی ورکوی او د الله ګواهی د هر څه نه کافی ده۔ یعنی الله تعالیٰ په دے ګواه دے چه هغه به دینِ اسلام په نورو ټولو ادیانو غالبه کوی، او په دے خبره هم ګواه دے چه محمد (ﷺ) د هغهٔ رشتینے رسول دے، او هغه به ددهٔ خامخا مدد کوی۔

| مُحَمَّدٌ رَّسُوْلُ اللّٰهِ وَالَّذِيْنَ مَعَهٗٓ اَشِدَّآءُ |
|---|
| محمد (ﷺ) رسول د الله تعالیٰ دے او هغه کسان چه ددهٔ ملګری دی، سخت دی |
| عَلَى الْكُفَّارِ رُحَمَآءُ بَيْنَهُمْ تَرٰىهُمْ رُكَّعًا |
| په کافرو، رحم کونکی دی په مینځ خپل کښې، وینے به ته دوی لره رکوع کونکی، |

Scanned by CamScanner

| سُجَّدًا يَّبْتَغُوْنَ فَضْلًا مِّنَ اللّٰهِ وَرِضْوَانًا سِيْمَاهُمْ فِيْ وُجُوْهِهِمْ |
|---|
| سجده کونکی، لټوی فضل د الله او رضا د هغهٔ، نخے د دوی په مخونو د دوی کښې |
| مِّنْ أَثَرِ السُّجُوْدِ ذٰلِكَ مَثَلُهُمْ فِي التَّوْرَاةِ |
| دی، د وجے د نخو د سجدو نه، دا حال (صفت) د دوی دے په تورات کښې |
| وَمَثَلُهُمْ فِي الْإِنْجِيْلِ كَزَرْعٍ أَخْرَجَ شَطْأَهٗ |
| او صفت د دوی په انجیل کښې پشان د کروندے دے چه را اُوباسی تیغ خپل |
| فَآزَرَهٗ فَاسْتَغْلَظَ فَاسْتَوٰى عَلٰى سُوْقِهٖ |
| نو کلك کړی هغه نو غټ شی (سخت شی) بیا برابر اُودریږی په پونډئ خپله باندے، |
| يُعْجِبُ الزُّرَّاعَ لِيَغِيْظَ بِهِمُ الْكُفَّارَ |
| خوشحالوی زمیدارو لره (عاقبت دا دے) چه غصه کړی په دوی باندے کافرانو لره، |
| وَعَدَ اللّٰهُ الَّذِيْنَ آمَنُوْا وَعَمِلُوْا |
| وعده کړیده الله تعالیٰ د هغه کسانو سره چه ایمان ئے راوړیدے او عملونه ئے کړیدی |
| الصَّالِحَاتِ مِنْهُمْ مَّغْفِرَةً وَّأَجْرًا عَظِيْمًا ﴿۲۹﴾ |
| نیك د دوی نه بخنه او اجر لوئی۔ |

**تفسیر:** ربط :

مخکښې آیت کښې الله تعالیٰ گواهی ورکړه چه محمد ﷺ الله تعالیٰ خپل رسول رالیږلے دے۔ نو دلته اُوس د هغے تاکید بیانوی چه محمد ﷺ د الله رسول دے۔ نو مخکښې د رسول الله ﷺ رشتینوالے بیان شو، اُوس د هغهٔ او د هغه د ملگرو لس صفات راوړی، چه دوی کښې دومره کمالات موجود دی۔

مُحَمَّدٌ رَّسُوْلُ اللّٰهِ: دے کښې دوه ترکیبه دی (۱) دا مبتداء او خبر دی۔ یعنی الله تعالیٰ دا خبر ورکوی چه محمد ﷺ د الله رسول دے۔ نو سوال دا دے چه دا خو خلقو ته معلومه ده نو ولے خبر ورکوی؟ جواب دا دے چه دا ددے دپاره چه رد راشی په مشرکانو باندے چه

Scanned by CamScanner

په صلح حدیبیه کښې کوم خط لیکلے کیدو، نو په هغې کښې دوی د محمد رسول الله لفظ نهٔ پریخودو، نو الله تعالیٰ په قرآن کښې ولیکلو چه محمد ﷺ د الله رسول دے اګر که تاسو ئے په وړوکی کاغذ کښې نهٔ لیکئ خو زهٔ به ئے داسے کتاب کښې ولیکم چه دا به تر قیامته پورے لوستلے کیږی.

(۲) بعض وائی : دلته هُوَ مبتداء پټه ده، یعنی دغه رسول چه الله رالیږلے دے، دا محمد دے چه د الله رسول دے. لیکن اول ترکیب غوره دے. په قرآن کریم کښې محمد لفظ څلور کرته ذکر دے، په دوه معانیو استعمال دے، هغه شخص چه د هغه بار بار صفتونه کیږی. یا كَثِيْرُ الْمَحَامِدِ لِرَبِّهٖ. هغه شخص چه د خپل رب ډیر صفتونه ئے کړیدی.

وَالَّذِيْنَ مَعَهٗ: اُوس د صحابه کرامو صفات راوړی، د سورت په اول کښې هم ذکر وو، اُوس ئے بیا راوړی، هلته ئے وویل چه دوی ایمان راوړے نو الله به جنت ورکړی، دلته وائی چه دوی عابدان، صالحین، دُعاة دی نو ځکه به الله جنت ورکوی.

امام مالك رحمه الله فرمائی: (اَلْآيَةُ عَامَّةٌ فِىْ جَمِيْعِ الصَّحَابَةِ)

دا آیت د ټول صحابه کرامو په باره کښې عام دے. برابره ده صلح حدیبیه ته حاضر شوی وی او که د هغوی نه روستو خلق وی، کشران او مشران ټول پکښې داخل دی.

مَعَهٗ: د معیت نه مراد صحبت (ملګرتیا) ده، او ددے نه مراد صرف صحابه کرام دی، یا د معیت نه مراد ملګرتیا د تابعدارئ ده، نو بیا پکښې ټول مؤمنان داخلیږی، لیکن اول احتمال غوره دے.

اَشِدَّاءُ عَلَى الْكُفَّارِ: دے ته ولاء او براء وائی. او ددے نه ایمان جوړ دے. کفار چه د الله دشمنان دی په هغوی باندے سختی کونکی دی، ځکه چه د کفر او شرك نه ئے نفرت دے. او صحابه کرامو پدے باندے په ډیره کامله طریقه عمل کړیدے، حسن بصری رحمه الله فرمائی : [كَانُوْا يَتَحَرَّزُوْنَ مِنْ ثِيَابِهِمْ اَنْ تَلْزَقَ بِثِيَابِهِمْ وَتَمَسَّهَا وَمِنْ اَبْدَانِهِمْ اَنْ تَمَسَّ اَبْدَانَهُمْ وَتَلْزَقَ بِهَا] دوی به خپلے جامے د هغوی د جامو نه ساتلے چه د هغوی سره ونهٔ لګیږی، او بدنونه به ئے هم د هغوی د بدنونو نه ساتل. (فتح البیان)

حسن بصریؒ او ابن عباس ﷺ به فرمائیل : [مَنْ صَافَحَ مُشْرِكًا فَلْيَتَوَضَّأْ] چا چه د مشرك سره مصافحه وکړه نو هغه دے اَودس وکړی. (لغوی اودس مراد دے یعنی لاس دِے ووینځی). او داسے الفاظو سره مرفوعا د ابن عباسؓ نه ابو الشیخ او ابن مردویهؒ روایت

Scanned by CamScanner

کریدے لیکن ضعیف دے۔
او د عاصم بن عدی ﷺ واقعه مشهوره ده چه هغه د الله تعالیٰ سره وعده کړے وه چه [اَنْ لَّا یَمَسَّ مُشْرِکًا وَّلَایَمَسَّهٗ مُشْرِكٌ اَبَدًا فِیْ حَیَاتِهٖ] دے به هم مشرك ته گوتے نهٔ وروړی او مشرك به هم دهٔ له گوتے نهٔ وړی په ټول ژوند کښ)
(دلائل النبوة للبیهقی (۳۲۸/۳) مصنف ابن ابی شیبة (۳۵٦۱٤) والخصائص الکبریٰ للسیوطی)
او د شدت نه مراد د هغوی نه نفرت کول دی، او د هغوی د مداهنت نه ځان ساتل، او په حق دین بانديے مضبوط پاتے کیدل دی، او کنځل کول او رد بد وئیل مراد نهٔ دی ځکه چه مؤمن به بد اخلاقه نهٔ وی۔
او ددویٔ د کفر او شرك نه داسے نفرت وو چه که پلار به ئے مشرك وو هغهٔ به ئے هم وژلو لکه ابوعبیده بن الجراح ﷺ خپل پلار وژلے دے، او مصعب بن عمیر ﷺ د خپل ورور ابوعزیز په باره کښ یو صحابی ته وویل چه کلك ئے وتړه مورئے مالداره ده، ډیر مال به درکړی۔ او ډیرو صحابه کرامو خپل خپلوان د الله دپاره وژلی دی۔ دے ته د الله تعالیٰ دپاره غیرت وائی۔
رُحَمَاءُ بَیْنَهُمْ: حسنؒ فرمائی : د دوی خپل مینځ کښ حالت دا وو: [لَایَرٰی مُؤْمِنٌ مُؤْمِنًا اِلَّا صَافَحَهٗ وَعَانَقَهٗ] یو مؤمن به بل مؤمن نهٔ لیدلو مگر هغه سره به ئے مصافحه کوله او غاړه به ئے ورکوله) او په هره زمانه کښ د مسلمانانو دا حق دے چه دوی دا قسم تذلل او دا قسم شفقت او نرمی وکړی، د مؤمنانو ورونو سره ښکلے ژوند تیر کړی، محبت وساتی، او د هغوی مدد وکړی، هغوی معاف کړی، د هغوی سره صله رحمی وکړی، د هغوی نه ضرر دفع کړی۔
تَرٰىهُمْ رُكَّعًا سُجَّدًا : یعنی مخلوق سره ئے دغسے معامله ده، اُوس د الله تعالیٰ سره معامله بیانوی۔ یعنی مجاهدین هم دی او ورسره عابدان دی۔ رکوع او سجده د دویٔ په عباداتو کښ زیاته ده او مونځ ورته ډیر اهم ښکاره کیږی ځکه ئے ورله دا صفت ذکر کړو۔
فَضْلًا مِّنَ اللّٰهِ وَرِضْوَانًا: د فضل نه مراد ثوابونه او جنت دے، او رضوان نه مراد د الله راضی کیدل دی۔ او پدے کښ اشاره ده چه څوك په خپل عمل کښ اخلاص کوی نو هغه په خپل عمل سره د الله نه اجر طلب کوی او ریاکار په خپل عمل سره اجر نهٔ غواړی۔

Scanned by CamScanner

## سیما څه شے دے؟

سِيْمَاهُمْ: دا شپږم صفت دے، سیما نخے او علامے ته وائی۔

او پدے کښې اشاره ده چه دوئ په ډیره توجه سره عبادتونه کوی، چه د هغے په وجه د هغوی په مخونو باندے نښے د عبادت ښکاره کیږی، په مخونو کښې ئے رنړا او تازګی وی، (ازهریؒ، سفیان الثوریؒ) تواضع او عاجزی وی۔ (مجاهدؒ)

ضحاكؒ وائی: کله چه سړے ے خوبه شی نو سهار کښې د هغهٔ مخ زیړ وی نو دا هغه نخه ده۔ (یعنی دوی تهجد ګذار دی)۔

ابن جریجؒ وائی: دا نخه هغه وقار دے چه د دوی په مخونو باندے وی۔

حسنؒ وائی: کله چه تهٔ وینے نو تا ته به مریضان ښکاری حال دا چه هغوی مریضان نهٔ وی۔

ابن عباس رضی الله عنهما فرمائی: ددے نه مراد ظاهری نخے د تندی نهٔ دی [وَلٰكِنَّهُ سِيْمَا الْاِسْلَامِ وَسَمْتُهُ وَخُشُوْعُهُ وَالسَّمْتُ الْحَسَنُ] دا د اسلام نخه ده او د خشوع او ښکلے سیرت۔ ځکه چه څوك ډیر عبادت کوی نو هغهٔ کښې یو قسم خشوع پیدا کیږی او زړهٔ کښې نرمی پیدا شی او سیرت ئے ښائسته شی۔ دا ډیر ښه مصداق دے۔

بعض وائی: دا به په قیامت کښې د دوی په مخونو رنړا وی لکه دا په حدیث د طبرانی کښې راغلے دے او سیوطیؒ ورته اسناد حسن وئیلے دے۔

عطاء الخراسانیؒ وائی: [دَخَلَ فِیْ هٰذِهِ الْآیَةِ كُلُّ مَنْ حَافَظَ عَلَى الصَّلَوَاتِ الْخَمْسِ] پدے آیت کښې هر هغه څوك داخلیږی چه په پنځو مونځونو حفاظت کوی) چه د هغه په مخ کښې به هم دغه شان رنړا او خشوع پیدا کیږی۔

بقاعیؒ وئیلی دی چه ددے نه ظاهری د تندی توره غوټه نهٔ ده مراد ځکه چه هغه خو اکثر د ریاکارو په تندو کښې پیدا کیږی او هغه د خوارجو نخه ده۔ (نظم الدرر)

او ابن کثیر د مجاهدؒ نه نقل کړیدی چه کله کله دغه نخه د دواړو سترګو په مینځ کښې د هغه چا وی چه زړه ئے د فرعون نه هم سخت وی۔ لیکن ددے نه مراد هغه کسان دی چه داسے نښه د ریاء دپاره جوړه وی یا مشرك یا بدعتی وی او ډیر مونځونه کوی نو دغه علماؤ داسے نخه بده ګڼړلے ده۔ او کله دا د وینے د فرق د وجه نه د نیکانو خلقو هم جوړیږی۔ یعنی په تندی کښې محراب جوړیدل خامخا د نیکئ نښه نهٔ ده۔

Scanned by CamScanner

ذٰلِكَ مَثَلُهُمْ: دا اُوم صفت دے، دلته د مفسرینو دوه قوله دي، یو قول دا دے چه دلته وقف دے یعنی دا مخکنی صفات د صحابه کرامو صرف په تورات کښې ذکر وو. او په انجیل کښې راتلونکی طریقے سره د دوی حالت او صفت ذکر دے. نو وَمَثَلُهُمْ فِي الْإِنْجِيلِ به نوے کلام وی.

دویم قول دا دے چه وقف به په (فِي الْإِنْجِيلِ) باندے کولے شی. یعنی دغه صفتونه په تورات او انجیل دواړو کښې ذکر دی. او دا قول د ابن عباس رضی الله عنهما دے. او كَزَرْعٍ به نوے کلام وی، او خبر به د مبتداء وی یعنی (هُمْ كَزَرْعٍ) دوی په شان د فصل دی. الخ.

اول قول غوره دے ځکه چه د انجیل سره ئے مستقل لفظ (مَثَلُهُمْ) ذکر کړیدے، او په ماقبل ئے عطف کړیدے.

او بله وجه دا ده چه سنن دارمی، او دارنګه مشکاة باب فضائل سید المرسلین کښې د کعب الاحبارؒ نه د رسول الله ﷺ او د صحابه کرامو په صفت کښې د تورات عبارت نقل دے.

او بقاعیؒ هم ددے آیت په تشریح کښې د تورات عبارت راوړیدے، نهٔ د انجیل.

مَثَلُهُمْ: د مثل نه مثال او صفت دواړه مراد کول صحیح دی. او مثل بیان ته هم وائی.

یعنی په انجیل کښې د صحابه کرامو مثال د هغه بوټی دے چه د زمکے نه خپل تیغ را اوباسی، بیا هغه غټ شی او وُنه جوړه شی، بیا وُنه غټه شی، بیا هغه په خپلے تنے باندے اُودریږی، چه ددے په لیدو سره زمیندار خوشحالیږی.

شوکانیؒ لیکی چه الله تعالیٰ ددے مثال په ذریعه د صحابه کرامو حالت بیان کړے چه په شروع کښې به د دوئ شماره کمه وی، بیا به د دوئ شماره زیاته شی، او هغه به د بوټی پشان قوی نه قوی ترین شی، او داسے به ځکه کیږی چه الله تعالیٰ د دوئ د کثرت او طاقت په ذریعه د کافرانو غیظ او غضب زیاتوی.

شَطْأَهُ: شطأ فَرَاخُ الزَّرْعِ (د فصل بچی) ته وائی، دلته ترینه د غنمو، وریشو، جوارو وغیره تیغ دے. او په أَخْرَجَ کښې ضمیر زرع ته راجع دے، یا الله ته راجع دے.

فَآزَرَهُ: آزَرَ کښې ضمیر د فاعل شَطْأَ ته راجع دے او (ہ) ضمیر زرع ته راجع دے. یعنی مضبوط کړی دغه تیغ فصل لره.

فَاسْتَغْلَظَ: یعنی دغه تیغ نور سخت شی، یعنی دغه تیغ غټ شی، دنګ والے او پلن

Scanned by CamScanner

والے ئے ډیر شي۔ یا په فاستغلظ کښې ضمیر زرع (فصل) ته راجع دے، یعنې دغه فصل سخت شي ددے تیغ په وجه۔ لکه فَاسْتَوٰی کښې هم ضمیر فصل ته راجع دے۔
دا مثال مفسرینو په مختلفو طریقو لګولے دے، لیکن دوه طریقے پکښې ښکاره دي، یو تشبیه المرکب او بل تشبیه المفرد۔

## تشبیه المفرد داسے ده :

د زرع نه مراد رسول الله ﷺ دے، او اَخْرَجَ شَطْأَهُ او فَآزَرَهُ نه مراد ټول صحابه کرامؓ دي۔ نو صحابه کرامؓ راولګیدل رسول الله ﷺ ئے مضبوط کړو، د هغوی مدد ئے وکړو، ځکه چه هغوی هم دعوت شروع کړو، نو پدے کښې د رسول الله ﷺ مضبوطوالے راغے او د هغه دعوت مکمل شو۔ یعنې اول کښې ابوبکر صدیق رضی الله عنه ایمان راوړو، نو هغوی بیا نورو ته دعوت وکړو نو هغوی نورو ته دعوت وکړو تردے چه دعوت کامل شو۔
پدے کښې بعض مفسرینو تعیین کړیدے لکه عکرمة فرمائی: اَخْرَجَ شَطْأَهُ نه مراد ابوبکر صدیق رضی الله عنه دے او فازره کښې عمر فاروق رضی الله عنه ته اشاره ده، او فَاسْتَغْلَظَ کښې عثمان رضی الله عنه ته او په (فَاسْتَوٰی عَلٰی سُوْقِهٖ) کښې علی رضی الله عنه ته اشاره ده ځکه چه رسول الله ﷺ فرمائی : [اَلْخِلَافَةُ بَعْدِیْ ثَلَاثُوْنَ عَامًا] زما نه روستو خلافت به دیرش کاله وی، او هغه تقریباً په علی رضی الله عنه او د هغه په ځوی حسن رضی الله عنه باندے مکمل شو۔

(مسند احمد : ۲۲۱،۲۲۰/۵) وابوداود فی السنة باب (۸) والترمذی فی الفتن باب (۴۸) وصححه ابن حبان وانظر صحیح الجامع (۳۳۴۱) واسناده صحیح)

مګر مفسرین وائی چه دا د لطائف الکلام نه ده او تفسیر د قرآن نهٔ دے۔
او بعض صحابه کرامو به چه کله دا آیت ولوستلو نو ویه ئے فرمایل: [تَمَّ الزَّرْعُ وَقَدْ دَنَا حَصَادُهٗ] فصل تمام شو (سر ته ورسیدو) او د لَوْ کولو وخت ئے رانزدے شویدے۔

## تشبیه المرکب داسے ده :

یعنې داسے تدبر وکړه چه چا یو ځای کښې فصل وکرلو، هغے اول تیغ راوستو بیا د دے تیغ په وجه دغه فصل مضبوط شو، بیا زر زر نور مضبوط شو، زمیندار چه راغے وے کتل چه زما پټے خو ډیر مزیدار شو نو خوشحاله شی، او دشمن پرے خفه شی چه دا

څرنګ زر ترقي ئے وشوه۔ نو دغه شان اسلام په اول کښې کمزورے وو، بیا اسلام ته الله تعالیٰ په مختلفو طریقو غلبے ورکولے تردے چه په خپله پونډئ باندے ودریدو، نو زمیندار چه رسول الله ﷺ دے پدے فصل ډیر خوشحاله شو او کافران پرے خفه وو، خو هیڅ ئے نشو کولے۔ یعنی په انجیل کښې الله داسے لیکلی وو چه د رسول الله ﷺ ملګری به دغه شان لږ لږ ډیریږی۔

او دا ترتیب الله تعالیٰ ځکه ذکر کړو چه فصل په یو دم نهٔ غټیږی بلکه لږ لږ غټیږی نو دغه شان دین اسلام هم لږ لږ مضبوط شو، ملګری به لږ لږ پیدا کیدل۔

صاحب د فتح البیان لیکی : دا مثال الله تعالیٰ د نبی کریم ﷺ د ملګرو دپاره بیان کړیدے چه دوی په اول کښې لږ او کم وو بیا به لږ لږ زیاتیدل او قوی کیدل به لکه د فصل په شان چه اول کښې ضعیف وی بیا وخت په وخت قوی کیږی تردے چه په پنډئ باندے مضبوط شی۔

په انجیل متی او لوقا کښې دے مثال ته داسے اشاره شویده چه د عربے نه د هغے ترجمه داسے ده : ((وګورئ یو زمیندار ته چه د فصل دپاره راووتو او پدے مابین کښې هغه فصل کرلو چه بعض تخم په لاره کښې پریوتو نو مارغان راغلل او هغه تخم ئے راپورته کړو او بعض تخم په کانړی پریوتو چه هلته خاوره زیاته نهٔ وه، او سمدست راوتو کیدو ځکه چه په زمکه کښې ژور والے نهٔ وو، او هرکله چه نمر راوختو نو وسوزیدو او وچ شو ځکه چه ددے دپاره بیخ نهٔ وو او بعض تخم په ازغو کښې پریوتو نو ازغی رازیات شول او هغه ئے راتنګ کړو۔ او بعض په پاکه مزیداره زمکه کښې پریوتو او بعضو سل چنده میوه ورکړه، او بعضو شپیته او بعضو دیرش، نو د چا چه آوریدونکی غوږونه وی هغه دے واوری))۔ ترجمه ختمه شوه۔ او همدا بعینه ددے آیت معنیٰ ده۔

دا قول چه (بعض تخم په لاره کښې پریوتو) پدے کښې اشاره ده هغه وحی ته چه د یونان فلاسفهٔ په لاس کښې پریوتے وه چه د هغوی په زړونو کښې ددے قابلیت نهٔ وو نو شیطان په باطلو شبهاتو سره د هغوی نه دغه وحی وتښتوله۔

او دا قول چه (بعض تخم په کانړی پریوتو) پدے کښې اشاره ده هغه وحی ته چه د یهودیانو په لاسونو کښې پریوته ځکه چه د دوی زړونه د کانړو نه زیات سخت وو په قبلولو د وحی کښې، نو د هغے د راټیولو قابلیت ئے ونهٔ لرلو بلکه لږے مودے پورے د

Scanned by CamScanner

هغوي په ژبه جاري وه او بيا د هغوي د لاسونو نه د نصاراؤ لاسونو ته نقل شوه۔
او دا هغه نمر راختل وو، نو هركله چه دوي د عيسى عليه السلام په وحي باندے يقين ونكړو نو د دوي د زړونو نه هغه وغورزيده او زائل شوه لكه د نمر په گرمائش سره چه دغه كرلے شوے گياه د كانړي نه زائله شوه۔
او دا قول چه (بعض تخم په ازغو كښ واقع شو) اشاره ده هغه وحي ته چه د نصاراؤ لاسونو ته ورغلے وه، ازغي عبارت دے د هغه مشتبه كارونو نه چه د عيسىٰ عليه السلام نه به صادريدل لكه مړي ژوندي كول، مريض ته شفاء وركول او مورزادي ړوند ته نظر راواپس كول او كونړ روغول او چاړا گويا كول دي، او د ازغو زياتيدو كښ ددے كارونو زياتيدو ته اشاره وه، او د هغے تنگيدو كښ د هغے نه عقيده زائل كيدل مراد دي۔
او دا قول چه (بعض تخم په پاكه زمكه كښ واقع شو) دا يقيني او پرقيدونكے دليل دے په هغه وحي باندے چه د عربو په لاسونو كښ واقع شوه په واسطه د پيژندگلئ د محمد بن عبد الله ﷺ سره ځكه چه د دوئ زړونه ساده وو، ددے لائق وو چه ددے وحي دپاره لوښے وگرځي۔
او دا قول چه (ميوه وركړه) د مطلق ميوے وركولو نه مراد ابوبكر صديق رضي الله عنه دے، او سل چندونو نه عمر فاروق رضي الله عنه او شپيته چندونو نه عثمان رضي الله عنه او ديرش چندونو نه علي بن ابي طالب رضي الله عنه مراد دے او د ميوے نسبت ابوبكر صديق رضي الله عنه ته وشو ځكه چه ددهٔ خلافت په خپله زمانه كښ مضبوط وو او د عمر رضي الله عنه په زمانه كښ سل چنده اسلام ته ترقي ملاؤ شوه، او د عثمان رضي الله عنه په زمانه كښ شپيته چنده او د علي بن ابي طالب رضي الله عنه په زمانه كښ ديرش چنده ترقي ملاؤ شوه، او دا مصداق دے ددے قول د نبي كريم ﷺ چه ((خلافت زما نه روستو ديرش كاله دے))۔
او پدے كښ دا هم جائز ده چه زميندار نه مراد رسول الله ﷺ دے، او د زمكے نه مراد امت دے او د تخم نه مراد ايمان دے، موافق د مراتبو د مؤمنانو، او آخري قسم نه مراد ددے امت غوره خلق دي د هغوي د مرتبو موافق۔
الزُّرَّاعَ: جمع د زارع ده، زميندارو ته وئيلے شي۔
وَعَدَ اللَّهُ الَّذِيْنَ: يعني الله تعالىٰ د خپلو دے بندگانو سره وعده كړے چه هغه به د دوئ گناهونه معاف كوي، او دوئ له به اجر عظيم يعني جنت وركوي۔ او ددے نه تول

Scanned by CamScanner

صحابه کرامؓ مراد دی او (مِنۡهُمۡ) ئې پکښې د يره ولو دپاره ذکر کړې۔ دے دپاره چه هغوی هم په يره کښې وی چه که د چا عاقبت په ايمان باندے راغلے نو دغه وعده به وی۔

**فائده** : د امام مالك شاګرد سعيد بن عمر الزبيرئ وائی چه مونږ د امام صاحب په مجلس کښې ناست وو نو چا وويل چه دلته يو تن دے چه د صحابه کرامؓ تنقيص (ګستاخی) کوی نو هغه متوجه شو او دا آيتونه ئې ولوستل (لِيَغِيظَ بِهِمُ الْكُفَّارَ) او بيا ئې دا استدلال وکړل [مَنۡ اَصۡبَحَ وَفِیۡ قَلۡبِهٖ غَيۡظٌ عَلٰی اَصۡحَابِ رَسُوۡلِ اللّٰهِ ﷺ فَقَدۡ اَصَابَتۡهُ هٰذِهِ الۡاٰيَةُ] خوك چه صبا کړی او د هغه په زړهٔ کښې د رسول الله ﷺ د ملګرو سره بغض وی نو هغه به کافر وی۔

(دا هله چه دا بغض د هغوی سره د صحابيت او د ايمان د وجه نه وی، البته که د يو صحابی سره د بل صحابی دنياوی يا سياسی امورو کښې اختلاف او جګړه راغلی وی نو هغه کفر نهٔ دے، دواړه ډلے الله معاف کړيدی)۔ وبالله التوفيق۔

(البغوی، ۲۷۸/۷) والقرطبی والتحرير والتنوير)

## امتيازات د سورة الفتح

١- د صلح حديبيه او خيبر فتوحاتو تشريح پکښې ذکر ده۔
٢- بشارت په غلبه د اسلام۔
٣- د محمد رسول الله لفظ پکښې ذکر دے۔
٤- د صحابه کرامؓ صفات پکښې ذکر دی۔
٥- اَلۡحِكَمُ فِیۡ اَفۡعَالِ اللّٰهِ ۔ د الله په کارونو کښې ډير حکمتونه وی۔ شرعی وی او که قدری۔ نو ددے نه به انکار نشی کيدے۔

ختم شو تفسير د سورة الفتح په رحمت د رب العزت په تاريخ ۳۰ اپريل ۲۰۱٦/ موافق : جمادی الثانيه ۱٤۳۷/۲۲ هجری۔ صباح يوم الخميس۔

Scanned by CamScanner

بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

| آیاتها (۱۸) | (٤٩) سورة الحجرات مدنية (١٠٦) | رکوعاتها (۲) |
| --- | --- | --- |

سورتِ حجرات مدني دے، په دے کښې اتلس آیتونه، او دوه رکوع دي۔

## تفسير سورة الحجرات

نوم : د (٤) آیت ﴿ إِنَّ الَّذِيْنَ يُنَادُوْنَكَ مِنْ وَّرَآءِ الْحُجُرَاتِ أَكْثَرُهُمْ لَا يَعْقِلُوْنَ ﴾ نه اخستے شوے۔ حجرات ورته ځکه وائي چه بعض کسانو رسول الله ﷺ ته د کوټو نه بهر آوازونه کړي وو چه پدے کښې بے ادبي وه نو الله تعالیٰ دا سورت د هغه د آدب کولو دپاره نازل کړو۔

د نازلیدو زمانه : قرطبیؒ لیکي چه دا سورت د ټولو په نیز مدني دے۔ ابن عباس ؓ نه هم دا نقل شوي، ددے د مضامینو د تالاش کولو نه معلومیږي چه دا د مدني دور په آخر کښې نازل شوے، او دا چه پوره سورت په یو وخت کښې نهٔ دے نازل شوے، بلکه ددے آیتونه مختلف اوقاتو کښې نازل شوي چه دا رسول الله ﷺ یو ځائے ته راغونډ کړي دي۔

ددے ټولو نه اهم مضمون د تعلیم (ښودنے) آداب دي، چه هر مسلمان دپاره د نبي کریم ﷺ سره د معاملے کولو په وخت ددے لحاظ ساتل ضروري دي، دے دپاره چه د نبي کریم ﷺ په شان کښې ددهٔ نه بے ادبي اونشي، او نبي کریم ﷺ ته ددهٔ نه تکلیف ونهٔ رسي۔

### مناسبت

۱- مخکښې بشارت بالفتح وو نو دلته اسباب د فتح بیانیږي چه هغه ښه صفات د مؤمنانو دي۔

۲- مخکښې فتح وه نو اُوس اَلآدَابُ الْمَأْمُوْرُ بِهَا بَعْدَ الْفَتْحِ بیانوي، یعني هغه آداب

Scanned by CamScanner

ښائي چه د فتح نه روستو په هغې باندې امر کیږي. چه د الله او د رسول اطاعت به کوئ او د هغه ادب به کوئ او دغسې نور کارونه.

## د سورت موضوع او مقصد

ددې سورت دوه موضوع ښکاره کیږي.

۱ – اَلآدَابُ الشَّرعِيَّةُ الَّتِيْ هِيَ سَبَبُ الْفَتْحِ وَسَبَبُ الْجَنَّةِ – یعنی هغه شرعی آداب بیانوی چه هغه سبب د فتح او سبب د جنت دے، انسان پرے ښکلے ښکاره کیږي.

او دغه آداب تقریباً یولس دی، معاشره پرے جوړیږي.

۲ – داسے هم وئیلے شی چه پدے کښې ترغیب الی الایمان دے، او د ایمان دوه قسمونه بیانوی چه یو فائده مند او بل غیر فائده مند دے، مَعَ بَيَانِ صِفَاتِ الْمُؤْمِنِيْنَ (ورسره د مؤمنانو صفات بیانوی).

قَالَتِ الْاَعْرَابُ سره وائي چه د خولے ایمان فائده مند نهٔ دے. بلکه عملی ایمان فائده مند دے. د ایمان لفظ پکښې زیات ذکر دے.

که انسان غواړي چه پوره تقویٰ هغه کښې راشي، نو پدے سورت او پدے کښې ذکر شوي آدابو باندے دې عمل وکړي.

دارنګه که یو انسان د معاشرے د صفا کولو کوشش کوی او لانجے ختمول غواړي نو دا سورت دې ولولي. او پدے سورت کښې ډیر زیات احکام دی.

۳ – زمونږ شیخ محترم ابو زکریا رستميؒ فرمائی :

دعویٰ د سورت ده، ذکر د اصولو او آدابو دپاره د دفع د اختلاف او تفرق او دپاره د بقا د اتحاد او اتفاق چه هغه په طریقه د لسو اوامرو او اته نواهیو سره دی.

خلاصه : اول کښې اُوه آداب ذکر دی، او دا د ایمان والو ښکلے صفات دی،

او بیا منافقانو ته زجرونه دی چه هغوی ددے آدابو لحاظ نکوی.

او بیا صفات د ایمان والو راوړی چه پدے سره د منافقانو نه راجدا کیږي،

او بیا منافقانو ته زجر دے چه دعوے د ایمان کوی او صحیح او فائده مند ایمان ورسره نشته، او په نبی باندے د خپل ایمان زباتنه کوی.

Scanned by CamScanner

| يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تُقَدِّمُوا بَيْنَ يَدَيِ اللَّهِ وَرَسُولِهِ وَاتَّقُوا |
|---|
| اے ایمان والو ! مۀ مخکښې کیږئ مخے ته د الله او د رسول د هغه نه او اُویریږئ |
| اللَّهَ إِنَّ اللَّهَ سَمِيعٌ عَلِيمٌ ﴿١﴾ |
| د الله نه یقیناً الله آوریدونکے دے په هر څه پو هه دے۔ |

**تفسیر**: مقصد د آیت دے : اَلنَّهْیُ عَنْ مُخَالَفَةِ اللّٰهِ وَالرَّسُوْل ۔ (منع د مخالفت د الله او د رسول نه) ذکر ده۔ بیا مخالفت د رسول الله ﷺ په ډیرو طریقو کیږی پدے وجه ئے دلته عام لفظ استعمال کړیدے (لَا تُقَدِّمُوْا)۔ یعنی د الله او د رسول نه مۀ مخکښې کیږئ۔

يَا أَيُّهَا الَّذِيْنَ آمَنُوْا : دے نه روستو مقتضیات الایمان ذکر کیږی یعنی ستا د ایمان تقاضا دا ده چه دا روستنے کار مۀ کوه۔ او دا مقتضیات یولس پدے سورت کښې ذکر دی۔

## شان نزول

۱- بعض صحابه کرامؓ وئیلی وو: [لَوْ نَزَلَ كَذَا وَكَذَا فِيْ كَذَا وَكَذَا] آرمان چه د فلانی شی په باره کښې آیت نازل شوے وے نو ښه به وه۔ نو الله دا آیت نازل کړو چه د الله تعالیٰ او د رسول نه ځان مۀ مخکښې کوئ، ځکه چه الله تعالیٰ پو هیږی چه کوم آیت د نازلیدو لائق دے هغه به نازلوی، ستا غوختو ته ضرورت نشته لکه مخکښې سورت کښې د منافقانو دا عیب بیان شو ﴿وَيَقُولُ الَّذِينَ آمَنُوا لَوْلَا نُزِّلَتْ سُورَةٌ﴾ چه اول کښې به ئے سورت نازلیدل غوختل چه کله به نازل شو بیا به تختیدل۔

پدے معنیٰ به دا آیت د صحابه کرامؓ د دور پورے خاص وی، ځکه چه اُوس خو آیتونه نۀ نازلیږی۔

۲- بعض مفسرین وائی چه دا آیت د هغه صحابی په باره کښې نازل وو چه هغه قربانی د اختر د مانځه نه مخکښې کړے وه لکه ابوبرده بن نیار (د براء بن عازب ؓ ماما) نو الله دا آیت نازل کړو چه د الله او د رسول نه مۀ مخکښې کیږئ، رسول الله ﷺ لا قربانی نۀ ده کړے او یو انسان د هغه نه ځان مخکښې کوی۔ (قاسمیؒ)

معلومه شوه چه د رسول الله ﷺ د فعل او طریقے نه به خپل فعل او طریقه نۀ

Scanned by CamScanner

مخکښې کوی۔
او پدے آیت سره دلیل نیولے شوېدے چه نص به مقدم کولے شی په قیاس باندے۔ (السیوطیؒ فی الاکلیل)

## د آیت مصداقات او مطلبونه

۱- مجاهدؒ وائی: [لَا تُفْتُوْا حَتّٰى يَقُوْلَهُ اللّٰهُ وَرَسُوْلُهُ] - یعنی الله او رسول چه یوه خبره نهٔ وی کړې نو د هغوی نه مخکښې به فتوه نهٔ ورکوئ. قرآن او حدیث کښې چه یوه خبره صراحةً، دلالةً یا اشارةً نهٔ وی ذکر نو په هغے به فتویٰ نهٔ ورکړے کیږی۔
۲- لَاتَقُوْلُوْا خِلَافَ الْكِتَابِ وَالسُّنَّةِ۔ د قرآن او سنت خلاف خبرے مهٔ کوئ۔ او دا بیا عام آیت دے، ډیر څیزونه پدے کښې داخلیږی، مثلاً الله تعالیٰ د یو شی بدی بیانوی، او بنده ئے صفت کوی، الله د یو شی صفت کوی او بنده ئے بدی بیانوی، الله تعالیٰ یو شے نازل کړے او بنده وائی نهٔ ئے دے نازل کړے، یو شے حرام او دے ورته حلال وائی، او ددے برعکس۔
او پدے کښې تاویل د الله په اسماء او صفاتو کښې کول هم داخلیږی چه الله فرمائی: يَدُ اللّٰهِ۔ (د الله لاس شته)، او دے وائی چه د ید نه مراد قدرت دے، او لاس د الله نشته ځکه چه بیا جسمیت ثابتیږی، او دا خو عیب او بے ادبی ده، نو گویا که خپل ځان ئے د الله او د رسول نه ډیر ادب والا وګرځولو، دغه شان استواء علی العرش وغیره صفات واخله۔ نو تول مُؤَوِّلِین د الله او رسول نه ځان مخکښې کوی۔
حافظ ابن کثیرؒ د آیت معنیٰ دا بیان کړے چه اے مسلمانانو! د نبی ﷺ نه مخکښې په هیڅ کار کولو کښې تادی مهٔ کوئ، بلکه په ټولو کارونو کښې د هغهٔ پیروی کوئ۔
ابن جریرؒ ددے معنیٰ دا بیان کړے چه اے هغه خلقو چه هغوئ د الله د وحدانیت او د هغهٔ د نبی ﷺ د نبوت اقرار کړے! تاسو په خپل کوم جنګی یا دینی معامله کښې د الله او د هغهٔ د رسول د فیصلے نه مخکښې خپله څهٔ فیصله مهٔ کوئ، هسے نهٔ داسے اوشی چه د الله او د هغه د رسول (ﷺ) د مرضیٔ خلاف فیصله وکړئ۔
عرب وائی: [فُلَانٌ يَتَقَدَّمُ بَيْنَ يَدَیْ إِمَامِهِ] (یعنی فلانے شخص د خپل بادشاه نه مخکښې امر او نهی صادروی)۔

Scanned by CamScanner

بیا لَا تُقَدِّمُوْا: متعدی دے نو دلته به مفعول پټ وی۔ اَیْ لَا تُقَدِّمُوْا اَفْعَالَکُمْ وَاَقْوَالَکُمْ۔ یعنی خپل افعال او اقوال (خبرے) د الله او د رسول نه مهٔ مخکښې کوئ۔
او دے کښې ادب دا شو چه د قرآن او سنت په مقابله کښې د چا رائے او خپله رائے مهٔ پیش کوئ پدے سره تفرق او اختلاف راځی۔ او په ټولو کارونو کښې د قرآن او سنت رعایت کول لازم دی۔

۲– دویم دا چه باب تفعیل په معنیٰ د تفعل سره زیات استعمالیږی۔ نو بیا به دا لازم وی یعنی مهٔ مخکښې کیږئ د الله او د رسول نه۔
ابن عباس رضی الله عنهما فرمائی: [نُهُوْا اَنْ یَّتَکَلَّمُوْا بَیْنَ یَدَیْ کَلَامِهٖ]
امت ددے نه منع شو چه د رسول الله ﷺ د خبرے مخامخ خپله خبره وکړی۔
صاحب د فتح البیان لیکی: [وَهٰذَا یَشْمَلُ مُعَارَضَةَ السُّنَّةِ وَالْکِتَابِ بِالرَّاْیِ وَالتَّقْلِیْدِ اَیْضًا]۔ دا نهی شاملیږی د کتاب او سنت مقابلے کولو ته په رأی او تقلید سره هم۔ تهٔ به آیت او حدیث پیش کوے او یو تن به د خپل امام اقوال ذکر کوی۔

| یَا اَیُّهَا الَّذِیْنَ آمَنُوْا لَا تَرْفَعُوْا اَصْوَاتَکُمْ فَوْقَ صَوْتِ النَّبِیِّ |
|---|
| اے ایمان والو! مهٔ پورته کوئ آوازونه خپل دپاسه د آواز د نبی (ﷺ) نه |
| وَلَا تَجْهَرُوْا لَهٗ بِالْقَوْلِ کَجَهْرِ بَعْضِکُمْ لِبَعْضٍ |
| او په زوره وینا (آواز) مهٔ کوئ هغهٔ ته پشان د زوره وینا د بعضو ستاسو بعضو نورو ته، |
| اَنْ تَحْبَطَ اَعْمَالُکُمْ وَاَنْتُمْ لَا تَشْعُرُوْنَ ﴿۲﴾ |
| (هسے نهٔ) چه برباد به شی عملونه ستاسو، او تاسو به نهٔ پو هیږئ۔ |

**تفسیر**: مقصد د آیت: ۱– تَوْقِیْرُ الرَّسُوْلِ ﷺ۔ د رسول الله ﷺ عزت وکړئ هسے نهٔ چه د هغه بے ادبی درنه وشی، عملونه به مو برباد شی۔
۲– اَلنَّهْیُ عَنِ التَّجَاوُزِ فِی الْکَیْفِیَّاتِ۔ منع د تجاوز کولو نه په کیفیاتو کښې۔
مخکښې ئے ویل چه د رسول الله ﷺ د افعالو نه به مخکښې والے نهٔ کوئ نو دلته وائی چه د رسول الله ﷺ د کیفیاتو نه به نهٔ مخکښې کیږی۔ لکه رسول الله ﷺ ته آواز کول جائز دی لیکن کیفیت بدلول ناجائز دی۔

Scanned by CamScanner

## شان نزول

۱- بخاریؒ د عبد الله بن الزبیر ﷺ نه روایت کړے چه د بنو تمیمو څهٔ سوارهٔ خلق نبی کریم ﷺ خواته راغلهٔ، ابوبکر ﷺ نبی کریم ﷺ ته ووئیل چه د دوئ امیر قعقاع بن معبد جوړ کړه، او عمر ﷺ ووېل: اقرع بن حابس جوړ کړه، ابو بکر ﷺ ووېل: ستا مقصد صرف زما مخالفت کول دی. عمر ﷺ ووېل: زما مقصد ستا مخالفت کول نهٔ دی. د دواړو ترمینځه خبره زیاته شوه، او د دواړو آوازونه پورته شول، نو دا آیت نازل شو.

ابن ابی ملیکةؒ فرمائی: [كَادَ الْخَيِّرَانِ اَنْ يُّهْلِكَا] نزدے وه چه دواړه غوره انسانان هلاك شوی وے. په روایت د بخاری کښې دی [قَالَ ابْنُ الزُّبَيْرِ: فَكَانَ عُمَرُ بَعْدُ اِذَا حَدَّثَ النَّبِيَّ ﷺ بِحَدِيْثٍ حَدَّثَهٗ كَاَخِي السِّرَارِ لَمْ يُسْمِعْهُ حَتّٰى يَسْتَفْهِمَهٗ]

ابن الزبیر فرمائی: چه ددے آیت نه روستو به عمر ﷺ د رسول الله ﷺ سره داسے په آرام خبرے کولے چه رسول الله ﷺ به ترے دوباره تپوس کولو، چه تا څه ووېل، او دغه شان روایت د ابوبکر صدیق ﷺ په باره کښې هم راغلے دے. (بخاری: ۷۳۰۲)

بخاریؒ او مسلمؒ د انس ﷺ نه روایت کړے چه کله دا آیت نازل شو نو ثابت بن قیس بن شماس ووئیل: (چه ددهٔ آواز اُوچت وو،) چه زما آواز به د رسول الله ﷺ د آواز نه اوچتیدلو، زما اعمال برباد شوی دی، او زهٔ د جهنم والو نه یم، او د غم او خفګان نه ډك په خپل کور کښې کیناستهٔ. رسول الله ﷺ د هغهٔ پوښتنه وکړه چه ثابت څنګه نهٔ ښکاری، (چا ووېل هغه به بیمار وی، سعد ووېل زما ګاونډی دے که ناجوړه وے زهٔ به ترے خبر وے) نو سعد د هغه د خبر راوړو دپاره لاړو،

[ مَا شَاْنُكَ ؟، قَالَ شَرٌّ، كَانَ يَرْفَعُ صَوْتَهٗ فَوْقَ صَوْتِ النَّبِيِّ ﷺ فَقَدْ حَبِطَ عَمَلُهٗ وَهُوَ مِنْ اَهْلِ النَّارِ]

څه حال دے؟ هغه ووېل، ناکاره، (څکه) چه زما آواز د رسول الله ﷺ د آواز نه پورته دے او هغه ته به مے په زوره آواز کړے وی نو زما عمل برباد دے، او زهٔ د اُور والو نه یم نو هغه رسول الله ﷺ ته خبر راوړو نو دغه شخص په دویم ځل لوی بشارت یوړو ورته ئے ووېل چه داسے ورته ووایه:

[اِنَّكَ لَسْتَ مِنْ اَهْلِ النَّارِ وَلٰكِنَّكَ مِنْ اَهْلِ الْجَنَّةِ] ته د اُور والو نه نهٔ ئے بلکه تهٔ د جنت والو

Scanned by CamScanner

نه ئې. (چنانچه هغهٔ په یمامه کښې د مرتدینو په خِلاف جنګ کولو کښې شهید شو).

(بخاري في تفسير سورة ٤٩، باب ١، ٢) ومسلم في الايمان حديث: ١٨٧، ١٨٨) وابن كثير ٧/٣٤٢)

ادب دومره ښه شے دے چه دهٔ ته د جنت زیرے ورکړے شو.

او دے آیت کښې مونږ ته دا سبق هم پروت دے چه د رسول الله ﷺ د حدیث به انتهائی سخت ادب کوے، د هغے نه به جوابونه نهٔ کوے، په هغه باندے به د بل چا خبرے نهٔ پورته کوے، بلکه حدیث ته به تسلیمیږے هله به مؤمن ګرځې.

پدے کښې استنباطي تفسیر دا دے: [لَايَجُوزُ رَفْعُ الْعَقْلِ وَالذَّوْقِ عَلَى الْحَدِيْثِ الصَّحِيْحِ] په صحیح حدیث باندے عقل، قیاس او ذوق پورته کول جائز نهٔ دی.

نو ددے نه دا هم معلومه شوه چه اذکار شرعیه کښې رسول الله ﷺ کوم کښې جهر کړے او څو مره جهر ئے کړے نو تهٔ به هم په هغے کښې جهر کوے او یو ځای کښې هغه جهر نهٔ دے کړے نو نهٔ به کوے.

وَلَا تَجْهَرُوْا لَهٗ بِالْقَوْلِ : ددے دوه مصداقه دی (١) بِنِدَاءِ الْاِسْمِ. یعنی د نوم په اخستو سره لکه یو بل ته چه خلق نوم اخلي رسول الله ﷺ ته به د هغه په نوم آواز نهٔ کوے، یا محمد وئیل حرام دی. بلکه "اے د الله نبی، اے د الله رسوله" به وائی.

(٢) كَجَهْرِ بَعْضِكُمْ بِرَفْعِ الصَّوْتِ. یعنی داسے په زوره آواز به ورته نهٔ کوے لکه څرنګ چه یو بل ته خلق په زوره آواز کوی بلکه هغهٔ ته به په آرام سره اے د الله نبی او اے د الله رسوله وئیلے شي. د وړاندے نه آواز به هم نهٔ کوی دا د ادب خلاف دهٔ. او داسے ادب به د علماؤ او مشرانو او بیا د ټولو مسلمانانو سره هم کولے شي.

او دلته تو هین غرض نهٔ دے ځکه چه دا خطاب اول کښې صحابه کرامو ته شویدے او په هغوی کښې هیڅ یو تن دے بے ادبئ په طریقه خپل آواز د رسول الله ﷺ په آواز باندے نهٔ پورته کولو، او نهٔ ئې ورته دے بے ادبئ په طریقه آواز کولو. بلکه دلته ددے باکئ او بے پروایئ نه منع دهٔ، یعنی کله به ستا تو هین کول غرض نهٔ وی لیکن بے باکی به درنه وشي نو د رسول الله ﷺ سره به د انتهائی احترام نه کار اخستلے شي.

اَنْ تَحْبَطَ اَعْمَالُكُمْ: اَىْ خَشْيَةَ اَنْ تَحْبَطَ اَعْمَالُكُمْ.

یعنی یره دهٔ چه ستاسو اعمال به برباد شي او تاسو به نهٔ پو هیږئ. عمل لویه سرمایه

Scanned by CamScanner

ده څکه ئې ددې بربادېدل په وعید کښې ذکر کړل۔

| |
|---|
| إِنَّ الَّذِينَ يَغُضُّونَ أَصْوَاتَهُمْ عِنْدَ رَسُولِ اللهِ |
| یقیناً هغه کسان چه خکته کوی آوازونه خپل په خوا کښې د رسول الله (ﷺ) |
| أُولَئِكَ الَّذِينَ امْتَحَنَ اللهُ قُلُوبَهُمْ لِلتَّقْوَى لَهُمْ مَغْفِرَةٌ |
| دا هغه کسان دی چه صفا کړیدی الله تعالیٰ زړونه ددوئ تقویٰ ته، دوی لره بخنه ده |
| وَأَجْرٌ عَظِيمٌ ﴿٣﴾ إِنَّ الَّذِينَ يُنَادُونَكَ مِنْ وَرَاءِ الْحُجُرَاتِ أَكْثَرُهُمْ |
| او اجر لوئی دے۔ یقیناً هغه کسان چه آوازونه کوی تا ته اخوا د کوټو نه ډیر د دوی نه |
| لَا يَعْقِلُونَ ﴿٤﴾ وَلَوْ أَنَّهُمْ صَبَرُوا حَتَّى تَخْرُجَ إِلَيْهِمْ |
| عقل نهٔ لری۔ او که چرته دوی صبر کړے وے تردے چه را اُوځې ته دوی ته |
| لَكَانَ خَيْرًا لَهُمْ وَاللهُ غَفُورٌ رَحِيمٌ ﴿٥﴾ |
| خامخا بنه به وه دوی لره او الله بخونکے دے رحم کونکے دے۔ |

**تفسیر** :إِنَّ الَّذِينَ : اُوس الله تعالیٰ د هغه ایمان والو صفت کوی او زیرے ورکوی چه هغوی د رسول الله ﷺ اکرام او عزت کوی۔ او دا څلور صفات او احوال د صحابه کرامؓ دی۔

امْتَحَنَ اللهُ قُلُوبَهُمْ : دا د امتحان الذهب والفضه نه دے، یعنی د سرو او سپینو زرو د خیرو نه صفا کول یا د امتحان الادیم نه دے، یعنی د څرمنے مخل (مړل) ددے دپاره چه فراخه شي یعنی د دوئ زړونه ئې د هر غلط فکر او غلطے عقیدے نه صفا کړی او د تقویٰ د قبلولو دپاره ئې فراخه کړیدی۔

بعض داسے تعبیر کوی : [أَخْلَصَهَا وَجَعَلَهَا مَحَلًّا لِلتَّقْوَى] یعنی زړونه ئې خالص کړیدی او هغه ئې د تقوىٰ محل ګرځولے دے۔ [كَمَا يُمْتَحَنُ الذَّهَبُ لِيَخْرُجَ خَالِصُهُ] لکه سرو زرو باندے په اُور کښې امتحان کیږی چه د هغے خالص راوځی۔

معلومه شوه چه چا کښې ادب وی هغه کښې به تقوىٰ راځی لکه الله فرمائی : ﴿ وَمَنْ يُعَظِّمْ شَعَائِرَ اللهِ فَإِنَّهَا مِنْ تَقْوَى الْقُلُوبِ ﴾ څوک چه د الله تعالیٰ د شعائرو تعظیم کوی نو دا د

Scanned by CamScanner

اخلاص د زړونو نه دے۔
حافظ ابن کثیرؒ لیکی : [قَالَ الْعُلَمَاءُ : يُكْرَهُ رَفْعُ الصَّوْتِ عِنْدَ قَبْرِهِ ﷺ كَمَا كَانَ يُكْرَهُ فِي حَيَاتِهِ عَلَيْهِ الصلاة والسلام، لِأَنَّهُ مُحْتَرَمٌ حَيًّا وَفِي قَبْرِهِ صَلَوَاتُ اللّٰهِ وَسَلَامُهُ عَلَيْهِ]
د علماؤ وینا ده چه لکه څنګه چه د نبی ﷺ په ژوند کښې به د هغهٔ په حضور کښې د اوچت آواز سره د خبرو کولو ممانعت وو، دغه شان د نبی کریم (ﷺ) د قبر خواته آواز پورته کول منع دی، څکه لکه څنګه چه هغوئ په ژوند کښې واجب الاحترام وو، د مړینے نه پس په خپل قبر کښې هم واجب الاحترام دے۔ (ابن کثیر : ۳۴۳/۷)
سائب بن یزیدؒ فرمائی : زهٔ په مسجد نبوی کښې ولاړ وم چه یو سړی زما طرفته شګه ویشتله نو ما چه وکتل هغه امیر المؤمنین عمر بن خطاب ﷺ وو، ما ته ئے ووېل : [اِذْهَبْ فَأْتِنِي بِهٰذَيْنِ فَجِئْتُهُ بِهِمَا] لاړ شه دا دواړه کسان ما ته راوله نو ما هغه دواړه راوستل هغوی ته ئے ووېل : [مَنْ أَنْتُمَا أَوْ مِنْ أَيْنَ أَنْتُمَا] تاسو څوك یئ؟ یا تاسو د کوم ځای یئ۔ هغوی ووېل : د طائف والو نه یو۔ وے فرمایل : [لَوْ كُنْتُمَا مِنْ أَهْلِ الْبَلَدِ لَأَوْجَعْتُكُمَا تَرْفَعَانِ أَصْوَاتَكُمَا فِي مَسْجِدِ رَسُولِ اللّٰهِ ﷺ] که تاسو ددے ښار (مدینے) وسیدونکی وے نو ما به تاسو په وهلو سره دردمند کړی وے، آیا تاسو د رسول الله ﷺ په مسجد کښې آوازونه پورته کوئ۔ (بخاری باب رفع الصوت في المسجد : ٤٧٠)
إِنَّ الَّذِينَ يُنَادُونَكَ: پدے آیت کښې زجر دے هغه چا ته چه د ادب لحاظ نهٔ کوی۔

## شان نزول

محمد بن اسحاقؒ د نهم (۹) هجری کال په واقعاتو کښې لیکلی دی چه د مکے د فتح، د تبوك د فتح، او د بنو ثقیف د مسلمانیدو نه پس د څلور واړو طرفونو نه به د عربو د قبائلو وفدونه راتلل۔ په دوئ کښې یو وفد د بنو تمیم وو۔ د دوی مشر اقرع بن حابس وو هغه مسجد ته د داخلیدو سره سم رسول کریم ﷺ ته د کمرو نه بهر آوازونه شروع کړل، [يَا مُحَمَّدُ اُخْرُجْ إِلَيْنَا]: اے محمده! بهر را اوځه او زمونږ خواته راشه۔
رسول الله ﷺ جواب ورنکړو بیا ئے ووېل : [يَا مُحَمَّدُ إِنَّ مَدْحِي زَيْنٌ وَإِنَّ ذَمِّي شَيْنٌ] زهٔ چه د چا صفت وکړم هغه ښائسته کیږی او د چا بدی چه بیان کړم هغه بدرنګیږی۔
رسول الله ﷺ د غصے شان حالت کښې رابهر شو او وے فرمایل: [ذَاكَ اللّٰهُ]

Scanned by CamScanner

دغه صفت والا خو الله تعالیٰ دے۔ نو الله دا آیت نازل کړو۔

(احمد، ابن جریر، بغوی، طبرانی، ابن مردویه والترمذی (۳۲٦۷) بسند صحیح- سیوطی، البانی)

بیا رسول الله ﷺ هغوی سره د اخلاقو د وجه نه کیناستو نو هغوی تقریر وکړو او په یو شاعر باندے ئے شعرونه هم وویل نو رسول الله ﷺ ثابت بن قیس د خطبے دپاره پاڅولو او حسان ئے د شعرونو دپاره، نو دوی وویل چه ستاسو خطیب زمونږ د خطیب نه او شاعر زمونږ د شاعر نه غوره دے۔

**اَلْحُجُرَاتِ:** جمع د حُجْرَةٌ ده، کوټو ته وئیلے شی۔ او الحجرات کښې اشاره ده ځایونو د خلوت ته، یعنی رسول الله ﷺ غائب دے او هغه ته آوازونه کوی لکه یو تن چه بے قدره انسان ته د لرے نه آواز کوی، نو دوی ډیره زړه ورتیا وکړه چه د عظیمے هستیٔ سره داسے د ادنیٰ خلقو په شان سلوك کوی۔ یو تن ته الله تعالیٰ داسے مرتبه ورکړی وی چه هغه ته په زوره وینا ئے حرامه کړے وی نو هغه ته د وړاندے نه چغے وهل به څومره لویه بے ادبی وی۔ الله تعالیٰ د خپل نبی ډیر لوی ادب کړیدے۔

**اَكْثَرُهُمْ لَا يَعْقِلُوْنَ:** یعنی دویٔ د داسے قوم نه دی چه اکثر د دوی جاهلان او بے عقله دی یا اکثر ئے ددے وجه نه وویل چه د بعضے کسانو آوازونه بے اختیاره اُوچت شی۔

او دوی ته ئے بے عقله ځکه وویل چه دویٔ د رسول الله ﷺ شان نهٔ پیژندلو، او بل د ظروفو او ضرورتونو خیال ئے نهٔ کولو، خپل ضرورت راخستی وو، عقل دا دے چه د مسلمان او د نبی لحاظ پکار دے، آیا د هغهٔ د استراحت او خوب وخت به نهٔ وی، هغه به ضرورتونه نهٔ لری، مسلمان لره د بل مسلمان د ظروفو او اَوقاتو او ضرورتونو لحاظ پکار دے، څه وخت د خوب او څه د ملاقات او څه د عباداتو وی۔

**وَلَوْ اَنَّهُمْ صَبَرُوْا:** اُوس الله تعالیٰ صحابه کرامو ته د نبی کریم ﷺ سره د انتهائی با ادب اوسیدو تعلیم ورکړے، فرمائی چه که دے خلقو صبر کړے وے او ادب سره جومات کښې ناست وے، او د نبی ﷺ د راوتو انتظار ئے کړے وے نو دویٔ دپاره به دنیوی او اُخروی دواړو لحاظ سره ډیره بهتره وے ځکه چه یو به ئے د الله د رسول سره ښکلے ادب کړے وے او د الله تعالیٰ د طرفنه به د شاباسی او اجر مستحق شوی وے، ځکه چه د رسول الله ﷺ اکرام او تعظیم او ادب کول لوی عمل صالح دے۔

Scanned by CamScanner

خَيْرًا لَّهُمْ : پدے کښې اشاره ده چه د مشرانو شرعی ادب د خیر او برکت او سبب د مغفرت او رحمت دے۔

| |
|---|
| يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِنْ جَاءَكُمْ فَاسِقٌ بِنَبَإٍ فَتَبَيَّنُوا |
| اے ایمان والو ! که چرته راوړي تاسو ته ګناهګاريو خبر لره نو تحقیق اُوکړئ (هسے |
| أَنْ تُصِيبُوا قَوْمًا بِجَهَالَةٍ فَتُصْبِحُوا عَلَىٰ مَا |
| نه) چه تاسو به تکلیف اُورسوئ يو قوم ته په ناپوهئ نو وُبه ګرځئ په هغه کار |
| فَعَلْتُمْ نَادِمِينَ ﴿٦﴾ وَاعْلَمُوا أَنَّ فِيكُمْ رَسُولَ |
| چه کړے وی تاسو خپیمانه۔ او پو هه شئ چه یقیناً په تاسو کښې رسول د |
| اللَّهِ لَوْ يُطِيعُكُمْ فِي كَثِيرٍ مِّنَ الْأَمْرِ |
| الله تعالیٰ دے، که چرته هغه تابعداری اُوکړی ستاسو په ډیرو کارونو کښې |
| لَعَنِتُّمْ وَلَٰكِنَّ اللَّهَ حَبَّبَ إِلَيْكُمُ الْإِيمَانَ |
| خامخا تاسو به په مشقت کښې پریوزئ، لیکن الله خوښ کړیدے تاسو ته ایمان |
| وَزَيَّنَهُ فِي قُلُوبِكُمْ وَكَرَّهَ إِلَيْكُمُ الْكُفْرَ |
| او ډولی کړے ئے دے دا په زړونو ستاسو کښې او بد ئے ښکاره کړیدے تاسو ته کفر |
| وَالْفُسُوقَ وَالْعِصْيَانَ أُولَٰئِكَ هُمُ الرَّاشِدُونَ ﴿٧﴾ |
| او ګناهونه او نافرمانی (واړه ګناهونه) دا کسان هم دوی هدایت والا دی۔ (خاص دوی |
| فَضْلًا مِّنَ اللَّهِ وَنِعْمَةً وَاللَّهُ عَلِيمٌ حَكِيمٌ ﴿٨﴾ |
| کامیاب دی)۔ په فضل د الله سره او په نعمت سره او الله پو هه دے حکمتونو والا دے۔ |

**تفسیر** : اُوس پدے آیت کښې الله تعالیٰ تحقیق الخبر بیانوی یعنی هره خبره چه تا ته راغله نو د هغے تحقیق به کوے، او سمدست به عمل نهٔ کوے لکه خوك درته ووائی چه حمله دربانډے کیږی، او تهٔ د هغهٔ د حملے نه مخکښې په هغهٔ بانډے حمله وکړے حال دا

Scanned by CamScanner

چه هغه به د سره د حملے اراده نهٔ وی کړی، یو تن تا پسے خبرے نهٔ وی کړی یو جاهل تا ته ووائی چه فلانی درپسے خبرے وکړے، نو تهٔ به کنځلے وکړے بیا به معلومه شی هغه به تا ته دعاء کړی وی نو ځپیمانه به شے۔ او اکثر انسانان پدے آیت عمل نهٔ کوی۔

## شان نزول

جمهورو مفسرینو دا شان نزول لیکلے دے او په صحیح حدیث کښې هم راغلے دے، حافظ ابن کثیرؒ لیکلی دی چه دا آیت د ولید بن عُقبه بن ابی مُعیط په باره کښې نازل شوے وو، چه دا رسول الله ﷺ د بنو المصطلق د صدقاتو (زکاتونو) وصولولو دپاره لیږلے وو۔

او دا قول په سلفو کښې د ابن ابی لیلیٰؒ او یزید بن رومانؒ او ضحاکؒ او مقاتل بن حیانؒ دے چه دا آیت د ولید په باره کښې نازل دے۔ (ابن کثیرؒ)

دا واقعه امام احمدؒ، ابن ابی حاتمؒ، طبرانیؒ، ابن مندهؒ او ابن مردویهؒ (د سیوطیؒ د قول مطابق) په جیّد سند سره د حارث بن ضرار خزاعی نه روایت کړے، او شیخ البانیؒ په الصحیحة رقم (۳۰۸۸) کښې ددے ډیر طرق راجمع کړیدی او دے ته ئے صحیح وئیلے دے چه ددے خلاصه داده چه حارث خزاعی رسول الله ﷺ خواته راغے او اسلام ئے قبول کړو، او هغوئ ته ئے ووئیل چه زهٔ به د خپل قوم د مسلمانانو زکاة جمع کوم او ځان سره به ئے ګدم، او ستا نماینده به راشي او ما نه به هغه مال وصول کړی۔ نبی ﷺ ولید بن عُقبه بن ابی معیط ددے کار دپاره ولیږلو، لیکن هغه د بنو خزاعه د ویرے نه د لارے نه واپس شو، (ځکه چه هغوی ورته د اکرام دپاره استقبال ته راووتل، د رسول الله ﷺ د استازی او د هغه د امر اکرام ئے کولو نو د تورو په لاس د هغوی یو جماعت دهٔ ته راښکاره شو نو دهٔ خیال شو چه ما وژنی نو مدینے ته راستون شو او دا بهانه ئے جوړه) او نبیﷺ ته ئے ووئیل چه حارث د زکاة ورکولو نه انکار وکړو او ما لره ئے وژل اُوغوښتل۔

رسول الله ﷺ څهٔ خلق حارث طرفته ولیږل۔ دیخوا حارث چه کله د رسول الله ﷺ د استازی په راتلو کښې تاخیر محسوس کړو، نو د څهٔ خلقو په ملګرتیا کښې د رسول الله ﷺ سره د ملاویدو لپاره را روان شو، (دلته نه رسول الله ﷺ یو وفد تیار کړو چه په حارث بن ضرار او د هغه په قوم حمله وکړی ځکه چه زکاة ئے منع کړے) لاره کښې د

Scanned by CamScanner

دوارو ډلو ملاقات اُوشو نو حقيقتِ حال معلوم شو. او حارث رسول الله ﷺ ته ووېل چه وليد بن عُقبه زما خواته نهٔ وو راغلے، او نهٔ مونږ ليدلے، نو ددهٔ په سهوه سره رسول الله ﷺ ته ددهٔ خلافِ حقيقت خبره معلومه شوه، او په همدے موقع دا آيت نازل شو.

دے روايت ته بعض علماؤ ضعيف وئيلے دے د وجه د ضعف د عطيه او د موسىٰ بن عبيده راويانو نه، ليکن صحيح خبره دا ده چه دا په ډيرو سندونو نقل دے، او د مسند احمد (٤/٢٧٩) او طبراني في الكبير (٣/٣١١/٣١٠) روايتونه صحيح دي لکه ددے تفصيل په السلسلة الصحيحة رقم (٣٠٨٨) کښ وګوره.

او حافظ ابن کثيرؒ ورته په خپل تفسير کښ احسن روايت وئيلے دے. وانظر تفسير ابن جرير الطبريؒ رقم الحديث (٣١٩٦١)

ابن قتيبهؒ په خپل کتاب (المعارف) کښ ليکلي دي چه وليد بن عقبه بن ابي معيط د عثمان بن عفان ﷺ مور شريك ورور وو. د دوارو مور اروىٰ بنت کُريز وه، د مکے د فتح په ورځ ئے اسلام راوړے وو، رسول الله ﷺ دا د بنو المصطلق د زکاة راوړلو دپاره ليږلے وو، ليکن هغه د لارے نه واپس راغے او نبي ﷺ ته ئے ووېل چه هغوئ د زکاة ورکولو نه انکار کړے دے، هغه په دے خبره کښ خطاء وو. (يعني په اجتهادي خطائي باندے وو او دا ګناه نهٔ ده) او ددهٔ په باره کښ دا آيت نازل شو. آه. (المعارف في التاريخ ص : ٣١٩)

بيا د آيت سبب اګرکه خاص شخص دے ليکن د آيت الفاظ عام راوړے شويدي، نو عبرت عامو الفاظو لره وي نهٔ خاص سبب لره، ځکه چه الله تعالىٰ دلته قانون د تَثَبُّت او تحقيق بيانوي، ددے وجه نه صحابي ته به د فسق نسبت نشي کيدے، هغه په خپل ګمان کښ خطاء شوے وو او دا اجتهادي خطائي وه، صحابه کرامؓ ټول عادلان دي، په اجتهادي خطائي باندے بنده ګناهګار نهٔ دے.

الله تعالىٰ په دے آيتِ کريمه کښ مومنانو ته نصيحت کړے چه کله يو فاسق څهٔ اَهم خبر راوړي نو تادي مهٔ کوئ، او څهٔ اقدام کولو نه وړاندے ددے پوره تحقيق کوئ، هسے نهٔ داسے اوشي چه په تادئ او خپيمانتيا کښ د يو قوم ځان او مال ته نقصان اورسوئ، او د حقيقت معلومولو نه پس تاسو خپيمانتيا اُوچته کړئ.

دا آيت دليل دے چه د فاسق خبر به رد کولے شي. او خبر ورکونکے که راوي وي، ګواه وي، يا مُفتي وي، ددهٔ ثقه او عادل کيدل ضروري دي، اوکه چرے هغه ثقه او عادل وي نو

Scanned by CamScanner

ددهٔ روایت به قبلیږی، اګر که هغه یواځې روایت کونکے وی۔
او دا آیت دلیل دے چه د خبر د واحد عادل به مقبول وی ځکه که هغه قبول نکړے شی نو بیا به هغه د فاسق سره برابر شی، نو بیا د فاسق تخصیص کښې به هیڅ فائده نهٔ وی۔
او دا هم دلیل دے چه د مجهول الحال راوی روایت قبول نهٔ دے ځکه چه کیدے شی چه هغه بے اعتماده سړے وی، او مونږ د هغه د ځان نه خبره ومنو نو د ځان نه به دین کښې خبره جوړه کړو یا به د ځان نه دین وران کړو۔
نو کوم احناف علماء چه وائی چه په قرون ثلاثه ؤ کښې د مجهول راوی روایت قبول دے نو دا کمزورے خبره ده۔ مګر صحابه کرام رضی الله عنهم ددے نه مستثنیٰ دی، د هغوی جهالت هیڅ ضرر نهٔ ورکوی ځکه چه ټول صحابه کرامؓ عدول (عادلان) دی۔
دا قانون د یو کتاب په باره کښې هم دے چه په یو کتاب کښې یوه خبره یا یوه مسئله راشی نو د تحقیق نه بغیر به د هغې منل صحیح نهٔ وی۔
نَادِمِیْنَ : که د رسول الله ﷺ صحابه کرامؓ په حارث او د هغه په قوم حمله کړے وے او دواړو ډلو جنګ کړے وے نو څو مره به خپیمانه شوی وے، دیتونه به ئے ادا کولے او کفارو به وئیلے چه مسلمانان خپل مینځ کښې ونښتل۔
او د بے تحقیقه خبرو د وجه نه جاهلان غلطے فتوے لګوی چه فلانے کافر شو، فلانے د کفارو جاسوس دے، فلانی دومره پیسے واخستے، هر څو مره بد ګمانی او جګړے دے تحقیقه خبرو د وجه نه پیدا کیږی۔
وَاعْلَمُوْا: په دے کښې اشاره ده تحقیق د خبر ته، او مطلب دا دے چه په تاسو کښې رسول الله ﷺ موجود دے، او د هغهٔ د وفات نه روستو د هغهٔ سنت موجود دی، نو د فاسق خبر به هغه ته پیش کیږی او بیا به د هغه سنت ته پیش کیږی نو په دے طریقے سره به د هغه فاسق دروغ او رشتیا معلومیږی یعنی په تاسو کښې رسول الله ﷺ موجود دے، او د هغه طریقه دا وه چه هغه به دے تحقیقه خلقو په خبره عمل نهٔ کولو لکه په یو مجلس کښې د مالك بن الدُّخَیْشِن ؓ په باره کښې وویل شو چه [ذٰلِكَ مُنَافِقٌ لَایُحِبُّ اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ] هغه منافق دے، د الله او د رسول سره مینه نهٔ لری (ځکه د رسول الله ﷺ مجلس ته رانغلو)۔ رسول الله ﷺ پرے رد وکړو وے فرمایل: [لَا تَقُلْ ذٰلِكَ، اَلَا تَرَاهُ قَدْ قَالَ : لَا اِلٰـهَ اِلَّا اللّٰهُ یُرِیْدُ بِذٰلِكَ وَجْهَ اللّٰهِ] چه داسے مهٔ وایه، آیا نهٔ ګورے چه هغه د لا اله الا الله

Scanned by CamScanner

گواهي ورکوي چه پدے سره ئے صرف د الله د مخ اراده ده۔

(بخاري باب المساجد في البيوت رقم : ٤٢٥)

دارنگه پدے کښې مسلمانانو ته دا تنبيه ورکوي چه دا خبره دِ ے ستاسو نه هيره نهٔ وي چه ستاسو ترمينځه د الله رسول هم اوسيږي، که چرے تاسو دروغ اووايئ، چاته د دروغو خبرو نسبت وکړئ نو الله تعالىٰ به ستاسو د حقيقتِ حال نه هغه خبر کړي۔

دويم بنه مطلب دا هم دے چه په تاسو کښې رسول الله ﷺ موجود دے، يو تن راشي هغه ورته يوه خبره وکړي او بل ورته بله خبره وکړي نو که هغه د تولو خبره ومني ډير نقصان به وشي، نو رسول الله ﷺ به د خپل ځان تابع کوئ نهٔ چه هر يو تن ووائي زما خبره دِ ے ومني ځکه د امت خواهشات خو مختلف دي، که رسول الله ﷺ د دوئ تولو ومني او هغه شان عمل وکړي نو بيا به د هغه تابعداري لازمه وي، نو نور امت ته به مشکلات پيدا شي۔

او ډير کرته به د امتي رائے او خبره خطاء وي نو تول امت به په لوی مشکلاتو اخته شي، لهذا نبي د خپل ځان تابع کول مهٔ غواړئ۔ لکه ډير خلق مشران د خپل ځان تابع کوي، چه فلانے عالِم دِ ے زما د مزاج مطابق خبره وکړي، او زما رايه دِ ے ومني۔

رسول الله ﷺ ته صحابه کرامؓ وويل چه مونږ ته تراويح په جَمعے سره وکړه نو هغه د درے شپو نه سوئ ونهٔ منله ځکه چه بيا به فرض شي، امت ته به گرانه شي۔ رسول الله ﷺ هره ورځ بيان نهٔ کولو ځکه چه د امت دپاره سنت جوړيږي او بيا به مشکل شي۔

وَلَٰكِنَّ اللهَ: يعني هر امتي دا غوښتله چه رسول الله ﷺ د هغه خبره ومني او د هغه خواهش دِ ے پوره شي ليکن تاسو نبي د خپل ځان تابع نکړو بلکه تاسو د هغه تابع شوئ په تکليف او راحت کښې، ددے وجه دا وه چه الله ستاسو په زړونو کښې ايمان محبوب وکړخولو۔

يعني الله تعالىٰ په تاسو دا احسان کړے چه ستاسو په زړونو کښې ئے ايمان مضبوط کړے، او په دے کښې ئے په الله باندے کفر کول، دروغ وئيل او د رسول الله ﷺ د مخالفت نفرت اچولے دے، چه ددے په برکت سره تاسو د ډيرو مشقتونو نه نجات مومئ۔

وَالْفُسُوقَ وَالْعِصْيَانَ: الفسوق کبائرو گناهونو ته وئيلے شي، او عصيان واړه گناهونه۔ يا فسق هغه دے چه طبيعت ترے نفرت کوي، او عصيان هغه دے چه

Scanned by CamScanner

طبیعت ترے نفرت نهٔ کوی۔

**هُمُ الرَّاشِدُوْنَ** : الله تعالیٰ د صحابه کرامؓ په باره کښې ګواهی ورکړه چه په حقیقت کښې همدا خلق په حقه لاره روان، او په دے باندے په سختئ سره قائم اوسیدونکی دی۔ مبتداء او خبر دواړه ئے معرفه راوړل او په مینځ کښې ئے ضمیر فصل راوړو دا په حصر او کمال باندے دلالت کوی۔ او د رشد نه مراد هدایت موندل دی سره د کامیابئ او پوخوالی او د عقلمندئ نه۔

**فَضْلًا مِّنَ اللهِ وَنِعْمَةً**: یعنی په صحابه کرامؓ باندے د الله تعالیٰ خالص فضل او کرم وو چه هغهٔ د دوئ په زړونو کښې د ایمان سره محبت واچولو، او د کفر او ګناه نفرت ئے پیدا کړو۔ او الله تعالیٰ ښهٔ پیژنی چه څوك ښهٔ عمل کوی او څوك بد۔ او د هغهٔ هیڅ یو کار د حکمت نه خالی کیږی نهٔ۔ او پدے کښې اشاره ده چه دغه تیر شوی صفتونه د الله تعالیٰ د طرفه احسان دے، هغه مجبور نهٔ دے، په هغهٔ باندے د چا واجب حق نشته۔

مخکښې دوه څیزونه ذکر وو، د ایمان محبت او د هغے زینت دا فضل دے او کفر بدے ښکاره کیدل نعمت دے۔

**لطیفه** : پدے آیت کښې الله تعالیٰ درے څیزونه د کامل ایمان په مقابل کښې ذکر کړیدی، چه هغے کښې درے څیزونه راجمع وی، د ژبے اقرار، د زړه تصدیق، او د اندامونو اعمال۔ نو کفر بد ګنړل د ایمان د محبت او د هغے په زړونو کښې د ښائسته کیدو په مقابله کښې دے او فسوق چه دروغ دی د ژبے د اقرار په مقابله کښې او عصیان د عمل بالارکان په مقابله کښې دے۔

| وَإِنْ طَائِفَتَانِ مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ اقْتَتَلُوْا فَأَصْلِحُوْا |
|---|
| او که چرته دوه ډلے د مؤمنانو نه یو بل سره جنګ اُوکړی نو جوړ جاړے اُوکړئ |
| بَيْنَهُمَا فَإِنْ بَغَتْ إِحْدَاهُمَا عَلَى الْأُخْرَى |
| په مینځ د دوی کښې نو که چرته زیاتے کوی یوه د دواړو نه په بله باندے |
| فَقَاتِلُوا الَّتِيْ تَبْغِيْ حَتّٰى تَفِيْءَ |
| نو جنګ اُوکړئ تاسو د هغه ډلے سره چه زیاتے کوی تردے چه را اُوګرځی |

Scanned by CamScanner

إِلَىٰ أَمْرِ اللَّهِ فَإِن فَاءَتْ فَأَصْلِحُوا بَيْنَهُمَا بِالْعَدْلِ

د الله حکم ته، نو کچرته را اُوګرځیده نو جوړه اُوکړئ په مینځ د دواړو په انصاف سره

وَأَقْسِطُوا إِنَّ اللَّهَ يُحِبُّ الْمُقْسِطِينَ ﴿٩﴾

او انصاف کوئ یقیناً الله تعالیٰ مینه کوی د انصاف کونکو سره۔

**تفسیر:** پدے آیت کښې بل قانون دے [اَلْإِصْلَاحُ بَيْنَ الْفَرِيْقَيْنِ مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ] د مؤمنانو دوه ډلے که په خپل مینځ کښې جنګ وکړی نو تاسو د هغوی ترمینځ جوړ جاړے راولئ۔

مناسبت :

کله نا کله یو تن د فاسق خبره ومنی نو د هغے په وجه جګړه پیدا شی، نو نورو مؤمنانو له پکار دی چه د دوئ دا اختلاف ختم کړی۔

شان نزول

ددے آیت د شانِ نزول په باره کښې بخاری او مسلم او نورو محدثینو د انس ﷺ نه روایت کړے چه نبی کریم ﷺ ته بعضِ صحابو د عبد الله بن ابی ابن سلول خواته د هغهٔ د زړهٔ اخستلو دپاره د تللو مشوره ورکړه، دے وجے نه رسول الله ﷺ په یو خر باندے سوریدو سره روان شو او صحابهٔ کرام پیدل روان شو، د دغه ځائے زمکه مالګیږنه وه۔ هغهٔ چه رسول الله ﷺ اولیدلو نو وے وئیل : [إِلَيْكَ عَنِّيْ وَاللّٰهِ لَقَدْ آذَانِيْ نَتْنُ حِمَارِكَ] لرے شه، ستا د خرهٔ په بوئے سره ماته تکلیف رسی، نو یو انصاری ووئیل [وَاللّٰهِ لَحِمَارُ رَسُوْلِ اللّٰهِ ﷺ أَطْيَبُ رِيْحًا مِنْكَ] چه قسَم په الله ! د رسول الله ﷺ د خرهٔ بوئے ستا د بدن د بوئے نه زیات ښهٔ دے، په دے خبره د عبد الله بن اُبی د قوم څهٔ افراد خفه شول۔ دے خوا صحابهٔ کرام هم خفه شو، [فَكَانَ بَيْنَهُمَا ضَرْبٌ بِالْجَرِيْدِ وَالْأَيْدِيْ وَالنِّعَالِ] او د دواړو طرفونو نه د کهجورو د څانګو، لاسونو او څپلو په ذریعه په یو بل باندے حمله وکړے شوه۔ دے وخت کښې دا آیت نازل شو۔ (بخاری : ۲۶۹۱)

بیا رسول الله ﷺ د دواړو ترمینځ صلح وکړه۔

او صحابه کرامو دا آیتونه روستو د علی بن ابی طالب او معاویه بن ابی سفیان رضی

Scanned by CamScanner

الله عنهم په جنګونو کښې عملي کړې وو چه د دوئ ترمینځ ئې د صلح مصالحت کوشش وکړو۔
د آیت مفهوم دادے چه د مسلمانانو دوه ډلے خپلو کښې جنګ وکړي، نو مسلمانانو له پکار دي چه دے دواړو ډلو ته د الله تعالیٰ د کتاب مطابق فیصله کولو دعوت ورکړي، که چرے قبول ئے کړي نو همدا مطلوب ده، اوکه یوه ډله د الله تعالیٰ د کتاب مطابق د فیصلے کولو نه انکار وکړي، نو مسلمانان دِے دے باغي ډلے سره جنګ وکړي، تردے چه هغه په قرآن کښې د الله تعالیٰ د ذکر کړی حکم په قبلولو باندے راضي شي۔ په داسے صورت کښې مسلمانانو له پکار دي چه د دوئ ترمینځه د عدل او انصاف مطابق فیصله وکړي، یعني د الله تعالیٰ د هغه حکم مطابق کوم چه د هغهٔ په کتاب کښې ذکر شوے، او کوم چه عینِ عدل دے۔
وَإِنْ طَائِفَتَانِ: د ابن عباس ﷺ نه قرطبیؒ وغیره نقل کړیدي چه طائفه یو نفر او زیاتو ته هم وئیلے کیږي ددے وجه نه د جَمع ضمیر هم ورته راجع کیږي۔
مِنَ الْمُؤْمِنِينَ : دے نه معلومه شوه چه مؤمن به دے ته نهٔ وائي چه جنګ به ئے نهٔ راځي بلکه د مؤمن به کله نا کله اختلاف هم راځي۔ لیکن د حدودو نه به نهٔ بهر کیږي۔
وَأَقْسِطُوا: د زیاتي تاکید په توګه الله وفرمایل چه اے مومنانو ! ستاسو هره فیصله په انصاف باندے مبني کیدل پکار دي۔ اِقساط (انصاف) کول دا دي چه هر حقدار ته د هغه حق ورکړے شي۔ نو په أَصْلِحُوا بَيْنَهُمَا بِالْعَدْلِ کښې اقوالو ته اشاره ده، او په (وَأَقْسِطُوا) کښې افعالو ته، یعني قولاً او عملاً عدل وکړئ۔
بیشکه الله تعالیٰ انصاف کونکو سره محبت کوي، او ددے محبت تقاضا داده چه هغه به دوئ ته بهترینه بدله ورکوي۔
إِلَىٰ أَمْرِ اللَّهِ: د الله تعالیٰ د امر نه مراد د الله تعالیٰ او د هغهٔ د رسول طاعت دے، او دارنګه صلح ده۔
د تفسیر عالمانو ددے آیتِ کریمه نه لاندیني مسائل مستنبط کړي دي :
۱ – د مسلمانانو د ډلو ترمینځه صلح کول ضروري دي۔
۲ – بغاوت کونکے ډلے سره جنګ کول ضروري دي، او دا حکم مکے او نورو تولو

Scanned by CamScanner

مسلمانانو ته شامل دے۔

۳ – کوم کسِ چه د بغاوت کونکے ډلے نه جدا شی، هغهٔ سره به جنګ نهٔ کیږی، ځکه الله تعالیٰ ﴿حَتّٰى تَفِیْٓءَ﴾ (تردے چه را واپس شی) وئیلی دی، یعنی کله چه باغی ډله د بغاوت نه منع شی نو هغے سره به جنګ نهٔ کیږی۔

٤ – د روسته کیدونکو قتل او زخمی وژل حرام دی۔

٥ – نهٔ به د دوئ مال، مالِ غنیمت وی، او نهٔ به د دوئ اولاد غلامان جوړیږی، ځکه د بغاوت په وجه دوئ کافر شوی نهٔ دی۔

٦ – که چرے د جنګ په حالت کښ د دوئ مالونه واخستے شول، نو دوئ ته به واپس کولے شی، او که چرے دوئ د مقابلے ډلے ځان یا مال ته ځهٔ نقصان رسولے وو، نو دوئ به د هغے ضامن نهٔ وی۔

۷ – که چرے باغی اُووژلے شی، نو هغهٔ له به غسل ورکولے شی، کفن کولے به شی، او ددهٔ د جنازے مونځ به کولے شی۔

۸ – که چرے په انصاف باندے د ولاړے ډلے یو کس اُووژلے شی، نو هغه به شهید وی، نهٔ به هغهٔ له غسل ورکړے کیږی، او نهٔ به د هغهٔ د جنازے مونځ کیږی۔

۹ – که چرے د دواړو ډلو ترمینځه د نسلی یا قومی تعصب یا د حکومت غوښتلو په وجه جنګ وشی نو دواړه ډلے به ظالمانے وی، او په دواړو کښ به هره یوه ډله د یو بل د تاوان ضامنه وی۔ ددے نه د علی او معاویه رضی الله عنهما جنګونه مستثنیٰ دی۔

امام قرطبیؒ لیکی چه دا تول اجتهادی اختلاف وو، او مونږ لره جائز نهٔ دی چه په دے کښ یو طرفته یا یو صحابی ته د یقینی خطائی نسبت وکړو، هغوی تول زمونږ امامان دی، مونږ به د هغوی د جنګونو د ذکر کولو نه خپلے ژبے محفوظ ساتو لکه چه زمونږ تورے د هغوی د وینو نه الله تعالیٰ محفوظ ساتلی دی، او دا به وایو چه تِلْكَ اُمَّةٌ قَدْ خَلَتْ لَهَا مَا كَسَبَتْ۔

۱۰ – چه څوك یوه ګناه په تاویل سره جائز کوی لیکن هغه سبب د فساد وی نو هغه تاویل سبب د منع د قتال نشی کیدے ځکه چه باغی ضرور ځان دپاره تاویلات کوی لیکن هغے ته اعتبار نشی ورکیدلے۔

Scanned by CamScanner

| إِنَّمَا الْمُؤْمِنُونَ إِخْوَةٌ فَأَصْلِحُوا بَيْنَ أَخَوَيْكُمْ |
|---|
| یقیناً مؤمنان ورونه ورونه دی نو روغه کوئ په مینځ د ورونو ستاسو کښې |
| وَاتَّقُوا اللَّهَ لَعَلَّكُمْ تُرْحَمُونَ ﴿۱۰﴾ |
| او اُویریږئ د الله نه دے دپاره چه په تاسو باندے رحم اُوکړے شی۔ |

**تفسیر**: اُوس د صلح علت بیانوی یعنی مخکښې چه د مسلمانانو د دوه ډلو ترمینځه د کومے صلح حکم وشو نو ددے وجه بیانوی چه مسلمانان خپلو کښې ورونه ورونه دی، دینی رشته د تولو رشتو نه زیاته مضبوطه وی، چه ددے تقاضا داده چه کله د دوه مسلمانانو یا ډلو ترمینځه اختلاف پیدا شی، نو د الله تعالیٰ او د هغهٔ د رسول د حکم مطابق خپلو کښې صلح اُوکړی، او الله نه اُویریږی، او په دے کښې لږه سستی هم ونهٔ کړی، دے دپاره چه اختلاف زیاتیدو ته پرے نښودے شی، او مسلمانان د یو بل وینه ونهٔ بیوی۔ د صلح لاره هغه لاره ده چه په دے باندے تللو سره الله تعالیٰ د مسلمانانو په حال رحم کوی، او د دوئ خپل مینځی اختلاف به زیاتیږی نهٔ۔

د نبی کریم ﷺ په مبارکو احادیثو کښې هم اسلامی اُخوّت (وروروليْ) له ډیر زیات اهمیت ورکړے شوے۔ امام بخاریؒ د ابن عمر ؓ نه روایت کړے، رسول الله ﷺ وفرمایل: [اَلْمُسْلِمُ اَخُو الْمُسْلِمِ لَا يَظْلِمُهُ وَلَا يُسْلِمُهُ] مسلمان د مسلمان ورور دے، نهٔ به پرے ظلم کوی او نهٔ به ئے دشمن او هلاکت ته پریدی) (یعنی دشمن ته به ئے نهٔ پریدی)۔

(بخاری: ۶۹۵۱)

او بخاریؒ د ابو موسیٰ اشعری ؓ نه روایت کړے چه یو مومن د بل مومن لپاره د عمارت (آبادیٔ) پشان دے چه ددے یوه برخه بلے برخے ته طاقت رسوی۔ (بخاری: ۴۸۱)

إِنَّمَا الْمُؤْمِنُونَ إِخْوَةٌ: دا جمله خبریه ده، او په حقیقت کښې انشائیه ده، او مطلب دا دے چه مؤمن دے بل مؤمن خپل ورور وګنړی، او هغه سره دے د ورور په شان سلوك وکړی، نو کله چه د یو ورور د بل ورور سره جګړه راشی، نو دریم ورور له پکار ده چه د هغوی ترمینځ وروروليْ باقی وساتی او جوړ جاړے راولی، نهٔ دا چه د هغوی ترمینځ چغلی او فساد خور کړی لکه اکثرو نفسونو کښې دا مرض دے۔

Scanned by CamScanner

او دا آیت دلیل دے چه د نسب اختلاف لـه اعتبار نشته بلکه صرف ایمان سبب د اخوت او ورورلئ دے۔

او مفسر شربینیؒ د ابو عثمان حیریؒ نه نقل کړیدي چه اخوت د دین کلك دے د اخوت د نسب نـه ځکه چه اخوت د نسب قطع کیږی په دیني مخالفت سره، او اخوت دیني نهٔ قطع کیږی په مخالفت د نسب سره۔

او زجاجؒ وائي : کـلـه چـه دوی په دین کښې متفق وی نو دوی د دین په اتفاق کښې اصل نسب ته واپس شول، ځکه چه دوی د آدم علیه السلام او حواء رضی الله عنها اولاد دی۔

**أَخَوَيْكُمْ** : د ضمیر په ځای ئے اسم ظاهر راوړو دپاره د زیاتے مبالغے، او دپاره د اعلان کولو چه دیني اخوت د اصلاح سبب دے۔

او اخوین ئے تثنیه ذکر کړه پدے کښې اشاره ده چه هر دوه ورونو ترمینځ اصلاح ضروری ده نو د لوی جماعت او ډلے ترمینځ اصلاح خو به خامخا ضروری وی، ځکه چه د هغوی په اختلاف کښې فساد زیات رامینځ ته کیږی۔

**لَعَلَّكُمْ تُرْحَمُوْنَ** : اصلاح د مسلمانانو ترمینځ کول ولے سبب د رحمت دے؟ وجه دا ده چه تـهٔ د الله په مخلوق رحم کوے، د هغوی نه شر لرے کوے، نو الله به په تا باندے رحم کوی۔ جزاء من جنس العمل وی۔

| يَا أَيُّهَا الَّذِيْنَ آمَنُوْا لَا يَسْخَرْ قَوْمٌ مِّنْ قَوْمٍ عَسٰى |
|---|
| اے ایمان والو! توقے دے نهٔ کوی یو قوم د بل قوم پورے کیدے شی |
| أَنْ يَّكُوْنُوْا خَيْرًا مِّنْهُمْ وَلَا نِسَاءٌ مِّنْ نِّسَاءٍ عَسٰى |
| چه هغوی به غوره وی د دوی نه او نهٔ ډے زنانه د زنانو پورے (توقے کوی) کیدے شی |
| أَنْ يَّكُنَّ خَيْرًا مِّنْهُنَّ وَلَا تَلْمِزُوْا أَنْفُسَكُمْ |
| چه وی به هغوی غوره د دوی نه او عیب مهٔ لګوئ په خپلو ورونو (همجنسو) |
| وَلَا تَنَابَزُوْا بِالْأَلْقَابِ بِئْسَ الْاِسْمُ الْفُسُوْقُ بَعْدَ الْإِيْمَانِ |
| او مهٔ ولئ یو بل په ناکاره نومونو سره، بد دے نوم د نافرمانئ روستو د ایمان نه |

Scanned by CamScanner

وَمَنْ لَّمْ يَتُبْ فَأُولٰئِكَ هُمُ الظّٰلِمُوْنَ ﴿۱۱﴾

او چا چه توبه اُونهٔ ویستله نو دغه کسان ظالمان دی۔

**تفسیر**: عنوان د آیت: اَلنَّهْیُ عَنْ تَذْلِیْلِ الْمُؤْمِنِیْنَ وَتَحْقِیْرِهِمْ۔

پدے آیت کښې منع ده د ذلیله کولو او سپکاوی بیانولو د مسلمانانو نه، او دا سپکاوے راځی په مسخرے کولو او دویم په عیب لګولو، دریم په تنابز بالالقاب (غلطو نومونو سره، او څلورم په بد ګمانۍ او پنځم په جاسوسۍ او شپږم په غیبت کولو۔ نو په دے آیت کښې د اولنو درے خبرو نه منع ده۔ او توبے ته ترغیب ورکوی او که څوك توبه نهٔ وباسی نو هغه به ظالمانو کښې حساب وی۔

او ربط ئے د مخکښې سره دا دے چه مخکښې د جګړے خبره وشوه نو اُوس ځینے هغه کارونو نه منع فرمائی چه هغه د مسلمانانو ترمینځه د اختلاف او جګړے او قتل اوقتال سبب جوړیږی۔

الله تعالیٰ وفرمایل چه اے هغه خلقو چه تاسو ایمان راوړے ! ستاسو یوه ډله دِے بلے ډلے پورے توقے نهٔ کوی، چه مثلًا فلانے قوم حرصناك، بزدله، سپی، شومان، بے عقله دی، کیدے شی چه هغوی به ددے توقے کونکی نه غوره وی، او دا واقعی خبره ده څکه چه څوك د بل پورے مسخرے کوی نو هغه کښې تکبر وی او چا پورے چه مسخره کیږی نو هغه کښې تواضع (عاجزی) وی، او تواضع والا د الله تعالیٰ په نیز د متکبرانو نه غوره وی۔ لکه دا خبره په تجربه او مشاهده کښې راغلے ده۔

مفسر ابو السعودؒ لیکی چه په دواړو ډلو کښې د یوے ډلے د ښهٔ کیدو تعلق د هغے د شکل او صورت او نور ظاهری اسبابو د وجے نه نهٔ دے، بلکه ددے تعلق په زړونو کښې پټو خبرو سره دے۔ دے وجے نه هیڅوك دے چالره سپك نهٔ ګنړی، کیدے شی چه څوك سپك ګنړلے کیږی، هغه د سپك ګنړونکے ډلے نه د الله په نیز بهتر وی۔

او دعَسٰی اَنْ يَّكُوْنُوْا خَيْرًا مِّنْهُمْ: یوه بله معنیٰ دا هم شویده چه کیدے شی چه په راتلونکی وخت کښې دا مسخره کونکے شخص ذلیل، مسکین او عیبژن شی او بل عزتمن شی نو معامله به اُلټه شی۔

عبد الله بن مسعود ﷺ نه قرطبیؒ او نورو مفسرینو نقل کړیدی چه [اَلْبَلَاءُ مُوَكَّلٌ

Scanned by CamScanner

بِالْقَوْلِ، لَوْ سَخِرْتُ مِنْ كَلْبٍ لَخَشِيتُ أَنْ أُحَوَّلَ كَلْبًا]
«مصیبت د خبرو سره تړلے شویدے، که زهٔ په یو سپي پورے خندنئ وکړم نو ویرېږم چه زهٔ به سپے وګرځم»۔
او د قشیريؒ نه نقل دی چه [مَا اسْتَصْغَرَ أَحَدٌ أَحَدًا إِلَّا سُلِّطَ عَلَيْهِ] «چا چه بل مسلمان سپك ګڼړلے دے، نو الله تعالیٰ هغه مسلمان په دهٔ باندے مسلط ګرځولے دے»۔ او هغه ته ئے په دهٔ باندے فوقیت ورکړیدے۔ (تفسیر القشیری ۲۹۳/۷)
وَلَا نِسَاءٌ: د زنانو ذکر ئے پکښ وکړو سره ددے نه چه دا په مؤمنانو کښ داخل دی، ددے حکمت دا دے چه دا مرض په زنانو کښ زیات دے ځکه چه د دوئ همت کمزورے دے، او د همت د کمزورئ د وجه نه د بلے مؤمنے پورے مسخرے او توقے کوی او هغه سپکه ګڼړی، لکه وائی: دا فلانئ ځنګه لنډئ ده، فلانئ اُوږده ده، دے جامو ته ئے وګوره، بورقے ته ئے وګوره، دے شکل ته ئے وګوره۔ ددے تولو خبرو حساب کتاب به کیږی او دا د انسان په عملنامه کښ لیکلے کیږی۔
وَلَا تَلْمِزُوا أَنْفُسَكُمْ: د انفس نه مراد همجنس مسلمانان دی، او تعبیر ئے په انفس سره وکړو پدے کښ اشاره ده چه نور مسلمانان داسے ګڼړه لکه خپل ځان، او عاقل انسان په خپل ځان باندے عیب نهٔ لګوی۔
او چونکه ایمانی رشته د تولو نه زیاته مضبوطه رشته وی، دے وجے نه مسلمانان خپلو کښ د یو بدن غونتے دی، نو په یو مسلمان باندے عیب لګول ګویا که په خپل ځان باندے عیب لګول دی، ځکه ئے تعبیر په لفظ د (انفس) سره وکړو۔
او لمز عیب لګولو ته وائی مخامخ وی او که پښے شا۔ او لاس او سترګه او ژبه او اشارے سره وی، او همز صرف په ژبه سره وی (او د همز او لمز تفصیلی فرق به په تفسیر د سورة همزه کښ راشی ان شاء الله) یعنی یو مسلمان نارینه یا زنانه دے په خپل مسلمان ورور یا خور باندے عیب نهٔ لګوی، چه تا کښ دا نقصان دے، او تهٔ په خبره نهٔ پو هیږے، او تهٔ ساده جاهل ئے، په تا کښ حرص ډیر دے، تهٔ بے عمله ئے، تهٔ د سنت پابند نهٔ ئے، او پدے کښ مقصد د هغهٔ سپکاوے کول وی،
او ددے نښه دا ده چه د نورو خلقو په مخامخ دا سړے شرموی، او که دعوت غرض وی نو بیا جائز ده خو پدے شرط چه یو اځے ورته نصیحت وکړی، او د زړهٔ د یخولو په نیت به

Scanned by CamScanner

نهٔ وی۔ او د رسول الله ﷺ طریقه به دا وه چه کله به ئے یو تن کښې یو عیب ولیدو نو فرمایل به ئے: [مَا بَالُ اَقْوَامٍ] څه وجه ده بعض کسانو لره چه داسې داسې کار کوی۔ نو هغه شخص به پوهه شو چه ما یادوی۔

وَلَا تَنَابَزُوْا بِالْاَلْقَابِ: تنابز یو بل ویستلو ته وئیلې شی، او القاب نه مراد غلط او بد نومونه دی۔ د ابن عباس ﷛ نه نقل دی چه تنابز دا دے [اَلرَّجُلُ يَتُوْبُ مِنَ الْمَعْصِيَةِ ثُمَّ يُعَيَّرُ بِهَا] یو تن د گناه نه توبه ویستلی وی بیا ورته څوك د هغې پیغور ورکوی چه تهٔ زانی، غل او ډاکو ئے۔ نو الله منع وکړه چه هغه ته به په مخکنو گناهونو پیغور نهٔ ورکوی۔

ابن مسعود ﷛ فرمائی: کله چه یو تن یهودی وی بیا اسلام راوړی نو دے ورته وائی اے یهودی، یا مسلمان ته فاسق وائی۔

او علماء وائی چه پدے کښې انسانانو ته د حیواناتو نومونه کیخودل هم داخل دی لکه کلب، حمار، خنزیر وغیره۔

لکه په کتاب الصمت د ابن ابی الدنیا رقم (۳۵۰) کښې دی، د ابراهیم نخعیؒ نه نقل دی چه کله یو تن بل ته حمار یا خنزیر ووائی نو دهٔ ته به د قیامت په ورځ وئیلې کیږی چه آیا ما دا شخص خر یا خنزیر پیدا کړے وو (چه تا ورته خر یا خنزیر وئیلے وو)۔

او د عیب هغه نومونه اخستل منع دی چه یو تن د هغې په ذکر کولو خفه کیږی، او که چرے هغه پرے نهٔ خفه کیدو نو بیا ئے اخستل جائز دی لکه غلطې معنے والا لقب د چا دپاره نوم وی لکه اخفش (خاپیرك) اعمش (ضعیف نظر والا)۔ یا لکه اعرج (گوډ) احدب، (شاکروپے) یا ذو الیدین (اوږدو لاسونو والا)، یا چا ته لنډے ووائی، او سپکاوے ئے مقصد نهٔ وی او هغه پرے نهٔ خفه کیږی۔ او که پدے خفه کیږی نو دا به هم منع وی۔ او قرطبیؒ د سلفو نه ددے مثالونه ذکر کړیدی۔

**فائده ۱:** په کومو نومونو کښې چه مدح او صفت وی او هغه رشتینی او حق وی نو د هغې ذکر کول منع نهٔ دی لکه ابوبکر صدیق ﷛ ته صدیق، او عتیق وئیلې شی او عمر ته فاروق او عثمان ﷛ ته غنی او ذو النورین او علی ﷛ ته ابوتراب او خالد ﷛ ته سیف الله خزیمة ﷛ ته ذی الشهادتین او وئیلې شی۔

**فائده ۲:** ددے آیت دا مقصد نهٔ دے چه څنې یو سړی ہے دینه دے، شرك او بدعات کوی، بیلمازه دے هغه ته به خلق دغه نومونه نهٔ وائی لکه ددے زمانے بعض ملنگان

Scanned by CamScanner

واخلـه چـه کـنـے هـغـه ډیے هم د احترام او عزت حقدار وی پدے گمان چه دیے به په باطن کښې د الله ولی او بزرگ وی دا غلطه ده ځکه چه د الله ولی د شریعت نه خلاف نکوی۔

بِئْسَ الْاِسْمُ الْفُسُوْقُ: ۱ – أَیْ بِئْسَ أَنْ یُّسَمَّی الرَّجُلُ کَافِرًا أَوْ زَانِیًا بَعْدَ إِسْلَامِهٖ وَتَوْبَتِهٖ۔

یـو مـطـلـب دا دیے چـه بـد دیے د فـسـق (نافرمانئ) نوم ورکول یو تن ته پس د هغے نه چه هـغـه ایمان راوړو او توبه ئے ویستله یعنی یو سړی ته د توبے نه روستو کافر او زانی وئیل بد نوم دیے۔ او همدا ظاهر مصداق دیے۔

۲ – شیخ الاسلام ابن تیمیة وغیره دیے کښې دا هم وئیلی دی چه ته چا ته بد نوم کیږدیے نـو تـهٔ بـه فـاسـق جـوړ شے، نو یو مؤمن له دا نهٔ دی پکار چه هغه د ایمان نه روستو ځان فـاسق کړی نو دا به د ویونکی صفت شی، ځکه چه څوك بل ته فاسق ووائی (او هغه ئے اهل نهٔ وی) نو خپله فاسق کیږی۔ دا هم پکښې داخلیږی۔

قرطبیؒ ددیے نه داسے تعبیر کړیدیے : [مَنْ لَقَّبَ أَخَاهُ أَوْ سَخِرَ مِنْهُ فَهُوَ فَاسِقٌ]

چا چه یو ورور ته بد نوم کیخودو او یا ئے ورپورے مسخرے وکړے نو هغه فاسق دیے۔ نو دا بـه د مـخکښې سخریه او همز او نبز سره ولگیږی، یعنی د ایمان نه روستو دغه کارونو کولو سره انسان فاسق کیږی۔ (قرطبی)

وَمَنْ لَّمْ یَتُبْ : اُوس تـوبے تـه ترغیب ورکوی۔ دلته الله تـعالیٰ دوه ډلے جوړے کړے، یو تائبین او بل ظالمین۔ یا به توبه وی یا به ظلم وی۔ نو توبه ویستل فرض شو۔

الظّٰلِمُوْنَ : دهٔ تـه ئے ظالم ووئیلو [لِجَهْلِهٖ بِحُقُوْقِ رَبِّهٖ وَحُقُوْقِ عِبَادِهٖ] ځـکه چه دیے د خپل رب او د بندگانو د حقوقو نه جاهل دیے، او د بل چا حقوق ئے برباد کړل۔

| یَا أَیُّهَا الَّذِیْنَ آمَنُوا اجْتَنِبُوْا کَثِیْرًا مِّنَ الظَّنِّ إِنَّ بَعْضَ الظَّنِّ إِثْمٌ |
| --- |
| اے ایمان والو! ځان اُوساتئ د ډیرو گمانونو نه یقیناً بعض گمان گناه ده |
| وَلَا تَجَسَّسُوْا وَلَا یَغْتَبْ |
| او جاسوسی مهٔ کوئ (او عیبونه د یو بل مهٔ لټوئ) او غیبت ډیے نهٔ کوی |
| بَّعْضُکُمْ بَعْضًا ؕ أَیُحِبُّ أَحَدُکُمْ أَنْ یَّأْکُلَ لَحْمَ أَخِیْهِ |
| بعض ستاسو بعضو له، آیا خوښوی یوتن ستاسو چه اُوخوری غوښه د ورور خپل |

Scanned by CamScanner

| مَيْتاً فَكَرِهْتُمُوهُ وَاتَّقُوا اللّٰهَ إِنَّ اللّٰهَ تَوَّابٌ رَّحِيمٌ ﴿۱۲﴾ |
|---|
| چه مړ وی نو تاسو خو دا بد ګنړئ، او یره وکړئ د الله نه یقیناً الله توبه قبلونکے رحم کونکے دے۔ |

**تفسیر**: پدے کښې بیا د مؤمنانو د تحقیر او تذلیل نه منع ده، او دارنګه منع ده د هغه شی نه چه جګړے راپیدا کوی چه هغه بدګمانی، جاسوسی او غیبت کول دی۔ او دا درے واړه څیزونه انسان کښې تکبر راولی۔

كَثِيرًا مِّنَ الظَّنِّ: پدے کښې نهی ده د ذرائعو نه، یعنی د ډیرو ګمانونو نه ځان وساته ځکه چه بعض ګمان ګناه ده، او په ډیر کښې دا بعض راځی نو ډیر مهٔ کوه نو په ګناه کښې به نهٔ واقع کیږے۔

بیا دلته الله تعالیٰ داسے ونهٔ وئیل چه (لَا تَظُنُّوا) ګمانونه مهٔ کوئ بلکه کثیر لفظ ئے ووئیلو پدے کښې اشاره ده چه ګمانونه په ډیر قسمه دی بعض جائز او بعض ناروا دی۔

## د ګمان اقسام

اول کښې ګمان په دوه قسمه دے (۱) یو ګمان په الله دے، (۲) او بل ګمان په بندګانو دے۔

په الله تعالیٰ باندے ګمان دوه قسمه دے (۱) حُسْنُ الظَّنِّ بِاللّٰهِ (نیك ګمان کول)۔

(۲) سُوْءُ الظَّنِّ بِاللّٰهِ ۔ (په هغه بد ګمان کول) په الله باندے ښائسته ګمان کول فرض دی۔

په یو حدیث کښې دی: (حُسْنُ الظَّنِّ مِنْ حُسْنِ الْعِبَادَةِ) (ابوداود: ٤٩٩٥) وفی اسناده شتیر او سمیر بن نهار نکرة) په الله باندے ښائسته ګمان کول ښائسته عبادت دے۔

او رسول الله ﷺ فرمائیلی دی: [لَا يَمُوْتَنَّ اَحَدُكُمْ اِلَّا وَهُوَ يُحْسِنُ الظَّنَّ بِاللّٰهِ] یو تن دِ دے په تاسو کښې نهٔ مری مګر هغه دِ دے په الله باندے ښائسته ګمان کوی۔ (مسلم: ۲۸۷۷)

په هر حالت کښې به په الله باندے بنده ښه ګمان کوی، کله به ترے یو شے غواړی او هغه به ئے نهٔ ورکوی دے کښې به ستا فائده وی۔ د الله تعالیٰ هر کار د حکمتونو نه ډك وی۔

او په بندګانو باندے ګمان دوه قسمه دے ځکه چه بندګان دوه قسمه دی۔

(۱) فاسق باندے بد ګمانی کول جائز دی (ظَنّ بِالْمَظْنُوْن) جائز دے۔ یعنی متهم شخص باندے ګمان جائز دے۔ یعنی یو تن همیشه غلا کوی بیا په یو ځای کښې غلا وشی، نو

Scanned by CamScanner

څوك ووائي چه دا به هم فلاني غل کړی وي۔ دغه شان قاتل وغیره بانديے۔
(۲) او په مؤمن باندے نیك ګمان کول لازم دی۔ او بد ګمان کول حرام دی، او دا هغه بعض الظن دے چه ګناه دے۔ که یو مؤمن په غلط ځای کښې ووینے هم بنه ګمان کوه چه کیدے شي په دے ځای کښې بعه ئے ضرورت وي۔ داسے به نهٔ وائے چه دا فلانے دلته ولاړ دے، دا به پردو ښځو ته ګوري، یا به غلا ته ولاړ وي۔ او دے زمانه کښې دا قسم بدګماني څومره زیاته ده چه ددے د وجه نه معاشره کښې څومره فسادات خوریږي۔
بل تقسیم : ظن دوه قسمه دے (۱) یو اختیاري ګمان دے (۲) بل غیر اختیاري۔
اختیاري دا دے چه بنده د هغه پسے ګرځي، د هغه تجسس کوي، دے وجه نه ئے روستو وریسے (وَلَا تَجَسَّسُوْا) وئیلے دے۔ او غیر اختیاري بدګماني زړه ته راتللو سره بنده نهٔ ګناهګاروي، او ددے نښه دا ده چه روستو وریسے لټون نهٔ کوي چه چرته لاړو او څه کوي۔
او دلته ئے اِجْتَنِبُوْا لفظ ذکر کړو پدے کښې اشاره ده چه احتیاط کوئ چه بے اختیاره مذموم ګمانونه ستاسو زړونو کښې رانشي۔
وَلَا تَجَسَّسُوْا: تجسس د مسلمانانو پټ عیبونه تالاش کولو ته وئیلے شي۔ نو دلته الله تعالیٰ منع کوي ددے نه چه مؤمن به د مسلمانانو پټ عیبونه نهٔ لټوي پس د هغے نه چه الله تعالیٰ پرے پرده اچولے ده۔ جاسوسي دوه قسمه ده (۱) مسلمانانو دپاره جاسوسي کول، یعني تلل او د کافرانو حالات معلومول، او مسلمانانو حُکامو ته پیش کول جائز بلکه بهتر دي، او د جهاد یو قسم دے، او (۲) دویم تجسس په مؤمنانو دے، یعني د مؤمنانو عیبونه معلومول او هغه بیا حُکامو ته وئیل یا د یو مؤمن عیب بل ته وئیل دے دپاره چه د دویٔ دشمني پیدا شي، دا کار حرام او کبیره ګناه ده۔
بل دے تحسس، دا خبرونه او د چا عیبونه طلب کول او تالاش کول دي د خپل ځان دپاره۔ او بعض وائي : تجسس د پټو خبرو یا عیبونو معلومات ته وائي په طریقه د جاسوسۍ۔ او تحسس هغے ته وائي چه داسے وریسے ګرځي چه هغه په حواسو سره معلوم وي۔
وَلَا يَغْتَبْ بَّعْضُكُمْ : د غیبت معنیٰ په حدیث د مسلم کښې راغلے ده رسول الله ﷺ وفرمایل : آیا تاسو پوهیږئ چه غیبت څه ته وائي؟ صحابه کرامؓ ووئیل : الله او رسول

Scanned by CamScanner

ښه پوهه دے۔ وې فرمایل : [ذِكْرُكَ اَخَاكَ بِمَا يَكْرَهُ] ، یعنی د یو ورور مسلمان په نشتوالی کښې داسې خبره وکړې شی چه هغه ئې نهٔ خوښوی۔
صحابه کرامو وویل : [اَرَأَيْتَ اِنْ كَانَ فِيْ اَخِيْ مَا اَقُوْلُ؟ قَالَ : اِنْ كَانَ فِيْهِ مَا تَقُوْلُ فَقَدِ اغْتَبْتَهُ وَاِنْ لَّمْ يَكُنْ فِيْهِ فَقَدْ بَهَتَّهُ] که زما په ورور کښې هغه څه وی چه زهٔ ئې وایم؟ وې فرمایل : که هغه کښې څه وی او ته ئې بیانوې نو تا د هغهٔ غیبت وکړو، او که چرې دغه بدی په هغهٔ کښې پرته نهٔ وی نو دا خو بهتان دے)۔ (مسلم : ۷٤۱۲)
معلومه شوه چه که یو تن په یوه خبره نهٔ خفه کیدو لکه خلق وائی فلانے اُوږد سړے راغلے وو نو دا به غیبت نهٔ وی۔ دارنګه د بدعتی عیب ذکر کول او په هغې باندې د حدود شرعیه ؤ لاندې رد کول غیبت نهٔ دے، او همدا مراد د قول د حسن بصریؒ دے چه وائی د بدعتی غیبت کول جائز دی۔
او دارنګه هغه فاسق چه خپل فسق ښکاره کوی، او دارنګه مدعی لره جائز دی چه د مدعیٰ علیه هغه نقصان د قاضی په وړاندې ذکر کړی چه د کوم په باره کښې دعویٰ کوی ځکه چه په هغې کښې مقصد د هغهٔ خفه کول نهٔ دی بلکه خپل حق ثابتول دی۔
دارنګه په علم د اسماء الرجال (فن جرح او تعدیل) کښې د یو راوی عیبونه ذکر کول غیبت نهٔ دے بلکه په هغې کښې د دین حفاظت دے۔
دارنګه چا نه مشوره واخستے شی د یو شخص په باره کښې لکه هغهٔ سره معامله کوی یا ورسره نکاح کوی نو د هغه عیب ذکر کول هم جائز دی ځکه چه پدې کښې خیرخواهی د مسلمان ده او دا ضروری ده۔ (وَاَمَّا اَبُوْ جَهْمٍ فَضَرَّابٌ لِلنِّسَاءِ)
غیبت په نص د قرآن او سنت باندې او دارنګه په عقل سره حرام دے ځکه چه غیبت د هغه چا کار وی چه متکبر وی، مسلمان ورته سپك ښکاری، د خپلو نیکیو غم ورسره نهٔ وی۔

## د غیبت صورتونه او اقسام

غیبتونه په څوارلس قسمه دی چه شیخ الاسلامؒ په خپله فتاویٰ کښې ذکر کړیدی، د مثال په طور غیبت کله خلق په صورت د دعاء کښې کوی۔ رَحْمَةُ اللّٰهِ عَلٰى فُلَانٍ لَقَدْ وَقَعَ فِيْ ذَنْبٍ كَذَا۔ الله دې په فلانی رحم وکړی په فلانیٰ ګناه کښې واقع شو۔

Scanned by CamScanner

مقصد ئے دعا نهٔ وی بلکه د هغه عیب راښکاره کول وی۔ کله په صورت د دینداریٔ او صلاحیت کښې وی لکه وائی چه زما عادت دا نهٔ دے چه څوك ذکر کړم مګر په خیر سره او غیبت او دروغ نهٔ خوښوم خو زهٔ به تاسو ته د هغه احوال بیان کړم۔

هغه خو ښه سړے دے لیکن په هغه کښې دا دا عیب دے۔ کله وائی : هغه پریده الله دِے هغه ته او مونږ ته بخنه وکړی او مقصد ئے د هغه سپکاوے او د هغه اړخ کمول وی۔

کله د بل چا صفت وکړی په طریقه د ریاء دے دپاره چه خپل ځان په هغه باندې پورته کړی لکه ووائی : [لَوْ دَعَوْتُ الْبَارِحَةَ فِيْ صَلَاتِيْ لِفُلَانٍ لَمَا بَلَغَنِيْ عَنْهُ كَيْتَ وَكَيْتَ]

که ما بیګاه شپه فلانی ته په مانځه کښې دعا کړے وے نو ما ته به د هغه فلانے فلانے عیب نهٔ وو رارسیدے۔

بعض غیبت په قالب مسخرو او لوبو کښې کوی دے دپاره چه بل څوك د هغه پورے وخندوی، او بعض خلق د تعجب په صورت کښې غیبت کوی، داسے وائی :

[تَعَجَّبْتُ مِنْ فُلَانٍ كَيْفَ لَايَفْعَلُ كَيْتَ وَكَيْتَ/ وَمِنْ فُلَانٍ كَيْفَ وَقَعَ مِنْهُ كَيْتَ وَكَيْتَ]۔

د فلانی نه تعجب راغے چه دا فلانے فلانے کار ترے فوت شو۔ او د فلانی نه مے تعجب وکړو چه څرنګه ترے فلانیٔ فلانیٔ ګناه وشوه۔

کله په صورت د غم او توجع ښکاره کولو کښې وی، داسے وائی : فلانی باندے ډیر خفه شوم چه په فلانیٔ ګناه کښې واقع شو، د خلقو ګمان وی چه دے ورسره خفه دے، او حال دا چه زړه کښې پرے ښه خوشحاله وی۔ او کله یو تن د هغه د دشمنانو په مجلس کښې ذکر کوی دے دپاره چه هغوی پرے خوشحالی وکړی۔

او بعض خلق د انکار د منکر او غضب او د نهی عن المنکر په صورت کښې کوی چه فلانے ولے داسے عظیم جرم او د الله مخالفت کوی، دا خو دهٔ له نهٔ وو پکار۔ او مقصد ئے دا نهٔ وی۔ شیخ الاسلامؒ فرمائی : [وَهٰذَا وَغَيْرُهُ مِنْ أَعْظَمِ أَمْرَاضِ الْقُلُوْبِ وَالْمُخَادَعَاتِ لِلّٰهِ وَلِخَلْقِهِ] او دا او ددے په شان نورے خبرے د زړونو مرض دے، او الله او مخلوق ته په خپل ګمان دهوکه ورکول دی۔ (مجموع الفتاوی ۲۸/۳۶/۲۳۸)

او شیخ الاسلامؒ پدے باره کښې انتهائی مزیدار تفصیلات ذکر کړیدی، د هغے کتل پدے موضوع کښې ډیر زیات مفید دی۔

د غیبت ډیر قبائح دی په قرآن او احادیثو او په اقوالو د علماؤ کښې ذکر دی۔

Scanned by CamScanner

څوك چه د بـل چا غیبت کـوی، د هغه حسنات هغه ته بخښی او د هغه گناهونه په ځان باندے راچوی۔ چا د حسن بصریؒ غیبت کړے وو نو هغه ورته د کجورو توکرئ ولیږله چه الله دے تا لره جزاءِ خیر درکړی، تا ته ما ایله د کجورو توکرئ ولیږله او تا ما ته د خپلو حسناتو راولیږله، نو زما سخا ستا د سخا په نسبت ډیره کمه ده۔ نو پدے سره هغه ملامته شو او و شرمیدو او مسئله ئے هم ورته وکړه۔

په هغه مجلس د الله تعالیٰ رحم نهٔ کیږی په کوم کښ چه غیبت کیږی۔ د درے مجالسو نه د الله تعالیٰ رحمت مصروف (اړولے شوے) وی، یو چه د دنیا صفت پکښ کیږی، او بل چه غیبت پکښ کیږی، دریم چه خنداگانے پکښ کیږی۔

فَكَرِهْتُمُوْهُ : یعنی د مړ ورور مسلمان غوښه خوړل خو تاسو طبعاً بد گنړئ نو دغه شان غیبت شرعاً بد وگنړئ۔

دلته د مړی د غوښے خوړلو سره د غیبت تشبیه ځکه ورکړے شوے چه لکه څنگه چه مړی ته خبر نهٔ وی چه څوك ددهٔ غوښه خوری، دغه شان غیبت کړے شوی ته پته نهٔ وی چه څوك په دهٔ کښ عیب لټوی۔

او دلته ورور مسلمان ئے د خپل ورور سره مشابه کړو او د هغه عزت ئے د غوښے سره مشابه کړو، لکه څنگه چه ددهٔ غوښه خوړل حرام دی، دغه شان ددهٔ د عزت په باره کښ خبره کول حرام دی، او د هغه غیبوبت ئے د مرگ سره مشابه کړو۔

او په غیبت کښ مقصد د هغهٔ نه نفرت ورکول وی ځکه چه انسانی طبیعتونه د انسان د غوښے نه نفرت کوی۔

د یو تن د انسان غوښے ته زړه نهٔ کیږی، بیا د خپل ورور ته نهٔ کیږی، او بیا کله ژوندی ورور باندے د غصے په حالت کښ چك لگوی، لیکن چه مړ شی بیا ئے پرے شفقت وی، نو دغه شان مخامخ یو سړی ته کله نا کله بنده په قاریدے شی خو چه غائب شی نو بیا پرے شفقت پکار دے۔

وَاتَّقُوا اللّٰهَ اِنَّ اللّٰهَ: یعنی اے مسلمانانو! د کومو بدو اعمالو نه چه تاسو په دے آیت کښ منع شوئ هغه مهٔ کوئ او د الله د عذاب نه ویریږئ۔ اوکه د چانه څهٔ داسے غلطی وشی او بیا په خپله گناه خپیمانه وی، او د هغے نه توبه کړی نو الله توبه قبلونکے او بیحده رحم کونکے دے، نو پدے کښ ترغیب دے توبه ویستلو ته۔

Scanned by CamScanner

**فائده** : د کومو بدو اعمالو نه چه په دے آیتِ کریمه کښې منع راغلے، ددے ممانعت د نبی کریم ﷺ په ګڼرو حدیثونو کښې هم راغلے۔

**بخاریؒ او مسلمؒ د ابو هریره رضی الله عنه نه روایت کړے چه رسول الله ﷺ وفرمایل :**

[إِيَّاكُمْ وَالظَّنَّ فَإِنَّ الظَّنَّ أَكْذَبُ الْحَدِيثِ وَلَا تَحَسَّسُوا، وَلَا تَجَسَّسُوا، وَلَا تَنَاجَشُوا، وَلَا تَحَاسَدُوا، وَلَا تَبَاغَضُوا، وَلَا تَدَابَرُوا، وَكُونُوا عِبَادَ اللهِ إِخْوَانًا]

(مسلمانانو ! تاسو د بدګمانئ نه پرهیز اوکړئ، ځکه چه بدګمانی د ټولو نه زیاته دروغژنه خبره ده، او د چا عیبونه مهٔ لټوئ، او چا پسے سوے مهٔ رنړا کوئ، او خپلو کښې یو بل سره حسد، دشمنی او بغض مهٔ ساتئ، او چا پسے مهٔ لګیا کیږئ، او د الله بندګان او خپلو کښې ورونه جوړ شئ)۔ (بخاری : ٦٠٦٥) مسلم : (٦٦٩٠)

**او ابو داودؒ د معاویه رضی الله عنه نه روایت کړے چه رسول الله ﷺ وفرمایل :**

[إِنَّكَ إِنِ اتَّبَعْتَ عَوْرَاتِ الْمُسْلِمِينَ أَفْسَدْتَهُمْ]

(که چرے تاسو د خلقو د پټو خبرو په تالاش پسے لګیا شوئ، نو هغوئ به خراب کړئ)۔

(ابو داود : ٤٨٠٩) وصحيح الترغيب والترهيب : ٢٣٤٢) باسناد صحيح)

**او ابو داودؒ د ابن عمر رضی الله عنه نه روایت کړے چه رسول الله ﷺ خطبه ورکړه، او آواز ئے دومره پورته کړو چه ښځو ته ئے د هغوئ په کورونو کښې واورولو، وے فرمایل :**

[يَا مَعْشَرَ مَنْ قَدْ أَسْلَمَ بِلِسَانِهِ وَلَمْ يُفْضِ الْإِيمَانُ إِلَى قَلْبِهِ لَا تُؤْذُوا الْمُسْلِمِينَ وَلَا تُعَيِّرُوهُمْ وَلَا تَتَّبِعُوا عَوْرَاتِهِمْ فَإِنَّهُ مَنِ اتَّبَعَ عَوْرَاتِهِمْ يَتَّبِعِ اللهُ عَوْرَتَهُ وَمَنْ يَتَّبِعِ اللهُ عَوْرَتَهُ يَفْضَحْهُ وَلَوْ فِي جَوْفِ رَحْلِهِ] (ابو داود : ٤٨٨٢ والترمذی : ٢٠٣٢)

(اے هغه خلقو چه هغوئ په ژبه ایمان راوړے، په داسے حال کښې چه ایمان ستاسو زړونو ته کوز شوے نهٔ دے ! د مسلمانانو د پټو خبرو په تالاش کښې مهٔ لګیا کیږئ، کوم کس چه د مسلمانانو د پټو خبرو په تالاش کښې لګیا اوسی، الله تعالیٰ به د هغهٔ د پټو خبرو په تالاش کښې لګیا شی، تردے چه رسوا به ئے کړی، اګرکه هغه په خپل کور کښې ناست وی)۔

Scanned by CamScanner

يَا أَيُّهَا النَّاسُ إِنَّا خَلَقْنَاكُمْ مِّنْ ذَكَرٍ وَّأُنْثَى وَجَعَلْنَاكُمْ

اے خلقو! یقیناً مونږ پیدا کړی یئ تاسو د نارینه او زنانه نه او ګرځولی ئے مونږ تاسو

شُعُوْبًا وَقَبَائِلَ لِتَعَارَفُوْا إِنَّ أَكْرَمَكُمْ عِنْدَ

خاندانونه او قبیلے دے دپاره چه یو بل اُوپیژنئ یقیناً عزتمند ستاسو نه په نیز

اللهِ أَتْقَاكُمْ إِنَّ اللهَ عَلِيْمٌ خَبِيْرٌ ﴿۱۳﴾

د الله تعالیٰ ډیر تقویٰ دار ستاسو دے یقیناً الله پوهه خبردار دے۔

**تفسیر**: عنوان د آیت: ۱ – اَلنَّهْيُ عَنِ التَّفَاخُرِ بِالْاَنْسَابِ وَالْاَحْسَابِ۔ یعنی په نسبونو او شرافتونو باندے به فخر نهٔ کوئ۔

۲ – مَدَارُ الْكَرَامَةِ عَلَى التَّقْوٰى ۔ د عزت دارومدار په تقویٰ دے۔ چا کښې چه تقویٰ راغله که د هر نسب او قبیلے او قوم سره تعلق لری هغه به عزت والا وی۔

نو په دے آیتِ کریمه کښې الله تعالیٰ انسانانو له خبر ورکړے چه دوئ ټول د آدم او حواء علیهما السلام اولاد دی، دے وجے نه د نسب په لحاظ ټول برابر دی، اُوس چه په دوئ کښې څوک څومره زیات د الله او د هغهٔ د رسول فرمانبردار او خبره منونکے وی، هغومره به ددهٔ مقام د الله په نیز اُوچت وی۔

او الله تعالیٰ انسانان په قومونو او قبائلو کښې دے دپاره نهٔ دی ویشلی چه دوئ د یو بل په مقابله کښې دروغژن فخر وکړی، چه ددے هیڅ حقیقت نشته، ددے مقصد صرف دادے چه دوئ د ښناورو پشان زندګی تیره نهٔ کړی چه هیڅوک چالره نهٔ پیژنی، بلکه د دوئ ترمینځه خپل مینځی تعارف او پیژندګلی پکار ده، دے وجے نه الله تعالیٰ دوئ په قومونو، قبیلو او خاندانونو کښې وویشل، دے دپاره چه د دوئ ترمینځه د خپل مینځی تعاون جذبه پیدا شی، او یوه درسته معاشره په وجود کښې راشی۔

**شُعُوْبًا**: جمع د شعب ده، لرے نیکونو ته وئیلے کیږی لکه چه په عربو کښې ربیعه، مضر، اَوس او خزرج وو، او قبائل د هغے نه خکته نیکونو ته وئیلے شی۔ (مجاهدؒ)

ابو عبیدهٔ لغوی وائی چه اول شعب وی، دا لویه وی د قبیلے نه، بیا قبیله وی، بیا عماره، بیا بطن، بیا فخذ، بیا فَصِیْله، بیا عَشِیْره او هره روستنئ په مخکنئ کښې داخله وی۔

Scanned by CamScanner

نو مثلاً خزیمه شعب دے، او کنانه قبیله ده، او قریش عماره ده، او قصي بطن دے، او عبد مناف فخذ دے، او بنو هاشم فصیله ده، او عباس عشیره ده۔ او د عشیره نه روستو بله قبیله نشته چه خاص نوم ورکړے شي۔ نو شعوب غټے قبیلے شوے او قبائل ورے قبیلے۔ (ابن عباسؓ)

## فوائد او مسائل

ددے نه ډیر مسائل راوځی یو دا چه (۱) دا آیت ددے خبرے دلیل دے چه د نسبونو د حفاظت اهتمام کول یوه مطلوبه خبره ده، ځکه چه د همدے په ذریعه خپلو کښ تعارف کیږی، د صله رحمئ جذبه پیدا کیږی، خپلو کښ د میراث تقسیم کیږی، او رشته داریٔ قائمیږی، لیکن د نسب په بنیاد باندے فخر کول بد دی،

(۲) او پرهیزګاره انسان اګرکه خاندانی لحاظ سره بښکته وی، دا به د غیر پرهیزګار خاندانی انسان باندے مخکښ وی۔

(۳) دے نه معلومه شوه چه مؤمنان خپل مینځ کښ تول یو شان اکفاء (هم سیال) دی۔ ابن ابی حاتمؒ د ابن وهبؒ نه روایت کړے چه ما امام مالکؒ نه پوښتنه وکړه چه یو عربیٔ ښځے سره د غلام د وادهٔ کولو په باره کښ د دهٔ څهٔ خیال دے؟ نو هغهٔ ووئیل : حلال دے، بیا ئے همدا آیت اولوستلو، یعنی سیال کیدو دپاره ئے د آزادیٔ شرط ونهٔ لګولو۔

حافظ ابن کثیرؒ وائی چه کوم خلقو په نکاح کښ د کفو (سیال) کیدو شرط نهٔ دے لګولے، هغویٔ د همدے آیت نه استدلال کړے، او وئیلی ئے دی چه د دین نه سویٔ بل هیڅ شرط نشته۔

(٤) په آیت کښ ذکر شوے مضمون نبی کریم ﷺ په ډیرو احادیثو کښ بیان کړے۔ امام بخاریؒ د ابو هریره رضی الله عنه نه روایت کړے، نبی ﷺ نه پوښتنه اوشوه (مَنْ اَكْرَمُ النَّاسِ؟) چه کوم یو کس زیات عزتمن دے؟ نو نبی ﷺ وفرمایل : (اَتْقَاهُمْ) (د الله په نیز په خلقو کښ زیات عزتمن هغه دے کوم چه د الله نه زیات یریدونکے وی)۔ (بخاری : ۳۳۵۳)

امام مسلمؒ د ابو هریره رضی الله عنه نه روایت کړے، رسول الله ﷺ وفرمایل :

[اِنَّ اللّٰهَ لَا يَنْظُرُ اِلٰى صُوَرِكُمْ وَلَا اِلٰى اَمْوَالِكُمْ وَلٰكِنْ يَنْظُرُ اِلٰى قُلُوْبِكُمْ وَاَعْمَالِكُمْ]

(الله تعالیٰ ستاسو شکلونو او ستاسو مالونو ته نهٔ ګوری، بلکه هغه ستاسو زړونو او

Scanned by CamScanner

عملونو ته ګوري)۔ (مسلم: ٦٧٠٨)

فخر په تقویٰ پکار دے۔ رسول الله ﷺ د مکے د فتح په ورځ خطبه کښې وفرمایل: [فَالنَّاسُ رَجُلَانِ بَرٌّ تَقِيٌّ كَرِيمٌ عَلَى اللهِ وَفَاجِرٌ شَقِيٌّ هَيِّنٌ عَلَى اللهِ وَالنَّاسُ بَنُو آدَمَ وَخَلَقَ اللهُ آدَمَ مِنْ تُرَابٍ] انسانان دوه قسمه دي، یو نیك عمله متقي چه په الله باندے عزتمن دے، او بل بد عمله بد بخته چه په الله باندے سپك دے او ټول انسانان د آدم اولاد دے او الله تعالیٰ آدم د خاورے نه پیدا کړے۔ (ترمذی باسناد صحیح: ٣٢٧٠)

نو د ټولو انسانانو اصل خاوره ده، نو یوه خاوره څرنګ په بله خاوره فخر وکړي۔

رسول الله ﷺ فرمائی: [لَيَدَعَنَّ رِجَالٌ فَخْرَهُمْ بِأَقْوَامٍ إِنَّمَا هُمْ فَحْمٌ مِنْ فَحْمِ جَهَنَّمَ أَوْ لَيَكُونُنَّ أَهْوَنَ عَلَى اللهِ مِنَ الْجُعْلَانِ الَّتِي تَدْفَعُ بِأَنْفِهَا النَّتَنَ]

(ترمذی ٤٢٣٣) وابو داود (٥١١٦) صحيح الجامع: ١٧٨٧) باسناد حسن)۔

خامخا څه سري به په خپلو قومونو باندے فخر پریدي ځکه چه دوي خو د جهنم د سکارو نه سکارهٔ دي، یا به دوي په الله باندے د هغه ګونګټانو نه هم ډیر سپکیږي چه هغه په خپلو پوزو سره ګندګي دیکه کوي۔ اشاره ده چه په خپل نسب باندے فخر کول ډیره بد بویه کلمه ده۔

عبد الله بن عباس رضی الله عنه فرمائی: په قرآن کښې په درے آیتونو باندے خلقو عمل نهٔ دے کړے یو د هغے نه دا آیت دے۔ یعنی خلق په خپلو نسبونو باندے فخر نهٔ پریدي۔

(٥) کوم متل چه مشهور دے چه ((شخصیت بلحاظ علم فوقیت بلحاظ تقویٰ)) نو دا متل برعکس پکار دے (شخصیت بلحاظ تقویٰ فوقیت بلحاظ علم) ځکه چه إِنَّ أَكْرَمَكُمْ عِنْدَ اللهِ أَتْقَاكُمْ کښې شخصیت بلحاظ تقویٰ ته اشاره ده۔ او يَرْفَعِ اللهُ الَّذِينَ آمَنُوا مِنْكُمْ وَالَّذِينَ أُوتُوا الْعِلْمَ دَرَجَاتٍ) نه معلومیږي چه فوقیت په علم سره حاصلیږي۔

## شان نزول

امام ابوداودؒ په مراسیل کښې او ابن مردویهؒ او بیهقیؒ په خپل سنن کښې ذکر کړیدي چه رسول الله ﷺ بنی بیاضه ته حکم وکړو [أَنْ يُزَوِّجُوا أَبَا هِنْدٍ امْرَأَةً مِنْهُمْ فَقَالُوا يَا رَسُولَ اللهِ! أَنُزَوِّجُ بَنَاتِنَا مَوَالِيَنَا؟ فَنَزَلَتْ هٰذِهِ الْآيَةُ] چه دوي ابو هند ته د دوي د قوم نه یوه ښځه په نکاح ورکړي نو هغوي وویل: اے د الله رسوله! آیا مونږه خپلے لونړه خپلو غلامانو ته

Scanned by CamScanner

ورکړو؟، نو پدے باندے دا آیت نازل شو۔

بیهقیؒ فرمائی: رسول الله ﷺ په فاطمه بنت قیس رضی الله عنها چه قریشیه وه د بنو فهر نه جرګه وکړه د اسامه بن زید ﷛ دپاره، او هغه د غلامانو نه وو، او ضباعه بنت الزبیر بن عبد المطلب رضی الله عنها مقداد بن الاسود ﷛ ته په نکاح شوے او د عبد الرحمن بن عوف خور بلال ﷛ ته په نکاح شوه، او ابو حذیفه بن عتبه بن ربیعه خپله وریره خپل غلام (سالم) ته په نکاح ورکړه۔

(معرفة السنن والآثار رقم: ٤٣٤٣)

لِتَعَارَفُوْا: اَیْ لَا لِتَکَرَّمُوْا۔ یعنی الله ستاسو په ډلو کښې ویشل ددے دپاره کړیدی چه یو بل وپیژنئ او د ژوند نظام مو برابر شی نهٔ ددے دپاره چه تاسو دا سبب د عزت وګنړئ، او بیا فخرونه شروع کړئ۔

| |
|---|
| قَالَتِ الْأَعْرَابُ آمَنَّا قُلْ لَّمْ تُؤْمِنُوْا |
| وئیلی وو بانډچیانو ایمان راوړیدے مونږ اُووایه! تاسو ایمان نهٔ دے راوړے |
| وَلٰـكِنْ قُوْلُوْا أَسْلَمْنَا وَلَمَّا |
| لیکن وایئ چه مونږ اسلام منلے دے (مونږ تابعدار یو) او تر اُوسه پورے نهٔ دے |
| يَدْخُلِ الْإِيْمَانُ فِيْ قُلُوْبِكُمْ وَإِنْ تُطِيْعُوا اللهَ وَرَسُوْلَهٗ |
| داخل شوے ایمان په زړونو ستاسو کښې او که چرته تاسو تابعداری کوئ د الله او د رسول د |
| لَا يَلِتْكُمْ مِّنْ أَعْمَالِكُمْ شَيْئًا إِنَّ اللهَ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ﴿١٤﴾ |
| هغه کم به نکړی د عملونو ستاسو نه هیڅ شے یقیناً الله بخنه کونکے رحم کونکے |
| إِنَّمَا الْمُؤْمِنُوْنَ الَّذِيْنَ آمَنُوْا بِاللهِ وَرَسُوْلِهٖ |
| دے۔ یقیناً مؤمنان هغه کسان دی چه ایمان ئے راوړیدے په الله او په رسول د هغه |
| ثُمَّ لَمْ يَرْتَابُوْا وَجَاهَدُوْا بِأَمْوَالِهِمْ وَأَنْفُسِهِمْ |
| باندے بیا ئے شك نهٔ دے کړے او جهاد ئے کړیدے په مالونو خپلو او نفسونو خپلو |

Scanned by CamScanner

فِیۡ سَبِیۡلِ اللّٰہِ اُولٰٓئِکَ ہُمُ الصّٰدِقُوۡنَ ﴿۱۵﴾

په لاره د الله تعالیٰ کښې دغه کسان دوی رښتینی دی۔

**تفسیر** : ابن عباس ﷺ، قتادةؒ او مجاهدؒ نه په مختلفو سندونو سره نقل شوی دی چه دا آیت د بنو اسد قبیلے په باره کښې نازل شوے۔ دا خلق قحط کالیٔ نه پریشانه شو او خپل بال بچ سره مدینے ته راغلهٔ، او په ظاهره کښې ئے اسلام قبول کړو، او رسول الله ﷺ ته ئے ووئیل چه فلانئ فلانئ قبیلے ستا خواته په خپلو سورلیو باندے راغلے، او مونږ خو ستا خواته د خپل بال بچ سره راغلو، او مونږ د فلانئ فلانئ قبیلو پشان تاسره جنګ نهٔ دے کړے، نور خلق په توره مسلمانان شویدی، او مونږ په خپله طبع ایمان راوړو۔ او ددے احسان کولو نه د دویٔ مقصد زیاته نه زیاته صدقه حاصلول وو، نو دا آیت د دویٔ د ایمانی تربیت دپاره نازل شو۔

او دا خلق نوی مسلمانان وو (منافقان نهٔ وو) لیکن ایمان ئے کمال ته نهٔ وو رسیدلے، او دعوه ئے د حقیقة الایمان کوله، نو الله تعالیٰ د هغوی تربیت کوی،

او دا آیت بیا د هر هغه چا په باره کښې دے چه د حقیقی ایمان دعوه کوی او د ایمان پوره شعبے پکښې نهٔ وی، نو دا دعوه به ئے په الله تعالیٰ باندے نهٔ چلیږی، لکه یو تن ځان ته ډاکټر وائی او د ډاکټرئ صفات پکښې نشته، نو دا دعوه به ئے صحیح نهٔ وی۔ لیبل لګولو له اعتبار نشته، صفاتو لره اعتبار دے۔

نو ددے نه دا هم معلومه شوه چه د خولے ایمان مفید نهٔ دے، او حقیقی ایمان فائده مند دے۔ شیخ الاسلام ابن قیمؒ په بدائع التفسیر کښې لیکی چه دا خلق منافقان نهٔ وو بلکه مؤمنان وو لکه دلته الله تعالیٰ ورله اسلام ثابت کړیدے او ایمان ئے ترے نفی کړیدے۔

الله تعالیٰ وفرمایل چه دے بانډه چیانو ووېل : مونږ په الله او د هغهٔ په رسول باندے ایمان راوړے، دے وجے نه مونږ مومنان یو، او د هر اکرام او ډیر عزت حقدار یو۔ الله د نبی کریم ﷺ په ژبه دویٔ ته ووېل چه تاسو لا اوسه پورے مومنان شوی نهٔ یئ، ځکه ایمان د زړهٔ د عقیدے، د نیت د خلوص او د اطمینان حاصلولو نوم دے، تاسو دا وایئ چه هاؤ! مونږ د غلامئ او د قتل د ویرے نه یا د صدقے په لالچ کښې په ظاهری توګه په اسلام کښې داخل شوی یو، او دا د منافقانو او ضعیف مسلمان صفت دے۔

Scanned by CamScanner

دے وجے نه الله تعالیٰ وړاندے وفرمایل چه لا اوسه پورے ایمان ستاسو زړونو ته کوز شوے نهٔ دے، کنے ددے اثر به ستاسو په بدنونو باندے راښکاره شوے وے، او د نیکو عملونو په ذریعه به ددے رشتین والے کیدلے۔

مفسرین لیکی چه ((لَمَّا)) د توقع او امید فائده ورکوی، دے وجے نه دا لفظ دلالت کوی چه دا خلق روسته په صحیح معنو کښ مومنان شوی دی۔

حافظ ابن القیمؒ لیکی : [وَهٰذِهٖ حَالُ اَكْثَرِ الْمُنْتَسِبِيْنَ اِلَى الْاِسْلَامِ] او دا حال د اکثرو هغه خلقو دے چه اسلام ته منسوب دی او برائے نام مسلمانان دی۔

که یو انسان ځان ته وګوری نو ځان به هم په دے اعرابو کښ داخل وګنړی ځکه چه دا خلق کفار نهٔ وو (وَلٰكِنَّهُمْ لَمْ يَذُوْقُوْا حَلَاوَةَ الْاِيْمَانِ) لیکن دے خلقو لا د ایمان خوند نهٔ وو څکلے۔ او مونږ ټول همداسے یو۔ څوك چه د ایمان خوند وڅکی نو هغه باندے قرآن او عبادتونه یو خاص قسم اثر کوی۔

**فائده** : ایمان دوه قسمه دے، یو الایمان المطلق۔ یعنی کامل ایمان۔ دا ایمان انسان د دخول النار نه منع کوی په پوره طریقے سره۔ بیخی به اُور ته نهٔ ځی۔ او بل دے مطلق ایمان چه دا ناقص ایمان ته وائی او دا ایمان خلود فی النار (اُور کښ همیشه پاتے کیدل) منع کوی۔ نو اکثرو خلقو سره مطلق ایمان شته لیکن ایمان مطلق ډیرو کمو سره دے۔

نو د کامل ایمان د حاصلولو دپاره روستو طریقه ښائی فرمائی :

وَاِنْ تُطِيْعُوا اللّٰهَ: اشاره ده چه کامل ایمان انسان ته پدے حاصلیږی چه بنده هر ځای کښ د الله تعالیٰ او د هغهٔ د رسول طاعت ته ورمنډه وهی، او د هغوی منع کړی کارونو نه بچ کیږی۔ او که څوك په بعضو خبرو کښ تابعداری کوی او بعض پریدی، نو معلومیږی چه دهٔ کښ پوره ایمان نشته۔

اِنَّمَا الْمُؤْمِنُوْنَ: اُوس فرمائی : رشتینی ایمان څهٔ ته وائی؟ او حقیقی مومن څوك دے؟ الله تعالیٰ ددے تشریح کوی فرمائی چه په حقیقی معنو کښ ایمان والا خو هغه خلق دی چه هغوئ په الله او د هغهٔ په رسول باندے د زړهٔ په صدق سره ایمان راوړی، داسے ایمان چه د هغے نه پس د هغوئ د زړونو په هیڅ یو ګوټ کښ هیڅ قِسم شك او شبه پاتے نشی، او د خپلو مالونو او ځانونو په ذریعه د الله په لاره کښ جهاد وکړی، او نور نیك عملونه هم کوی۔ همدا خلق د خپل ایمان په دعویٰ کښ رشتینی دی، نهٔ هغه

Scanned by CamScanner

باندہ چیان چہ د هغوئ په زړونو کښې ایمان داخل شوے نهٔ دے، او نهٔ د هغوئ عمل د هغوئ د رشتینی مومن کیدو تصدیق کړے۔

| قُلْ أَتُعَلِّمُوْنَ اللّٰهَ بِدِيْنِكُمْ وَاللّٰهُ يَعْلَمُ مَا فِي |
|---|
| اُووایه ! آیا تاسو وربنایئ الله تعالیٰ ته دین خپل او الله پوهیږی په هغه څه چه په |
| السَّمَاوَاتِ وَمَا فِي الْأَرْضِ وَاللّٰهُ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيْمٌ ﴿١٦﴾ |
| آسمانونو او په هغه څه چه په زمکه کښې دی او الله تعالیٰ په هر شی پوهه دے۔ |
| يَمُنُّوْنَ عَلَيْكَ أَنْ أَسْلَمُوْا قُلْ لَّا تَمُنُّوا |
| زباتنه کوی دوی په تا باندے چه دوی اسلام راوړیدے، تهٔ اُووایه ! زباتنه مهٔ کوئ |
| عَلَيَّ إِسْلَامَكُمْ بَلِ اللّٰهُ يَمُنُّ عَلَيْكُمْ أَنْ هَدَاكُمْ |
| په ما باندے د اسلام ستاسو بلکه الله تعالیٰ زباتنه کوی په تاسو چه هدایت ئے کړے |
| لِلْإِيْمَانِ إِنْ كُنْتُمْ صَادِقِيْنَ ﴿١٧﴾ إِنَّ اللّٰهَ يَعْلَمُ غَيْبَ |
| تاسو ته ایمان طرف ته که تاسو رشتینی یئ۔ یقیناً الله تعالیٰ پوهیږی په پټ خیزونو |
| السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ وَاللّٰهُ بَصِيْرٌ بِمَا تَعْمَلُوْنَ ﴿١٨﴾ |
| د آسمانونو او د زمکه باندے او الله لیدونکے دے د هغه عملونو چه تاسو ئے کوئ۔ |

**تفسیر** : قُلْ أَتُعَلِّمُوْنَ اللّٰهَ: په دے آیتِ کریمه کښې هم دغه باندہ چیانو ته، چه د هغوئ په زړونو کښې ایمان داخل شوے نهٔ وو او د ایمان دعویٰ به ئے کوله، الله تعالیٰ رټنه ورکوی چه تاسو الله تعالیٰ ته د خپل دین او ایمان خبر ورکوئ، دے دپاره چه تاسو مومنان اُومنلے شئ حالانکه هغه خو د آسمانونو او د زمکے د هر یو شئ خبر لری، دے وجے نه هغه بنهٔ پیژنی چه ستاسو ایمان د کومے درجے دے، او د الله علم هر یو شئ لره راګیرونکے دے، دے وجے نه ستاسو په زړونو کښې چه کومه خبره ده د هغے خِلاف هیڅ خبره مهٔ کوئ ګنے د هغهٔ د عذاب نه به بچ نشئ۔

بیا پدے آیت کښې هر هغه څوک داخلیږی چه حق قبول کړی او بیا په مشرانو باندے

Scanned by CamScanner

احسانات زباتوی چه مونږ ستا ملګری شوی یو، او ستا دعوت مو منلے دے، نهٔ بلکه بنده له پکار ده چه داسے ووائی چه الله تعالیٰ ما سره احسان وکړو چه حق ئے راوخودو او حق طرفته ئے راوستم، او د خپل مشر قدر او شکریه به کوی چه دوی سخته تیره کړه او مونږ ته ئے دین وخودو،

اول به د رسول الله ﷺ شکریه وکړی چه هغه په ډیرو مشکلاتو سره دین مونږ ته راورسولو. بیا به د علماؤ شکریه وکړے بلکه د هر چا په وجه چه تا ته خیر رسیدلے د هغه شکریه لازم ده، او په هغوی به زباتنه نهٔ کوی ځکه چه بیا خو ددے مطلب دا جوړیږی چه ایمان او دین او صحیح عقیده صرف د هغه ده او ستا په کښې هیڅ نشته.

نهٔ بلکه دا آیت دلیل دے چه د داعي الی الحق په خلقو باندے لوی احسان دے.

اَتُعَلِّمُوْنَ اللّٰهَ : کله کله سړے الله تعالیٰ ته د خپل اقرار په توګه داسے وئیلے شی لکه سجده کښې وائی : [اَللّٰهُمَّ لَكَ اَسْلَمْتُ وَبِكَ آمَنْتُ وَعَلَيْكَ تَوَكَّلْتُ]

پدے کښې احسان زباتول نهٔ وی بلکه خپل ایمان مضبوطول او خپل ایمان د روستو دعا دپاره وسیله کول مقصد وی.

يَمُنُّوْنَ عَلَيْكَ : یعنی دا خلق یوه بله غلطی کوی، او هغه دا چه په تا احسان کوی چه دوئ اسلام قبول کړے، او د دوئ په وجه د مسلمانانو شماره زیاته شوے ده، نو تهٔ دوئ ته اُووایه چه تاسو د خپل اسلام راوړو احسان په ما مهٔ کوئ، ځکه چه څوك د هدایت په لاره روانیږی هغه خپل ځان سره ښیګړه کوی، بلکه که چرے تاسو په خپل ایمان کښې رشتینی وئ نو الله به په تاسو احسان وکړی چه د ایمان توفیق به درکړی.

امام رازیؒ لیکی : پدے کښې د دوئ د فعل زیاته بدی ذکر ده، ځکه چه د ایمان دوه شرافته دی، یو د الله په نسبت چه هغه د شرك نه پاك ګڼړل او د هغهٔ توحید منلو سره د هغه تعظیم کول دی، او دویم په نسبت د مؤمن دے ځکه چه مؤمن په ایمان سره ځان د جهالت نه صفا کوی او په حق او صدق سره ئے ښائسته کوی نو دوی په خپل اسلام سره د الله جانب نهٔ طلب کوی او نهٔ د خپل نفسونو د شرافت جانب طلب کوی بلکه زباتنه کوی، خو که دوی پوهه وے چه پدے کښې خو د دوی شرافت دے نو دوی به زباتنه نهٔ کولے بلکه شکر به ئے کولے. (مفاتیح الغیب)

اَنْ هَدٰاكُمْ لِلْاِيْمَانِ : **سوال** : په دوی کښې خو په حقیقت کښې ایمان موجود نهٔ وو نو

څنګه ئې وفرمایل : چه تاسو ته ئې د ایمان هدایت کړیدے؟

(۱) جواب : دلته ئې د دوی دپاره د ایمان حصول نۀ دے ذکر کړے بلکه ایمان طرفته هدایت کول مراد دی په رالیږلو د رسول الله ﷺ سره لکه چه په سورة آلعمران (۱٦٤) کښې ذکر شویدی۔

(۲) جواب : د (للایمان) نه مراد دا دے چه تاسو د کوم ایمان دعوه کوئ (اګرکه په حقیقت کښې نشته) نو ددے ایمان خودنه خو الله تعالیٰ کړیده نو د هغه احسان منل پکار دی۔ (۳) یا ددے نه روستو الله تعالیٰ شرط بیان کړے (ان کنتم صادقین) یعنی الله تاسو ته د ایمان هدایت کړیدے که تاسو رشتینی شوئ او صحیح ایمان ته راننوتئ۔

إِنَّ اللَّهَ يَعْلَمُ غَيْبَ السَّمَاوَاتِ : یعنی الله تعالیٰ د آسمانونو او د زمکے د هر پټ څیز نه خبر دے۔ هغۀ ته ښه پته ده چه په تاسو کښې څوك رشتینے ایمان والا دے، او څوك دروغژن ایمان والا۔

بَصِيرٌ بِمَا تَعْمَلُونَ: یعنی الله باندے ستاسو پټے خبرے نۀ پټیږی نو د هغه نه یره په پټ والی کښې مۀ پریدئ او د هغه نه په ښکاره والی کښې مۀ په امن کښې کیږئ۔

## امتیازات د سورة الحجرات

۱- ښکلے آداب شرعیه پکښې ذکر دی چه د فرائضو په درجه کښې دی۔

۲- د ایمان تقسیم پکښې دے۔

۳- د ایمان او د اسلام فرق پکښې ثابت شو۔

٤- دا خبره ثابته شوه چه انسان ته کرامت او عزت په تقویٰ ملاویږی۔

٥- د انسانانو تقسیم شعوب او قبائل ته د تعارف دپاره دے، نۀ د فخرونو دپاره۔

٦- د غیبت، بهتان، تجسس او بد ګمانئ نه ښکاره منع وشوه چه معاشره پرے خرابیږی۔

۷- د ایمان تعریف پکښې ذکر شو په (انما المؤمنون) سره۔

ختم شو تفسیر د سورة الحجرات په توفیق د اله العالمین سره۔ ۱٤۳۷ هـ /جمادی الثانیه ۲٦/ موافق : ۲/٤/۲۰۱٦) ۔ السبت۔

Scanned by CamScanner

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِیۡمِ ط

| آیاتها (٤٥) | (٥٠) سورة قٓ مكية (٣٤) | ركوعاتها (٣) |
|---|---|---|

سورتِ قٓ مکی دے او پدے کښې پنځه څلویښت آیتونه او درے رکوع دی۔

## تفسیر سورة قٓ

نوم : د اولنی آیت په شروع کښې موجود حرفِ مقطع (قٓ) ددے نوم کیښودے شوے۔ دیته سورة (الباسقات) هم وئیلے کیږی۔

د نازلیدو زمانه : د ټولو په نیز ددے د نازلیدو زمانه مکی دَور دے۔

ابن عباس رضی الله عنه او قتادة نه د نقل شوی یو روایت مطابق صرف یو آیت ﴿ وَلَقَدْ خَلَقْنَا السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضَ وَمَا بَيْنَهُمَا فِي سِتَّةِ أَيَّامٍ وَمَا مَسَّنَا مِنْ لُغُوبٍ ﴾ مدنی دے۔

حافظ ابن کثیرؒ او امام شوکانیؒ په نیز صحیح دا ده چه د مفصّل سورتونو شروع ددے سورت نه کیږی۔ د مالکیو په نیز ددے شروع د سورة الحجرات نه کیږی۔

د سورتِ (قٓ) نه واخله تر سورتِ (الناس) پورے د قرآن کریم سورتونه په درے برخو کښې ویشل شوی دی۔ سورتِ (قٓ) نه (النازعات) پورے سورتونو ته (طوالِ مفصّل)، د سورتِ (عبس) نه واخله تر (اللیل) پورے (وسطِ مفصل) او د (الضحیٰ) نه (الناس) پورے (قصار مفصل) وئیلے کیږی۔

د صبا په مانځه کښې د طوالِ مفصل نه، د ماسپخین او ماسخوتن په مونځونو کښې د وسطِ مفصل نه، او د ماښام په مانځه کښې د قصار مفصل نه لوستل مستحب دی۔

Scanned by CamScanner

## فضیلت :

امام احمدؒ، مسلمؒ او اصحاب سنن روایت کړی دی چه عمر بن خطاب ﷛ د ابو واقد لیثی ﷛ نه پوښتنه وکړه چه رسول الله ﷺ به د اخترونو په مانځه کښې څۀ لوستل؟ نو هغۀ ووئیل : قٓ او اِقۡتَرَبَتۡ۔ (مسلم : ۴۳۳)

امام مسلمؒ وغیره ؒد قُطبه بن مالك ﷛ نه روایت کړیدے چه «نبی ﷺ به د سهار مانځه په اول رکعت کښې ق والقرآن المجید لوستلو»۔ (مسلم فی الصلاة حدیث ۱۶۸،۱۶۹)

او مسلمؒ، ابوداودؒ او نسائیؒ وغیره د اُم هشام بنت حارثه بن النعمان نه روایت کړے چه [أَخَذْتُ قَ وَالْقُرْآنِ الْمَجِيْدِ مِنْ فِيْ رَسُوْلِ اللّٰهِ ﷺ يَوْمَ الْجُمُعَةِ وَهُوَ يَقْرَأُ بِهَا عَلَى الْمِنْبَرِ فِيْ كُلِّ جُمُعَةٍ] ما سورۀ قٓ د رسول الله ﷺ د خولے نه آوریدو سره یاد کړے وو، نبی ﷺ به هره جُمعه دا لوستلو او خطبه به ئے ورکوله۔ (مسلم : ۲۰۴۹)

یو روایت کښې دی : نبی ﷺ بـه د هرے جُمعے په ورځ کله چه خلقوته خطبه ورکوله نو دا به ئے په منبر باندے لوستلو۔ (یعنی په کومه جمعه چه به ام هشام حاضره وه ورنه رسول الله ﷺ پدے داسے همیشوالے نۀ دے کړے لکه چه د نورو احادیثو نه معلومیږی)

مقصد دا چه رسول الله ﷺ بـه سورۀ قٓ په اخترونو او جُمعے غونډه مجمعو کښې لوستلو، ځکه په دے کښې د انسان د پیدائش، مرګ نه پس د دوباره ژوندی کیدو قیامت، حساب کتاب، جنت او جهنم، ثواب او عقاب او ترغیب او ترهیب ذکر شوے چه ددے په آوریدو سره په انسان کښې د آخرت فکر پیدا کیږی۔

## مناسبتونه

۱ – مخکښې آداب ذکر شو نو اُوس د قیامت هیبت بیانوی چه دا آداب په قیامت کښې پکار راځی۔

۲ – مخکښې سورت کښې ئے وفرمایل چه کرامت پۀ تقویٰ سره راځی نو دلته د متقیانو شان بیانوی۔

## موضوع د سورت

(۱) – مشهوره موضوع : كَذٰلِكَ الْخُرُوْجُ۔ ده یعنی د قبر نه راوتل حق دی۔

Scanned by CamScanner

دا په (۱۱) او (۴۲) آیت کښې ذکر ده. ددې دپاره په اول کښې دلیل راوړی چه قرآن ئې دلیل دې، د الله علم پرې دلیل دې، آسمان او زمکه او بارانونه او بوټی پیدا کیدل او د وریځې نه باران راوریدل ئې دلائل دي.

(۲) د حافظ ابن القیمؒ د الفاظو نه معلومیږی چه

(سُوْرَةُ قٓ مُتَضَمِّنَةٌ لِعَقَائِدِ الْإِسْلَامِ) سورت ق مختصر سورت دې لیکن د اسلام ټول عقائد پکښې ذکر دي، لکه قرآن د الله کلام دې، اثبات د یوم القیامه، د رسالت عقیده، عقیده په ملائکو، عقیده په کرام کاتبین او د هغوی په عملنامو لیکلو. جنت او جهنم باندې عقیده. د مؤمنانو ایمان او د کافرانو کفر، او نفخ فی الصور.

لیکن د سورت سیاق او ترتیب دا دې چه اکثر بحث ئې په اثبات د بعث بعد الموت او قیامت باندې کړیدې، او د هغې دپاره ئې متعلقات ذکر کړیدی چه قیامت کښې کوم شے فائده مند دې، ځکه چه د قرآن بیان نیمګړې نهٔ وی، صرف د قیامت ګرانی نهٔ بیانوی، ددې وجه نه دوه قیامتونه ئې ذکر کړیدی، قیامتِ صغریٰ (مرګ) او قیامت کبریٰ (د دنیا ورانیدل).

او ددې دپاره فائده من څیزونه ایمان دې، احتیاط په خپلو خبرو کښې. او دارنګه روستو به وائی اوابیت، انابت، تقویٰ، مونځونه او تسبیحات وغیره.

| قٓ وَالْقُرْآنِ الْمَجِيْدِ ﴿۱﴾ |
| --- |
| ق، او قسم دې په قرآن شرافت والا. |

**تفسیر**: ق: د حروف مقطعاتو نه دې چه په معنیٰ ئې الله تعالیٰ خبردار دې. تاویلی معانی پکښې دا دي: واحدیؒ د مفسرینو نه نقل کړیدی چه دا د زبرجدو یو غر دې چه د ټولو دنیا نه ئې احاطه کړیده. او بعض وائی چه د شنو زمردو نه دې، او ددې د وجه نه آسمان شین شویدې، او آسمان پدې باندې د خیمې په شان راتاو دې، او دا د هغه پردې شا ته دې چه د هغې نه اخوا نمر غائبیږی. دا هسې ګمانی بې ثبوته خبره ده.

او کوم علماء چه وائی چه دا کوهِ قاف (غر) ته اشاره ده نو ابن کثیرؒ وئیلی دی چه دا د زنادقو خبرې دی، او پدې کښې چه کوم روایت د ابوحاتم رازیؒ دې نو هغه اکثر منقطع دې.

Scanned by CamScanner

(۲) فراءَ او زجاجؒ دِ بعض علماؤ نه نقل کړيدي چه د ق معنیٰ ده [قُضِیَ الْاَمْرُ وَقُضِیَ مَا هُوَ كَائِنٌ] فیصله وشوه د کار او فیصله به وشي د هغه شي چه موجود دے۔ یعنی ختمیږي به۔ (۳) ابوبکر الوراقؒ وائي : ددے معنیٰ ده : قِفْ عِنْدَ اَمْرِنَا وَنَهْيِنَا وَلَا تَعُدْهُمَا۔ زمونږ د امر او نهي سره ودريږه او ددے نه تجاوز مۀ کوه۔

(٤) انطاکيؒ وائي : [هُوَ قُرْبُ اللّٰهِ مِنْ عِبَادِهٖ] دا د الله تعالیٰ خپلو بندګانو ته قريب کيدو ته اشاره ده۔ لکه آيت کښې دي :﴿ وَنَحْنُ اَقْرَبُ اِلَيْهِ مِنْ حَبْلِ الْوَرِيْدِ﴾ (ق : ١٦) دا ټولے معنے په طريقه د ګمان سره وئيلے شي، او حقيقي معنیٰ ئے الله تعالیٰ ته معلومه ده۔

(بغوی، قرطبی، قاسمی وابن کثير)

الْمَجِيْدِ: د مجد نه دے شرافت ته وئيلے شي۔ مجد عظمت ته هم وائي۔ یعنی د لوی شان والا کتاب دے۔ مجد ډيرو فائدو ته هم وائي۔

په دے آيتِ کريمه کښې الله تعالیٰ په خپل کتاب (قرآن) باندے قَسَم خوړلے، کوم چه ډير زيات اوچتے مرتبے والا کتاب دے۔ او ددے قَسَم جواب پټ دے په مختلفو تعبيرونو سره۔

ځوك وائي جواب ئے (اِنَّكَ لَمِنَ الْمُرْسَلِيْنَ) دے، یعنی ته د پيغمبرانو نه ئے۔

(۲) يا جواب دا دے : [اِنَّ مُحَمَّدًا لَرَسُوْلٌ اَمِيْنٌ ] منلے دے، یعنی په اوچت شان والا قرآن باندے قَسَم دے چه محمد (ﷺ) دَ الله امانتدار رسول دے۔

(۳) بعضو ددے تقدير [اَنْزَلْنَاهُ اِلَيْكَ لِتُنْذِرَ بِهِ النَّاسَ] منلے دے، یعنی په اوچت مقام والا قرآن باندے قَسَم دے ! مونږ دا قرآن په تا باندے ځکه نازل کړے چه ته ددے په لوستلو سره خلق د عذاب نه اوېروے۔

(٤) بعض وائي : (بَلْ عَجِبُوْا) ئے جواب دے۔

(٥) غوره دا ده چه ددے جواب (لَتُبْعَثُنَّ) تاسو به خامخا راپورته کولے شئ۔ (يا كَذٰلِكَ الْخُرُوْجِ) بيا د قرآن او د قيامت خپل مينځ کښې مناسبت دے چه قرآن د قيامت په راتللو دلالت کوي۔ او د قرآن په کتو سره آخرت رايادېږي، او د آخرت نه يريدو سره د قرآن نه فائده حاصليږي۔ پدے وجه په آخر د سورت کښې دواړه جمع شويدي ﴿ فَذَكِّرْ بِالْقُرْاٰنِ مَنْ يَّخَافُ وَعِيْدِ﴾ او جواب قسم ددے دپاره حذف کيږي چه بندګان خپله سوچ وکړي، او متوجه شي او ذهن مختلفو جوابونو ته لاړ شي۔

Scanned by CamScanner

| بَلْ عَجِبُوْا أَنْ جَاءَهُمْ مُنْذِرٌ مِّنْهُمْ فَقَالَ |
|---|
| بلکه تعجب کوی دوی ددے نه چه راغے دوی ته یره ورکونکے د دوی نه نو ووئیل |
| الْكَافِرُوْنَ هٰذَا شَيْءٌ عَجِيْبٌ ﴿٢﴾ أَئِذَا مِتْنَا وَكُنَّا تُرَابًا ذٰلِكَ رَجْعٌ |
| کافرانو دا یو شے دے ناشنا۔ آیا کله چه مړه شو مونږ او شو خاورے دا واپس کول دی |
| بَعِيْدٌ ﴿٣﴾ قَدْ عَلِمْنَا مَا تَنْقُصُ الْأَرْضُ مِنْهُمْ |
| لرے (د عقل نه)۔ یقیناً معلوم دی مونږ ته هغه چه کموی ئے زمکه د دوی نه |
| وَعِنْدَنَا كِتَابٌ حَفِيْظٌ ﴿٤﴾ بَلْ كَذَّبُوْا بِالْحَقِّ |
| او زمونږ سره کتاب ساتونکے (د عملونو د دوی) دے۔ بلکه دوی دروغژن کړو حق لره |
| لَمَّا جَاءَهُمْ فَهُمْ فِيْ أَمْرٍ مَّرِيْجٍ ﴿٥﴾ |
| هرکله چه راغے دوی ته نو دوی په خبره ګډه وډه کښې دی۔ |

**تفسیر**: اُوس رد ذکر کوی په انکار د رسول او انکار د بعث بعد الموت باندے۔ یعنی د مکے مشرکانو د محمد ﷺ په رسول کیدو کښې شك وکړو، بلکه دے نه هم وړاندے لاړل او د هغهٔ نبی کیدل ئے یو عجیب څیز وګڼړلو او وے وئیل چه دا څنګه کیدے شی چه زمونږ ترمینځه یو شخص رسول جوړ کړے شی او مونږ ته د الله تعالیٰ د طرف نه د یرولو دپاره را اولیږلے شی۔

بَلْ: دا اِضراب دے د جواب قسم نه یعنی د بعث بعد الموت نه دوی تعجب کوی۔

﴿فَقَالَ الْكَافِرُوْنَ﴾ (کافرانو اووئیل دا یو ناشنا شے دے) دا تفصیل د تعجب دے، یعنی ددے نه زیاته حیرانتیا والا خبره نشی کیدے چه محمد نبی جوړ کړے شی کوم چه زمونږ پشان انسان دے۔

او په لفظ د کافرون راوړو کښې اشاره ده چه د دوئ حال ډیر قبیح دے، دوی پدے انکار او تعجب سره کافران شو۔

هٰذَا: (١) اشاره ده انذار ته او د انسان پیغمبر کولو ته۔ (٢) قتادة وائی چه (هذا) سره

Scanned by CamScanner

اشاره (د یو معبود د عبادت دعوت) طرفته ده، یعنی دا عجیبه خبره ده چه مونږ ته د تمامو معبودانو پریښودلو او د یو معبود د عبادت دعوت راکولے شی. ظاهر دا ده چه دا بعث بعد الموت ته اشاره ده لکه چه روستو ﴿ أَإِذَا مِتْنَا وَكُنَّا تُرَابًا ﴾ کښې ذکر کیږی، یعنی مرګ نه پس دوباره ژوندی کول او دوباره پورته کول عجیبه شان خبره ده۔

أَإِذَا مِتْنَا: اُوس په انکار د آخرت او په انکار د دوباره ژوند باندے ردنه ورکوی ځکه نبی ﷺ به د قیامت د ورځے د عذاب نه دوئ یرول، کوم چه د مرګ نه پس د دوباره ژوندی کیدو نه روستو راتلونکے دے۔ نو دوی دا حیرانتیا ښکاره کوی چه آیا کله چه مونږ د مرګ نه پس خاورے شو، ددے جواب پټ دے (أَنُبْعَثُ ؟) آیا نو مونږ به دوباره ژوندی کولے شو؟، ځنګه چه محمد (ﷺ) مونږ ته د قرآن په لوستلو سره ددے یقین راکوی۔ زمونږ دوباره ژوندی کیدل وَهم او خیال دے، او د امکان او عقل نه ډیره لرے خبره ده۔ ځکه چه ذرات راجمع کول ګران دی او په راجمع کولو کښې ئے فائده نشته۔

رَجْعٌ: دا متعدی دے۔ واپس کولو ته وئیلے شی، او رجوع لازم دے واپس کیدو ته وائی۔

قَدْ عَلِمْنَا: اُوس په اثبات د آخرت باندے دلائل راوړی، او اول دلیل د الله علم ذکر کوی۔ یعنی مرګ نه پس کله چه انسان ښخ کړے شی، نو زمکه ددهٔ بدن په مزه مزه خوری، الله تعالیٰ ته ددے ښهٔ علم دے، هغه د انسانانو په یوه یوه ذره پوهه دے، او د هغے په راجمع کولو قادر دے، نو داسے قادرِ مطلق او علام الغیوب لپاره دا خبره ځنګه د امکان نه لرے ګڼړلے کیږی چه هغه به دوباره مړی ژوندی کوی !۔

مِنْهُمْ: دا ځکه وائی چه د پیغمبرانو او بعض صالحینو بدنونه نهٔ خاوری کیږی، او عام انسانان غالباً خاورے کیږی، او د هغے عجب الذنب (لکه لکمے) پاتے کیږی، په هر قبر کښې پروت وی۔ او په یو روایت کښې دی چه هغه د ذرے په اندازه پاتے وی۔ نو الله به ئے د دغه ذراتو نه رایو ځای کړی، او خپلے مخے ته به ئے ودروی۔

د (تَنْقُصُ الْأَرْضُ) بله معنیٰ دا ده چه بعض کسان مړهٔ شی او بعض ژوندی پاتے وی څه وخته پورے۔

كِتَابٌ: (۱) ددے کتاب نه مراد یا لوح محفوظ دے، یعنی په لوحِ محفوظ کښې د تمامو انسانانو شماره، د دوئ نومونه، او هر یو شے محفوظ دے، او کله چه قیامت

Scanned by CamScanner

راشی نو لکه څنګه چه دا تهول په اول ځل پیدا شوی وو، دوباره به بغیر د زیادت او نقصان نه پیدا کیږی، په هیڅ یو شئ کښې به د ذرے هومره هیڅ فرق نۀ راځی۔ نو د حفیظ نه مراد محفوظ دے۔ یعنی د شیطانانو او د تغییر او تبدیل نه ساتلے شویدے۔

(۲) یا د کتاب نه مراد هغه کتاب دے چه ملائکو پکښې د انسانانو عملونه لیکلی دی۔ نو د حفیظ معنیٰ ده :اَیْ حَافِظٌ لِاَعْمَالِهِمْ وَاَقْوَالِهِمْ وَاَحْوَالِهِمْ۔ یعنی د دوی د اعمالو او اقوالو او احوالو ساتونکے دے۔

بَلْ كَذَّبُوْا : اُوس وائی چه د مکے مشرکانو یواځے دا جرم نۀ وو کړے چه دوئ د مرګ نه پس دوباره ژوند نه انکار کولو، بلکه ددے نه هم لوئے جُرم د دوئ دا دے چه دوئ د قرآن کریم نه انکار وکړو، او د نبی کریم ﷺ نه ئے انکار وکړو چه په دۀ باندے قرآن نازل شوے دے، او په دے باره کښې دوئ انتهائی پریشانئ کښې آخته دی، په یو حال باندے دوئ ولاړ نۀ دی، رسول اکرم ﷺ ته کله جادوګر، کله شاعر، اوکله دروغژن او دروغ تړونکے او کله لیونے وائی، او قرآن ته د تیرو شوو قومونو خیالی قیصے وائی۔ دوئ ته خپله معلومه نۀ ده چه دوئ څۀ وئیل غواړی۔

نو پدے آیت کښې رټنه ده په انکار د قرآن او رسول نه۔

بِالْحَقِّ : نه مراد قرآن او رسول دے او د دواړو حاصل مطلب یو دے۔

لَمَّا جَاءَهُمْ : کښې اشاره ده چه دوی ددے حق نه ښه خبر شویدی، او بیا ئے هم انکار او تکذیب کړیدے۔

مَّرِيْجٍ: د مرج نه دے ګهوډوالی ته وائی۔ یعنی دوی په یوه خبره نۀ ټینګیږی۔

| |
|---|
| أَفَلَمْ يَنظُرُوا إِلَى السَّمَاءِ فَوْقَهُمْ كَيْفَ بَنَيْنَاهَا وَزَيَّنَّاهَا |
| آیا نو نۀ ګوری دوی آسمان ته پورته د دوی نه چه څنګه جوړ کړیدے ما او ښائسته |
| وَمَا لَهَا مِن فُرُوجٍ ﴿٦﴾ وَالْأَرْضَ مَدَدْنَاهَا وَأَلْقَيْنَا |
| کړے مو دے او نشته دے لره چاودونه۔ او زمکه خوره کړیده مونږ او اچولی دی مونږ |
| فِيهَا رَوَاسِيَ وَأَنبَتْنَا فِيهَا مِن كُلِّ زَوْجٍ بَهِيجٍ ﴿٧﴾ |
| پدے کښې پاخۀ غرونه او راز رغون کړیدی مونږ پدے کښې د هر قسم بوټی تازه نه۔ |

Scanned by CamScanner

| تَبۡصِرَةً وَّذِكۡرٰى لِكُلِّ عَبۡدٍ |
| --- |
| دپاره د عقلمندئ (دپاره د خودنے د قدرت خپل) او نصیحت دپاره د هر بنده |
| مُّنِيۡبٍ ﴿۸﴾ وَنَزَّلۡنَا مِنَ السَّمَآءِ مَآءً مُّبٰرَكًا فَاَنۡۢبَتۡنَا |
| واپس کیدونکی (الله ته). او نازل کړیدی مونږ د آسمانه اُوبهٔ برکت والا، نو راوزرغون |
| بِهٖ جَنّٰتٍ وَّحَبَّ الۡحَصِيۡدِ ﴿۹﴾ وَالنَّخۡلَ بٰسِقٰتٍ |
| کړو پدے سره باغونه او دانه (د هغه فصل چه) لو کولے شي. او کجورے اُوږدے اُوږدے |
| لَّهَا طَلۡعٌ نَّضِيۡدٌ ﴿۱۰﴾ رِّزۡقًا لِّلۡعِبَادِ |
| هغے لره غونچکونه وي د یوبل دپاسه. دپاره د خوراك د بندګانو |
| وَّاَحۡيَيۡنَا بِهٖ بَلۡدَةً مَّيۡتًا ؕ كَذٰلِكَ الۡخُرُوۡجُ ﴿۱۱﴾ |
| او راژوندے کوو پدے سره کلے اُوچ دغه رنګ راوتل دی (د قبرونو نه). |

**تفسیر**: اُوس عقلي دلیلونه ذکر کوي په اثبات د دوباره ژوند، فرمائي: آیا دا مشرکان او د قیامت منکرین په خپلو سترګو سره د خپلو سرونو دپاسه اُوچت آسمان ته نهٔ ګوري چه څنګه الله تعالیٰ په غیر د ستونو د ذریعے نه دا قائم اوثابت اُودرولے دے، او دائے په نمر او سپوږمۍ او په بے شماره ستورو سره ډولی کړے دے، او په دے کښې هیڅ سُورے او خرابتیا نشته، آیا هغه الله چه هغه د داسے آسمان په پیدائش باندے قادر دے، هغه د مړو په دوباره ژوندی کولو باندے قادر نهٔ دے؟ هغه یقیناً په دے خبره قادر دے چه کوم شے هغهٔ اول ځل پیدا کړے دے، او بیائے وژلے دے، هغه به دوباره ژوندے کوي.

مِنۡ فُرُوۡجٍ: فروج جمع د فرج ده، چاودونه.

وَالۡاَرۡضَ مَدَدۡنٰهَا: یعني مونږ زمکه خوره کړے، او ددے دپاسه مو د غرونو میخونه وهلي، دے دپاره چه زمکه د خپل دننه جوش د وجے نه ونهٔ خوزیږي. او په دے کښې مو قِسم قِسم ښائسته بوټي زرغون کړي، چه دا د خپل حُسن او جمال د وجے نه ګویا مُسکا کوي (خاندي). د قدرت دا ننداره هر هغه بنده ته د فکر او نظر دعوت ورکوي، کوم چه الله طرفته رجوع کوي، او د هغهٔ د رضا په تالاش کښې اوسیږي. کوم الله چه په دے خبرو

Scanned by CamScanner

قادر دے هغه یقینًا د انسانانو په دوباره پیدا کولو هم قادر دے۔

تَبْصِرَةً وَّذِكْرٰى: ۱ - دا دواړه مفعول لهٔ دی د مخکښې دپاره، یعنی مونږ دا کارونه وکړل دپاره د عقلمندی ورکولو او د خلقو د بصیرت پیدا کولو او د هغوی د پو هې حاصلولو او دپاره د یاداشت۔

۲ - یا دواړه مفعول به دی اَیْ جَعَلْنَاهَا تَبْصِرَةً۔ مونږ گرځولی دا څیزونه تبصره (عقلمندی) او یاداشت۔ او تبصرة په معنیٰ د اسم فاعل سره دے اَیْ مُبَصِّرَةً یعنی مونږ دا څیزونه گرځولی دی چه بصیرت ورکوی خلقو ته۔

یا پو هه او عقلمندی ورکوی خلقو ته۔

(۳) یا حال دی اَیْ مُبَصِّرِیْنَ وَمُذَكِّرِیْنَ ۔ مونږ گرځولی دی دا څیزونه په داسے حال کښې چه مونږ عقلمندی ورکونکی یو او یاداشت ورکونکی یو۔

❁ یا حال دے د مفعول نه اَیْ حَالَ كَوْنِ تِلْكَ ذَاتَ تَبْصِرَةٍ وَّتَذْكِیْرٍ۔ یعنی په داسے حال کښې چه دغه څیزونه تبصرے او تذکیر والا دی۔

بیا دا دواړه فائدے د آسمان او زمکے دواړو سره لگیږی، یعنی هر یو کښې تبصره او ذکرئ شته۔ یا تبصره د آسمانونو سره لگیږی او ذکرئ د زمکے سره۔

## د تبصره او ذکری فرق

او د تبصره او ذکرئ فرق دا دے چه په زمکه او آسمانونو کښې داسے دائمی نخې شته چه د لیدو سره تعلق لری، او دارنگه بعض داسے نخې دی چه نوے نوے راپیدا کیږی، او د هیریدو نه پس بیرته رایادیږی۔

دویم فرق دا دے چه تبصره هغه عبرت دے چه په نظر کولو سره حاصلیږی، او ذکرئ هغه نصیحت دے چه د عقل او د زړه په ذریعه حاصلیږی۔

یا تبصرةً دلیلونو د توحید ته او ذکرئ دلیلونو د بعث بعد الموت ته اشاره ده۔

عبد کښې اشاره ده چه دا فائدے په صفت د عبدیت سره حاصلیږی نهٔ په تکبر سره۔ او په منیب کښې اشاره ده چه دا فائدے په عناد او ضد سره نهٔ حاصلیږی بلکه هغه څوك چه د شهواتو نفسانیو نه حق طرفته راوگرځی نو فائده اخستے شی۔

وَنَزَّلْنَا: دا بل دلیل دے یعنی الله تعالیٰ د آسمانونو نه ډیرو فائدو والا اُوبهٔ را اورولی دی،

Scanned by CamScanner

چه ددے په ذریعه هغهٔ میوه دارے وُنے راټو کولی، او غنم، جوار او نورے دانے ئے را زرغون کړی، او د کهجورو دنګے وُنے ئے راویستلی، چه د هغے د میوو غونچکونه لاندے باندے وی۔ الله تعالیٰ دا ټول څیزونه د خپلو بندګانو د روزئ لپاره پیدا کړی۔

مُّبٰرَکًا: د باران سره نور برکات دا پیدا شی چه هوا مزیداره صفا شی، او مرضونه ختم شی، انسانان خړوبه شی، صحتونه مزیدار شی، قسماقسم بوټی راوخیژی، ګردونه او ګندګیانے ختمے شی۔

وَّحَبَّ الْحَصِیْدِ: حصید (لَو کړے شوی) دا صفت د الزرع دے، یعنی دانے د هغه فصل چه پریکولے شی۔ او ددے نه مراد غنم، جوار، اُوربشے وریژے وغیره دی چه بوټی د اُوچیدو نه پس لَو کړے شی او بیا په غوبل سره یا په نورو آلاتو سره د هغے نه دانے راویستلے شی۔

طَلْعٌ: د کجورے میوے چه اول په یوه بنده کسوره کښې ښکاره شی او بیا پرانستے شی نو هغے ته طلع وئیلے کیږی۔

نَّضِیْدٌ: اَیْ مُتَرَاکِم۔ یعنی د یو بل دپاسه غونچک۔

کَذٰلِکَ الْخُرُوْجُ: دا د مخکنو ټولو څیزونو سره تشبیه ده۔ اَیْ کَمَا اَخْرَجْنَا الْحَبَّ مِنَ الزَّرْعِ وَالْمَاءَ مِنَ السَّحَابِ وَالنَّبَاتَ مِنَ الْاَرْضِ] لکه چه مونږ د فصل نه دانے او د وریځے نه اُوبه او د زمکے نه ګیاه راویستله نو دغه شان به ستاسو د قبرونو نه راوتل وی، او د محشر میدان ته منډے وهل به وی۔

| کَذَّبَتْ قَبْلَهُمْ قَوْمُ نُوْحٍ وَّاَصْحٰبُ الرَّسِّ |
| --- |
| دروغژن ګنړلی وو (پیغمبران) مخکښې د دوی نه قوم د نوح او خاوندان د کوهی |
| وَثَمُوْدُ ﴿۱۲﴾ وَعَادٌ وَّفِرْعَوْنُ وَاِخْوَانُ لُوْطٍ ﴿۱۳﴾ وَّاَصْحٰبُ الْاَیْکَةِ |
| او ثمودیانو۔ او عادیانو او فرعون او وروڼو د لوط (علیه السلام)۔ او خاوندان د بنړ (باغ والا) |
| وَقَوْمُ تُبَّعٍ کُلٌّ کَذَّبَ الرُّسُلَ فَحَقَّ وَعِیْدِ ﴿۱۴﴾ |
| او قوم د تبع، دے ټولو دروغژن ګنړلی وو رسولان نو ثابت شو زما عذاب (په دوی |

Scanned by CamScanner

| أَفَعَيِينَا بِالْخَلْقِ الْأَوَّلِ بَلْ هُمْ |
|---|
| باندے)۔ آیا ستړي شوي يو مونږ په اول پيدائش بلکه دوی |
| فِي لَبْسٍ مِّنْ خَلْقٍ جَدِيْدٍ ﴿١٥﴾ |
| په شك كښې دي د نوي پيدائش نه۔ |

**تفسیر** : کذبت : اُوس د آخرت مکذبینو هلاکت بیانیږي (۱) او دا د اثبات د آخرت دپاره ښکلے دلیل دے چه آخرت راتلل څکه حق دی چه ددے مکذبین الله تعالیٰ تباه کړیدی۔ ﴿ اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيَةً لِّمَنْ خَافَ عَذَابَ الْاٰخِرَةِ ﴾ څکه چه د ناحقه او دروغجن شي په نۀ منلو سره انسان نۀ هلاکیږي۔

(۲) دارنګه په بله طریقه داسے هم وئیلے شي چه د مرګ نه پس ژوند حق دے، څکه چه تمامو انبیاء کرامو خپلو قومونو ته دا ښودلے چه مرګ نه پس ژوند او د قیامت ورځ حقه ده، په دے کښې هیڅ شك نشته، او کوم کس چه ددے نه منکر شي، الله تعالیٰ به ورته عذاب ورکوي۔

(۳) دارنګه ددے تفصیل نه مقصد د قریشو مشرکان ویرول او د همکي ورکول دي چه که دوئ خپل حالت بدل نۀ کړو، او د رسول الله ﷺ د دروغژن ګڼړلو نه منع نشول، نو په دوئ به هم د دغه قومونو پشان د الله تعالیٰ عذاب نازل شي۔

(٤) دارنګه نبی کریم ﷺ ته تسلي ورکول هم مقصد دے چه که ستا قوم تا دروغژن ګڼړي نو غم مۀ کوه، څکه د دوئ نه د مخکنو قومونو هم همدا طریقه را روانه ده چه دوئ خپل پیغمبران دروغژن وګڼړل، او په دوئ کښې ډیرو کمو خلقو د هغوئ دعوت قبول کړے۔

وَإِخْوَانُ لُوْطٍ : دا ئے د لوط ﷺ ورونه وګرځول څکه چه دوی ئے سخرانه وه، نو دا اُخوّت د رشتے دے، نۀ د قومیت۔ او پدے کښې د دوئ سختے بدئ ته اشاره ده چه دے خلقو د خپل زوم لحاظ هم ونکړو او د هغه تکذیب ئے وکړو۔

او دلته ئے د اقوامو ترتیب د هغوی د زمانے د ترتیب مطابق ذکر نکړو څکه چه پدے سورت کښې عقلي دلیلونه ذکر کیږي، او پدے ترتیب والا قومونو کښې ددے دلیلونو نه

Scanned by CamScanner

جهالت زیات وو۔ اول قوم نوح وو، او دویم اصحاب الرس نه یو داسے قوم مراد دے چا چه خپل نبی کو هی ته غورزولے وو، د بعضو په نیز د شعیب ؑ قوم مراد دے، او د بعضو نورو په نیز عیسیٰ ؑ باندے د ایمان نهٔ راوړونکو یوه ډله مراد ده۔
یا اصحاب اُخدوډ یعنی هغه خلق مراد دی چه هغوئ یو ډیر لوئے اُور بل کړو او په دے کښې ئے د دغه کلي مومنان ګذار کړل۔ یعنې نجران والا۔
وَأَصْحَابُ الْأَيْكَةِ : ددے نه مراد د شعیب ؑ قوم دے لکه د مدین والو په شان، یا دواړه یو قوم دے۔
وَقَوْمُ تُبَّعٍ: د تبع حِمْیَرِي قوم چه د هغه نوم ابوکرب اسعد یا سعد دے۔ قتادة وائی: الله تعالیٰ د تبع د قوم بدی بیان کړه او د هغه بدي ئے بیان نکړه۔
كُلٌّ كَذَّبَ الرُّسُلَ : دے تمامو قومونو خپل خپل رسولان او د هغوئ راوړے دین ئے دروغژن وګڼړلو، نو د الله تعالیٰ عذاب دوئ لپاره واجب شو۔
فَحَقَّ وَعِيدِ : اَیْ ثَبَتَ وَوَجَبَ عَذَابِیْ عَلَیْهِمْ ۔ یعنی ثابت او واجب شو عذاب زما په دوی باندے۔
أَفَعَيِينَا: دا بل دلیل دے د اثبات د آخرت دپاره۔ آخرت به هله نهٔ راتللے چه الله تعالیٰ اول پیدائش کړے وے او پدے ورته ډیر تکلیف رسیدلے وے او پرے ستړے شوے نو بیا ئے څه دپاره قیامت راوستو، نو الله تعالیٰ دا تپوس کوی چه آیا ګنې مونږ په اولنی پیدائش سره ستړی شوی یو چه دوباره انسانان نهٔ راژوندی کوو څکه چه مونږ ته به تکلیف راورسیږی؟ داسے هیڅ خبره نشته۔
أَفَعَيِينَا: همزه د استفهام انکاري دپاره ده، او د فاء معطوف علیه پټه ده۔ تقدیر د عبارت داسے دے : [أَكَذَّبُوا فَعَيِينَا بِالْخَلْقِ الْأَوَّلِ] یعنی آیا دوی پدے وجه تکذیب کوی چه مونږ به په اول پیدائش ستړی شوی یو، او دوباره به هغه نشو راوستے، هیڅکله داسے نهٔ ده۔ هر کله چه مونږ په اول ځل د مخلوق پیدا کولو نه عاجزه نهٔ وو، نو د دوئ د دوباره پیدا کولو نه به څنګه عاجزه پاتے شو۔
او د مکے مشرکان چه هر کله اقرار کوی چه صرف الله تعالیٰ اول ځل تمام مخلوقات پیدا کړی، نو بیا دوئ ددے نه ولے انکار کوی چه هغه د دوئ په دوباره پیدا کولو هم قادر دے۔ د دوئ د کور مغزئ د وجے نه دوئ نهٔ پو هیږی چه د مرګ نه پس چه کله د انسان

Scanned by CamScanner

اندامونه خوارهٔ شي او خاوره خاوره شي، نو الله تعالیٰ به دا اندامونه دوباره رایوځائے کوي، او د هغهٔ په قدرت سره به په دے کښې ژوند راځي۔ دوئ دا خبره هیروي چه الله تعالیٰ قادرِ مطلق دپاره دا کار ډیر زیات آسان دے۔

| وَلَقَدْ خَلَقْنَا الْإِنسَانَ وَنَعْلَمُ مَا تُوَسْوِسُ |
|---|
| او یقیناً پیدا کړیدے مونږ انسان او پو هیږو په هغه څه چه وسوسه اچوی دهٔ ته |
| بِهٖ نَفْسُهٗ وَنَحْنُ أَقْرَبُ إِلَيْهِ مِنْ حَبْلِ الْوَرِيدِ ﴿١٦﴾ إِذْ يَتَلَقَّى |
| په هغے سره نفس ددهٔ او مونږ ډیر نزدے یو دهٔ ته د رګ د مرئ نه۔ کله چه اخلي |
| الْمُتَلَقِّيَانِ عَنِ الْيَمِينِ وَعَنِ الشِّمَالِ قَعِيدٌ ﴿١٧﴾ مَا يَلْفِظُ |
| دوه اغستونکی (ملائك) د ښی طرف او ګس طرف نه ناستے دی۔ نهٔ غورزوی دے |
| مِنْ قَوْلٍ إِلَّا لَدَيْهِ رَقِيبٌ عَتِيدٌ ﴿١٨﴾ وَجَاءَتْ سَكْرَةُ الْمَوْتِ بِالْحَقِّ |
| هیڅ وینا مګر ددهٔ سره انتظار کونکے تیار وی۔ او راغله نشه د مرګ په رښتیا سره |
| ذَٰلِكَ مَا كُنتَ مِنْهُ تَحِيدُ ﴿١٩﴾ |
| دا هغه څه دی چه تهٔ به ددے نه تختیدلے۔ |

**تفسیر** : پدے رکوع کښې الله تعالیٰ اول قیامتِ صغریٰ او بیا قیامت کبریٰ ذکر کړیدے او اول د دویم د راتللو دپاره د علت په طریقه ذکر دے۔ یعنی مرګ راتلل خو منے نو دویم لوی قیامت هم ومنه۔ دویمه طریقه د استدلال دا ده چه په هر انسان باندے دوه ملائك مقرر دی ددهٔ هر عمل او هر قول نوټ کوی، نو چه د قیامت ورځ نهٔ راځی نو بیا الله تعالیٰ دا نظام ولے روان کړیدے، او ملائك ئے ولے مقرر کړیدی؟ معلومیږی چه دجزاء او سزا ورځ یقیني ده، پدے باندے به د بنده سره حساب کیږی۔

اول کښې ئے خپل څیني قدرتونه ذکر کړیدی، الله تعالیٰ فرمائي : مونږ انسان د خاورے نه پیدا کړے، او مونږ په خپل علم کښې ددهٔ تمام کارونه راګیر کړیدی تردے چه مونږ هغه خبرے هم پیژنو چه هغه ددهٔ په زړهٔ کښې تیریږی، او هغه خپل بنده ته د مرئ د رګ نه هم زیات نزدے دے، هغه ددهٔ د تمامو احوالو نه په غیر د واسطے د ملائکو نه انتهائی

Scanned by CamScanner

درجه خبر دے، دهٔ سره د ملائکو مقررول، او د دویٔ په ذریعه ددهٔ اعمال په ریکارډ کښې راتلل صرف د حجت د پوره کولو دپاره دی چه ددهٔ بهانه ختمه کړی.
حسنؒ، قتادهٔ او مجاهدؒ وائی: هر انسان سره الله تعالیٰ دوه ملائك لګوی چه هغه ددهٔ ښی او ګس طرفته وی، او ددهٔ نیکئ او بدئ لیکی.
د مجاهدؒ یو بل قول دادے چه الله تعالیٰ هر انسان سره دوه د شپے او دوه د ورځے ملائك لګولی دی چه هغوئ ددهٔ عملونه لیکی.
انسان چه څهٔ وخت د خپلے ژبے نه خبره را اوباسی، په دهٔ باندے مقرر ملائك فورًا هغه ددهٔ په عملنامه کښې لیکی، ښی اړخ والا ملائك ددهٔ نیك عملونه، او د ګس اړخ والا ملائك ددهٔ بد عملونه لیکی، او دا ملائك انتهائی بیدار او هر وخت تیار اُوسیږی، د خپلے ذمه دارئ نه هیڅ کله غافله کیږی نهٔ.
مَا تُوَسْوِسُ بِهٖ: انسان ته وسوسه یو شیطان اَچوی اِنسی او جنی او بل ددهٔ نفس.
وسوسه په اصل کښې پټ آواز ته وئیلے شی، او دلته ترے مراد هغه د شر خبرے او غلط خیالونه دی چه ددهٔ په زړه کښې راپیښیږی.
او په حدیث کښې دی: [اِنَّ اللّٰهَ تَجَاوَزَ لِیْ عَنْ اُمَّتِیْ مَا وَسْوَسَتْ بِهٖ صُدُوْرُهَا مَالَمْ تَعْمَلْ اَوْ تَکَلَّمْ] چه الله تعالیٰ دے امت ته د زړه غیر اختیاری وسوسے معاف کړیدی ترڅو چه هغه ئے په ژبه نهٔ وی وئیلے یا ئے پرے عمل نهٔ وی کړے.
(بخاری: ۲۵۲۸)
وَنَحْنُ اَقْرَبُ: ۱- ددے یو مطلب دے بَیَانُ اِطِّلَاعِ عِلْمِ اللّٰهِ عَلَیْهِ. پدے کښې بیان دے چه دا انسان د الله تعالیٰ په علم کښې راګیر دے، نو دا نزدے والے په اعتبار د علم سره دے. او الله تعالیٰ مونږ ته په اعتبار د علم سره څکه نزدے دے
[لِاَنَّ اَبْعَاضَنَا یَحْجُبُ بَعْضُهَا بَعْضًا] څکه چه بعض اندامونه زمونږ نه نور اندامونه پټوی لکه مونږ خپله شا او اُوګے او ترخونه نهٔ وینو.
۲- دویم مطلب دا دے چه الله تعالیٰ بندګانو ته نزدے دے او د هغے په کیفیت باندے مونږ نهٔ پو هیږو، او د هغے تشبیه د مخلوق سره نشته، او نهٔ ئے تاویل کوو او دا قرب د فوقیت د عرش سره منافات نهٔ لری څکه چه الله تعالیٰ په هر څهٔ قادر دے.
۳- دے کښې حافظ ابن کثیرؒ وئیلی دی چه د (نحن) نه مراد ملائك دی، او الله تعالیٰ

Scanned by CamScanner

خپـل ځـان تـه نسبت کوی ځکـه چـه د بادشاه د خادمانو د عمـل نسبت بادشاه تـه کیږی، او ددے تـائیـد پـه سورة الـواقـعـه کښ راغـلـے دے ﴿ وَنَحۡنُ اَقۡرَبُ اِلَيۡهِ مِنۡكُمۡ وَلٰكِنۡ لَّا تُبۡصِرُوۡنَ ﴾ ـ (۸۵) آیة، یـعـنـی (زمـونږ مـلائـك مـری تـه ستـاسـو نـه زیات نزدے وی لیکن تاسو ئے نهٔ وینئ) لیکن که دلتـه الله تعالیٰ مراد شی او هلتـه ملائك نو هیڅ بعیده خبره نهٔ ده۔

مِنۡ حَبۡلِ الۡوَرِيۡدِ: دا اضـافـت د مـوصـوف دے صفت تـه، یعنی هغه رګ چه ورید دے، یا اضـافـت بیـانیـه دے، او وریدان دوه رګونـه دی چه د څټ د دواړو طرفونو نه راتاو دی مخے طرفتـه او دا د سر نـه راکـوز شـویدی او د وتین رګ سره یو ځای شویدی، او وتین ذ زړه رګ دے چـه د هـغـے پـه قـطـع کیـدو سره انسان مړ کیږی، نو ورید دلتـه جنس دے دواړو رګونو تـه شامل دے، یا هر ورید تـرے مراد دے پدے وجه ئے مفرد ذکر کړیدے۔

قُشَیرِیْ وائی : پدے آیت کښ د بعض خلقو دپاره هیبت او یره او ګبرا هټ پروت دے، او د بعض خلقو دپاره راحت، اُنس او د زړه سکون دے۔ (ذکره الخطیبؒ)۔ (فتح البیان)

اِذۡ يَتَلَقَّى: اُوس الله تـعـالیٰ دا خبره ذکر کوی چه هغـه سره ددے نه چه په بنده بنهٔ پوهه دے خـو دوه مـلائـك ئـے پـرے مـقـرر کـړی چـه ددهٔ عملونه لیکی او دهٔ دپاره ئے ساتی، دے دپاره چه په دهٔ باندے حجت پوره شی او د بنده عذر ختم شی۔

د ښـی طـرف والا مـلائـك امیـر دے او ګـس طـرف والا مامور، پـه حدیث کښ دی: [اِنَّ صَاحِبَ الشِّمَالِ لَيَرْفَعُ الْقَلَمَ سِتَّ سَاعَاتٍ عَنِ الْعَبْدِ الْمُسْلِمِ الْمُخْطِئِ فَاِنْ نَدِمَ وَاسْتَغْفَرَ اللّٰهَ مِنْهَا اَلْقَاهَا وَاِلَّا كُتِبَتْ وَاحِدَةً] کـه یـو بنده ګناه وکړی نو ښی طرف والا وائی چه دا شپږ ګینتـو پـورے مـهٔ لیـکـه کیدے شی چه خپیمانه شی نو که دے خپیمانه شی او د الله نه بـخـنـه طلب کړی نو الله هغه وغورزوی او که توبه ونهٔ باسی نو شپږ ګینټے روستو هغه یـوه ګـنـاه ولیـکـی۔ (الـطبـرانـی عـن ابی امامة وصحیح الجامع الصغیر رقم (۲۰۹۷) والصحیحة : ۳/ ۲۱۰ /۱۲۰۹ باسناد حسن) دا هم د الله تعالیٰ ډیره مهربانی ده۔

عَتِيۡدٌ: تیـارے او حـاضـرے وی۔ مـلائکو تـه الله تـعـالیٰ دا قـدرت ورکړے دے چه د ټاتپ او مـوبـائـل کیـمـرے د ریکاډ په شان هر قسمه اشارے او خبرے او هر حرکت او سکون نوټ کړی۔ او اُوس دا خبره ببخی په لیدو کښ راغلے ده۔

مِنۡ قَوۡلٍ: دلتـه ئے قول ذکر کړو نهٔ عمل، آیا عمل به نهٔ لیکی؟ جواب دا دے چه هرکله خبرے لیکی نو عمل خو به خامخا لیکی۔ او د عمل تذکره په سورة الانفطار آیت (۱۰)

Scanned by CamScanner

کښې راغلي ده ﴿وَاِنَّ عَلَيْكُمْ لَحَافِظِيْنَ كِرَامًا كَاتِبِيْنَ، يَعْلَمُوْنَ مَا تَفْعَلُوْنَ﴾ هلته فعل ذکر دے۔
ابن عباس رضي الله عنه فرمائي : دا ملائك هر خير او شر ليکي۔
ابن عباس رضي الله عنه فرمائي : هره خبره چه بنده ئې د خولے نه وباسي که خير وي او که شر هغه ليکې ترده چه دا هم ليکي ما وخوړل، ومے څکل، لاړم، راغلم، ومے ليدل ترده چه کله د خميس (زيارت) ورځ شي، نو ددهٔ قول او عمل په الله تعالیٰ باندے پيش شي نو الله ترے خير او شر پريدي او باقي ګوزار کړي۔ لکه الله تعالیٰ فرمائي : ﴿يَمْحُو اللهُ مَا يَشَاءُ وَيُثْبِتُ﴾ (الرعد : ٣٩)۔ (ابن کثير والدر المنثور وابن جرير وابن ابي حاتم)
وَجَاءَتْ سَكْرَةُ الْمَوْتِ: يعني هر کله چه عملونه وليکلے شي او آخر د دنيا نه د رخصتيدو وخت راځي، او د مرګ سختئ په ده باندے راغوړيږي، او د مرګ نه پس د دوباره ژوند او د قيامت د ورځے د جزاء اوسزا نقشه ددهٔ د سترګو مخامخ تاويږي، او د کومو حقائقو نه چه ددهٔ انکار کولو، د هغے نه پرده پورته کيږي، او دے وخت کښې دهٔ ته وئيلے کيږي چه دا هغه مرګ دے چه ددے نه تهٔ تښتيدلے۔ نو مطلب دا دے چه اے بنده ! په تا باندے داسے حالات راتلونکي دي، ددے نه انکار مهٔ کوه او ددے نه غفلت مهٔ کوه۔
جَاءَتْ ئې ماضي راوړه پدے کښې بنده ته دا تنبيه ده چه د مرګ داسے سختيانے يقيني راروانے دي لکه چه په تا باندے پخوا راغلي دي لکه رسول الله ﷺ هم ددے آيت نه دا حديث اخستے دے [وَعُدَّ نَفْسَكَ فِيْ اَهْلِ الْقُبُوْرِ] ځان خپل په مړو کښې وشماره۔
(ترمذي باسناد صحيح رقم : ٢٣٣٣)
سَكْرَةُ الْمَوْتِ: ((نشه د مرګ))۔ انسان باندے د مرګ په وخت داسے سختي او تکليف راځي چه انسان د سکر (نشے) په حالت کښې وي، خبرے ئې د اختيار نه بهر شي۔
رسول الله ﷺ چه کله وفات کيدو نو په حالت د نزع کښې ئې وفرمايل : [لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ اِنَّ لِلْمَوْتِ سَكَرَاتٍ] (بخاري : ٤٤٤٩) د مرګ دپاره نشے دي۔ او فرمايل ئې : اَللّٰهُمَّ اَعِنِّيْ عَلٰى سَكَرَاتِ الْمَوْتِ]۔ د مرګ دپاره ډيرے نشے دي او اے الله ! ما سره د مرګ په سختيو کښې مدد وکړه۔ (ترمذي : ٩٧٨) وسنده ضعيف لجهالة موسى بن سرجس وقال الحافظ اصله في الصحيحين وقال في فتح الباري ٣٧٠/١١ اسناده حسن)
بِالْحَقِّ : يعني دهٔ ته د مرګ په وخت حق ښکاره شي او رسولانو چه کوم خبرونه ورکړي وو چه بعث بعد الموت به کيږي، او کومے وعدے او وعيدونه ئې بيان کړي وو

هغه به ورته رشتینی ښکاره شی۔ یا د حق نه مراد یقین دے۔

تَحِيْدُ: دا د حَيْدَةٌ يا حَيْدُوْدَةٌ نه دے، کرېدو، مائل کیدو او تښتیدو ته وئیلے شی۔

| |
|---|
| وَنُفِخَ فِي الصُّوْرِ ذٰلِكَ يَوْمُ الْوَعِيْدِ ﴿٢٠﴾ وَجَاءَتْ كُلُّ نَفْسٍ |
| او پو کے به اُوکړے شی په شپیلۍ کښ دا ورځ د عذاب ده۔ او رابه شی هر نفس |
| مَّعَهَا سَائِقٌ وَّشَهِيْدٌ ﴿٢١﴾ لَقَدْ كُنْتَ |
| چه د هغهٔ سره به چلونکے (ملائك) او گواهی کونکے وی۔ يقيناً خامخا وے تهٔ |
| فِيْ غَفْلَةٍ مِّنْ هٰذَا فَكَشَفْنَا عَنْكَ غِطَاءَكَ فَبَصَرُكَ الْيَوْمَ حَدِيْدٌ ﴿٢٢﴾ |
| په غفلت کښ ددے نه نو لرے کړو مونږ ستا نه پرده ستا، نو نظر ستا نن تیز دے۔ |
| وَقَالَ قَرِيْنُهٗ هٰذَا مَا لَدَيَّ عَتِيْدٌ ﴿٢٣﴾ أَلْقِيَا فِيْ جَهَنَّمَ |
| او وُبه وائی ملګرے ددهٔ دا هغه څه دے چه ما سره دے تیار۔ وغورزوئ په جهنم کښ |
| كُلَّ كَفَّارٍ عَنِيْدٍ ﴿٢٤﴾ مَّنَّاعٍ لِّلْخَيْرِ مُعْتَدٍ |
| هر کفر کونکے عناد کونکے (ضدی)۔ منع کونکے د خیر، زیاتے کونکے، |
| مُّرِيْبٍ ﴿٢٥﴾ الَّذِيْ جَعَلَ مَعَ اللهِ إِلٰهًا آخَرَ |
| شك کونکے۔ هغه دے چه کړخولے ئے دے د الله سره حقدار د بندګئ بل |
| فَأَلْقِيَاهُ فِي الْعَذَابِ الشَّدِيْدِ ﴿٢٦﴾ قَالَ قَرِيْنُهٗ |
| نو وغورزوئ دهٔ لره په عذاب سخت کښ۔ وُبه وائی ملګرے ددهٔ (شیطان) |
| رَبَّنَا مَا أَطْغَيْتُهٗ وَلٰكِنْ كَانَ فِيْ ضَلَالٍ بَعِيْدٍ ﴿٢٧﴾ |
| اے ربه زمونږ! ما نهٔ دے ګمراه کړے دهٔ لره لیکن دا په ګمراهئ کښ وو لرے د حق نه۔ |

**تفسير**: اُوس د لوی قیامت احوال او هیبتونه بیانیږی۔ په کومه ورځ چه اسرافیل علیه السلام د مرګ نه پس د دوباره ژوند شپیلۍ اووهی، او تمام مخلوق ګهبراویدو سره میدانِ محشر طرفته منډے وهی، همدا به د کافرانو د عذاب ورځ وی۔ او اګرکه دا ورځ به

Scanned by CamScanner

مومنانو سره د جنت د شوي وعدي پوره کيدو هم وي، ليکن کافرانو دپاره د تيار شوي جهنم د عذاب دِ خطرناکئ بيانولو دپاره صرف عذاب ذکر شوي دي۔

وَجَاءَتْ كُلُّ نَفْسٍ: په شپيلئ کښې د پوکي کيدو نه پس به هر يو انسان سره دوه ملائك اُولګي، يو به ئے ميدانِ محشر طرفته شړي، او بل ملائك به ددهٔ د نيکو او بدو عملونو ګواهي ورکوي۔ د حسنؒ، قتادةؒ او مجاهدؒ همدا قول دے، او همدا د عثمان بن عفان ﷺ نه نقل دے، او قرطبي وائي چه همدا قول ډير صحيح دے۔ او ضحاكؒ وائي چه شړونکے خو به ملائك وي، او ګواه به ددے انسان لاسونه او خپے وي۔ يا به عملونه ګواهي ورکوي، يا به هغه عملنامے چه ليکلے شوي وي۔

سائق او شهيد نه مراد جنس دے، نو دا ډير ملائك دي۔

لَقَدْ كُنتَ فِي غَفْلَةٍ: دے کښې دوه قوله دي چه دا خطاب چا ته دے؟۔

(۱) ضحاكؒ وائي چه دا خطاب کافر ته دے چه هغه د آخرت د ورځے نه غافل دے۔

(۲) حافظ ابن کثيرؒ او ابن جريرؒ وائي چه دا خطاب هر چا ته دے، او همدا قول د جمهورو دے ځکه چه عامو مسلمانانو د آخرت نه څه نا څه غفلت کړيدے۔

نو په دے ورځ به پيريانو او انسانانو ته وئيلے کيږي چه تاسو تول د آخرت د ورځے او ددے د خطرناکيو نه غافل، او په دنيا او ددے په خوندونو کښې مشغول وئ، نو نن مونږه ستاسو د سترګو نه پرده لرے کړے ده، اُوس هر يو شے تاسو خپل مخے ته ښکاره مومئ۔

مجاهدؒ ددے تفسير دا بيان کړے چه نن به ستاسو نظرونه ستاسو د عمل په تله باندے داسے لګيږي چه لرے کيږي به نهٔ، ستاسو په بينائي کښې تيزي راغلے ده، ډير غور سره ګورئ چه ستاسو د نيکيو چابړے خو سپکيږي نهٔ۔

غِطَاءَكَ: ددے پردے نه مراد اَلْإِشْتِغَالُ بِالْعَالَمِ الْمَحْسُوسِ دے۔ يعني په ظاهر د دنيا باندے مشغوله کيدل، او ددے په خوندونو کښې ننوتل۔ دا مونږ ته د آخرت دپاره يوه پرده، نو دا پرده د ايمان په قوت باندے لرے کول پکار دي، تيك ده، دے دنيا ته ګوره او ددے نه فائدے اخله ليکن په زړهٔ باندے اخوا آخرت ته هم فکر کوه او اعمال برابره وه۔

وَقَالَ قَرِينُهُ: يعني کله چه د انسانانو ترمينځ د عدل فيصله وشي او د کافر حساب اوشي، نو الله تعالىٰ به شړونکي او ګواه دواړو ملائکو ته ووائي چه اُونيسئ دا کافر چه د الله تعالىٰ د وحدانيت او د هغهٔ د رسول د رسالت انکار کونکے سرکشه کافر وو، او دا په

Scanned by CamScanner

جهنم کښې اُوغورزوئ.

(۱) قرین (ملګری) نه مراد خو یا هغه ملائك دے کوم چه هر یو انسان سره په دنیا کښې لګیدلے وی، او ددۀ نیك او بد عملونه لیکی،

۱- او هذا اشاره ده عمل د انسان ته نو د آیت تفسیر به دا شی چه دا ملائك به الله تعالیٰ ته اووائی چه دا دے هغه انسان او د هغۀ عملونه چه دۀ پسے تا زۀ لګولے وم. یعنی ددۀ عملونه ما سره تیار دی.

۲- یا هذا اشاره ده انسان ته او د عتید معنیٰ ده تیار ګناهونه. یعنی دا انسان چه زما خوا کښې دے تیار دے اُور دپاره، او تیار وو ګناهونو دپاره چه مونږ ددۀ ګناهونه لیکلی دی.

(۲) اوکه د (قرین) نه مراد هغه شیطان شی کوم چه په دنیا کښې ددۀ ملګرے جوړ کړے شوے وو دے دپاره چه دے ګمراه کوی، نو تفسیر به دا وی چه دا شیطان به رب العالمین ته ووائی چه دا هغه انسان دے چه ددۀ د ګمراه کولو دپاره تا زۀ دۀ پسے لګولے ووم، ما دے ګمراه کړو او جهنم دپاره مے تیار کړو.

أَلْقِيَا : دا خطاب دے د الله تعالیٰ د طرف نه سائق او شهید دوه ملائکو ته. یا دغه یو ملائك ته خطاب دے، او دا د عربو محاوره ده چه یو ملګری ته په تثنیه سره خطاب کوی. یا تثنیه د تکرار دپاره ده. لکه د لَبَّیْكَ په شان. یعنی اَلْقِ اَلْقِ. ګوزار کړه، ګوزار کړه. (مبرّد) یا اَلْقِیَا کښې الف بدل دے د نون تاکید خفیفه نه په اصل کښې اَلْقِیَنْ دے. نو دا مفرد دے.

مَنَّاعٍ لِّلْخَيْرِ : خیر قرآن او سنت، او ایمان او انفاق فی سبیل الله او تولو واجبو حقوقو ته وئیلے شی. او پدے کښې اشاره ده چه دا شخص ضال او مُضِل دواړه وو. خپله هم ګمراه او د بل د ګمراهئ کوشش ئے کولو.

یعنی دۀ له الله تعالیٰ مال ورکړے وو، نو دے په هغے باندے لکه د مار غونته ناست وو، په دے کښې ئے د الله تعالیٰ او د هغۀ د محتاجو بندګانو حق بیخی هیر کړے وو، په خلقو به ئے په لاسونو او خپو دواړو سره زیاتے کولو، هغوئ ته به ئے کنځل کول، د هغوئ په عزتونو به ئے حملے کولے، او د طاقت په نشه کښې به ئے په هغوئ باندے د ظلم او زیاتی غرونه باړول، او د ډیرو دلائلو باوجود به ئے د دینِ اسلام په حقانیت او د رسول اکرم (ﷺ)

Scanned by CamScanner

په رشتین والی کښې شبهه کوله۔

مُعۡتَدٍ: یعنی دے حقوق العباد هم ضائع کونکے وو۔

مُرِیۡبٍ: خپله هم شك کونکے وو او نورو ته به ئے هم شکونه اچول، نو دا لازم او متعدی دواړه معنو سره راځی۔

الَّذِیۡ جَعَلَ: دا ئے منشأ ده د ټولو قبائحو، ځکه چه څوك د الله تعالیٰ سره نور مخلوق برخه دار جوړوی، نو هغه کښې هر قسم شر او فساد راجمع کیږی۔

فَأَلۡقِیَاهُ: په دویم کرته ئے ذکر کړو اشاره ده ترقیٔ د عذاب ددهٔ ته۔

قَالَ قَرِیۡنُهٗ: دلته د قرین نه مراد شیطان دے۔ یعنی دغه شیطان چه په دنیا کښې د دغه کافر ملګرے جوړ کړے شوے وو، په دغه ورځ به د هغهٔ نه د خپلے بیزاریٔ اعلان کوی، او وائی به چه اے زمونږه ربه! دا ما ګمراه کړے نهٔ وو، اصل کښې دا خپله د حقے لارے نه ډیر لرے وو، که چرے دهٔ د الله تعالیٰ د توحید لاره پریښے نهٔ وے، او د الله سره د شرك په لاره باندے تلے نهٔ وے، او د ګناهونو په ذریعه ئے خپل روغ فطرت مسخ کړے نهٔ وے، نو زما په قبضه کښې به نهٔ راتللے او زما وسوسے به ئے نهٔ قبولولے۔

ابن جریر طبریؒ لیکی چه دلته د کافر د شیطان ملګری خبره په دے وجه نقل کړے شوے ده، چه انسان ته معلومه شی چه د قیامت په ورځ کفار او د دویٔ شیطانان ملګری به د یو بل نه جدا کیږی۔

| قَالَ لَا تَخۡتَصِمُوۡا لَدَیَّ وَقَدۡ قَدَّمۡتُ إِلَیۡکُمۡ |
|---|
| وبه وائی الله، جګړه مهٔ کویٔ زما په خوا کښې حال دا چه ما مخکښې لیږلے وه تاسو ته |
| بِالۡوَعِیۡدِ ﴿۲۸﴾ مَا یُبَدَّلُ الۡقَوۡلُ لَدَیَّ وَمَا أَنَا بِظَلَّامٍ لِّلۡعَبِیۡدِ ﴿۲۹﴾ |
| یره (د عذاب)۔ نشی بدلیدلے خبره زما په نیز او نهٔ یم زهٔ هیڅ ظلم کونکے په بندګانو۔ |

**تفسیر**: رب العالمین چه کفار او د دویٔ شیطانان ملګری خپلو کښې په جګړه باندے اُووینی، نو وبه وائی چه اُوس تاسو زما خواته جګړے مهٔ کویٔ، ددے هیڅ فائده نشته، ما په دنیا کښې په خپل کتاب کښې، او د خپل رسول په ژبه دا خبره واضح کړے وه چه کوم انسان د الله تعالیٰ نه انکار وکړی، هغهٔ سره نور څوك شریکان جوړ کړی، او د هغهٔ د

Scanned by CamScanner

رسول نافرمانی وکړي، د هغهٔ ځای به جهنم وي، دے وجے نه نن ورځ ستاسو د دواړو استو ګنه جهنم دے، ځکه چه تاسو باندے حجت قائم کړے شویدے۔

وَقَدْ قَدَّمْتُ : (ما مخکښ بیان کړے وو تاسو ته یره) (ما مخکښ لیږلی وو تاسو ته عذابونه)

بِالْوَعِيْدِ: یعنی دنیا کښ تاسو ته وعیدونه او عذابونه بیان کړے شویدی۔

مَا يُبَدَّلُ الْقَوْلُ لَدَىَّ: (۱) یو مطلب : مَا يُكَذَّبُ عِنْدِىْ۔ زما په خوا کښ او ما ته څوك دروغ نشی وئیلے، او نهٔ ئے دروغ په ما باندے چلیږی۔ چه دے وائی چه دا ما نهٔ دے ګمراه کړے، او الله تعالیٰ ئے ورسره ومنی او په مینځ کښ هغه دروغجن وی، ځکه چه الله تعالیٰ ته خو ټول حقائق معلوم دی۔

(۲) یا د قول نه مراد د الله تعالیٰ وینا ده۔ یعنی ما چه کومه خبره کړیده هغه نهٔ بدلیږی چه الله فرمائیلی دی : ﴿ لَأَمْلَئَنَّ جَهَنَّمَ مِنَ الْجِنَّةِ وَالنَّاسِ أَجْمَعِيْنَ ﴾

(زهٔ به خامخا جهنم د پیریانو او انسانانو نه ډکوم)۔ (هود : ۱۱۹)۔

نو اُوس به تاسو جهنم ته داخلیږئ، دے خبره کښ هیڅ بدلون نشته۔

وَمَا أَنَا بِظَلَّامٍ : (مَـا أَنَا بِمُعَذِّبٍ مَنْ لَمْ يَجْتَرِمْ) (ابن عباسؓ) یعنی زهٔ چا ته په ظلم سره عذاب نهٔ ورکوم چه هیڅ جرم او ګناه ئے نهٔ وی کړی۔ یعنی تاسو دواړه جرمونه کړیدی یو د ګمراهئ او بل د ګمراه کولو۔

دارنګه زهٔ دا هم نهٔ کوم چه فرمانبردار او خبره منونکو له عذاب ورکړم، یا کافر او نافرمان جنت ته داخل کړم۔

مفسر قاشانیؒ د ﴿ وَمَآ أَنَا بِظَلَّامٍ لِّلْعَبِيْدِ ﴾ تفسیر دا کړے چه [مَا أَنَا بِظَلَّامٍ : حَيْثُ وَهَبْتُ الْإِسْتِعْدَادَ، وَأَنْبَأْتُ عَلَى الْكَمَالِ الْمُنَاسِبِ لَهُ وَهَدَيْتُكُمْ إِلَى طَرِيْقِ اكْتِسَابِهِ، بَلْ أَنْتُمُ الظَّلَّامُوْنَ أَنْفُسَكُمْ بِاكْتِسَابِ مَا يُنَافِيْهِ، وَإِضَاعَةِ الْإِسْتِعْدَادِ بِوَضْعِ النُّوْرِ فِى الظُّلْمَةِ وَاسْتِبْدَالِ مَا يَفْنٰى بِمَا يَبْقٰى] (محاسن التاویل للقاسمیؒ)

((ما بندګانو له د حق د قبلولو استعداد ورکړے، هغوئ مے د خیر او شر نه خبر کړی، او حقے لارے طرفته مے د دوئ رهنمائی کړے، دے وجے نه زهٔ نهٔ، بلکه هغوی خپله په خپل حق کښ ظالمان دی چه رنړا پریدی او تیارهٔ اختیاروی، او ابدی نعمت یعنی جنت شاته کذاری او فانی یعنی دنیوی خوندونو او شهوتونو پسے منډے وهی))۔

Scanned by CamScanner

ظلام کښې سوال او جواب په سورة انفال وغيره کښې تير شويدے۔

| |
|---|
| يَوْمَ نَقُوْلُ لِجَهَنَّمَ هَلِ امْتَلَأْتِ وَتَقُوْلُ هَلْ مِنْ |
| په هغه ورځ چه مونږ به اُووايو جهنم ته آيا ډك شوے نهٔ او هغه به اُووائي آيا څه |
| مَّزِيْدٍ ﴿٣٠﴾ وَأُزْلِفَتِ الْجَنَّةُ لِلْمُتَّقِيْنَ غَيْرَ بَعِيْدٍ ﴿٣١﴾ هٰذَا مَا |
| زيات شته دے۔ او نزدے به کړے شي جنت متقيانو ته چه نهٔ به وي لرے۔ دا هغه شے |
| تُوْعَدُوْنَ لِكُلِّ أَوَّابٍ حَفِيْظٍ ﴿٣٢﴾ |
| دے چه وعده ئے کيدے شي تاسو سره، دپاره د هر توبه ويستونکي، حفاظت کونکي |
| مَنْ خَشِيَ الرَّحْمٰنَ بِالْغَيْبِ وَجَاءَ بِقَلْبٍ |
| دے۔ خوك چه يره کوي د رحمٰن نه په حال د نهٔ ليدو کښې او راغے په زړهٔ |
| مُّنِيْبٍ ﴿٣٣﴾ اُدْخُلُوْهَا بِسَلَامٍ ، ذٰلِكَ يَوْمُ الْخُلُوْدِ ﴿٣٤﴾ |
| ګرځيدونکي (حق ته)۔ داخل شئ دے ته په سلامتيا سره، دا ورځ د هميشوالي ده۔ |
| لَهُمْ مَّا يَشَاءُوْنَ فِيْهَا وَلَدَيْنَا مَزِيْدٌ ﴿٣٥﴾ |
| دوی لره به هغه څه وي چه دوی ئے غواړي په هغے کښې او مونږ سره زياتي شته۔ |

**تفسير** :يَوْمَ نَقُوْلُ لِجَهَنَّمَ : دا د عذاب شديد بيان دے او دا د هغه قول تشريح ده چه مخکښې په (مَا يُبَدَّلُ الْقَوْلُ) کښې ذکر شوه۔ يعني جهنم به د انسانانو په غورزيدو هم نهٔ ډکيږي، او صحيح حديث کښې دي چه [لَا تَزَالُ جَهَنَّمُ يُلْقٰى فِيْهَا وَتَقُوْلُ هَلْ مِنْ مَزِيْدٍ؟ حَتّٰى يَضَعَ رَبُّ الْعِزَّةِ فِيْهَا قَدَمَهُ، فَيَنْزَوِيْ بَعْضُهَا اِلٰى بَعْضٍ وَتَقُوْلُ : قَطْ قَطْ، وَعِزَّتِكَ وَكَرَمِكَ] (بخاری : ٦٦٦١) مسلم : (٧٣٥٦)

جهنم کښې به هميشه همداسے انسانان غورزولے شي (الله به ورته وفرمائي : آيا ته ډك شوے) او جهنم به وائي چه آيا نور خوك زيات شته؟ تردے چه رب العزت به په هغے کښې خپل قدم کيږدي، نو بعض حصه د جهنم به بعضو ته راغونډ شي او ويه وائي چه بس بس، ستا په عزت او کرامت باندے قسم دے۔ نو په جهنم کښې به هيڅ يو ځای

Scanned by CamScanner

خالي پاتے نشي۔ عطاءؒ، مجاهدؒ او مقاتل بن سلیمانؒ همدا تفسیر بیان کړے۔
مَّزِيْدٍ: دا یا مصدر دے لکه د مجید په شان په معنیٰ د زیادت سره، یعنی آیا شته څه زیاتی شے چه زۀ پرے ډك شم۔ یا اسم مفعول دے لکه د مَبِیْعٌ په شان او معنیٰ دا ده :
[هَلْ مِنْ شَيْءٍ تَزِيْدُ فِيْهِ؟] آیا څه شے شته چه تۀ په هغے کښ زیادت وکړے؟)
وَأُزْلِفَتِ الْجَنَّةُ : د قیامت په ورځ د کافرانو حال بیانولو نه پس اُوس د مومنانو حال بیانولے شي۔ الله تعالیٰ فرمائي : په دے ورځ به جنت پرهیزګارو ته بیخي رانزدے کړے شي، دومره نزدے چه د میدانِ محشر نه به د هغې ننداره کوي، او هغه نعمتونه به اُووینی چه هغه په دنیا کښ هیڅ سترګے نۀ دي لیدلي، نۀ کوم غوږ آوریدلي، او نۀ د کوم انسان زړۀ د هغے تصور کړے۔
غَيْرَ بَعِيْدٍ : ددے یوه معنیٰ دا ده چه جنت راتلونکے دے، او وړاندے نۀ دے بلکه نزدے راروان دے۔ او بله معنیٰ ئے دا ده چه په قیامت کښ به رانزدے کړے شي، یعنی د قیامت په موقف کښ به دوئ جنت او د هغے نعمتونو ته ګوري۔ او غیر بعید یا مفعول مطلق دے په اعتبار د موصوف محذوف سره اَیْ اِزْلَافًا غَيْرَ بَعِيْدٍ ۔ یعنی داسے رانزدے کول چه وړاندے به نۀ وي۔
یا حال دے د جنت نه، او جنت په تاویل د مکان سره دے، یعنی په داسے حال کښ چه دغه جنت به نۀ وي وړاندے۔
هٰذَا مَا تُوْعَدُوْنَ: ددے نه روستو د جنت د اهل خلقو صفتونه بیانیږي۔
أَوَّابٍ حَفِيْظٍ : انسان کښ دوه قوتونه دي، قوة الطلب او بل قُوَّةُ الْاِمْسَاكِ دے نو اوّاب کښ قوة الطلب ته اشاره ده څکه چه اواب هغه چا ته وائي چه هغه الله تعالیٰ ته راواپس کیږي په توبے سره، طلب ئے مضبوط وي، او په حفیظ کښ قوة الامساك ته اشاره ده، یعنی ځان د ګناهونو نه رابندوي۔
أَوَّابٍ: ۱- اَلرَّجَّاعُ اِلَى اللهِ وَطَاعَتِهٖ بِالتَّوْبَةِ عَنِ الْمَعَاصِيْ۔
(چه الله ته او د هغه طاعت ته راواپس کیږي په توبه کولو سره د ګناهونو نه)۔
۲- اَلْمُسَبِّحُ۔ چه ډیر تسبیحات وائي۔
۳- اَلذَّاكِرُ لِلّٰهِ فِي الْخَلْوَةِ۔ په یواځے والي کښ الله تعالیٰ یادونکے۔
٤- اَلَّذِيْ يَذْكُرُ ذُنُوْبَهٗ فِي الْخَلْوَةِ فَيَسْتَغْفِرُ اللّٰهَ مِنْهَا ۔ (شعبیؒ ومجاهدؒ) دا هغه شخص دے

Scanned by CamScanner

چه په یواځې والې کښې ګناهونه رایاد کړي بیا پرې د الله تعالیٰ نه بخنه وغواړي.
٥– عبید بن عمیرؒ وائي: هُوَ الَّذِيْ لَايَجْلِسُ مَجْلِسًا حَتّٰى يَسْتَغْفِرَ اللّٰهَ فِيْهِ. په هیڅ مجلس کښې نۀ کینې مګر په هغې کښې د الله تعالیٰ نه بخنه غواړي.
حَفِيْظٍ: ١– لِحُدُوْدِ اللّٰهِ. د الله د حدودو حفاظت کوي.
٢– حَفِيْظٌ لِمَا ائْتَمَنَهُ اللّٰهُ عَلَيْهِ وَافْتَرَضَ عَلَيْهِ. حفاظت کونکے دے د هغه څه چه الله تعالیٰ ورته کوم امانت ورکړیدے، او په هغۀ باندے ئې فرض کړیدي.
٣– حَفِيْظٌ لِاَوْقَاتِ عُمْرِهٖ. د خپل عمر د اَوقاتو ساتنه کونکے وي.
٤– حَفِيْظٌ لِعَهْدِهٖ. د خپلو لوظونو حفاظت کونکے به وي.
٥– حَفِيْظٌ لِذُنُوْبِهٖ حَتّٰى رَجَعَ عَنْهَا. (ابن عباسؓ) د خپلو ګناهونو ساتنه کونکے وي تردے چه د هغې نه رجوع کوي. (فتح البیان، قرطبي، بغوي وغیره)
مَنْ خَشِيَ الرَّحْمٰنَ: دا بدل یا صفت دے د اَوَّابٍ حَفِيْظٍ نه. او پدے آیت کښې د متقیانو دوه صفتونه ذکر دي، مخکښې صفتونه عبادات لساني وو او دا صفتونه عبادات قلبیه دي. خشیة او انابت. خشیت هغه خوف ته وائي چه د تعظیم سره وي، نو ددے وجه نه ئې الرَّحْمٰن لفظ ذکر کړو چه د هغۀ عظمت شان راشي.
یعني دا جنتیان به هغه خلق وي چه د الله تعالیٰ نه په داسے حال کښې هم یریږي کله چه دوئ لره هیڅوک نۀ وینې، دوئ په دے دنیا کښې دے یقین سره ژوند تیروي چه اګرکه هیڅ یو انسان دوئ لره نۀ وینې، لیکن الله تعالیٰ خو دوئ په هر ځائے او په هر حال کښې وینې، او د دوئ دویم صفت دادے چه په هر وخت کښې د خپل رب په حضور کښې د خپلو ګناهونو نه توبه کوي، او کوم کارونه چه الله تعالیٰ نۀ خوښوي هغې ته نزدے نۀ ورځي.
بِسَلَامٍ: ١– په سلامتیا سره د مصیبتونو او عذابونو نه. او د زائله کیدو د نعمتونو نه. ٢– یا په سلام سره د طرف د الله تعالیٰ او د هغۀ د ملائکو نه.
مَزِيْدٌ: یعني مونږ سره زیاتي نعمتونه شته چه د هیچا په خیال کښې نۀ دي راغلي.
بعض وائي چه دا د الله تعالیٰ نوراني مخ ته کتل دي. (جابر وصهیب رضی الله عنهما)
انس بن مالك ﷺ فرمائي: دوي ته به الله تعالیٰ د هرے جُمعے په شپه په خپل کور د عزت کښې رابښکاره کیږي نو دا هغه مزید دے.
دارنګه د روایاتو نه معلومیږي چه دا خاص قسم حورو ته اشاره ده چه هغه به جنتیانو

Scanned by CamScanner

ته ملاویږي۔

| وَ كَمْ أَهْلَكْنَا قَبْلَهُمْ مِّنْ قَرْنٍ هُمْ أَشَدُّ مِنْهُمْ |
|---|
| او ډیر هلاك کړیدي مونږ مخکښې د دوی نه پیړۍ، چه هغوی ډیر سخت وو د دوی |
| بَطْشًا فَنَقَّبُوْا فِي الْبِلَادِ هَلْ |
| نه په نیولو کښې (په طاقت کښې) نو دوی ګرځیدلي وو په ښارونو کښې آیا شته دے |
| مِنْ مَّحِيْصٍ ﴿٣٦﴾ إِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَذِكْرٰى لِمَنْ كَانَ لَهٗ |
| ځائے د تختیدو۔ یقیناً په دے کښې خامخا نصیحت دے دپاره د هغه چا چه هغهٔ لره |
| قَلْبٌ أَوْ أَلْقَى السَّمْعَ وَهُوَ شَهِيْدٌ ﴿٣٧﴾ |
| زړهٔ وي یا کیږدي غوږ او دے حاضر (زړهٔ والا) وي۔ |

**تفسیر**: اُوس تخویف دنیاوي بیانوي یعنې الله تعالیٰ مکے والا د مخکنو قومونو په عذابونو سره ویروي، فرمائي: چه ددے مشرکانو نه مخکښې ډیر قومونه تیر شوي، چه هغوئ د دوئ نه په قوت کښې زیات وو، لکه عاد او ثمود قومونه او فرعون وغیره، او دوئ د مختلفو ملکونو هم ښهٔ چکرونه لګولي وو، لیکن کله چه د الله تعالیٰ عذاب راغے نو آیا دوئ په زمکه کښې داسے څهٔ ځائے اوموندلو چرته چه دوئ اوتښتي او د عذاب نه بچ شي؟ یا کله چه د دوئ د مرګ وخت راغے، نو آیا ددے نه اُوتښتیدل؟

همدا حال به د مکے د مشرکانو هم وي، چه که دا خلق دغسے مسلسل نبي کریم ﷺ دروغژن ګڼړي، نو د الله تعالیٰ عذاب به دوئ په خپل ګرفت کښې واخلي، او ددے نه به د تیښتے لاره اختیار نهٔ کړے شي۔

بَطْشًا: په اصل کښې حملے ته وائي، دلته ترے قوت او طاقت مراد دے۔

فَنَقَّبُوْا: تنقیب په اصل کښې سورنګ کول او په سورنګونو کښې داخلیدو ته وئیلے شي، دلته ترے مراد دا دے چه په دنیا کښې ګوټ په ګوټ ګرځیدلي وو، یا هغوی په ډیرو ښارونو کښې د تجارتونو او مالونو او سیلونو دپاره ګرځیدلي وو۔ یا هغوی په مختلفو لارو باندے تختیدلي وو دے دپاره چه د الله تعالیٰ عذابونو نه خلاص شي لیکن خلاص نشو۔

Scanned by CamScanner

یا ضمیر موجوده مشرکانو ته راجع دے، یعنی دوئ د هغوی په ښارونو کښې گرځیدلی دی او هر څه ئے کتلی دی۔
مَّحِيصٍ: ځای د تختیدو او ځای د خلاصیدو۔
إِنَّ فِيْ ذٰلِكَ: دا ترغیب دے قرآن او دے سورت ته۔ نو ذٰلِكَ کښې قرآن ته یا ددے سورت مضمون ته، یا هلاکت د اقوام مکذبه ؤ ته اشاره ده۔
لِمَنْ كَانَ لَهٗ قَلْبٌ : د قرآن نه د فائدے اخستو دپاره درے خبرے ضروری دی، یو دا چه محل به قابل وی، دویم مُقْتَضِي او مُؤثر به موجود وی، دریم مانع به موجود نهٔ وی۔ لکه زمکه چه قابلیت پکښې نهٔ وی، نو دانه پکښې نهٔ راخیژی، او که مُقْتَضِي او مؤثر نهٔ وی لکه باران پرے نهٔ کیږی یا مانع (کانړی وغیره) موجود وی، نو دانه به نهٔ راخیژی۔ نو یو زړهٔ پکار دے۔ (لِمَنْ كَانَ لَهٗ قَلْبٌ) او د هغے دپاره مؤثر (اَلْقَى السَّمْعَ) چه غوږ باندے به خبره آوری۔ دریم دا چه مانع به نهٔ وی چه بل طرفته به متوجه نهٔ وی (وَهُوَ شَهِيْدٌ) اَیْ حَاضِرُ الْقَلْبِ، یعنی زړهٔ به ئے حاضر وی۔
بیا ئے د غوږ کیخودو دپاره اَلْقَى السَّمْعَ (اِلْقَاء) غورزول لفظ ذکر کړو پدے کښې اشاره ده چه دا انسان د قرآن آوریدل داسے قیمتی او لوی او درونډ گڼړی چه گویا که غوږ ئے ورله خکته غورزولے دے۔
(اَوْ) کلمه ئے راوړه پدے کښې تقسیم د انسانانو ته اشاره ده، چا باندے قوت عقلانی غالب وی خپله سوچ کولے شی، او چا باندے قوت د سمع (غوږ کیخودو) غالب وی، نو که خپله ئے عقل قوی وی، نو خپله سوچ وکړه، او که هغه کمزورے وی نو بیا بل ته غوږ کیږده۔ اوله درجه د اجتهاد ده، او دویمه درجه د اتباع ده۔
ددے نه چه څوك د تقلید اثبات کوی نو هغه یقیناً چه د تقلید د معروفے معنے د حقیقت نه جاهل دے، یا به تلبیس او تحریف کوی، دلته کوم ځای دی چه د یو امام تقلید به کوی۔ بلکه دلته وائی چه د الله تعالیٰ کتاب ته به غوږ کیږدی، د بل چا نه به ئے واوری۔
قَلْبٌ: لفظ ئے راوړو اشاره ده چه عقل په زړهٔ کښې وی خو دماغو سره ئے کنکشن شته۔
او مطلب د آیت دا دے چه د مخکنو قومونو ددے واقعاتو نه هغه خلق نصیحت اخلی چه هغوئ د عقل نه کار واخلی او د کفر نه توبه اوباسی، او په خپلو غوږونو باندے د

Scanned by CamScanner

هغوئ خبرونه واوری، بیدار زړۀ او دماغو سره سوچ وکړی چه که مونږ په کفر باندے ټینګ پاتے شو نو زمونږ انجام به ددے کافرو قومونو غوندے شی چه د هغوئ واقعات دلته بیان شوی دی۔

| وَلَقَدْ خَلَقْنَا السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضَ وَمَا بَيْنَهُمَا |
|---|
| او یقیناً پیدا کړیدی مونږ آسمانونه او زمکه او هغه چه په مینځ د دواړو کښ دی |
| فِيْ سِتَّةِ أَيَّامٍ وَمَا مَسَّنَا مِنْ لُّغُوْبٍ ﴿۳۸﴾ فَاصْبِرْ |
| په اندازه د شپږو ورځو کښ او نۀ دے رسیدلے مونږ ته هیڅ ستړی والے۔ نو صبره کوه |
| عَلٰى مَا يَقُوْلُوْنَ وَسَبِّحْ بِحَمْدِ رَبِّكَ قَبْلَ |
| په هغه خبرو چه وائی دوی، او تسبیح وایه سره د حمدونو د رب ستا نه مخکښ |
| طُلُوْعِ الشَّمْسِ وَقَبْلَ الْغُرُوْبِ ﴿۳۹﴾ وَمِنَ اللَّيْلِ فَسَبِّحْهُ |
| د راختلو د نمر نه او مخکښ د پریوتو د نمر نه۔ او د شپے نه، پس تسبیح وایه د هغهٔ |
| وَأَدْبَارَ السُّجُوْدِ ﴿۴۰﴾ وَاسْتَمِعْ يَوْمَ يُنَادِ |
| او روستو د سجدے کولو نه۔ او غوږ کیږده هغه ورځے ته چه آواز به اُوکړی |
| الْمُنَادِ مِنْ مَّكَانٍ قَرِيْبٍ ﴿۴۱﴾ يَوْمَ يَسْمَعُوْنَ الصَّيْحَةَ بِالْحَقِّ |
| آواز کونکے د ځائے نزدے نه۔ په هغه ورځ چه آوری به دوی چغه په رشتیا سره، |
| ذٰلِكَ يَوْمُ الْخُرُوْجِ ﴿۴۲﴾ |
| دا ورځ د راوتلو ده (د قبرونو نه)۔ |

**تفسیر**: بیا دلائل راوړی په اثبات د آخرت۔ حافظ ابن کثیرؒ لیکی چه ددے آیت نه مقصد مرګ نه پس د دوباره ژوند اثبات او ددے تاکید دے، ځکه چه الله تعالیٰ زمکه او آسمانونه پیدا کړی، او ددے په پیدائش سره هغهٔ ته هیڅ ستړی والے نۀ دے رسیدلے، هغه یقیناً او په طریقه اولیٰ سره د مړو په دوباره ژوندی کولو باندے قادر دے۔

د سورتِ احقاف په (۳۳) آیت کښې راغلي : ﴿ أَوَلَمْ يَرَوْا أَنَّ اللَّهَ الَّذِي خَلَقَ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضَ وَلَمْ يَعْيَ بِخَلْقِهِنَّ بِقَادِرٍ عَلَىٰ أَنْ يُحْيِيَ الْمَوْتَىٰ بَلَىٰ إِنَّهُ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ ﴾
(آیا دوئ نۀ ګوري چه کوم الله چه آسمانونه او زمکه پیدا کړي، او ددے په پیدا کولو ستړے نشو، هغه یقیناً د مړو په دوباره ژوندی کولو قادر دے۔ هاؤ، هغه یقیناً په هر شی قادر دے)۔
قتادةؒ وائی : یهودو به وئیلے : الله تعالیٰ آسمانونه او زمکه په شپږو ورځو کښې پیدا کړل، بیائے په اُوومه ورځ یعنی د هفتے په ورځ آرام وکړو، او د خپلے دے باطلے عقیدے په سبب دا خلق د هفتے ورځے ته د آرام ورځ وائی۔
الله تعالیٰ د دوئ ددے دروغ تړلو تردید وکړو او وے فرمایل : ﴿ وَمَا مَسَّنَا مِنْ لُغُوبٍ ﴾ (مونږ ته د آسمانونو او زمکے په پیدا کولو هیڅ ستړی والے ونۀ رسیدۀ)۔
فَاصْبِرْ عَلَىٰ مَا يَقُولُونَ : اُوس نبی کریم ﷺ له تسلی ورکولے شی چه که مشرکان د مرګ نه پس د دوباره ژوند او د توحید او رسالت نه انکار کوی، نو تۀ غمژن کیږه مۀ، د صبر او برداشت نه کار اخله، او د خپل رب حمد او ثناء وایه او د تسبیح په ذریعه قوت حاصلوه۔
وَسَبِّحْ: تسبیح نه مراد یا خو ظاهری تسبیح ده، یعنی د الله تعالیٰ پاکی بیانول، یا ددے نه مراد مونځ دے۔ په دویم صورت کښې به د نمر خاتۀ نه د مخکښې مونځ نه به مراد د سهار مونځ، د نمر پریواتۀ نه مخکښې مونځ نه به مراد د ماسپخین او مازیګر مونځ وی، او د شپے د مانځۀ نه مراد به د ماسخوتن او د تهجدو مونځ، او د ﴿ أَدْبَارَ السُّجُودِ ﴾ نه مراد به هغه نوافل وی کوم چه د فرض مونځونو نه پس اداء کولے شی۔
حافظ ابن کثیرؒ فرمائی چه د معراج نه مخکښې فرض مونځ دوه رکعته د نمر خاتۀ نه مخکښې د سهار په وخت وو، او دوه رکعته د نمر پریواتۀ نه مخکښې د مازیګر په وخت وو، او قیام اللیل (تهجد) په نبی کریم ﷺ او مسلمانانو باندے یو کاله پورے فرض وو، بیا امت دپاره ددے وجوب منسوخ کړے شو۔ او د معراج په شپه د پنځو مونځونو په ذریعه دغه مخکنی مونځونه منسوخ شول، لیکن د سهار او مازیګر مونځونه باقی پاتے شول۔
د ابن عباس ؓ نه ترمذیؒ او حاکمؒ (۱۱۹۸) او ابن مردویهؒ روایت راوړیدے، او حاکمؒ ورته

Scanned by CamScanner

صحیح وٹیلے دے چه ما ته رسول الله ﷺ وفرمایل : اے ابن عباس !
(رَكْعَتَانِ قَبْلَ صَلَاةِ الْفَجْرِ إِدْبَارُ النُّجُومِ وَرَكْعَتَانِ بَعْدَ الْمَغْرِبِ أَدْبَارُ السُّجُودِ)
د سهار نه مخکښ دوه رکعاته (سنت) ادبار النجوم دے، او دوه رکعاته د ماښام نه روستو ادبار السجود دے. او داسے روایت د عمر فاروق رضی الله عنه نه موقوفاً مصنف ابن ابی شیبه (٦٨٤٦) راوړیدے.
وَأَدْبَارَ السُّجُودِ : سجود دلته مونځونو ته هم وائی، او دا قول د ابن عباس دے هغه فرمائی : (أَمَرَهُ أَنْ يُسَبِّحَ أَدْبَارَ الصَّلَوَاتِ كُلِّهَا) الله تعالیٰ خپل نبی ته حکم وکړو چه د ټولو مونځونو نه روستو تسبیحات ووائی. لکه رسول الله ﷺ فرمایلی دی :
چه څوك د هر فرض مانځه نه روستو درے دیرش کرته سبحان الله، درے دیرش کرته الحمد لله او درے دیرش کرته الله اکبر وائی او بیا وروسے لَا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ وَحْدَهُ لَا شَرِيكَ لَهُ لَهُ الْمُلْكُ وَلَهُ الْحَمْدُ وَهُوَ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ ووائی نو ددهٔ ګناهونه به معاف شی اګرکه د دریاب د زګ په اندازه وی. (مسلم : ١٣٨٠)
او لس لس کرته وٹیلو سره د ورځے دوه نیم زره نیکئ ملاویږی، او دغه شان اُوده کیدو وخت کښ درے دیرش درے دیرش کرته وٹیل څوك چه پدے دواړو کارونو پابندی وکړی الله تعالیٰ ورله خامخا جنت ورکوی. مسلم : (٧٠٩٠) (ابوداود : ٥٠٦٧) اسناده صحیح)
علی رضی الله عنه فرمائی : ما دا په جنګ صفین کښ هم نهٔ دی پریخودی.
وَاسْتَمِعْ : اُوس وائی چه دا عملونه به کله فائده ورکوی؟ نو یوه درنه ورځ راروانه ده. د استماع نه مراد انتظار کول دی، یا ددے نه مراد غوږ کیخودل دی حالاتو د هغه ورځے ته. الله تعالیٰ خپل نبی ﷺ ته خطاب کوی فرمائی :
تاته چه د وحی په ذریعه د قیامت د ورځے کوم حالات بیانولے شی، هغه غور سره واوره، په کومه ورځ چه اسرافیل علیه السلام دویمه شپیلئ پوك وهی، او قیامت قائم شی، او هر مړے ژوندے شی، او میدانِ محشر طرفته منډے وهی.
بل مقصد دا دے چه اسرافیل علیه السلام به شپیلئ پوك وهی، او جبریل علیه السلام به محشر والو ته آواز کوی چه حساب دپاره لاړ شئ، او دا آواز به دومره نژدے وی چه د محشر د میدان هر یو کس به ئے آوری. اول قول غوره دے، اسرافیل علیه السلام به شپیلئ هم وهی او ددے سره به دا الفاظ هم یو ځای کوی چه [أَيَّتُهَا الْعِظَامُ الْبَالِيَةُ وَالْجُلُودُ الْمُتَمَزِّقَةُ هَلُمُّوا إِلَى

Scanned by CamScanner

عَرْضِ الرَّحْمٰنِ] اے زړو هډوکو، او ذره ذره شوو غوښو د رحمٰن ذات پیشئ ته راشئ.
(شعب الایمان ۱/ ٦٣٧) رقم (٣٤٧)

**يَوْمَ يَسْمَعُوْنَ**: دا بدل دے د مخکښ (يَوْمَ يُنَادِ) نه. او پدے کښ مقصد دفع د وَهم ده چه منادی خو به د نزدے ځای نه آواز کوی خو کیدے شی چه دا خلق د مرګ یا د غفلت د وجه نه نهٔ آوری، نو جواب ئے وکړو چه دویٔ به ئے خامخا یقینی آوری.

**الصَّيْحَةَ**: نه مراد نفخ فی الصور ده چه یوه چغه به ترے راوخیژی.

**بِالْحَقِّ**: د حق نه مراد یقین دے.

| |
|---|
| إِنَّا نَحْنُ نُحْيِي وَنُمِيتُ وَإِلَيْنَا الْمَصِيرُ ﴿٤٣﴾ |
| یقیناً مونږ ژوندی کول او مړهٔ کول کوو او خاص مونږ ته راګرځیدل دی. |
| يَوْمَ تَشَقَّقُ الْأَرْضُ عَنْهُمْ سِرَاعًا ذَٰلِكَ حَشْرٌ |
| په هغه ورځ چه ویه چوی زمکه د دوی نه، جلتی به کوی، دا راجمع کول دی |
| عَلَيْنَا يَسِيرٌ ﴿٤٤﴾ نَحْنُ أَعْلَمُ بِمَا يَقُولُونَ وَمَا أَنْتَ |
| په مونږ باندے آسان. مونږ ښهٔ پوهه یو په هغه خبرو چه دوی ئے وائی او نهٔ ئے تهٔ |
| عَلَيْهِمْ بِجَبَّارٍ فَذَكِّرْ بِالْقُرْآنِ مَنْ يَخَافُ وَعِيدِ ﴿٤٥﴾ |
| په دوی باندے زورکونکے نو بیان کړه قرآن هغه چا ته چه یریږی د عذاب زما نه. |

**تفسیر**: دا اثبات د آخرت دپاره بل قسم دلیل راوړی.

**إِنَّا نَحْنُ**: یعنی خاص مونږ ژوندی کول او مړهٔ کول کوو، مونږ سره پدے کښ هیڅوك شریك نشته، نو د انسانانو ژوندی کول هم څه ګران کار نهٔ دے لکه څرنګ چه وژل ئے ګران نهٔ وو.

**يَوْمَ تَشَقَّقُ الْأَرْضُ**: یعنی د اسرافیل علیه السلام د شپیلئ پو کلو نه پس به زمکه اوشلیږی، او ټول مړی به ژوندی شی، او هغه خوا به منډے وهی چرته نه چه آواز راځی.

الله تعالیٰ وفرمایل چه خلق د خپلو قبرونو نه را اُوخکل او میدانِ محشر کښ جمع کول زمونږ دپاره ډیر زیات آسان دی.

Scanned by CamScanner

سِرَاعًا: اَیْ مُسْرِعِیْنَ۔ یعنی په داسے حال کښې چه په جلتئ به زغلیدونکی وی آواز کونکی طرفته۔
عَلَیْنَا: دا متعلق دے د (یَسِیْرٌ) پورے۔ یعنی خاص مونږ ته آسان دے۔
نَحْنُ اَعْلَمُ بِمَا یَقُوْلُوْنَ: اُوس نبی کریم ﷺ له تسلی ورکړے کیږی چه د مکے د مشرکانو د الله تعالیٰ او د هغهٔ د رسول خِلاف دروغ تړل او مرگ نه پس د دوباره ژوندی کیدو نه انکار کول مونږ ته ښهٔ معلوم دی، او هم زهٔ به دوئ سره حساب کوم۔ ستا کار خو دوئ ته زمونږ پیغام رَسَول دی۔ دوئ په ایمان راوړو باندے مجبورول ستا کار نهٔ دے، تهٔ د قرآن کریم په تلاوت کولو سره هغه خلقو ته نصیحت کوه څوك چه زما د عذاب او سزا نه یریږی۔ یعنی ستا وعظ او ستا نصیحت خو د ټولو دپاره دے، لیکن ددے نه به فائده صرف هغه څوك پورته کوی څوك چه په آخرت او په جنت باندے ایمان لری۔
فَذَکِّرْ: دلته تقدیر دے اَیْ یَنْفَعُ مَنْ یَّخَافُ وَعِیْدِ۔ یعنی فائده به ورکوی هغه چا ته چه د الله د وعیدونو (عذابونو) نه یریږی۔ دا د فَذَکِّرْ اِنْ نَّفَعَتِ الذِّکْرٰی په شان دے۔
او پدے کښې اشاره ده چه د قرآن نه فائده هغه څوك اخستے شی چه د الله تعالیٰ د عذابونو نه یریږی، او څوك چه نهٔ یریږی هغوی له فائده نهٔ ورکوی۔
دلته د تذکیر نه مراد د قرآن وعظ او نصیحت او درس او تدریس دے۔
وَعِیْدِ: کښې یاء د متکلم حذف شویده او د هغے کسره په دال باندے پاتے ده۔ اَیْ وَعِیْدِیْ۔ یعنی زما د عذابونو نه۔ وبالله التوفیق۔

## امتیازات د سورت ق

۱– پدے کښې عقائد د اسلام وو۔ خاصکر د بعث بعد الموت دپاره ئے ډیر دلیلونه راجمع کړل۔
۲– پنځو مونځونو طرفته اشاره ذکر وه۔
۳– قرین ملائك او قرین شیطان تذکره پکښې راغله۔

ختم شو تفسیر د سورة ق په تاریخ ۲۹ جمادی الثانیه ۱۴۳۷ هـ موافق: ۷/۴/۲۰۱۶) صباح یوم الخمیس۔

Scanned by CamScanner

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِیۡمِ ط

| آیاتها (٦٠) | (٥١) **سورة الذاریات مکیة** (٦٧) | رکوعاتها (٣) |
| --- | --- | --- |

سورت ذاریات مکی دے او پدے کښې شپیته آیتونه او درے رکوع دی۔

## تفسیر سورة الذاریات

نوم: دا یو نوم ئے دے اَلذّٰرِیٰت، او دا د هواگانو صفت دے۔ د الله تعالیٰ د قدرت نخے پکښې ذکر دی۔

### مناسبت

١- هلته ئے وویل: کَذٰلِكَ الۡخُرُوۡج - نو دلته وائی (اِنَّ الدِّیۡنَ لَوَاقِعٌ) یعنی د قبرونو نه پاخیدل او بیا حساب ته وړاندے کیدل حق دی۔

٢- مخکښې ئے د انسان پیدائش ذکر کړو نو دلته د انسان د پیدائش مقصد او حکمت ذکر دے۔

٣- هلته ئے هم د آخرت د ورځے دپاره عملونه ذکر کړل، خشیت، اوّابیت، حفاظت، انابت نو دے سورت کښې بعض عملونه ذکر کیږی چه د هغے نه تعبیر په عبادت سره کوی۔

٤- هلته ئے وویل: وَسَبِّحۡ بِحَمۡدِ رَبِّكَ نو دلته وائی (فَفِرُّوۡا اِلَی اللّٰهِ) الله ته تیښته وکړئ په نیکو اعمالو کولو سره۔

### د سورت مقصد او موضوع

دا آخری سورتونه پدے خبره روان دی چه اے خلقو! رابیدار شئ او جزاء د اعمالو حقه

Scanned by CamScanner

ده، د هر عمل سزا او جزاء شته، او د الله تعالىٰ قانون د مجازات حق دے، رب العالمين داسے نۀ کوی چه بندگان دِے مهمل پریدی او هغوی دِے عملونه کوی او د هغوی جزاء او سزا دِے نۀ وی۔

نو ددے سورت مقصد او موضوع ظاهر دا ده چه اِثْبَاتُ يَوْمِ الْقِيٰمَةِ وَوُقُوْعُ الْجَزَاءِ عَلَى الْاَعْمَالِ۔ یعنی د قیامت د ورځے اثبات او په عملونو باندے به جزاء واقع کیږی۔

لکه دا خبره په ﴿ اِنَّمَا تُوْعَدُوْنَ لَصَادِقٌ وَاِنَّ الدِّيْنَ لَوَاقِعٌ ﴾ کښې ذکر ده۔ نو په اِنَّمَا تُوْعَدُوْنَ به دلائل راوړی او اِنَّ الدِّيْنَ لَوَاقِعٌ د الله قانون دے۔

نو هرکله چه په عملونو جزاء او سزا شته نو ددے وجه نه دا سورت به اعمال بنائی چه دا کول پکار دی، يو د هغے نه ﴿ اِنَّ الْمُتَّقِيْنَ فِيْ جَنّٰتٍ ﴾ دے، د متقیانو عملونه به ذکر کوی، او په آخر د سورت کښې ﴿ وَمَا خَلَقْتُ الْجِنَّ وَالْاِنْسَ اِلَّا لِيَعْبُدُوْنِ ﴾ کښې عبادت ذکر دے۔

او چه سزا پرے ملاویږی هغه انکار دے، خرص، افك، غفلت، عذاب په جلتئ سره غوختل او نور فسادونه دی لکه د قوم لوط واقعه ئے پدے سورت کښې مخکښې راوړیده۔ اسراف، تکبر، نور فسق او فجور ﴿ اِنَّهُمْ كَانُوْا قَوْمًا فٰسِقِيْنَ ﴾ شرك د الله سره، انکار د رسول نه، نو پدے سورت باندے جانب د سزا ډیر غالب دے چه الله تعالىٰ خپلو دشمنانو ته سزا ورکوی او که الله تعالىٰ په اعمالو جزاء او سزا ورنکړی نو هغۀ ته بد نسبت راځی او نظام د عالَم مُهمل (بیکاره) کیږی۔

نو ددے مقصد دپاره اول کښې څلور قسمونه ذکر کوی په طریقه د گواهئ سره۔ پدے قسمونو کښې به يو اثبات د آخرت او اثبات د سزا او جزاء کوی، بیا به د دوه ډلو تذکره کوی چه د سزا او جزاء مستحق څوك دی، د هغوی صفتونه به بیانوی۔

بیا په یوه رکوع کښې د دنیا عذابونه بیانوی، پدے کښې به اشاره وی چه په اعمالو باندے جزاء او سزا حقه ده تردے چه الله تعالىٰ په دنیا کښې واقع کړیده۔

پنځه واقعات به ددے دپاره راوړی۔ او پیغمبران او د هغوی ملگروته الله تعالىٰ څومره نیے بدلے ورکړے ځکه چه دوی کښې نیك اعمال وو۔

په دے سورت کښې الله تعالىٰ د رزق تذکره هم درے ځل کړیده۔ ﴿ وَفِى السَّمَاءِ رِزْقُكُمْ ﴾ او په واقعه د ابراهيم عليه السلام کښې، او بیا په آخر کښې ﴿ مَا اُرِيْدُ مِنْهُمْ مِنْ رِّزْقٍ ﴾ پدے کښې

Scanned by CamScanner

حکمت دا دے چه الله تعالیٰ دنیا کښې مخلوق ته رزق ورکوی د عمل دپاره چه سزا او جزاء به پدے مرتب کیږی، د رزق ذمه واری الله تعالیٰ اخستے ده او عملونه د انسان کار دے۔ که څوك د رزق شکر وکړی ښه جزاء ده، او که څوك د رزق ناشکری وکړی نو بده جزاء ده۔

| وَالذّٰرِيَاتِ ذَرْوًا ﴿۱﴾ فَالْحَامِلَاتِ |
|---|
| قسم دے په هغه هواګانو چه رالوزی په الوتلو۔ پس قسم دے په هغه وریځو چه |
| وِقْرًا ﴿۲﴾ فَالْجَارِيَاتِ يُسْرًا ﴿۳﴾ |
| اُوچتونکی دی بوج لره۔ پس قسم دے په هغه ستورو چه روان دی په آسانئ۔ |
| فَالْمُقَسِّمَاتِ أَمْرًا ﴿٤﴾ إِنَّمَا تُوعَدُونَ |
| پس قسم دے په هغه ملائکو چه تقسیمونکی دی کار لره۔ یقیناً هغه چه وعده ئے |
| لَصَادِقٌ ﴿٥﴾ وَإِنَّ الدِّينَ لَوَاقِعٌ ﴿٦﴾ |
| کیدیشی تاسو سره خامخا رشتینی دے۔ او یقیناً حساب خامخا واقع کیدونکے دے۔ |

**تفسیر**: اول کښې د عظمت دپاره الله تعالیٰ په څلورو څیزونو قسم کړیدے په طریقه د ګواهئ چه دا څیزونه ګواه دی چه قیامت راتلل، او دارنګه جزاء او سزا حقه ده۔

بیا دا څلور صفات دی چه موصوفات ئے حذف شویدی ځکه چه دا صفات مقصود دی، او دے دپاره چه ذهن د سامع هر طرف ته لاړ شی، او ډیرو څیزونو سره ولګی۔ (التحریر والتنویر)

نو ددے وجه نه دے کښې یو قول د علی بن ابی طالب او ابن عباس رضی الله عنهم نه نقل دے، ابن جریرؒ، ابن ابی حاتمؒ، حاکمؒ او بیهقیؒ وغیره د علی بن ابی طالب ﷺ نه روایت کړے چه هغهٔ د کوفے په مسجد کښې خطبه ورکوله، نو ابن الکواء نومے کس د هغهٔ نه ددے سورت د څلورو اولنو آیتونو معنیٰ اوتپوسله۔ هغهٔ وویل چه د ﴿وَالذّٰرِيَاتِ ذَرْوًا﴾ نه مراد تیزے هواګانے دی چه خاوره اوچتوی، او د ﴿فَالْحَامِلَاتِ وِقْرًا﴾ نه مراد وریځے دی، چه د باران اوبهٔ ئے بار کړے وی او ګرځی، او د ﴿فَالْجَارِيَاتِ يُسْرًا﴾ نه مراد کشتئ دی چه هغه په سمندرونو کښې د هواء په ذریعه نرم رفتار سره روانے وی، او د ﴿فَالْمُقَسِّمَاتِ

Scanned by CamScanner

أَمْرًا﴾ نه مراد ملائك دي چه د الله تعالیٰ د حکم مطابق د هغهٔ د مخلوقاتو ترمینځه باران، روزي اونور د ژوندگئ اسباب تقسیموي. (الحاکم ٣٧٣٦ وصحح اسناده هو والذهبیؒ وقال الحافظؒ فی فتح الباري ٤٦٤/٨ هو مشهور عن علي ﷺ)

پدې کښې شیخ الاسلام ابن تیمیةؒ وئیلي دي چه دا د مختلفو ځیزونو صفات دي، خو جاریات صفت د ستورو دے ځکه دلته ترقي ده د دنیا نه بره آسمان ته، هواء په زمکه ده، بره وریځې دي، او بیا د هغې نه بره ستورې دي نو د هغې نه بره ملائك دي.

وَالذَّارِيَاتِ: د ذَرْوٌ نه دے، آلوزولو ته وئیلے شي، ذرواً: ئې مفعول مطلق دے.

فَالْحَامِلَاتِ: فاء د ترتیب دپاره ده په قسم کښې نهٔ په مقسم به کښې.

وِقْرًا: مفعول به دے، یعني بوج د باران.

يُسْرًا: دا مفعول مطلق دے، موصوف ئې پټ دے. اَیُ جَرْيًا يُسْرًا. یعني په روانیدو آسانو سره.

أَمْرًا: امر دلته جنس دے یعني هر کار. یا مفرد ئې پدې وجه راوړو چه هر جماعت جدا جدا کار کوي، ځوك یو کار کوي او ځوك بل. او دغه شان وجه په وِقْراً کښې هم ده.

(٢) دویم قول دا دے چه [الذَّارِيَاتِ، الْحَامِلَاتِ، الْجَارِيَاتِ، الْمُقَسِّمَاتِ]

ددې موصوفات ټولې هواګانې دي. یعني دا څلور واړه صفتونه د هواګانو دي.

یعني هواء ګرد او غبار راپورته کوي او آلوزوي ئې، یا هواګانې د وریځې ټکړې راجدا کوي، او بیا ئې خوروي نو دے ته ئې ذرو وئیلے ده ځکه چه د ذرو معنیٰ ده د راغونډ شوي ځیزونو په هوا کښې ویشتل دے دپاره چه په زمکه باندې راپرېوزي. لکه په پټي کښې دانې ویشتل د کرونده دپاره. او بعض هواګانې وریځې رایو ځای کوي تر دې چه هغه د اُوبو د بوج نه ډکې شي بیا ئې یو ځای نه بل ځای ته نقل کوي. او ځینې په نرمئ سره روانې وي او ځینې سختې وي، او بعض هواګانې بارانونه تقسیموي.

امام شوکانيؒ لیکي چه دا رائې ډیره زیاته کمزورې ده.

بناء پدې تفسیر به مناسبت دا وي چه هواء کښې اول نفخ وي، بیا په کښې التئام وي، یعني هواء وریځې رایوځای کړي، بیا په هغې کښې حیات پیدا کړي نو هغه روانې شي بیا هغه رزقونه او بارانونه تقسیموي. نو دا به د آخرت دپاره مثال وي چه اول نفخ في الصور وي، بیا به اِلْتِئَامُ الْاَعْضَاءِ (اندامونه یو ځای کیدل) به وشي بیا به پکښې حیات پیدا

Scanned by CamScanner

شي، او آخرت ته به راروان شي او د حیات نه بعد به د هغوی سزا او جزاء کیږي. نو د هواء د حالاتو مشابهت دے د قیامت د حالاتو سره.

إِنَّمَا تُوعَدُونَ: دا جواب د قسم دے. مناسبت د قسم او جواب قسم دا دے چه دنیا کښ تغیر الاحوال کیږي، هواګانے رالوزي او وریځے رالوزي، کشتئ روانے دي، ملائك قسماقسم کارونه کوي، حالات بدلوي رابدلوي، تکلیف او راحت راځي، نو دا تغیر الاحوال دلالت کوي په اثبات د ورځے د آخرت. یعني لکه څنګه چه دنیا کښ الله تعالیٰ تغیرات راولي نو دغه شان د قیامت په وخت به الله تعالیٰ په دنیا باندے ډیر لوی تغیر او بدلون راولي، او دا نظام به په بل نظام باندے بدل کړي.

لکه قرآن کښ دا قسم استدلال زیات دے ﴿وَمَنْ نُعَمِّرْهُ نُنَكِّسْهُ فِي الْخَلْقِ﴾ لکه انسان نۀ وو بیا پیدا شو بیا بوډا شو نو بیا پرے مرګ راغے نو دغه شان به بیرته راپورته کولے شي.

دارنګه دا په جزاء او سزا باندے دلیل دے چه دا ناشنا نظام چه الله تعالیٰ روان کړیدے دا ددے دپاره چه بندګانو سره به حساب کیږي او هغوی ته به جزاء او سزا به ورکوی، دا نظام خو مهمل (بیکاره) نۀ دے.

وَإِنَّ الدِّينَ لَوَاقِعٌ: دین سزا او جزاء ته وائي. دَانَ يَدِينُ معنیٰ ده چا ته په عمل باندے بدله ورکول. په دنیا کښ هم د هر نیك او بد عمل جزاء او سزا شته، لیکن دنیا کښ دیره نۀ ښکاره کیږي، او په آخرت کښ به راښکاره شي.

| وَالسَّمَاءِ ذَاتِ الْحُبُكِ ﴿٧﴾ إِنَّكُمْ لَفِي قَوْلٍ |
|---|
| او قسم دے په هغه آسمان باندے چه خاوند دښائست دے. یقیناً خامخا تاسو په خبرو |
| مُخْتَلِفٍ ﴿٨﴾ يُؤْفَكُ عَنْهُ مَنْ أُفِكَ ﴿٩﴾ قُتِلَ |
| ګډوډو کښ یئ. اړولے کیږي ددے (خبرونه) هغه څوك چه اړولے شویدے. هلاك شول |
| الْخَرَّاصُونَ ﴿١٠﴾ الَّذِينَ هُمْ فِي غَمْرَةٍ |
| اټکل باندے خبرے کوونکي. (دروغژن خلق) هغه کسان دي چه دوی په جهالت کښ |

Scanned by CamScanner

| سَاهُوْنَ ﴿۱۱﴾ یَسْأَلُوْنَ أَیَّانَ یَوْمُ الدِّیْنِ ﴿۱۲﴾ یَوْمَ هُمْ عَلَی النَّارِ |
|---|
| غافل دی۔ تپوسونه کوی چه کله به وی ورځ د جزا۔ په هغه ورځ چه دوی به په اور |
| یُفْتَنُوْنَ ﴿۱۳﴾ ذُوْقُوْا فِتْنَتَکُمْ هٰذَا الَّذِیْ |
| باندے عذابولے شی۔ (سیزلے شی) اُوخکئ عذاب ستاسو دا هغه شے دے |
| کُنْتُمْ بِهٖ تَسْتَعْجِلُوْنَ ﴿۱٤﴾ |
| چه تاسو به دا په جلتئ سره غوختلو۔ |

**تفسیر**: مخکښ قسم وو دپاره د اثبات د جزاء، او دا عام قسم دے دپاره د باطلوالی د اقوالو د دوی په باره د آخرت او نورو ایمانیاتو کښ۔ (التحریر)

او دا یوه وجه ده د جدا کولو ددے قسم د مخکښ نه۔

❁ دویم دا جواب د وَهم دے چه څوك به ووائی چه جزاء او سزا واقع کیدل به یقینی نهٔ وی، هسے خبره به وی۔ نو الله تعالیٰ وفرمایل چه قسم دے په آسمان چه قیامت به راځی او ستاسو خبرے د هغے په باره کښ ګډے وډے دی۔

❁ دریم پدے قسم کښ تاکید د ماقبل دے مخکښ قسم وو په عالَم وسطی او سفلی باندے (سوئ د مقسّمات نه په یو تفسیر) او دا قسم دے په عالَم علوی (آسمان) باندے۔

ذَاتِ الْحُبُكِ: جمع د حَبِیْکَةٌ ده، لارے، مضبوطوالے، جمال ته وائی۔

ددے په تفسیر کښ ډیر اقوال دی: (۱) حافظ ابن کثیرؒ د [ذَاتِ الْحُبُكِ] تفسیر د ابن عباس رضی الله عنه نه [ذَاتِ الْجَمَالِ وَالْبَهَاءِ وَالْحُسْنِ وَالْاِسْتِوَاءِ] نقل کړے دے، او وئیلی ئے دی چه همدا قول د مجاهدؒ، عکرمهؒ، سعید بن جبیرؒ او قتادهؒ او نورو هم دے،

یعنی قسم دے په هغه آسمان چه ښائست او تازګئ او حسن والا او برابرئ والا دے۔ او په ستورو ښائسته شویدے۔

(۲) او ضحاكؒ وائی: [ ذَاتِ الطَّرَائِقِ ] یعنی په هغه آسمان قسَم دے چه په هغے کښ لهرونه، لارے او کربنے جوړے شوی دی، لکه څنګه چه د ملغلرو او سرو زرو سره ښائسته کړے شوے کپړه کښ کربنے جوړیږی۔ په آسمان کښ هم مختلفے لارے دی، د ستورو لارے، دروازے پکښ شته۔

Scanned by CamScanner

(۳) د حسن بصریؒ یو قول دے چه د [ ذَاتِ الْحُبُكِ] نه مراد ستوری دی، یعنی ستورو سره ښائسته شوی آسمان باندے قسَم دے۔

(٤) ذَاتِ الْبُنْيَانِ الْمُتْقَنِ۔ هغه آسمان چه مضبوطے آبادئ والا دے۔

(۵) حبك کله په معنیٰ د شدت (سختئ) سره راځی۔ (یعنی سختئ او کلك والی والا دے)

ددے ټولو اقوالو خلاصه صرف یو شے دے چه الله تعالیٰ په هغه آسمان باندے قسَم خوړلے چه هغه ډیر زیات قوی او ښائسته او ډولی او په ستورو سره ښائسته شوے دے۔

إِنَّكُمْ لَفِيْ قَوْلٍ مُّخْتَلِفٍ: (۱) بعض مفسرین وائی : د قول مختلف نه مراد د رسول الله ﷺ او د قرآن په باره کښې دے،

نو پدے قسم کښې د مکے والو قباحت او بدی بیانیږی چه اے د مکے کافرانو ! تاسو د قرآن کریم او د نبی کریم ﷺ په دشمنئ کښې په دومره اخلاقی ښکته والی کښې مبتلا شوی یئ چه څهٔ غواړئ زمونږ په نبی ﷺ باندے تهمتونه تړئ۔ کله ورته شاعر، کله جادوگر، او کله لیونے او پاگل وایئ، او د قرآن په باره کښې کله کهانت، کله سحر، کله اَضْغَاثُ اَحْلَام (گډوډ خوبونه)، کله اساطیر الاولین (د پخوانو قصے)، کله افتراء او کله دروغ وایئ۔

(۲) غوره دا ده چه دا اختلاف د آخرت په باره کښې دے، څوك وائی چه آخرت بیخی نهٔ راځی، یهودیان وائی چه قیامت به راځی خو صرف اَرْوَاح به پکښې راژوندی کیږی، نهٔ اجسام۔ کله وائی آخرت صرف زمونږ دپاره دے، نهٔ د بل چا دپاره۔ او د مؤمنانو عقیده دا ده چه قیامت ورځ د هر چا دپاره ده، او نیکانو ته به نیکه، او بدانو ته به بده بدله ملاویږی۔ مگر ټولو سره لگیدل ئے صحیح دی۔

## (۱) بیا د قسم او د جواب قسم مناسبت دا دے

چه لکه څرنگ چه د آسمان ډیرے لارے دی او په مختلفو پرقیدونکو ستورو او شغلو او کرخو باندے مشتمل دے، نو دغه شان ستاسو خبرے هم زمونږ د نبی او د قرآن او د قیامت په باره کښې متناقضے اوے بنیاده دی۔

(۲) مناسبت : د آسمان مضبوطوالے او خائست گواه دے چه ددے جوړونکے الله تعالیٰ

Scanned by CamScanner

دے، او هغه عالِم او قادر په هر شی باندے دے نو د هغه په خلاف کښې ستاسو خبرے باطلے او کږے وږے دی۔

(۳) یا لکه څنګه چه د آسمان ستوری مختلف دی، او د آسمان او د ستورو په باره کښې د خلقو اختلاف دے بغیر د دلیل نه، څوك وائی آسمان د اُوسپنے نه جوړ دے، او څوك وائی د تانبے نه، څوك وائی ستوری د فلانکی څیز نه جوړ دی، یا د فلانی څیز نه۔ څوك وائی فلانے ستورے سپیره دے، او فلانے نیك بخت دے، فلانے ستورے وژل کوی او فلانے ستورے باران وره وی۔دا ټولے بے دلیله خبرے دی۔ نو دارنګه ستاسو په بے دلیله اقوالو کښې هم اختلاف دے۔ (احسن الکلام)

(٤) یا آسمان چه خاوند د ستورو او د ښائست او جمال والا دے، دا دلالت کوی چه د هغه الله تعالیٰ خبره ومنلے شی او د آسمان د ښائست نه عبرت واخستے شی چه دا د یو مقصد دپاره پیدا دی مګر تاسو راولګیدئ ددے مقصد نه غافل او منکر شوئ، پدے باندے مو الله ونهٔ پیژندو۔

يُؤْفَكُ عَنْهُ: پدے جمله کښې مفسرینو ډیر اقوال ذکر کړیدی چه خبره ئے ګرانه کړیده، چا د مؤمن صفت جوړ کړیدے، او چا د کافر او د عَنْهُ ضمیر چا قرآن ته راجع کړیدے، او چا نبی ﷺ ته۔

(۱) اول د مؤمن صفت جوړ کړه۔ یعنی اړولے شی ددے قول مختلف نه هغه څوك چه د الله په رحم سره اړولے شوے وی۔ یعنی الله تعالیٰ ددے مختلفو خبرو نه مؤمن اړوی۔ هغه داسے خبرے نهٔ کوی او د آخرت ورځ منی۔

(۲) یا صفت د کافر دے، او عَنْهُ ضمیر نبی او قرآن ته راجع دے۔

یعنی اړولے شی د قرآن او ددے نبی نه هغه څوك چه اړولے شویدے په علم د الله تعالیٰ کښې۔ یعنی کافران الله تعالیٰ ګمراه کړیدی څکه دا نبی او قرآن نهٔ منی۔

(۳) مجاهدؒ داسے تفسیر کوی: [يُصْرَفُ بِسَبَبِ الْقَوْلِ الْمُخْتَلِفِ النَّاسُ عَنِ الْإِيْمَانِ]

یعنی په سبب ددے مختلفو خبرو خلق د ایمان نه اړولے کیږی۔ یعنی ستاسو پدے مختلف قول سره ډیر خلق د ایمان نه او د آخرت د منلو نه واوړیدل۔ (مَعالم التنزیل)

مګر ظاهره او ددے سیاق سره مناسبه دا ده چه دلته د کافرو بدی بیانوی څکه چه افك په لغت کښې د حق نه باطل ته او د رشتیاؤ نه دروغو ته او د جمیل نه قبیح ته اوړیدو ته

Scanned by CamScanner

وئیلے شی۔ او عَنۡهُ کښې ضمیر (اَلَّذِیۡنَ) ته راجع دے۔
او مطلب دا دے چه اړولے کیږی د قیامت د ورځے نه هغه څوك چه اړولے شویدے په علم او تقدیر د الله تعالیٰ کښې، یعنی د قیامت د ورځے نه هغه څوك اوړی چه څوك دروغجن وی۔ یعنی دروغجن انسان الله تعالیٰ د قیامت نه منکر کوی۔
قُتِلَ الۡخَرّٰصُوۡنَ: خراصون اټکل کونکو ته وئیلے شی، او ددے نه مراد د مکے کافران دی چه د دوئ انکار د قرآن او د نبی نه او د آخرت نه خالص په تش ګمان او اټکل باندے بناء وو، هیڅ دلیل ورسره نهٔ وو۔ پدے وجه الله تعالیٰ ورته ښیرے وکړے، یعنی لعنت دے وی په داسے اټکل کونکو دروغژنو باندے۔
د قتل نسبت چه کله الله تعالیٰ ته کیږی نو د هغے نه مراد لعنت وی، یعنی الله تعالیٰ دے ئے د خپل رحمت نه محروم کړی۔
اَلَّذِیۡنَ هُمۡ فِیۡ: د دوئ د جهالت او نادانئ حالت دادے چه کوم قرآن دوئ لپاره د دنیا او آخرت ښیګړه راوړے ده، ددے نه بیخی غافله، په خپلو بدنی خوندونو او شهوتونو پوره کولو کښې ډوب دی، او که چرے کله د قیامت په باره کښې پوښتنه هم کوی نو په نبی کریم ﷺ پورے د ټوقو کولو دپاره۔
غَمۡرَةٍ: د غمرے نه مراد غفلت او ړوندوالے او جهالت دے د امورو د آخرت نه۔
ابن عباس ﷛ وائی: دلته د غمرے نه کفر او شرك دے۔
سَاهُوۡنَ: یعنی غافل دی په خواهشاتو خپلو، /خطائی کونکی دی۔
یَسۡـَٔلُوۡنَ: دا تپوس د دوئ په طریقه د ټوقو او انکار دے۔ یعنی نشته۔
یَوۡمَ: دا جواب دے په طریقه د اسلوب الحکیم سره، یعنی دا ورځ به راځی خو دا به ستا د عذاب ورځ وی۔
یُفۡتَنُوۡنَ: اَیۡ یُحۡرَقُوۡنَ وَیُعَذَّبُوۡنَ۔ یعنی وبه سیزلے شی او عذاب به ورکړے شی۔ فتنه اصل کښې جو هر ویلے کول دی دے دپاره چه د هغے غش (ګندګی) راښکاره شی۔
فِتۡنَتَکُمۡ: یعنی عذاب خپل۔ فتنه کښې معنیٰ د تکلیف پرته ده۔
هٰذَا الَّذِیۡ: یعنی قیامت په جلتئ سره غوختل خو عذاب په جلتئ سره غوښتل دی۔

Scanned by CamScanner

| |
|---|
| إِنَّ الْمُتَّقِينَ فِي جَنَّاتٍ وَّعُيُونٍ ﴿۱۵﴾ آخِذِينَ مَا |
| یقیناً متقیان به په جنتونو او چینو کښې وی۔ اخستونکی به وی هغه څه |
| آتَاهُمْ رَبُّهُمْ إِنَّهُمْ كَانُوا قَبْلَ ذٰلِكَ مُحْسِنِينَ ﴿۱۶﴾ |
| چه ورکوی ئے دوی ته رب د دوی، یقینا دوی وو مخکښې ددے نه نیکی کونکی۔ |
| كَانُوا قَلِيلًا مِّنَ اللَّيْلِ مَا يَهْجَعُونَ ﴿۱۷﴾ وَبِالْأَسْحَارِ هُمْ |
| وو دوی چه لږ شان د شپے نه به اُوده کیدل۔ او په وخت د پیشمنی کښې دوی بخنه |
| يَسْتَغْفِرُونَ ﴿۱۸﴾ وَفِي أَمْوَالِهِمْ حَقٌّ لِّلسَّائِلِ وَالْمَحْرُومِ ﴿۱۹﴾ |
| غواړی۔ او په مالونو د دوی کښې حق وو دپاره د سوال کونکی او محروم (سوال نهٔ |
| وَفِي الْأَرْضِ آيَاتٌ لِّلْمُوقِنِينَ ﴿۲۰﴾ وَفِي أَنفُسِكُمْ |
| کونکی)۔ او په زمکه کښې نخے دی دپاره د یقین کونکو۔ او په نفسونو ستاسو کښې |
| أَفَلَا تُبْصِرُونَ ﴿۲۱﴾ وَفِي السَّمَاءِ رِزْقُكُمْ وَمَا |
| (هم) آیا نو نهٔ گورئ تاسو۔ او په آسمان کښې رزق ستاسو دے او هغه څیز دے |
| تُوعَدُونَ ﴿۲۲﴾ فَوَرَبِّ السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ |
| چه تاسو سره ئے وعده کیدیشی۔ پس قسم دے په رب د آسمان او د زمکه |
| إِنَّهُ لَحَقٌّ مِّثْلَ مَا أَنَّكُمْ تَنطِقُونَ ﴿۲۳﴾ |
| چه یقیناً دا (قیامت) حق دے پشان د هغے چه تاسو خبرے کوئ۔ |

**تفسیر**: د قرآن کریم د عامے قاعدے مطابق ترهیب (ویرولو) نه پس ترغیب، او د جهنمیانو د بدترین انجام بیانولو نه پس اُوس د جنت او د جنتیانو ذکر کیږی۔

الله تعالیٰ وفرمایل چه د هغهٔ نه یریدونکی به د داسے باغونو او چینو ترمینځه وی چه د هغے خوبی په الفاظو کښې نشی بیانیدلے۔ د دوئ رب به دوئ ته خپل بخششونه او انعامونه په دے وجه ورکوی چه دوئ په خپل دنیا والا ژوند کښې ډیر ښهٔ خلق وو، د خپل

Scanned by CamScanner

رب د حکمونو پابندی به ئے کوله، او د منع شوو کارونو نه به ئے ځان ساته، د شپے به کم اُوده کیدل، یعنی د شپے زیاتره برخه به ئے د تهجدو په مانځه کښې تیروله، او کله به چه د صبا په وخت پاسیدل نو د خوب د کموالی او د تهجدو د مانځه د زیاتوالی سره سره به دوئ ته احساس کیدلو چه لکه د دوئ گناهونه او جرمونه ډیر وی، دے وجے نه په توبه او استغفار کښې به لگیا شو، او په خپل مال کښې به ئے د غوښتونکو او نا غوښتونکو فقیرانو او محتاجانو حق گنړلو۔

آخِذِيْنَ مَا آتَاهُمْ رَبُّهُمْ : ۱- دا په جنت کښې مراد دے، یعنی دوئ به اخستونکی وی د هغه نعمتونه چه دوی ته ئے د دوئ رب ورکوی۔ آتَاهُمْ ماضی په معنیٰ د مضارع ده، او د تحقق الوقوع دپاره ماضی ذکر شوه۔ نو پدے کښې ددے نعمتونو کمال ته اشاره ده چه دا به داسے نعمتونه وی چه الله تعالیٰ ئے دوئ ته ورکوی نو دوی به ئے په خوشحالئ سره قبلوی، او د هغے نه به نفرت نکوی چه دا مے خوښ دے او دا نهٔ، بلکه هر یو نعمت به ورته مزیدار ښکاری او د هغے استقبال به کوی۔

او پدے کښې بله دا اشاره هم ده چه دوئ به وخت په وخت نوی نوی نعمتونه اخلی۔ ځکه چه آخذ اسم فاعل په تجدد او حدوث باندے دلالت کوی۔

او آخِذِيْنَ کښې بله اشاره ده چه دا نعمتونه څوك آخر ته نشی رسولے ځکه چه دا نهٔ ختمیدونکی دی، نو دا انسان پوره نشی راگیرولے چه ټول واخلی او نور ختم۔ ځکه چه د جنت نعمتونه نهٔ ختمیدونکی دی۔

۲- ابن جریر طبریؒ وائی چه دے کښې دا هم جائز ده چه دا ددے مؤمنانو په دنیا کښې صفت وی۔ یعنی دوئ په دنیا کښې رانیونکی وو او قبلونکی وو هغه دین او احکامو لره چه دوئ ته د دوئ رب ورکړی وو۔

دا تفسیر جائز دے لیکن دلته نهٔ دے مراد ځکه چه متقین نه معلومیږی چه دوئ په دین عمل کړیدے او روستو ﴿ اِنَّهُمْ كَانُوْا قَبْلَ ذٰلِكَ مُحْسِنِيْنَ ﴾ لفظ ذکر دے۔ نو بیا به په آیت کښې درے جملے یوه معنیٰ ورکړی، حال دا چه تاسیس د تاکید نه بهتر دے۔

قَبْلَ ذٰلِكَ: اَیْ قَبْلَ الْجَنَّةِ۔ یعنی دوئ جنت ته د راتللو نه مخکښې په دنیا کښې د الله او د مخلوق سره احسانات کول۔ كَانُوْا قَلِيْلًا ئے د الله سره احسان شو او (وَفِيْٓ اَمْوَالِهِمْ) کښې د مخلوق سره احسان ذکر دے۔

Scanned by CamScanner

كَانُوْا قَلِيْلًا مِّنَ اللَّيْلِ مَا يَهْجَعُوْنَ: هَجعه معمولی خوب ته وئیلے شی۔ او دلته ما مصدریه ده، او مَا يَهْجَعُوْنَ په تاویل د مصدر سره فاعل د قَلِيْلًا دے۔

اَیْ کَانُوْا قَلِيْلًا هُجُوْعُهُمْ بِاللَّيْلِ۔ یعنی د دوئ خوب د شپے کم وو۔ دا ظاهر تفسیر دے خو پدے باندے مفسرینو سوال کړیدے او بیا ئے نور دوه تفسیرونه کړیدی۔

**سوال** دا دے چه دا د کومو مؤمنانو صفت دے چه د هغوی د شپے عبادت زیات وی او خوب ئے کم وی، د صحابه کرامو هم داسے عادت نهٔ وو بلکه هغوی به صرف د تهجدو په وخت راپاخیدل او د هغوی نه خو لوی عابدان نشته۔ نو بیا هغوی وئیلی دی چه دلته ما نافیه ده، او معنیٰ دا ده چه وو دوی د شپے نه په لږه حصه کښې به ئے خوب نهٔ کولو بلکه خوب به ئے ډیر وو او عبادت به ئے کم وو۔ لیکن پدے معنیٰ کښې پوره صفت نهٔ راځی چه د دوئ خوب به زیات وو او عبادت کم۔

(۳) عبد الله بن عباس ﷺ پکښې داسے تفسیر کړیدے چه قَلِيْلًا صفت د لَيَالِيُ دے او تقدیر داسے دے: قَلَّ لَيْلَةٍ تَأْتِيْ عَلَيْهِمْ فِيْهَا يَنَامُوْنَ اِلَّا وَهُمْ يُصَلُّوْنَ۔

یعنی ډیره کمه به داسے شپه په دوی راتلله چه دوی به پکښې اُوده پاتے شو مګر په عامو شپو کښې به ئے مونځ کولو۔ یعنی دا به ډیرے کمے شپے وی چه دوی به پکښې مونځ نهٔ وی کړے د مرض یا د سفر د وجه نه، نور به ئے په عامو شپو کښې تهجد کولو۔ دا هم ښه تفسیر دے لیکن یو مصداق دے۔

لیکن اوله معنیٰ غوره ده، او د اشکال جواب دا دے چه همدا دلته د متقیانو مؤمنانو صفت ذکر دے، او د هغوی د شپے خوب کم او عبادت زیات وی۔ او هغه پدے طریقه چه شپه د ماښام نه شروع کیږی، او په اشراق باندے ختمیږی،

نو د کاملو متقیانو طریقه دا ده چه ماښام مونځ کوی، بیا د هغے نه روستو نوافل کوی، اذکار پوره کوی، بیا د ماسخوتن مونځ کوی، بیا اذکار کوی، بیا چه کله اُوده شی نو د شپے په نیمه یا آخری حصه کښې راپاخیږی نو تهجد وکړی او بیا ذکر اذکار او تسبیحات وائی بیا سهار مانځه ته لاړ شی بیا تر اشراق پورے ذکر اذکار کښې مشغول شی، کله د اشراق مونځ وکړی او کله نهٔ۔ نو پدے طریقه عبادت زیات شو د خوب نه۔

دا خو د صحابه کرامو زمانه وه چه په عبادتونو باندے ئے اوقات روښانه وو، زمونږ په زمانه کښې خو فرض مونځ ته څوك لس مینټه نشی ورکولے پاتے لا نور عبادتونه۔

Scanned by CamScanner

وَبِالْأَسْحَارِ هُمْ يَسْتَغْفِرُونَ: اسحار، چربانګ وخت او د تهجدو وخت ته وئیلے شي۔ ددے استغفار غوښتو مطلب دا نۀ وي چه دوي ګناه وکړه او د هغے نه بخنه غواړي، صحيح ده، انسان نه ګناه کيږي، د هغے نه به هم بخنه غواړي ليکن دا استغفار د الله تعالیٰ د حق د وجه نه غوښتلے شي چه بنده د الله پوره حق نشي ادا کولے نو د هغۀ نه د خپل تقصير بخنه غواړي۔

وَفِي أَمْوَالِهِمْ حَقٌّ لِّلسَّائِلِ وَالْمَحْرُومِ: (۱) قتادة او زهريؒ وائي: د (سائل) نه مراد هغه محتاج دے چه لاس خورولو سره غوښتل کوي، او د (محروم) نه مراد هغه دے چه هيچا ته خپل حاجت نۀ بيانوي، دے وجے نه خلق دے مالدار ګنړي، او هيڅ هم نۀ ورکوي۔ (۲) دارنګه محروم هغه شخص دے چه په هغۀ باندے مصيبت راغلے وي، ميوه جات يا فصل يا ګلے بزے ئے هلاکے شوے وي۔ (زيد بن اسلمؒ)

(۳) يا محروم: اَلَّذِيْ لَا يَكْتَسِبُ) چه کاروبار نشي کولے۔

(٤) يا اَلْمُحَارِفُ الَّذِيْ لَا يَكَادُ يَتَيَسَّرُ لَهٗ مَكْسِبُهٗ ۔ محروم هغه کاروباري شخص دے چه د کاروبار ځاي او کاروبار ورته نۀ ملاويږي، او دياړي او مزدوري ئے نۀ لګيږي، او خرچه او اخراجات ئے زيات وي۔

ابن ابی حاتمؒ د ابن عباس ﷺ نه روايت کړے چه متقيان خلق د فرض زکاة اداء کولو نه پس هم په خپل مال کښ د محتاج او محروم مسلمانانو حق ګنړي، صله رحمي کوي، ميلمستيا ورکوي، او د پريشان حالو خلقو ضرورت پوره کوي۔ يعني دا ځانله د زکاة پورے خاص نۀ دے۔

بيا سائل ته به ولے ورکړه کوي؟ نو ځکه چه د الله تعالیٰ نوم ئے اخستے دے، او هغۀ په تا ښه ګمان کړے او تا ته ئے عاجزي کړيده، ددے لحاظ وکړه۔

بيا سائل ئے مخکښ ذکر کړو ځکه چه هغه له حق ورکول آسان دي ځکه چه هغه خپل حاجت ښکاره کوي، هر سړے پرے پو هيږي، او محروم باندے هوښيار انسان پو هيږي نو اشاره ده چه ځان کښ هوښيارتيا پيدا کړه۔

وَفِي الْأَرْضِ: اُوس د اثبات د بعث بعد الموت دپاره، او دارنګه د توحيد دپاره دليلونه بيانوي۔ او پدے کښ اشاره ده چه متقيانو ته چه دغه کمالات حاصل شويدي، نو دا پدے وجه چه دوئ د کائناتو نه فائده اخستے ده، ددے په دليلونو کښ ئے فکر او سوچ

Scanned by CamScanner

کریدے نو توحید ئے قبول کرے او آخرت ئے منلے دے۔ نو الله پدے کښې نورو خلقو ته دعوت ورکوی چه پدے دلائلو کښې سوچ کولو سره یقین وکړئ۔

او پدے کښې رټنه ده د مکے کافرانو ته چه دوئ په دلیلونو او براهینو کښې فکر نهٔ کوی بلکه خالص ګمان او اټکل نه کار اخلی حال دا چه که په آسمٰان او زمکه کښې په خورو نښنو کښې ئے غور کولے، نو ایمان او یقین ته به رسیدلی وے۔

د الله په پیدا کړے زمکه کښې ډیرے نښے دی، که چرے انسان په دے کښې د فکر او تدبر نه کار واخلی نو هغه به د ایمان او یقین په دولت باندے مالداره شی۔

دا غرونه، دا نهرونه، دا پټی، رنګ په رنګ ګلان او میوے، قِسما قِسم خلق او مختلف قِسمه څناور او حیوانات، او نور تمام څیزونه چه په زمکه کښې موندے کیږی، د کائناتو د خالق په وجود او د هغهٔ په وحدانیت باندے علم ورکوی، لیکن ددے نښے نه په حقیقت کښې هغه خلق فائده پورته کوی چه هغوئ په الله تعالیٰ یقین لری، دا خلق چه کله په کائناتو کښې خورو ورو نښنو کښې غور کوی، نو د دوئ ایمان زیاتیږی او د عمل په باب کښې د نورو نه وړاندے والے کوی۔

آیاتٌ: اَیْ عَلٰی قُدْرَةِ اللّٰهِ وَ کَمَالِهٖ وَحِکْمَتِهٖ ۔ یعنی دا نخے دی په قدرت د الله تعالیٰ او د هغهٔ په کمال او حکمت باندے، نو دغه دلیلونه د توحید او د اثبات د آخرت دپاره هم دی۔

وَفِیْٓ اَنْفُسِکُمْ: بعض علماء وائی چه په نفس کښې پنځه زره حکمتونه دی، لیکن دا هم کم دی، په هر اندام کښې په زرګونو حکمتونه دی۔ چه چا علم طب لوستلے وی هغه څه نا څه پو هه لری۔ په هر اندام کښې الله تعالیٰ درے قوتونه اچولی دی، قوتِ ماسکه، قوتِ جاذبه او قوت دافعه۔ په لاس وغیره کښې ئے حس اچولے دے، په پوزه کښې ئے قوت شامه دے، او په ژبه کښې ئے قوتِ ذائقه اچولے، که ذائقه نهٔ وے نو هیڅ خوراك به خوند نهٔ کولے، نوکونه او ویښتے غټیږی او غاښونه نهٔ غټیږی، ددے په حکمت کښې فکر وکړه، دغه شان نور واخله۔ د زنانه او سړی جدا جدا ساخت ئے جوړ کړیدے چه یو بل ته ئے توجه پیدا کیږی۔

د انسان د پیدائش طریقو ته وګوره، د انسانانو مختلف قسم رنګونه، ژبے او عقلونه پدے کښې بیشماره نخے دی۔

Scanned by CamScanner

وَفِي السَّمَاءِ رِزْقُكُمْ : الله تعالیٰ باران د بره نه نازلوی چه د هغې نه رزقونه راپیدا کیږی، دارنګه الله تعالیٰ رزقونه د بره نه مقرر کړیدی۔
وَمَا تُوعَدُونَ : نه مراد جنتونه دی چه دا هم آسمان کښې دی۔ (ابن عباس ﷺ) او دے کښې د قیامت ورځ هم مراد ده چه دا هم د بره نه فیصله کیږی۔ او دے نه هر خیر او شر هم مراد دے چه دا په آسمان کښې تقدیر کړے شویدے۔ (کلبیؒ)
إِنَّهُ لَحَقٌّ: دا ضمیر مخکنو خبرونو د قیامت او آیات ته راجع دے۔
مِثْلَ مَا أَنَّكُمْ تَنْطِقُونَ : یعنی لکه څرنګ چه ستاسو خبرے کول حق دی، او ستاسو پدے کښې شك نشته چه دا الفاظ ستاسو د خولے نه راوتی دی، نو دغه شان به قیامت یقینی راځی۔ او دا د عربو د وینا مطابق راغلے دے چه هغوی وائی :
[هٰذَا الْكَلَامُ حَقٌّ مِثْلَ مَا أَنَّكَ تَنْطِقُ] دا خبره حق ده لکه څرنګ چه ته خبرے کوے۔

| هَلْ أَتَاكَ حَدِيثُ ضَيْفِ إِبْرَاهِيمَ الْمُكْرَمِينَ ﴿٢٤﴾ إِذْ |
|---|
| یقیناً راغلے دے تا ته خبر د میلمنو د ابراهیم (علیه السلام) چه عزتمند وو۔ کله چه |
| دَخَلُوا عَلَيْهِ فَقَالُوا سَلَامًا قَالَ |
| داخل شو دوی په هغهٔ باندے نو اُووئیل دوی، سلام کوو مونږ. اُووئیل هغهٔ |
| سَلَامٌ قَوْمٌ مُنْكَرُونَ ﴿٢٥﴾ فَرَاغَ إِلَىٰ أَهْلِهِ فَجَاءَ بِعِجْلٍ |
| (په تاسو دِے) سلام وی، قوم ناشنا دی۔ نو پټ لاړو اهل خپل ته نو راتے ورو یو سخے |
| سَمِينٍ ﴿٢٦﴾ فَقَرَّبَهُ إِلَيْهِمْ قَالَ أَلَا تَأْكُلُونَ ﴿٢٧﴾ |
| چاق (وریت کړے شوے)۔ نو نزدے ئے کړو هغه دوی ته ورته ئے اُووئیل آیا نهٔ خورئ |
| فَأَوْجَسَ مِنْهُمْ خِيفَةً قَالُوا لَا تَخَفْ وَبَشَّرُوهُ |
| تاسو۔ نو پټه ئے کړه د هغوی نه یره (په زړه کښې) ووئیل هغوی مهٔ یریږه، او زیرے ئے |
| بِغُلَامٍ عَلِيمٍ ﴿٢٨﴾ فَأَقْبَلَتِ امْرَأَتُهُ فِي صَرَّةٍ |
| ورکړو هغهٔ ته په هلك پوهه سره۔ نو رامخامخ شوه ښځه د هغهٔ په چغه کښې |

Scanned by CamScanner

فَصَكَّتْ وَجْهَهَا وَقَالَتْ عَجُوزٌ عَقِيمٌ ﴿۲۹﴾ قَالُوا كَذٰلِكِ

نو وې وهلو مخ خپل او وې وئیل زهٔ بوډۍ یم شنډه. اُووئیل دوی دغسې به ئې تهٔ،

قَالَ رَبُّكِ إِنَّهُ هُوَ الْحَكِيمُ الْعَلِيمُ ﴿۳۰﴾

وئیلی دی رب ستا یقیناً هغه حکمتونو والا پوهه دې.

**تفسیر:** پدې رکوع کښې تخویفات دي.

## مناسبت دا دې

چه اَلدِّيْنُ وَاقِعٌ حَتّٰی فِی الدُّنْيَا ـ جزاء او سزا واقع کیدو کے ده تردې چه په دنیا کښې هم واقع شویده، وګورئ ابراهیم ؑ ته الله تعالیٰ د هغهٔ د نیك عملیٔ د وجه نه د زوی زیرې ورکړیدې، او لوط ؑ ئې بچ کړیدې د وجه د ایمان او د اسلام نه. ﴿فَمَا وَجَدْنَا فِيهَا غَيْرَ بَيْتٍ مِنَ الْمُسْلِمِينَ﴾ او په اشاراتو کښې ئې عملونه ذکر کړیدي. او بل طرفته فرعونیان او عادیان او ثمودیان او قوم لوط د بدو اعمالو د وجه نه دنیا کښې هلاك شول. دا یوه طریقه د استدلال شوه.

(۲) بله طریقه د استدلال: هٰذَا اِسْتِدْلَالٌ عَلَی الْبَعْثِ.

دا دلیل دې په بعث بعد الموت باندې چه دا خلق د بعث نه منکرین وو، پخوانو چه کله د آخرت نه انکار وکړو، نو الله ورته په دنیا کښې عذاب ورکړو، نو دا دلیل دې چه آخرت حق دې، که حق نهٔ وې نو دوی ته به ئې عذاب نهٔ ورکولے.

(۳) بل پکښې تخویف غرض دې چه که تاسو انکار کوئ نو الله به عذابونه درکړي.

(٤) بل د الله تعالیٰ دوه صفتونه دي، رحم کوی په هغه چا چه په هغه کښې د رحم اهلیت وي، او غضب کوی په چا چه په هغهٔ کښې د هغې اهلیت وي. او دا په انسان کښې په نیك اعمالو او بدو اعمالو پیدا کیږي.

او بیا دا صرف واقعات نهٔ دي بلکه پدې کښې ډیر احکام، حکمتونه او رازونه او اشارات او آداب ذکر دي. لکه په واقعه د ابراهیم ؑ کښې د میلمستیا آداب ذکر دي.

**هَلْ:** د استفهام کلمې (هَلْ) نه ئې د قصې شروع وکړه، پدې کښې اشاره ده چه رسول الله ﷺ ته ددې واقعې د مخکښې نه خبر نهٔ وو. د وحی په ذریعه الله تعالیٰ خبر کړو. او د

Scanned by CamScanner

تپوس مقصد د مخاطب متوجه کول دی، او پدے متوجه کولو کښې مقصد تسلی ده رسول الله ﷺ ته چه الله به تا سره داسے احسانات کوی لکه چه ابراهیم علیه السلام سره ئے کړیدی. دارنګه په هَلْ سره راوړو کښې تفخیم (لوی والے د شان) د قصے دے.

بعض وائی: چه هَلْ په معنیٰ د قَدْ دے.

إِذْ دَخَلُوا: یعنی ملائك راغلل چه د هغوئ د الله تعالیٰ په نیز لوی مقام وو، کله چه هغوئ ابراهیم علیه السلام خواته اُورسیدل نو هغوئ سلام وکړو، ابراهیم علیه السلام د دوئ د سلام جواب ورکړو، او وے وئیل چه زهٔ تاسو نهٔ پیژنم، خپل تعارف وکړئ دے دپاره چه معلومه شی چه تاسو څوك ئے.

د ابتدائی تعارف نه پس ابراهیم علیه السلام فوراً میلمنو ته د ښودلو نه په غیر خپل کور والو ته ورغے، دے دپاره چه د دوئ د میلمستیا انتظام وکړی، او لکه څنګه چه د سورتِ هود په (٦٩) آیت کښې راغلی: ﴿ بِعِجْلٍ حَنِيذٍ ﴾ (یو وریت کړے سخے ئے د دوئ مخے ته راوړو) او هغه ئے میلمنو ته رانزدے کړو، لیکن هغوئ د خوراك لپاره لاس اوږدهٔ نهٔ کړل، نو هغوئ نه ئے پوښتنه وکړه چه تاسو خوراك ولے نهٔ کوئ، او په زړهٔ کښې اوېریدهٔ چه هسے نه ددے خلقو نیت زمونږ په باره کښې ښهٔ نهٔ وی، څکه زمونږ خوراك نهٔ خوری، لکه د سورتِ هود په (٧٠) آیت کښې راغلی:

﴿ فَلَمَّا رَاٰی اَیْدِیَهُمْ لَا تَصِلُ اِلَیْهِ نَکِرَهُمْ وَاَوْجَسَ مِنْهُمْ خِیْفَةً ﴾ (کله چه ابراهیم ولیدل چه د هغوئ لاسونه خوراك طرفته نهٔ رسیږی، نو د هغوئ نه ئے ناشنا والے محسوس کړو او دننه دننه د دوئ نه اوېریدهٔ).

کله چه دغه ملائکو اولیدل چه ابراهیم علیه السلام په زړه کښې یره پټه کړه او د کوم شر نه اوېریدهٔ، نو هغهٔ له ئے د خپل حقیقت خبردارے ورکړو، او د یو هلك پیدا کیدو زیرے ئے ورته ورکړو چه هغه به غټیږی، او د علم او فضل خاوند به جوړیږی.

د جمهورو اهلِ علمو په نیز ددے هلك نه مراد اسحاق علیه السلام دے، لکه د سورتِ هود په (٧١) آیت کښې ددے ډاګیزه الفاظ دادی: ﴿ فَبَشَّرْنَاهَا بِاِسْحَاقَ ﴾ (مونږ سارے علیها السلام له د اسحاق زیرے ورکړو).

او د سورتِ صافات په (١١٢) آیت کښې راغلی: ﴿ وَبَشَّرْنَاهُ بِاِسْحَاقَ ﴾ (مونږ ابراهیم له د اسحاق زیرے ورکړو). سارے علیها السلام (چه بو دئ شوے وه) چه کله دا خبره

Scanned by CamScanner

واوریده نو د ډیرے حیرانتیا نه د هغے د خُلے نه چغه اووتله، او خپل مخ وهل ئے شروع کرل، او وے وئیل چه زهٔ خو بوډئ یم او شنډه یم، زما بچے به څنګه کیږی؟! نو ملائکو ووئیل چه لکه څنګه چه مونږه تاته خبر درکړے دغسے الله فرمائیلی دی، دے وجے نه په دے باره کښې هیڅ شك مهٔ کوه، الله چه څهٔ غوښتلی دی هغه به کیږی (دغه وخت ساره د نهه نوی کالو او ابراهیم ﷺ د سلو کالو وو)

الله د آیت په آخره کښې وفرمایل چه هغه په خپلو اقوالو او افعالو کښې حکیم او د هر یو شئ علم لرونکے دے۔

## فوائد الالفاظ

الْمُكْرَمِيْنَ: یعنی ملائك د الله په نیز باندے عزتمند وو۔ لکه الله فرمائی: ﴿بَلْ عِبَادٌ مُّكْرَمُوْنَ﴾ (انبیاء: ٢٦)

فَقَالُوْا سَلَامًا قَالَ سَلَامٌ: په جواب د سلام کښې ئے جمله اسمیه راوړه، او د هغوی سلام په جمله فعلیه سره وو۔ (نُسَلِّمُ عَلَيْكَ سَلَامًا) مونږ ته تا ته سلام کوو۔ دهٔ ووئیل چه (په تاسو دے سلام وی) نو معلومه شوه چه د سلام په جواب کښې به ډیر تاکید کولے شی۔

قَوْمٌ مُّنْكَرُوْنَ: اَیْ هٰٓؤُلَآءِ قَوْمٌ مُّنْكَرُوْنَ۔ یعنی ځان سره ئے ووئیل چه دا خو ناشنا میلمانهٔ دی۔ او ناشنا والے پدے وجه وو چه شکلونه ئے ناشنا وو، او بغیر د اجازت نه راغلی وو، او سلام ئے وکړو او حال دا چه په هغه زمانه کښې عام خلق د ابراهیم ﷺ مخالف وو، هغوی به په هغهٔ باندے سلام هم نهٔ کولو نو ددے وجه نه ئے دوی باره کښې منکرون ووئیل۔ او د ابراهیم ﷺ سخاوت ته وګوره چه ناشنا میلمانهٔ دی بیا هم ورله ښه خوراك راوړی، څوك چه میلمانهٔ پیژنی نو غالباً د هغوی نه حیاء کوی خوراك ورکوی، او چه نهٔ ئے پیژنی او خوراك ورته راوړی نو دا کس د الله تعالیٰ نه حیاء کوی نو دا ډیر کمال دے۔

فَرَاغَ: یعنی راغے۔

## د میلمستیا آداب

بِعِجْلٍ سَمِيْنٍ: دے نه د طعام متعلق یو څو آداب معلوم شول یو دا چه د میلمه راتللو سره زر د خوراك پروګرام پکار دے، لکه دلته (فراغ) کښې فاء راوړو نه معلومه شوه۔

Scanned by CamScanner

دویم میلمه ته ښکاره کول نهٔ دی پکار چه زهٔ ستا دپاره د خوراك انتظام کوم، او څنګه خوراك به کوئ او که نهٔ؟ کیدے شی چه هغه د حیاء د وجه نه انکار وکړی.
دریم دا چه د میلمستیا په خوراك تیارولو کښ هم جلتی پکار ده. لکه (فَجَآءَ) کښ فاء راوړل پرے دلالت کوی. څلورم دا چه عمده او غوره خوراك د طاقت مناسب پکار دے، او داسے تکلف د وَس مناسب د میلمه دپاره سنت طریقه ده.
سَمِيْنٍ: یعنی څورب. او بله معنیٰ ئے ده وریت کړے شوے لکه په سورة هود (۶۹) آیت کښ (بِعِجْلٍ حَنِيْذٍ) وریت کړے شوے ذکر وو.
فَقَرَّبَهٗٓ اِلَيْهِمْ: دا پنځم ادب د میلمه دے چه طعام به میلمه ته نزدے کیخودے شی.
اَلَا تَاْكُلُوْنَ: اوم ادب دا دے چه میلمه ته په خوراك کولو سره وینا نهٔ ده پکار، دا د ادب خلاف ده بلکه هغوی ته به پیشکش کولے شی چه آیا تاسو خوراك نهٔ کوئ، ولے نهٔ خورئ.
فَاَوْجَسَ مِنْهُمْ خِيْفَةً: یعنی زړهٔ کښ ئے یره پټه کړه څکه چه د هغه زمانے د عادت مطابق به چه څوك د چا د قتل په اراده راغلی وو نو هغوی به ورکره خوراك نهٔ کولو.
سوال دا دے چه ملائکو ته څه پته ولګیده چه ابراهیم علیه السلام په زړه کښ یره پټه کړه؟ جواب دا دے چه په سورة حجر (۵۲) آیت کښ تیر شوی وو ﴿قَالَ اِنَّا مِنْكُمْ وَجِلُوْنَ﴾ ابراهیم علیه السلام ورته وفرمایل: مونږ تاسو نه یریږو. نو هغوی ورته وویل چه مهٔ یریږه.
دا دلیل دے چه انبیاء علیهم السلام باندے هم د بشریت د وجه نه د دنیاوی اسبابو او حالاتو مطابق یره راتللے شی، او دا د نبوت منافی نهٔ دی.
وَبَشَّرُوْهُ: نو دوه زیری ئے راوړل، یو په غلام علیم چه اسحاق علیه السلام دے.
او دا دلیل دے چه جزاء او سزا حقه ده، الله تعالیٰ بندګانو ته په دنیا کښ هم زیری ورکوی. نو ددے نه اثبات د آخرت هم معلومیږی چه بوډا سړی او بوډئ زنانه ته بچے ورکوی، نو الله به دغه شان انسانان هم د خاورے نه بیرته راپورته کړی.
فَاَقْبَلَتِ: نو زنانه خدمت ته ولاړه وه لکه د هغه زمانے د عادت مطابق (چه پرده هم نهٔ وه نازله) نو کله چه هغهٔ ته د بچی د پیدا کیدو زیرے ورکړے شو نو زنانه رامخامخ شوه په یوه چغه کښ چه اخ اُوس پدے عمر کښ به زما بچے پیدا کیږی؟!!.
صَرَّةٍ: ۱- اَیْ صَیْحَةٍ وَضَجَّةٍ. یعنی چغه او شور.

Scanned by CamScanner

۲- او صرة جماعت ته هم وائی۔ نو معنیٰ به دا وی چه د ملائکو په جماعت کښې رامخامخ شوه۔
۳- صرة کله شدت او سختیٔ ته هم وائی۔ یعنی په تیزیٔ او سختیٔ کښې رامخامخ شوه۔ ٤- عکرمة او قتادة وائی چه صرة اَلرَّنَّةُ وَالتَّاوُّهُ۔
یعنی په آواز او هوسیلی کښې رامخامخ شوه۔
او صرة په معنیٰ د کرکیٔ سره په هیڅ تفسیر کښې نشته۔ دا په لغت کښې نهٔ ده راغلې۔
عَجُوْزٌ: اَیْ اَنَا عَجُوْزٌ۔ یعنی زهٔ بو ډیٔ یم، شنډه شوې یم۔
عَقِيْمٌ: دې ته هم وائی چه د ابتداء نه ئې د اولادو صلاحیت ختم شوې وی، او دې ته هم وائی چه داسې عمر ته ورسیږی چه بنده عادةً د اولادو راوړو نه عاجز شی۔ او دلته همدا مطلب دې۔ ځکه چه هغې نه خو مخکښې اسماعیل ﷺ پیدا شوې وو۔
فَصَكَّتْ: نو مخ ئې په څپیړو ووهلو لکه د تعجب په وخت کښې د زنانو عادت دې۔
كَذٰلِكِ: اَیْ اٰتٍ كَذٰلِكِ۔ یعنی تهٔ به دغه شان ئې ځنګه چه مونږ تا ته ووېل۔
قَالَ رَبُّكِ: دا خبره ستا رب کړیده نو دې کښې به شك نکوې او نهٔ به ددې نه تعجب کوې۔
او دا په طریقه د قیاس هم وئیلې شی چه دا خبره ستا رب کړیده (صغری) او هر هغه شې چه ستا رب ئې ووائی نو هغه حق او رشتینی وی، (کبریٰ) نو دا خبره هم رشتینې ده۔ (نتیجه) نو دا د اِنَّمَا تُوْعَدُوْنَ لَصَادِقٌ سره متعلق شو۔

| قَالَ فَمَا خَطْبُكُمْ اَيُّهَا الْمُرْسَلُوْنَ ﴿۳۱﴾ قَالُوْا اِنَّا |
|---|
| اُووئیل دهٔ نو څه دې لوئی کار ستاسو اې رالیږلې شوو۔ اُووئیل هغوی یقیناً مونږ |
| اُرْسِلْنَا اِلٰى قَوْمٍ مُّجْرِمِيْنَ ﴿۳۲﴾ لِنُرْسِلَ عَلَيْهِمْ حِجَارَةً مِّنْ طِيْنٍ ﴿۳۳﴾ |
| رالیږلې شوی یو قوم مجرمانو ته۔ دې دپاره چه راولیږو په دوی باندې کاڼی د ختې نه |
| مُّسَوَّمَةً عِنْدَ رَبِّكَ لِلْمُسْرِفِيْنَ ﴿۳۴﴾ فَاَخْرَجْنَا |
| (جوړ شوی)۔ نشاندار دی په نیز د رب ستا دپاره د زیاتے کونکو۔ نو راوویستل مونږ |

Scanned by CamScanner

| مَنْ كَانَ فِيهَا مِنَ الْمُؤْمِنِينَ ﴿٣٥﴾ فَمَا وَجَدْنَا فِيهَا |
| --- |
| هغه څوك چه پدے (كلي) كښې وو د مؤمنانو نه. نو ونهٔ موندل مونږ پدے كښې |
| غَيْرَ بَيْتٍ مِّنَ الْمُسْلِمِينَ ﴿٣٦﴾ وَتَرَكْنَا فِيهَا آيَةً |
| سوئ د يو يے كوټے د مسلمانانو نه. او پريخوده مونږ پدے كښې نخه |
| لِّلَّذِينَ يَخَافُونَ الْعَذَابَ الْأَلِيمَ ﴿٣٧﴾ |
| دپاره د هغه كسانو چه يريږي د عذاب دردناك نه. |

**تفسیر** : ابراهيم عليه السلام ته شايد اندازه شوے وه چه ددے ملائكو د راتګ څهٔ بل مقصد هم دے ځکه يوائے د زيرى دپاره خو يو ملائك راليږل هم كافي دي، دے وجے نه كله چه د هغهٔ ويره ختمه شوه، او د خوى زيرے هم ملاو شو، نو د هغوئ نه ئے تپوس وكړو چه ستاسو د راتګ بل مقصد څهٔ دے؟ نو هغوئ ووئيل چه مونږ يو مجرم قوم (قومِ لوط) طرفته ليږلے شوي يو، دے دپاره چه مونږ په هغوئ باندے د تيكركو (د خاورو د سختو كانړو) باران وكړو چه د هغے نه په هريو كانړي باندے د يو يو مجرم نوم ستا د رب د طرفه ليكلے شوے دے. دا د مُسَوَّمَةً معنىٰ ده.

نو الله تعالىٰ لوط عليه السلام او د هغهٔ كور والو ته د دغه ځاى نه د وتلو حكم وكړو، دے دپاره چه دوئ د عذاب په ګيره كښې رانشى. وئيلے كيږى چه دوئ صرف درے كسان وو، لوط عليه السلام او ددهٔ دوه لونړه، او ددهٔ ښځه مسلمانه نهٔ وه دے وجے نه تباه كړے شوه. بعضِ وائى چه لوط عليه السلام او ددهٔ د دوه لونړو نه علاوه نور لس (١٠) مسلمانان هم وو.

دلته الله تعالىٰ د لوط عليه السلام واقعه د عاديانو او ثموديان نه مخكښې راوړه، يوئے د ابراهيم عليه السلام د قصے سره نزدے والے دے، او پدے كښې خوف او رجاء پيدا كول مقصود وي.

او بل مناسبت ئے د حال د قريشو سره زيات دے ځکه چه قوم لوط كښې هم اسراف او فساد زيات وو او په قريشو كښې هم وو.

فَأَخْرَجْنَا مَنْ : دلته ئے دے مسلمانانو ته مومنان هم ووئيل او مسلمانان هم. ځکه دا خلق مومنان هم وو په باطن كښې، او مسلمانان هم وو په ظاهره كښې. ځکه هر مومن مسلم وى، او هر مسلم مومن نهٔ وى، ځکه ممكنه ده چه دا په ظاهره كښې د اسلامى

Scanned by CamScanner

شعائرو پابندي کوي، ليکن په زړهٔ کښې پوخ مومن نهٔ وي.

نبي کريم ﷺ په بخاري او مسلم کښې د روايت شوي په يو مشهور حديث کښې د اسلام او ايمان دواړو تشريح کړې ده، فرمائي: (اسلام د ((لا اله الا الله)) کلمې ګواهي ورکولو، مونځ کولو، زکاة اداء کولو، د بيت الله حج او د رمضان روژې ته وئيلې کيږي.

او ايمان دادې چه په الله، د هغهٔ په ملائکو، د هغهٔ په کتابونو، د هغهٔ په رسولانو، او په ښهٔ او بد تقدير باندې ايمان اولرلې شي). (بخاري: ٥٠) مسلم: (١٠٦)

دې حديث نه د ايمان او اسلام ترمينځه فرق واضح کيږي. په قرآن کريم کښې ځينې ځاي اسلام او ايمان د يو بل په معنیٰ کښې لغوي اعتبار سره استعمال شوي دي، شرعي لحاظ سره په دواړو کښې هغه فرق دې کوم چه په ذکر شوي حديث کښې بيان شوې. بيا ددې آيت نه دا هم معلومه شوه چه نجات انسان ته په ايمان او اسلام سره ملاويږي، او عذاب به په مُسْرِف او مُفْسِد باندې نازليږي.

نو پدې يوه يوه جمله کښې دعوت دې.

وَتَرَكْنَا فِيهَا: يعني څوك چه د عذاب اليم نه چه د آخرت عذاب دې يريږي نو هغوي به ددې کلي نه لوي عبرت اخلي، او تاسو اې قريشو! پدې ورتيريږئ نو بيا ددې نه عبرت ولې نهٔ اخلئ.

آيَةً: الله تعالیٰ د قومِ لوط د هلاکت نښې نښانې په زمکه باندې باقي پريښودې، دې دپاره چه روستو راتلونکي قومونه کوم چه دغه ځائې تيريږي دغه نښې نښانې اووينې او عبرت حاصل کړي. چنانچه اُوس د دغه کلو په ځائې تورې بدبويه اوبهٔ بهيږي، چه هغې ته نن صبا ((بحرِ ميت)) وئيلې کيږي. بيشکه ددې نښو نښانو په ليدو سره هغه خلقو ته عبرت ملاويږي چه هغوئ د الله تعالیٰ د عذاب نه يريږي.

| وَفِيْ مُوسٰى إِذْ أَرْسَلْنَاهُ إِلٰى فِرْعَوْنَ بِسُلْطَانٍ |
|---|
| او (نخه) په واقعه موسیٰ عليه السلام کښې، کله چه اُوليږلو مونږ هغهٔ لره فرعون ته په دليل |
| مُّبِيْنٍ ﴿٣٨﴾ فَتَوَلّٰى بِرُكْنِهٖ وَقَالَ سَاحِرٌ أَوْ مَجْنُوْنٌ ﴿٣٩﴾ |
| ښکاره. نو واوړيدو په طاقت خپل، او وې وئيل دا جادوګر دې يا ليونې دې. |

Scanned by CamScanner

| فَأَخَذْنَاهُ وَجُنُودَهُ فَنَبَذْنَاهُمْ فِي الْيَمِّ |
|---|
| نو رانیولو مونږ دهٔ لره او لښکرو ددهٔ لره نو گوزار کړل مونږ دوی په دریاب کښې |
| وَهُوَ مُلِيمٌ ﴿٤٠﴾ وَفِي عَادٍ إِذْ |
| او دے ملامته کونکے وو (خپل ځان لره)۔ او په عادیانو کښې (هم نخه ده) کله چه |
| أَرْسَلْنَا عَلَيْهِمُ الرِّيحَ الْعَقِيمَ ﴿٤١﴾ مَا تَذَرُ مِنْ شَيْءٍ أَتَتْ |
| راولیږلو مونږ په دوی باندے هوا شنډه۔ نهٔ ئے پریخودو هیڅ شے چه راتله به |
| عَلَيْهِ إِلَّا جَعَلَتْهُ كَالرَّمِيمِ ﴿٤٢﴾ |
| په هغے باندے مګر کرځولو به ئے پشان د هډوکی ذره ذره۔ |

**تفسیر**: دا د وَتَرَكْنَا فِيهَا آيَةً سره متعلق دے۔ اَیْ وَتَرَكْنَا فِيْ مُوْسٰى آيَةً۔ یعنی لکه څنګه چه د قوم لوط د کلی باقیمانده آثار د مکے د کافرانو او د نورو قومونو دپاره د عبرت نښے دی، دغه شان د موسیٰ ؑ د دشمنانو هلاکت کښې هم مونږ د خلقو دپاره نخے د عبرت جوړے کړیدی۔

الله تعالیٰ موسیٰ ؑ له د همسا معجزه ورکړه، او فرعون خواته ئے اولیږهٔ، دے دپاره چه هغه ورته په الله باندے د ایمان راوړو دعوت ورکړی، لیکن فرعون د تکبر په وجه د هغهٔ نه او د هغهٔ د دعوت نه مخ واړولو، او د هغهٔ په باره کښې ئے خپل قوم ته وویل: دا انسان یا خو جادوګر دے، یا ورته لیونتوب لګیدلے۔

مفسرین لیکی چه ددے ملعون مقصد خپل قوم بیوقوف جوړول او دهوکه کول وو، ګنے هغهٔ ته ښه پته وه چه د موسیٰ ؑ په لاس چه کومے معجزے رابښکاره شوی دی هغه د هیڅ جادوګر کارنامه نشی کیدے، او نهٔ کوم لیونے داسے کارنامے کولے شی۔

فَتَوَلّٰی بِرُكْنِهٖ: (۱) رکن قوت او طاقت ته وئیلے شی، په اصل کښې ستنے او خپے ته وئیلے شی۔ (۲) حافظ ابن کثیرؒ وائی چه رکن دلته تکبر ته وائی۔

اَیْ اَعْرَضَ وَاسْتَكْبَرَ لِكِبْرِهٖ۔ یعنی مخ ئے واړه وو او تکبر ئے وکړو د وجه د ځان لوی ګڼړلو نه۔ خو دا تکبر ئے هم د قوت د وجه نه وو۔

Scanned by CamScanner

(۳) رکن، ارکان مملکت ته وائی لکه فوج او وزراء شو، ددے تولو سره واوړیدو او د حق نه ئے انکار وکړو۔ ﴿إِنَّ فِرْعَوْنَ وَهَامَانَ وَجُنُودَهُمَا كَانُوا خَاطِئِينَ﴾

(٤) ابن عباس رضی الله عنه نه نقل دی چه د رکن نه مراد قوم دے۔ یعنی د خپل قوم قبطیانو سره منکر شو۔ دا باقی تفسیرونه اول ته راجع کیږی۔ او بِرُكْنِهٖ کښې باء په معنیٰ د مَعَ سره ده۔ یعنی سره د خپل فوج او قوتونو نه۔

سَاحِرٌ أَوْ مَجْنُونٌ: ددهٔ په کلام کښې هم تناقض او تضاد دے، قول مختلف کښې واقع شویدے، ځکه چه ساحر خو هوښیار وی او مجنون (لیونے) خو بیوقوف وی۔

وَهُوَ مُلِيمٌ: ۱- یعنی ځان لره ملامته کونکے وو په هغه وخت کښې۔ کلمے ئے لوستلے۔

۲- آتٍ بِمَا يُلَامُ۔ یعنی راتلونکے وو په هغه کارونو چه د ملامتیا سبب وو۔ نو بیا ئے ځان هم ملامته کولو او خلقو هم او ملائکو او الله هم۔ یعنی ددهٔ ټول کارونه د ملامتیا لائق وو۔ د ربوبیت دعویٰ ئے کړے وه، د الله نه ئے انکار کړے وو، او د سرکشئ او کبر او غرور آخری حدونو ته رسیدلے وو۔

وَفِي عَادٍ: دا هم د تَرَكْنَا د لاندے دے۔ د قومِ عاد یعنی د هود علیه السلام د قوم هلاکت هم د عبرت ډیرے نخے لری۔ هر کله چه د دوئ سرکشی د حد نه زیاته شوه نو الله تعالیٰ د دوئ د هلاکولو دپاره یوه داسے تیزه او تُنده هواء په دوئ باندے مسلطه کړه چه په هغے کښې په هیڅ طریقه هیڅ خیر نهٔ وو، یعنی الله تعالیٰ دغه هواء صرف د قومِ عاد د تباه کولو دپاره چلولے وه۔ چنانچه دغه هواء چه په روح او په هر شئ باندے لګیدله، هم هلته به پنډوکے شو، تمام خلق هلاك شو، د دوئ مالونه مړهٔ شول، او د دوئ د ژوند تمام اسباب تباه او برباد شو۔

الْعَقِيمَ: اَیِ الضَّارَّةَ وَالْمُفْسِدَةَ۔ یعنی ضرری او خرابونکے هواء وه، هیڅ خیر پکښې نهٔ وو چه په هر شی باندے به ولګیده نو هغه به ئے شنډه ولو او خیر او فائده به ئے ترے لرے کوله او روستو (مَا تَذَرُ) ئے تشریح ده۔

كَالرَّمِيمِ :اَیْ كَالْعَظْمِ الْبَالِیْ الْمُفَتَّتِ ۔ لکه د زړو ذره ذره شوو هډوکو په شان۔ دارنګه رمیم هر هلاك کیدونکے، ذره ذره کیدونکے شے دے۔

قتادهٔ وائی: [هُوَ الَّذِىْ دِيْسَ مِنْ يَابِسِ النَّبَاتِ] دا د اُوچے ګیاه نه چه کوم شے غوبل او پائیمال شی او ذره ذره شی هغے ته رمیم وائی۔

Scanned by CamScanner

(۳) سُدّی او ابو العالیة وائی : اَلتُّرَابُ الْمَدْقُوْقُ۔ په خپو باندے تکولے شوے خاورے۔
(٤) قُطربؔ وائی : اِنَّهُ الرَّمَادُ۔ دا ایرو ته وئیلے شی۔ (قرطبی، قاسمی، بغوی، ابن کثیر)

| وَفِیْ ثَمُوْدَ اِذْ قِیْلَ لَهُمْ تَمَتَّعُوْا حَتّٰی |
| --- |
| او په ثمودیانو کښې (هم نخه شته) کله چه اُووئیلے شو دوی ته فائدے واخلئ تر |
| حِیْنٍ ﴿۴۳﴾ فَعَتَوْا عَنْ اَمْرِ رَبِّهِمْ فَاَخَذَتْهُمُ |
| یو وخت پورے۔ (درے ورځے)۔ نو دوی تیر شو د حکم د رب د دوی نه نو راونیول دوی |
| الصّٰعِقَةُ وَهُمْ یَنْظُرُوْنَ ﴿۴۴﴾ فَمَا اسْتَطَاعُوْا مِنْ قِیَامٍ |
| لره تندر (سختے چغے) او دوی ورته کتل۔ نو طاقت نهٔ لرلو دوی د پاځیدلو |
| وَمَا كَانُوْا مُنْتَصِرِیْنَ ﴿۴۵﴾ وَقَوْمَ نُوْحٍ |
| او نهٔ وو دوی بدله اخستونکی۔ او (هلاك كړے وو مونږ) قوم د نوح (علیه السلام) |
| مِّنْ قَبْلُ اِنَّهُمْ كَانُوْا قَوْمًا فٰسِقِیْنَ ﴿۴۶﴾ |
| لره مخکښې ددے نه یقیناً وو دوی قوم نافرمان۔ |

**تفسیر** : دا هم د وَتَرَكْنَا د لاندے دے، او دا څلورمه نمونه د عذاب ده۔ یعنی د قوم ثمود، یعنی د صالح علیه السلام د قوم هلاکت هم د مکے د کافرانو او نورو قومونو لپاره ډیرے د عبرت او نصیحت خبرے دی۔ کله چه د دوی سرکشی هم د حد نه زیاته شوه، د صالح علیه السلام اُوښه ئے هلاکه کړه، او د دوی د ایمان راوړو هیڅ امید پاتے نشو، نو الله تعالیٰ دوی له په دنیا کښې د پاتے کیدو دپاره د درے ورځو مهلت ورکړو،

لکه د سورتِ هود په (٦٥) آیت کښې راغلی : ﴿تَمَتَّعُوْا فِیْ دَارِكُمْ ثَلٰثَةَ اَیَّامٍ﴾ (تاسو درے ورځو پورے په خپلو کورونو کښې مزے واخلئ)،

لیکن هغوی د سرکشئ لاره غوره کړه، او د خپل رب د حکم منلو نه ئے انکار وکړو، نو د الله عذاب په رنړا ورځ دوی په خپل گرفت کښې را اونیول، او مرگ دوی لره یو یو اوتښتولو په داسے حال کښې چه دوی په خپلو زنگنونو باندے پرمخے پراتهٔ وو۔ او

Scanned by CamScanner

هغوئ دا هر څۀ په خپلو سترګو سره لیدل، نۀ د خپل مجلس نه پاسیدے شول، او نۀ د دوئ د مدد لپاره څوك راغے چه دوئ ئے د عذاب نه بچ کړی وے۔

**الصَّاعِقَةُ:** ددے نه مراد صیحه (چغه) ده۔

**وَهُمْ يَنظُرُونَ:** یعنی دوی دغه عذاب ته کتل او په کتو کتو کښں پرے راغے۔ یا نظر په معنیٰ د انتظار سره دے۔ یعنی دوئ ورته درے ورځے په انتظار کښں وو۔

**مِنْ قِيَامٍ:** یعنی دوئ د دغه عذاب نه په ودریدو باندے قادر نۀ وو، پاتے لا دا چه ددے نه وتښتی۔

**مُنتَصِرِينَ:** یعنی د الله تعالیٰ نه بدله اخستونکی هم نۀ وو۔

**وَقَوْمَ نُوحٍ:** دا پنځمه نمونه د عذاب ده۔ دا متعلق دے د (اَهْلَكْنَا) پورے۔ یعنی مونږ هلاك کړل قوم نوح۔ ددے په باره کښں ئے (وَفِیْ قَوْمِ نُوْحٍ) ونۀ وئیل ځکه چه د نوح علیه السلام د قوم څه نښے نښانے په دنیا کښں پاتے نۀ دی، او د نورو قومونو کنډرات او نښانات اوس هم شته۔

**فَاسِقِينَ:** یعنی فسق سبب د هلاکت دے۔ لکه نور اسبابِ د واقعاتو په ضمن کښں تیر شو۔

| وَالسَّمَاءَ بَنَيْنَاهَا بِأَيْدٍ وَإِنَّا لَمُوسِعُونَ ﴿٤٧﴾ |
|---|
| او آسمان جوړ کړیدے مونږ په طاقت سره او یقیناً مونږ فراخی راوستونکی یو۔ |
| وَالْأَرْضَ فَرَشْنَاهَا فَنِعْمَ الْمَاهِدُونَ ﴿٤٨﴾ وَمِن كُلِّ شَيْءٍ |
| (فراخونکی د هغے یو) او زمکه خوره کړیده مونږ نو ښۀ خورونکی یو۔ او د هر شی |
| خَلَقْنَا زَوْجَيْنِ لَعَلَّكُمْ تَذَكَّرُونَ ﴿٤٩﴾ |
| نه پیدا کړیدی مونږ جوړئ دے دپاره چه تاسو نصیحت واخلئ۔ (زیاده کړئ خبره)۔ |

**تفسیر:** اوس په اثبات د بعث بعد الموت باندے درے عقلی دلیلونه ذکر کیږی، او دا د الله تعالیٰ د قدرت دلیلونه دی، او په حقیقت کښں اثبات د آخرت پکښں دے۔ یعنی کوم ذات چه د داسے عظیم ترین قدرت مالك دے، بیشکه هغه د هر یو شئ رب او د خپلو تمامو بندګانو یواځے معبود دے۔ او هغه د آخرت په راوستو پوره قدرت لرونکے دے۔

Scanned by CamScanner

الله تعالیٰ وفرمایل چه مونږ آسمان په خپل قدرت سره جوړ کړے دے، هغه مو اُوچت پیدا کړے، او په نمر او سپوږمۍ او بے شماره ستورو سره مو ښائسته کړے۔
او مونږ هر یو شے چه څومره خوړول غواړو د هغے د خوړولو طاقت لرو، او مونږ زمکه د فرش په شان خوره کړے، دے دپاره چه بندګان ددے نه فائده پوره کړی، صرف مونږ ددے په ښۀ شان سره خورونکی یو، یعنی زمونږ نه سوئ بل څوك ددے قدرت نۀ لری۔
بِأَيْدٍ: ۱ - أَيْد مصدر دے په معنیٰ د قوت او قدرت سره لکه حافظ ابن کثیرؒ او قرطبیؒ د ابن عباس ﷺ نه نقل کړیدی۔
۲ - یا اید جمع د يَدٌ ده، او په دے کښې د قَاضٍ اعلال شویدے، په اصل کښې اَيْدِىٌ دے، لاس ته وئیلے شی بیا دلته که اید جمع د ید هم شی هم د قوت معنیٰ ئے ده، او دا تاویل نۀ دے، بلکه د عربئ محاوره ده چه په عربی لغت کښې ید په معنیٰ د لاس، قوت او قدرت او نعمت سره استعمالیږی۔
دلته ئے د قوت معنیٰ ده د وجه د دلائل خارجیه ؤ نه، او د الله تعالیٰ خپل لاسونه موجود دی څنګه چه د هغه د شان مناسب دی لکه څنګه چه ګڼړ نصوص پدے باندے دلیل دے۔ او د نورو دلائلو نه معلومیږی چه الله تعالیٰ آسمان په لاس سره نۀ دے جوړ کړے بلکه په امر سره ئے جوړ کړیدے۔
لکه د حدیث نه معلومیږی چه الله تعالیٰ پنځه څیزونه په خپل لاس سره پیدا کړیدی آدم ؑ، جنة عدن، شجرة الطوبی، قلم، او تورات ئے په خپل لاس لیکلے دے۔
(مساوی الاخلاق لابی بکر الخرائطیؒ رقم: (٤١٠) والابانة)
نو که آسمانونه هم په خپل لاس سره پیدا کړے شوی وے نو بیا ددے پنځو څیزونو د تخصیص وجه نۀ ښکاره کیږی۔ تاویل په هغه ځای کښې حرام دے چه د الله تعالیٰ د صفت نه پکښې انکار راځی۔
لَمُوسِعُونَ: دے کښې ډیرے معانی دی: (۱) دا د وسع نه دے په معنیٰ د فراخی پیدا کولو سره، او مطلب دا دے چه مونږ وخت په وخت په آسمانونو کښې فراخی راوستونکی یو، نو د سائنسدانانو د قول مطابق وخت په وخت په کائناتو کښې غتوالے پیدا کیږی۔ لکه حدیث کښې دی: [مِنْ اِقْتِرَابِ السَّاعَةِ اِنْتِفَاخُ الْاَهِلَّةِ]
د قیامت د نږدے والی نښه دا ده چه سپوږمۍ به ویرسیږی، د یوے شپے به د دوه شپو

Scanned by CamScanner

ښکاره کيږي۔ (طبراني في الصغير رقم (١١٣٠) باسناد صحيح)
ځکه چه کائنات د دهماکے په شکل پيدا شوی نو د همدغه دهماکے اثر پکښې روان دے، او همداسے غځيږي۔
(٢) دا فاعل ذُوْ كَذَا دے، د وسع نه دے په معنىٰ د (ذُوْ وُسْعٍ وَطَاقَةٍ)۔ يعنى مونږ فراخه طاقت او قدرت لرونکي يو چه دا او ددے په شان نور آسمانونه پيدا کړو، مونږ ددے نه عاجز نهٔ يو۔
(٣) يا متعدي دے اَىْ لَمُوْسِعُوْنَ الرِّزْقَ بِالْمَطَرِ۔ مونږ فراخه کونکي يو رزقونو لره په بارانونو سره۔
(٤) لَمُوْسِعُوْنَ بَيْنَ السَّمَاءِ وَالْاَرْضِ۔ مونږ فراخي راوستونکي يو په مينځ د آسمان او د زمکه کښې۔
(٥) لَمُوْسِعُوْنَ اَرْجَاءَ السَّمٰوٰتِ۔ مونږ فراخه کونکي يو اطراف د آسمانونو۔ نو زمکه د آسمان په نسبت داسے ده لکه يو بنګړے چه په يوه دشته کښې ګوزار کړے شي۔ او دا ټولے خبرے صحيح دي، او په خارج کښې واقع دي۔
نو دلته به دوه خبرے ذکر شي، يو دا چه آسمان مونږ په خپل قوت او قدرت پيدا کړيدے، او بل دا مو فراخه ګرځولے دے۔ نو دا جمله به حال مؤسسه د ماقبل شي۔
فَرَشْنَاهَا: زمکه نهٔ نرمه ده چه انسان پکښې ننوزي، او نهٔ سخته ده چه فائده ترے وانخستے شي، داسے اندازئے ورکړيدے چه اُوبه پکښې د هر طرفنه روانيږي، که بيخي هموارہ وے، اُوبه به ئے په کوم طرف وتلے، د باران اُوبه به ډنډونه ولاړ وے، او آخر به سخا شوے وے، ددے وجه نه د شمالي طرف نه جنوبي طرفته اُوبه روانے وي، زمکه لږه شان جنوبي طرفته کږه ده۔ د زمکے علم زده کولو سره بنده الله تعالىٰ پيژندلے شي۔
فَنِعْمَ الْمَاهِدُوْنَ: يعنى ښهٔ خورونکي يو مونږ۔ يعنى ډيره مزيداره فائده منه مو خوره کړيده۔ او پدے کښې بلے فائدے ته اشاره ده چه انسانان پکښې آرام کوي او د آرام ځايونه هم پکښې الله تعالىٰ جوړ کړيدي۔ ځکه مهد زانګو او د آرام ځاى ته وئيلے شي۔
وَمِنْ كُلِّ شَيْءٍ : مخکښې ذکر د کائناتو وو، اُوس د هغے مکين (وسيدونکي) ذکر کوي۔ چه د هر شي نه مونږ جوړه پيدا کړے دے، هيڅ يو شے په دے دنيا کښې فرد (يواځے) نهٔ دے، آسمان او زمکه، شپه او ورځ، نمر او سپوږمۍ، اوچه او سمندر، تيارهٔ او

رنړا، ایمان او کفر، مرګ او ژوند، نیک بختي او بد بختي، جنت او جهنم، تردې چه حیوانات او نباتات ټول جوړه جوړه دي، صرف د الله تعالیٰ ذات وحده لا شریک دے۔
او په انسانانو او پیریانو او حیواناتو او ځناورو کښې نر او ښځه کیدل، او د دوئ د نسلونو د بقاء دپاره په ظاهره کښې بے ساه نطفه کښې روح اچول، ددے خبرے ښکاره ثبوت دے چه الله قادرِ مطلق به مړي دوباره ژوندي کوي۔ دے وجے نه د آیت په آخره کښې ﴿ لَعَلَّكُمْ تَذَكَّرُوْنَ ﴾ راغلے۔
یعنی دے دپاره چه تاسو غور او فکر وکړئ او دے نتیجے ته اورسئ چه ستاسو د عبادت حقدار صرف الله تعالیٰ دے چه هغهٔ هر یو شے جوړه پیدا کړے، یعنی یا خوئے مذکر او مؤنث پیدا کړے، یا ئے د یو بل نه مخالف پیدا کړے، لکه اُور د اوبو، مرګ د ژوند، ایمان د کفر او جنت د جهنم او دنیا د آخرت مخالف دے۔
او د مزدوجاتو نه عبرت زر اخستلے کیږي، او استدلال ته بنده زر رسیږي ځکه چه اَلْاَشْيَاءُ تَتَبَيَّنُ بِاَضْدَادِهَا۔ څیزونه په خپل ضد سره ښه واضحه کیږي۔
تَذَكَّرُوْنَ: ۱- یعنی رایاده کړئ دا خبره چه آخرت به هم راځي۔
۲- تَذَكَّرُوْنَ قُدْرَةَ الْخَالِقِ وَكَمَالَهٗ۔ د الله قدرت او کمال رایاد کړئ۔
۳- تَذَكَّرُوْنَ اَنَّ الْخَالِقَ وَاحِدٌ۔ دا رایاد کړئ چه خالق یواځے ذات دے۔
٤- دارنګه دا عبرت واخلئ چه د هر شي جوړه شته نو دغه شان د دنیا جوړه آخرت دے۔ دے باندے دا اشکال کول چه د عرش او کرسی زوج (جوړئ) کوم ده؟
نو جواب دا دے چه د هغے جوړئ هم شته او هغه دا چه د عرش جوړئ فرش دے، او د کرسئ جوړئ سفل دے۔ ځکه چه کرسئ کښې علو ده۔ دارنګه دا دواړه جماداتو کښې داخل دي، نو ددے جوړئ حیوان دے۔

| فَفِرُّوْٓا اِلَى اللّٰهِ اِنِّيْ لَكُمْ مِّنْهُ نَذِيْرٌ |
|---|
| نو اُوتختئ تاسو الله طرف ته یقیناً زهٔ تاسو لره د هغهٔ د طرف نه یره درکونکے |
| مُّبِيْنٌ ﴿۵۰﴾ وَلَا تَجْعَلُوْا مَعَ اللّٰهِ اِلٰهًا اٰخَرَ اِنِّيْ لَكُمْ |
| ښکاره یم۔ او مهٔ ګرځوئ د الله سره حقدار د بندګئ بل یقیناً زهٔ تاسو لره |

Scanned by CamScanner

| مِّنْهُ نَذِيرٌ مُّبِينٌ ﴿٥١﴾ |
| --- |
| د هغهٔ د طرف نه یره درکونکے ښکاره یم۔ |

**تفسیر**: یعنی هرکله چه کائنات الله تعالیٰ ستاسو د فائدے دپاره پیدا کړل نو ستاسو کار به دا وی چه الله ته منډه وکړئ۔ مخکښې الله تعالیٰ عقلی او نقلی دلیلونه ذکر کړل نو اُوس د هغے نتیجه بیانوی۔یعنی هر کله چه په دلائلو سره دا خبره ثابته شوه چه د الله نه سوئ بل هیڅوك د عبادت لائق نشته، د هغهٔ د در نه سوئ بل هیڅ در نشته، د هغهٔ د ذات نه سوئ بل هیڅ د پناه او خلاصی ځائے نشته، نو اے د مکے مشرکانو! ددے نه سوئ بله چاره نشته، چه تاسو په دهٔ باندے ایمان راوړئ، ددهٔ طاعت او بندګی وکړئ، ځکه چه د هغهٔ د عذاب نه د بچ کیدو ددے نه سوئ بله ذریعه نشته چه د هغهٔ بندګی وکړے شی، او ګورئ! زهٔ د هغهٔ د عذاب نه تاسو په ډیر وضاحت سره یروم، که چرے تاسو خپل حالت بدل نهٔ کړو نو په تاسو به هم یو داسے عذاب نازل شی لکه څنګه چه په هغه قومونو نازل شوے وو چه د هغوئ قیصے تاسو اُوس واوریدے۔

## د فرار الی الله مصداقات

فَفِرُّوا إِلَى اللَّهِ: یعنی د ما سوی الله نه وتختئ الله طرفته ❁ او د ګناهونو نه طاعت د هغه ته، ❁ او د طاعت د شیطان نه طاعت د الله تعالیٰ ته، ❁ او د جهل نه علم ته ❁ او د بندګئ د غیر الله نه بندګئ د الله تعالیٰ ته۔یعنی شرك پریدئ او د الله بندګی وکړئ۔

(فتح البیان)

❁ حافظ ابن کثیرؒ فرمائی: ددے معنیٰ د توکل ده۔ اَیْ اِلْجَأُوْا اِلَيْهِ وَاعْتَمِدُوْا فِیْ اُمُوْرِكُمْ عَلَيْهِ ۔ یعنی الله ته مائل شئ او په ټولو کارونو کښې په هغهٔ باندے اعتماد او توکل وکړئ۔

فَفِرُّوا إِلَى اللَّهِ: یوه شعبه ده د شعبو د ایمان نه او د سائرینو د منازلو نه یو منزل دے لکه چه حافظ ابن القیمؒ په مدارج السالکین کښې دا منزله ذکر کړیده۔ نو دلته دوه خبرے دی، یو دا چه د غیر الله نه به جدا کیږے، او بله دا چه الله ته به د هغهٔ په طاعت او بندګئ باندے ځان رسوے او په مینځ کښې به نهٔ پاتے کیږے ګنے هلاك به شے۔

Scanned by CamScanner

إِنِّي لَكُم مِّنْهُ نَذِيرٌ مُّبِينٌ: یعنی زۀ تاسو په ډاګه د هغۀ د عذاب نه ویروم، دے دپاره چه تاسو سره هیڅ عذر باقی پاتے نشی.

| |
|---|
| كَذَٰلِكَ مَا أَتَى الَّذِينَ مِن قَبْلِهِم مِّن رَّسُولٍ إِلَّا |
| دغه شان نۀ دے راغلے هغه کسانو ته چه مخکښ وو د دوی نه هیڅ رسول مګر |
| قَالُوا سَاحِرٌ أَوْ مَجْنُونٌ ﴿٥٢﴾ أَتَوَاصَوْا بِهِ |
| وئیلی وو دوی جادوګر دے یا لیونے دے. آیا دوی یو بل ته وصیت کړیدے پدے خبره |
| بَلْ هُمْ قَوْمٌ طَاغُونَ ﴿٥٣﴾ فَتَوَلَّ عَنْهُمْ فَمَا أَنتَ |
| بلکه دوی یو قوم دے سرکشان. نو مخ واړوه د دوی نه نو نۀ ئے ته |
| بِمَلُومٍ ﴿٥٤﴾ وَذَكِّرْ فَإِنَّ الذِّكْرَىٰ |
| ملامته کړے شوے. (د دوی په اعراض) او قرآن بیان کړه یقیناً قرآن بیانول (او د |
| تَنفَعُ الْمُؤْمِنِينَ ﴿٥٥﴾ |
| نصیحت خبرے کوه ځکه چه نصیحت) فائده ورکوی مؤمنانو ته. |

**تفسیر:** نبی کریم ﷺ له تسلی ورکړے کیږی چه که ستا قوم تا ته جادوګر او لیونے وائی، نو دے سره زړۀ مه تنګوه، ځکه د کافرو قومونو همیشه راسے دا طریقه را روانه ده چه کله هم دوئ ته د الله له طرفه کوم رسول راغلے، او د هغۀ د توحید خبره به ئے ورته وکړه نو هغۀ ته ئے جادوګر او لیونے وئیلے دے.

أَتَوَاصَوْا بِهِ: اُوس الله تعالیٰ د هر دور د کافرانو په حالت باندے تعجب ښکاره کړے چه داسے معلومیږی لکه چه تمامو کافرانو یو بل ته دا خبره ښودلے ده چه کله هم کوم نبی راشی نو هغۀ ته دے جادوګر او لیونے ووئیلے شی، ګویا که د ټولو په دے اتفاق راغلے. مثلاً فرعون چه کله مړ کیدو نو بل قوم ته ئے وئیلی وی چه کله هم یو پیغمبر تاسو ته راځی نو هغه ته به جادوګر او لیونے وایئ؛ او دغه شان عادیانو او ثمودیانو او نورو قومونو دا وصیتونه کړی وی، تردے چه قریشو ته خبره راورسیده چه تاسو به هم داسے

Scanned by CamScanner

خبرے کوئ.

په ضمیر دغه وینا ته راجع دے.

بَلْ هُمْ قَوْمٌ طَاغُوْنَ: بَـلْ د اِضراب دپاره دے، یـعنی وصیت خو ئے نهٔ دے کړے ځکه چه هـغـوی خـو الله تـعـالیٰ تبـاه کړل، وصیت ته وزرګار نشول، خو اصل وجه دا ده چه کافران سرکشه شویدي او سرکشي ئے د حد نه تیره شویده، او کله چه یو انسان سرکشه شي، نو د هغه خبره د پخوانو سرکشانو سره خپله برابریږي،

لکه ابن عباس ﷺ فرمائي :

[مَا رَأَيْتُ مِثْلَ تَقَارُبِ الْقُلُوْبِ]

ما د زړونو د نزدے والي په شان بل شے نهٔ دے لیدلے. (شعب الایمان للبیهقیؒ)

پخوانے فـرعونی او عادي او اُوسنے فرعوني او عادي به یو شان خبرے کوي، او د حق په خلاف کښ چه هـغـوی کوم منګرت دلیلونه وئیلی دي، هغه به اُوس هم باطل پرست وائي. د خبیث فطرت نه همداسے ګنده او خرابے یو شان خبرے راوځي.

اِلَّا قَالُوْا سَاحِرٌ اَوْ مَجْنُوْنٌ : سوال دا دے چه دلته حصر شویدے، او دا دلالت کوي چه کافرانو صرف همدا دوه الفاظ تولو انبیاؤ ته وئیلي دي حال دا چه دوئ خو نور الفاظ هم وئیلي دي لکه کذاب اشر او داسے نور؟ جواب دا دے چه دواړه لفظونه ئے په کثرت سره وئیلي دي. یا دا چه دا دواړه جامع دي هغه تولو قبائحو لره چه دوي ئے انبیاؤ ته نسبت کـوو ځکه ساحر صفت تولو فساداتو ته شامل دے، او مجنون هغه حالاتو ته عام دے چه سړے پرے د انسانیت نه بهر کیږي.

فَتَوَلَّ عَنْهُمْ: اُوس رسـول الله ﷺ تـه تسلي او ادب بیانیږي چه تهٔ دوئ سره مهٔ انښله، تـا خپـل کـار وکړو، اُوس تهٔ د الله په نیز د ملامتیا لائق نهٔ ئے، ځکه چه تا خپله ذمه داري پوره کړه. نو د تَوَلّي (مخ اړولو) نه مراد دا دے چه د دوئ پرواه مهٔ ساته، خبره مني او که نهٔ مني.

وَذَكِّرْ: ددے نـه معلومه شوه چه د تَوَلَّ مـعـنیٰ دا نهٔ ده چه بیان ورته مهٔ کوه بلکه دوئ تـه تـذکیـر ورکـوه، او تـذکیر یاداشت ته وائي، یعني خلقو ته فائده منے خبرے رایادے کړه چه اے خلقو! ستاسو الله شته، زهٔ د هغهٔ رسول یم، قیامت حق دے، هغے دپاره په ایمان او توحید او زما په تابعداریٔ سره تیارے وکړئ او شرك او فسادونه او انکار پریدئ.

Scanned by CamScanner

فَإِنَّ الذِّكْرٰى: یعنی که کافران فائده نهٔ اخلی د وجه د طغیان (سرکشئ) د هغوی نه نو ستا بیان نهٔ ضائع کیږی بلکه ایمان والا به ضرور فائده واخلی۔ ځکه چه ایمان مقناطیسی څیز دے ځان ته خیر راکاږی، او شر دفعه کوی نو دوئ کښې خیر دے ځکه دوئ ته تذکیر فائده ورکوی۔

بیا دا قاعده ده چه [بِقَدْرِ اِيْمَانِكَ تَنْتَفِعُ بِالذِّكْرٰى] څومره اندازه چه په تا کښې ایمان وی هغومره به د نصیحت او بیان نه فائده اخلې، په صحابه کرامو کښې ایمان زیات وو نو هغوی ته به د رسول الله ﷺ بیان او قرآن ډیره زیاته فائده ورکوله، زندگی به ئے بدلیدله، د الله تعالیٰ اولیاء ترے جوړ شول۔ وخت په وخت کمزوری د ایمان راځی نو خلق د قرآن او د بیان نه فائده کمه اخلی۔

او ددے مفهوم دا دے چه چا له ذکرئ فائده نهٔ ورکوی نو هغه بے ایمانه دے۔ سړی کښې چه ایمان نهٔ وی نو د دین خبرے پرے هسے شیشه لګیږی، هیڅ اثر به پرے نکوی نو اوس ځان پدے باندے تلل پکار دی۔

او د تَعَلَّمْنَا الْاِيْمَانَ ثُمَّ تَعَلَّمْنَا الْقُرْآنَ (عن جندب بن عبد الله) (سنن ابن ماجه رقم: ٦١) وابن بطة فی الابانة رقم (١١٣٦) والاحادیث المرفوعة من التاریخ الکبیر للبخاری رقم :٥٠٧)

مطلب هم دا دے چه اول اجمالی ایمان زده کړه، چه د الله خبرے حقے دی بیا قرآن ته کینه نو ډیر اثر به درباندے کوی۔ لکه همدغه حدیث کښې روستو الفاظ پدے باندے دلالت کوی۔ (ثُمَّ تَعَلَّمْنَا الْقُرْآنَ فَازْدَدْنَا بِهِ اِيْمَانًا) بیا مونږ قرآن زده کړو نو پدے سره زمونږ ایمان زیات شو۔ قال فی زوائد ابن ماجه ١٢/١ : اسناده صحیح رجاله ثقات)

| وَمَا خَلَقْتُ الْجِنَّ وَالْاِنْسَ اِلَّا لِيَعْبُدُوْنِ ﴿٥٦﴾ |
|---|
| او ما نهٔ دی پیدا کړی پیریان او انسانان مګر ددے دپاره چه بندګی وکړی زما۔ |
| مَا اُرِيْدُ مِنْهُمْ مِّنْ رِّزْقٍ وَّمَا اُرِيْدُ اَنْ يُّطْعِمُوْنِ ﴿٥٧﴾ |
| نهٔ غواړم د دوی نه څه رزق (د دوی ځانونو لره) او نهٔ غواړم د دوی نه چه خوراك راکړی ما ته۔ |
| اِنَّ اللّٰهَ هُوَ الرَّزَّاقُ ذُو الْقُوَّةِ الْمَتِيْنُ ﴿٥٨﴾ |
| یقیناً الله تعالیٰ ډیر رزق ورکونکے دے خاوند د طاقت مضبوط دے۔ |

Scanned by CamScanner

فَإِنَّ لِلَّذِيْنَ ظَلَمُوْا ذَنُوْبًا مِّثْلَ ذَنُوْبِ

نو یقیناً هغه کسانو لره چه ظلم ئے کړیدے برخه د عذاب ده په شان د برخې د عذاب

أَصْحَابِهِمْ فَلَا يَسْتَعْجِلُوْنَ ﴿٥٩﴾ فَوَيْلٌ لِّلَّذِيْنَ

د ملګرو د دوی، نو دوی دې په جلتئ سره نۀ غواړي. نو هلاکت دے دپاره د هغه

كَفَرُوْا مِنْ يَّوْمِهِمُ الَّذِىْ يُوْعَدُوْنَ ﴿٦٠﴾

کسانو چه کفر ئے کړیدے د ورځې د دوی نه هغه چه دوی سره ئے وعده کیدیشي۔

**تفسیر**: پدے آیت کښې د انسانانو او د پیریانو د پیدائش اصل مقصد ذکر شویدے۔ الله تعالیٰ وفرمایل چه ما پیریان او انسانان صرف دے له پیدا کړي دی چه زۀ دوئ ته د خپل عبادت حکم وکړم، ګنے ماته د دوئ د پیدا کولو هیڅ ضرورت نۀ وو۔

ربط دا دے چه مخکښې ئے په تذکیر باندے حکم وکړو نو دلته ئے وفرمایل چه بندګانو ته د هغوی د پیدائش مقصد بیان کړه،

او پدے کښې بندګانو ته په خبره منلو باندے تیزي ورکوي چه ددے نبي خبره ومنئ ځکه چه تاسو همدے مقصد دپاره پیدا شوي یئ۔

لِيَعْبُدُوْنَ: اَىْ لِاٰمُرَهُمْ اَنْ يَّعْبُدُوْنِىْ ۔ یعنی دے دپاره چه زۀ دوی ته حکم وکړم چه زما بندګي وکړي۔ دلته بعض مفسرینو سوال وجواب لیکلے دے چه دومره فائده مند نۀ دے۔

سوال: هرکله چه الله تعالیٰ دا اراده وکړه چه زۀ بندګان ددے دپاره پیدا کوم چه زما عبادت وکړي نو بیا ډیرو انسانانو او پیریانو د الله تعالیٰ عبادت ونکړو نو دا خو د الله تعالیٰ د ارادے خلاف راغے؟

(۱) بیا ئے دا ضعیف جواب کړیدے چه دلته د عبادت نه مراد تکویني عبادت دے، یعنی ټول الله تعالیٰ ته تابع دي، نو دا د كُلٌّ لَّهُ قَانِتُوْنَ په شان دے۔

دا جواب ځکه ضعیف دے چه پدے سره د آیت اصل مقصد خرابیږي، ځکه چه د آیت مقصد دا دے چه الله فرمائي: د الله تعالیٰ بندګي وکړئ، او د هغه تفسیر مطلب دا دے چه تۀ الله ته محتاج ئې، عبادت کوے او که نۀ۔

Scanned by CamScanner

(۲) صحیح جواب دا دے چه دلته امر شرعي مراد دے، نهٔ تکویني.
یعنی ما دے دپاره پیدا کړل چه زهٔ به ورته امر کوم چه زما عبادت وکړی بیا به دغه امر باندے څوك عمل کوی جنت ته به ځی او څوك به ئے نهٔ کوی نو جهنم ته به ځی.
او الله ټولو انسانانو ته د عبادت امر کړیدے نو که څوك پرے عمل کوی نو د خپل ځان گټه کوی.
(۳) بعض وائی : د جن او انس نه صرف مؤمنان مراد دی. لیکن دے تخصیص باندے دلیل نشته.
او ددے آیتونو حاصل دا دے چه الله تعالیٰ کائنات د انسان دپاره پیدا کړل او انسان ئے خپل ځان له پیدا کړو چه د هغهٔ بندگی به کوی، چه بندگی ترے کټ شی بیا خو هیڅ پاتے نشو.
مَا اُرِيْدُ مِنْهُمْ مِّنْ رِّزْقٍ : دلته الله رب العزت خپل عظمت او لوئی او خپله استغناء او بے احتیاجی بیان کړے ده چه د هغهٔ مقام د خپلو بندگانو دپاره هغه نهٔ دے کوم چه د دنیا د آقاگانو د هغوئ د غلامانو په مقابله کښ وی. د دنیا آقا (مالکان) د خپلو غلامانو یو قِسم محتاج وی، د دوئ مالکان د دوئ نه د خدمت او تجارت یا مزدورئ په ذریعه د مال مطالبه کوی، حال دا چه الله د خپلو بندگانو نه د بندگئ نه سوئ د هیڅ یو شئ مطالبه نهٔ کوی. ځکه هغه غنی (بے پرواه) دے، هغه د هیڅ یو شئ محتاج نهٔ دے، هم هغه ټولو له رزق ورکوی، او د هغهٔ قوت داسے زبردست او ناقابلِ شکست دے چه په آسمان او زمکه کښ هیڅ یو شے هغهٔ لره عاجزه کولے نشی.
او دا جملے په طریقه د عادت د عربو وئیل شویدی چه هغوی به د غلامانو نه دوه قسمه مطالبے کولے، یو دا چه خپله خرچه ځانله خپله پیدا کوه، محنت مزدوری کوه، زهٔ تا ته رزق نشم درکولے. دویم دا چه ما ته به هم د ورځے دومره مال راوړے مثلاً یوه یا دوه کیلو کجورے، یا لس شل روپئ. دا وجه ده رسول الله ﷺ به فرمایل : چه
[وَلَا تُكَلِّفُوْهُمْ مَا يَغْلِبُهُمْ فَإِنْ كَلَّفْتُمُوْهُمْ فَأَعِيْنُوْهُمْ] (بخاری باب المعاصی من امر الجاهلية رقم : ۳۰)
دوئ باندے آسانی راولئ، داسے تکلیف پرے مهٔ ایږدئ چه دوی ترے مغلوب شی، یعنی ډیر ټیکس پرے مهٔ اړدئ، کیدے شی چه دومره به نشی پیدا کولے، او که تاسو

Scanned by CamScanner

پرے کوم تکلیف کیخودو نو بیا ورسره مدد کوئ۔

نو الله فرمائی چه زما غلامی داسے نهٔ ده، زما چه څوك بندګی کوی نو زهٔ ترے دا مطالبه هم نکوم چه لاړ شه ځانله خپله روټئ پیدا کړه بلکه زهٔ هغه ته رزق ورکوم، اسباب ورته برابروم، او دا هم ترے نهٔ غواړم چه ما ته به ئے راکوے، بلکه الله د ټولو بندګانو پروګرام کوی، هر چا ته رزق رسوی، تهٔ بندګی کوه نو فراخه رزق به درکوی۔ لنډ مطلب ئے دا شو چه د روټئ ذمه واری دِے په ما خو تهٔ زما بندګی کوه۔

دلته الله تعالیٰ رزق او عبادت جمع کړل :

[اِشَارَةٌ اِلَى اَنَّ الْعِبَادَةَ سَبَبٌ لِلرِّزْقِ الطَّيِّبِ]

پدے کښې اشاره ده چه د پاك رزق دپاره ښکلے سبب د الله بندګی ده، عبادت چه څومره ډیر کیږی نو کور کښې به فراخیانے او رزقونه او نعمتونه وی۔

دا راتلونکی آیتونه پرے دلیل دی۔

﴿ فَابْتَغُوْا عِنْدَ اللهِ الرِّزْقَ وَاعْبُدُوْهُ وَاشْكُرُوْا لَهُ ﴾ (عنکبوت:۱۷) ﴿ وَاْمُرْ اَهْلَكَ بِالصَّلَاةِ وَاصْطَبِرْ عَلَيْهَا لَا نَسْأَلُكَ رِزْقًا نَحْنُ نَرْزُقُكَ وَالْعَاقِبَةُ لِلتَّقْوٰى ﴾ (طه: ۱۳۲) ﴿ وَمَنْ يَّتَّقِ اللهَ يَجْعَلْ لَهُ مَخْرَجًا وَيَرْزُقْهُ مِنْ حَيْثُ لَا يَحْتَسِبُ ﴾ (الطلاق: ۲/۳)۔

دویمه **فائده** : یو اثر کښې دی الله فرمائی :

[يَا ابْنَ آدَمَ ! خَلَقْتُكَ لِلْعِبَادَةِ فَلَا تَلْعَبْ، وَكَفَلْتُ بِرِزْقِكَ فَلَا تُتْعِبْ]۔

اے د آدم ځویه ! ما تهٔ د خپلے بندګئ دپاره پیدا کړے ئے نو لوبے مهٔ کوه، او ما ستا د رزق ذمه واری اخستے ده نو ځان ډیر مستړے کوه۔ (لږ لاس خپه به خوزوے ځکه چه هغه د الله تعالیٰ امر دے لیکن شپه او ورځ به دنیا له نهٔ ورکوے)۔

[يَا ابْنَ آدَمَ ! اُطْلُبْنِيْ تَجِدْنِيْ فَاِنْ وَجَدْتَنِيْ وَجَدْتَ كُلَّ شَيْءٍ وَاِنْ فُتُّكَ فَاتَكَ كُلُّ شَيْءٍ وَاَنَا خَيْرٌ لَكَ مِنْ كُلِّ شَيْءٍ] اے د آدم بچیه ! ما ته طلب کړه ما به مونده کړے، که زهٔ دِے وموندم، نو هر شے به وموموے او که زهٔ درنه فوت شوم نو هر شے درنه فوت شو، او زهٔ ستا دپاره د هر شی نه بهتریم) د الله نه چه محروم شوے نو که ټوله دنیا ستا شوه هیڅ درسره نشته، او چه الله دِے وګټلو نو هرڅه ستا دی، ډیر مزیدار اثر دے۔

(الجواب الکافی ص ۱۹۸ لابن القیمؒ) وطریق الهجرتین ومدارج السالکین)

Scanned by CamScanner

ډیر خلقو نه چه تپوس وشی چه څه کوے؟ هغه وائی وزګار یم. هیڅ کار مے نشته پریشانه یم. اکثرو انسانانو د خپل ژوند مقصد نهٔ دے پیژندلے، مسلمان به ولے او څنګه وزګار شی چه د هغه مالك حقیقی معبود موجود دے، ستا په سر باندے لوی کارونه دی، ځان په اُوږدو سجدو باندے عادت کړه، په اذکارو، د قرآن په لوستلو او په دعوت باندے ځان عادت کړه، او د شپے او د ورځے عباداتونو باندے ځان عادت کړه، نو هیڅ کار ته به وزګار نشے، لیکن مونږ ډیرو انسانانو دا نهٔ دے پیژندلے.

الْمَتِيْنُ: دا ورسره ځکه وائی چه کله یو شے طاقتور وی، لیکن چه بل شے ورته راخطا کړے شی نو هغه مات شی لکه وسپنه. نو الله داسے قوت والا دے چه د هغه قوت نهٔ ماتیږی.

فَاِنَّ لِلَّذِيْنَ : د اول د سورت سره متعلق دے. اُوس دلته رتنه ورکوی د مکے مشرکانو وغیره ته چه د الله تعالیٰ بندګی ئے په توحید سره نهٔ کوله، رسول الله ﷺ به ئے دروغژن ګنړلو او شرك او کفر او شر او فساد او سرکشی ئے کوله، او په خپلو ځانونو ئے ظلم کړے وو، نو دا خلق په مخکنو زمانو کښ د هلاکیدونکو قومونو پشان د لوی عذاب حقدار جوړ شوی دی، دوئ دے تادی نهٔ کوی، هغه به خامخا راځی، او په مقرر وخت به راځی، الله د خپل معلوم حکمت د وجے نه دا روستو کړے دے، کله چه ددے وخت راشی، نو دا به هیڅوك لرے نهٔ کړی، او دا به ډیر زیات دردناك عذاب وی.

ذَنُوْبًا : اَیْ نَصِیْبًا مِنَ الْعَذَابِ . یعنی برخه د عذاب ده. او ذنوب په اصل کښ بوکے ته وائی یعنی د عذاب ډکے بوکے به پرے راوا چوی.

اَصْحَابِهِمْ: یعنی ددے نه مراد هغه خلق دی چه دوئ سره په ګناه کښ یو شان دی چه هغوی هم کفر او شرك کولو او دوی هم.

فَوَيْلٌ لِّلَّذِيْنَ: د عذاب د کومے ورځے وعده چه دوئ سره شوے ده هغه به د کافرانو لپاره د هلاکت او بربادئ ورځ وی. مفسرین لیکی چه دے نه مراد یا خو د قیامت ورځ ده، یا د بدر غزا ده، هر کله چه د مشرکانو بیخ بنیاد ختلے وو.

مفسر ابو السعودؒ اولنئ رائے له ترجیح ورکړے ده.

مِنْ يَّوْمِهِمْ: یعنی د هغه ورځے د وجه نه چه دوئ ترے انکار کړے وو دوی ته به هلاکت ورسیږی. بله دا چه هغه ورځے له به ورشی نو هغه به د دوئ دپاره عذاب وګرځی نو تول

Scanned by CamScanner

د هغې په وجه تباه شول۔ وبالله التوفیق۔

## امتیازات د سورت

۱- د قیامت د ورځې واقع کیدل او د هغې رشتینوالے۔
۲- د بندګانو د پیدائش مقصد پکښې ذکر شو۔
۳- ډیر عبادات ئې ذکر کړل دپاره د نجات۔

ختم شو تفسیر د سورة الذاریات په مدد د اله العالمین ۳ رجب لیلة الاثنین ۱٤۳۷ هـ
موافق : ۲۰۱٦/٤/۱۰) بجه : ۱۱:۵۰۔ ابوزهیر شیخ آباد۔

❁❁❁❁

Scanned by CamScanner

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ط

| آیاتها (٤٩) | (٥٢) سورة الطور مكية (٧٦) | رکوعاتها (٢) |
|---|---|---|

سورة طور مکی دے، په دے کښې یو کم پنځوس آیتونه او دوه رکوع دی۔

## تفسیر سورة الطور

نوم: ددے سورت اولنے لفظ [الطُّوْر] دے، همدا ددے نوم کیښودلے شوے۔

د نازلیدو زمانه: قرطبیؒ لیکی چه د ټولو په نیز دا سورت په مکی دور کښې نازل شوے، بیهقیؒ وغیره د ابن عباس رضی الله عنه نه روایت کړی دی چه سورة الطور په مکه کښې نازل شوے۔

### فضیلت

رسول الله ﷺ به دا کله د ماښام په مانځه کښې لوستلو۔ (بخاری عن جبیر بن مطعم رضی الله عنه)

### مناسبت

١- مخکښې ئے د اثبات د آخرت دپاره څلور گواهیانے ذکر کړے، او دلته پنځه راوړی نو په شواهدو کښې ئے مناسبت شو۔

٢- په سورت ذاریات کښې ئے خبر ورکړو چه د قیامت وعده صادقه ده، او د جزاء او سزا واقع کیدل حق دی، نو دلته یو صورت د جزاء ذکر کوی چه هغه عذاب دے، نو پدے سورت کښې به تخویف زیات ذکر کیږی۔

٣- مخکښې سورت کښې سبب داقِعه د عذاب بیان شو چه عبادت دے، نو دے سورت کښې عذاب بیانوی چه که دغه سبب مو اختیار نکړو نو عذاب راروان دے۔

Scanned by CamScanner

٤- مخکښې سورت کښې اجمالي زیرے وو متقیانو ته، نو دلته تفصیلي زیرے بیانوي.

## د سورت مقصد

اَلۡاِخۡبَارُ بِوُقُوۡعِ عَذَابِ اللّٰهِ عَلَی الۡمُنۡكِرِيۡنَ. دا خبر ئے ورکړے چه د الله عذاب به په منکرینو خامخا واقع کیږي، دا هم د سزا او جزاء سره متعلق دے.

بیا پدے کښې دوه قسمه عذابونه بیانیږي، یو اُخروي لکه روستو ﴿اِنَّ عَذَابَ رَبِّكَ لَوَاقِعٌ﴾ کښې ذکر دے، او په آخر د سورت (٤٧) آیت کښې دنیاوي عذاب ذکر دے.

او پدے سورت کښې هم سبب دافعه د عذاب ذکر کیږي لکه تقویٰ، (وَالَّذِيۡنَ آمَنُوۡا)، ایمان، بیا درے صفات لکه مُشۡفِقِيۡنَ، نَدۡعُوۡهُ، فَمَنَّ اللّٰهُ عَلَيۡنَا.

آخر د سورت کښې وائي : وَاصۡبِرۡ وَسَبِّحۡ وَمِنَ الَّيۡلِ فَسَبِّحۡهُ الخ، د دواړو سورتونو دعوت یو شان دے خو تعبیرات ئے مختلف دي. ګویا که داسے ئے ووېل چه د الله عذاب واقع کیږي په چا ؟ په منکرینو، څوك به ترے بچ کیږي؟ متقیان او نورو ښو صفات والا،

نو د عذابونو د دفع کولو دپاره اسباب اختیار کړئ، عذابونه چرته دي؟ نو په دنیا کښې هم شته او په آخرت کښې هم. دا حاصل شو.

| وَالطُّوۡرِ ﴿١﴾ وَكِتَابٍ مَّسۡطُوۡرٍ ﴿٢﴾ فِيۡ رَقٍّ مَّنۡشُوۡرٍ ﴿٣﴾ وَالۡبَيۡتِ |
|---|
| قسم دے په طور غر. او په کتاب لیکلے شوي. په پاڼړو خورو ورو کښې. او په کور |
| الۡمَعۡمُوۡرِ ﴿٤﴾ وَالسَّقۡفِ الۡمَرۡفُوۡعِ ﴿٥﴾ وَالۡبَحۡرِ |
| آباد کړے شوي باندے. او په چت پورته کړے شوي باندے. او په دریاب |
| الۡمَسۡجُوۡرِ ﴿٦﴾ اِنَّ عَذَابَ رَبِّكَ لَوَاقِعٌ ﴿٧﴾ |
| ډك کړے شوي باندے. یقیناً عذاب د رب ستا ضرور واقع کیدونکے دے. |
| مَا لَهٗ مِنۡ دَافِعٍ ﴿٨﴾ |
| نشته هغے لره هیڅ دفع کونکے. |

**تفسیر:** په دے شپږو آیتونو کښې الله تعالیٰ په خپلو یو څو مخلوقاتو باندے قسم

Scanned by CamScanner

خوری او مقصد پکښې د آوریدونکو په ذهنونو کښې د هغې خبرې اهمیت کینول دی په کومه باندې ئې چه قسَم خوړلے دے، او د کوم ذکر چه په (۷) آیت کښې راغلے دے، یعنی د جهنم عذاب چه دا یو یقینی ځیز دے، او کوم خلق چه ددے حقدار وی په هغوئ به خامخا عذاب نازلیږی، دا یوه داسے خبره ده چه په دے کښې د ذرے هومره د شك او شبهې گنجائش نشته دے۔

وَالطُّوۡرِ : په سُریانئ ژبه کښې غرۀ ته وائی، او په عربی ژبه کښې [ كُلُّ جَبَلٍ ذُوۡ نَبۡتٍ حَسَنٍ] هر هغه غر چه شنه بنائسته گیاه پکښې وی۔

د صحرائے سیناء په کوم غرۀ باندے چه موسیٰ علیه السلام د رب العالمین سره خبرے کړے وے، هغے ته (طورِ سیناء) وئیلے کیږی، چه د الٰهی تجلیّ د طاقت نۀ لرلو په وجه دا ټکړے ټکړے شوے وو۔ او دلته هم دا طور مراد دے۔

وَكِتَابٍ مَّسۡطُوۡرٍ : (قسَم دے په یو لیکلے شوی کتاب) دے نه مراد ❁ یا خو قرآن کریم دے، ❁ یا لوح محفوظ ❁ یا تمام آسمانی کتابونه۔ ❁ یا تورات مراد دے۔ او همدا راجح ده ځکه چه هغه په خوره وره څرمنه کښې لیکلے شوے وو۔

(رق) هغه باریکے څرمنے ته وائی چه هغه به پخوانئ زمانه کښې د کاغذ په طور د لیکلو دپاره استعمالیده۔

وَالۡبَيۡتِ الۡمَعۡمُوۡرِ : (قسَم دے په آباد کور باندے) دے کښې درے قوله دی (۱) یا ددے نه مراد هغه کور دے چه هغه په اووم آسمان کښې دے، کوم چه نبی کریم ﷺ د معراج په شپه لیدلے وو، او وے لیدل چه روزانه اویا زره ملائك دیته ننوزی، او دوباره ددے نه واپس نۀ راوځی۔ ملائك ددے کور داسے طواف کوی څنگه چه زمکے والا د خانه کعبے طواف کوی۔ نبی کریم ﷺ ابراهیم علیه السلام اولیدۀ چه همدے بیت المعمور ته ئې تکیه لگولے وه ناست وو۔ او دا بیت المعمور د خانه کعبے مخامخ دے۔

او هم دغسے یو کور په هر آسمان کښې موندلے کیږی چه د هغے خوا او شاته د همدغه آسمان اوسیدونکی عبادت کوی۔ د دنیا د آسمان د کور نوم ((بیت العزة)) دے۔ نو دا کور د ملائکو په عبادتونو سره آباد دے۔

(۲) بعضِ خلقو د ﴿وَالۡبَيۡتِ الۡمَعۡمُوۡرِ﴾ نه مراد خانه کعبه اخستے ده چه دا په عبادتونو (د حج او عمره او طواف کونکو، اعتکاف کونکو او ذکر کونکو او نفلونه کونکو

Scanned by CamScanner

باندے شپه او ورځ آباده ده، په هیڅ وخت کښې نهٔ فارغه کیږی)۔
(۳) بعض وائی : ددے نه مراد زمکه ده چه په انسانانو او نورو مخلوقاتو باندے آباده ده۔ لیکن ددے مناسبت دومره نشته۔ او په زمکه باندے د بیت اطلاق بعید دے۔ مخکنی قولونه صحیح دی۔ بیا صاحب د محاسن التنزیل دویم تفسیر د سورتِ تین په دویم او دریم آیتونو ﴿ وَطُوۡرِ سِيۡنِيۡنَ وَهٰذَا الۡبَلَدِ الۡاَمِيۡنِ ﴾ په رنړا کښې غوره کړے دے۔ یعنی هلته د طور سیناء سره د بلدِ امین ( مکے مکرمے) ذکر راغلے دے، دے وجے نه دلته هم د طور ذکر کولو نه پس د (البیت المعمور) نه مراد خانه کعبه ده چه په مکه کښې ده، ځکه د قرآن کریم یو آیت د بل آیت تفسیر کوی۔
[سَقۡفٍ مَّرۡفُوۡعٍ] نه مراد آسمان دے، او چونکه دا د زمکے دپاره د چت پشان دے، دے وجے نه ددے نه په چت سره تعبیر وکړے شو۔ او د [الۡبَحۡرِ الۡمَسۡجُوۡرِ] نه مراد :
(۱) یا خو د اُوبو نه ډک سمندر دے،
(۲) یا دا چه کله قیامت راشی، نو د سمندرونو اوبهٔ به اُور جوړ شی۔ اَيِ الۡمُوۡقَدِ الۡمُحۡمِيّ۔ یعنی بل کړے شوے په اُور سره۔
(۳) اَلۡمَمۡنُوۡعُ عَنِ الۡاَرۡضِ ۔ د زمکے نه بند کړے شوے، سره ددے نه چه زمکه ښکته ده، او د دریاب سطح پورته ده، او دا د رب العالمین ناشنا قدرت دے چه ددے په وجه ډیر کافران سائنسدانان مسلمانیږی۔
(٤) بعض وائی : دا د اَضدادو نه دے، فارغ یعنی خالی ته هم وائی۔ (ابو العالیة)
یعنی د قیامت په ورځ به د دریاب اُوبه جهنم سره ملاؤ شی، نو د دریاب زمکه به همواره شی، او پدے باندے تول عالَم الله ته ولاړ وی۔
(٥) بعضو ددے معنیٰ په (مَفۡجُوۡر) سره کړے ده، یعنی تمام سمندرونه به اوشلیږی، خوږے اوبهٔ به ترخو اُوبو سره ملاؤ شی۔ لکه ﴿ وَاِذَا الۡبِحَارُ فُجِّرَتۡ ﴾ (انفطار :۳)
امام شوکانیؒ دویمے معنے له ترجیح ورکړے، یعنی په هغه سمندر باندے ئے قسَم خوړلے چه د هغے اُوبهٔ به د قیامت په ورځ اُور جوړ شی۔
اِنَّ عَذَابَ رَبِّكَ لَوَاقِعٌ: ۱–اَیۡ عَلَی الۡمُكَذِّبِيۡنَ ۲– عَلَی الظّٰلِمِيۡنَ۔ ۳– عَلَی الۡمُشۡرِكِيۡنَ۔ لکه دا دریے واړه دے سورت ذکر کړیدی۔ دا عذابونه به تکذیب کونکو، ظالمانو او مشرکانو باندے نازلیږی۔

Scanned by CamScanner

## مناسبت د قسم او جواب قسم دا دے

چه په طور کښې الله تعالىٰ عذاب راوستے وو په اَویا کسانو د بنی اسرائیلو باندے۔ او په کتاب مسطور (تورات) کښې د پخوانو قومونو عذابونه ذکر کړی وو۔ او په بیت المعمور کښې هر وخت ملائك د مؤمنانو نه د عذاب د دفع کولو دعاګانے د الله تعالىٰ نه غواړی۔ نو هغه ځای هم د ذکر د عذاب دے۔

او که کعبه مراد شی نو په دغه ځای کښې عذاب په اَبْرَهَه راغلے دے۔ او دغه شان قریشو له ئے سزا ورکړه۔

وَالْبَحْرِ الْمَسْجُوْرِ :هم د عذاب ځای دے، قوم نوح او فرعونیان او نور کفار پکښې هلاك شویدی۔ نو دغه د عذاب ځایونه رایاد کړه چه په دنیا کښې الله تعالىٰ په دغه ځایونو کښې عذابونه نازل کړی او ذکر کړیدی، نو دغه شان به د آخرت عذاب هم راځی۔ نو ددے استحضار پکار دے۔

په یو حدیث کښې دی چه عمر فاروق ﷺ یوه شپه روان وو، نو د یو قاری نه ئے دا آیت واوریدو چه ﴿ اِنَّ عَذَابَ رَبِّكَ لَوَاقِعٌ ﴾ نو دے د خپل خر نه راکوز شو او یو دیوال ته ئے تکیه ولګوله بیا کور ته لاړو، نو ددے په وجه بیمار شو، خلق د هغهٔ د بیمارئ په وجه نهٔ پو هیدل، بیا ئے خپله حال ووئیلو چه په ما باندے دے آیت ډیر اثر وکړو۔

او ډیرو سلفو باندے به آیتونو داسے اثر کولو چه بیماران به شول، او ډیر پکښې د ډیر سوچ او فکر د وجه نه مړهٔ شوی هم دی۔ دا خو زمونږ زړونه سخت دی چه دومره اثر نهٔ اخلی۔

مَا لَهٗ مِنْ دَافِعٍ : یعنی ددے دپاره څوك دفع کونکے نشته چه د کافرانو نه ئے واړه وی، واپس ئے کړی۔

| يَوْمَ تَمُوْرُ السَّمَاءُ مَوْرًا ﴿٩﴾ |
|---|
| په هغه ورځ چه تاؤ راتاؤ به شی آسمان په تاویدو سره۔ (وَیه چورلی آسمان په |
| وَتَسِيْرُ الْجِبَالُ سَيْرًا ﴿١٠﴾ فَوَيْلٌ يَّوْمَئِذٍ |
| چورلیدو)۔ او روان به شی غرونه په روانیدو سره۔ پس هلاکت دے په دغه ورځ |

Scanned by CamScanner

| |
|---|
| لِلْمُكَذِّبِيْنَ ﴿١١﴾ الَّذِيْنَ هُمْ فِيْ خَوْضٍ يَّلْعَبُوْنَ ﴿١٢﴾ |
| دپاره د تکذیب کونکو۔ هغه کسان چه دوی په باطله مشغله (بکواس) کښې لوبے |
| يَوْمَ يُدَعُّوْنَ إِلٰى نَارِ جَهَنَّمَ دَعًّا ﴿١٣﴾ |
| کوی۔ هغه ورځ چه دوی به دیکه کولے شی اُور د جهنم ته په دیکه کولو سره۔ |
| هٰذِهِ النَّارُ الَّتِيْ كُنْتُمْ بِهَا تُكَذِّبُوْنَ ﴿١٤﴾ أَفَسِحْرٌ هٰذَا |
| (وئیلے به شی) دا هغه اُور دے چه تاسو به دا دروغژن کنړلو۔ آیا نو جادو دے دا |
| أَمْ أَنْتُمْ لَا تُبْصِرُوْنَ ﴿١٥﴾ اصْلَوْهَا فَاصْبِرُوْا أَوْ لَا تَصْبِرُوْا سَوَاءٌ |
| که تاسو هیڅ نهٔ وینئ۔ ورننوځئ دے ته پس صبر کوئ یا صبر مهٔ کوئ برابره ده |
| عَلَيْكُمْ إِنَّمَا تُجْزَوْنَ مَا كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ ﴿١٦﴾ |
| په تاسو باندے، یقیناً تاسو له بدله درکړے کیږی د هغے عملونو چه تاسو به کول۔ |

**تفسیر**: د قیامت ددے ورځے ځینے نښے دا دی چه په دے ورځ به آسمان انتهائی تیزئ سره حرکت کوی، او غرونه به د خپلو ځیونو نه اخوا شی، د وریځو پشان به روان شی، او گرد او غبار به ترے جوړ شی او آلوزی به۔

او په کومه ورځ چه د آسمانونو او غرونو دا کیفیت وی، نو کومو خلقو چه الله او د هغهٔ رسول او د هغهٔ قرآن دروغژن کنړلے وی، هغوئ لپاره به د ډیر لوی هلاکت او بربادئ ورځ وی، یا به په جهنم کښې د دوئ استوگنه (وَيْل) نومے کنده وی۔

يَوْمَ: یعنی دغه عذاب به پدے ورځ کښې واقع کیږی۔

تَمُوْرُ السَّمَاءُ مَوْرًا: مور گرد گرځیدو (چورلیدو) ته وائی۔ دارنگه تلو راتلو ته وائی۔ مراد ترے نه گډوډ حرکت کول دی۔ دارنگه دا معنیٰ هم ده چه روان به شی په روانیدو۔

ضحاکؒ وائی: [يَمُوْجُ بَعْضُهَا فِيْ بَعْضٍ] چپے به وهی بعضے په بعضو کښې۔

وَتَسِيْرُ الْجِبَالُ سَيْرًا: غرونه به د اسرافیل عليه السلام په دویمه شپیلئ باندے روانیږی۔

فَوَيْلٌ: اُوس د ﴿إِنَّ عَذَابَ رَبِّكَ لَوَاقِعٌ﴾ تشریح کوی چه دا عذاب به په چا واقع کیږی، نو هغه خلق بیانوی۔

Scanned by CamScanner

الَّذِيْنَ هُمْ فِيْ خَوْضٍ يَّلْعَبُوْنَ: (۱) اَیْ فِیْ بَاطِلِهِمْ يَسْتَهْزِؤُوْنَ بِالنَّبِیِّ۔
یعنی دا هغه خلق دی چه په دنیا کښې د باطل تائید کوی، او په هغې کښې ننوزی، او د آخرت د ورځې د حساب او سزا نه غافله په لهو او لعب کښې مشغوله اوسیږی، او نبی کریم ﷺ پورې توقې مسخرې کوی۔ یعنی په باطل کښې به روان وو او بنه خوشحاله به وو، او د هیڅ حساب او عذاب او عقاب نه به نهٔ یریدل چه دا مونږ څه کوو۔
(۲) د ﴿فِيْ خَوْضٍ يَّلْعَبُوْنَ﴾ بله معنیٰ دا هم بیان شوې چه دا به هغه خلق وی چه په دنیا کښې په عیش او آرام کښې ډوب او د آخرت د فکر نه بیخی غافل اوسیدل۔
يَوْمَ يُدَعُّوْنَ : دا د مخکښې (وَيْلٌ) سره متعلق دے، یعنی دوئ به په دغه ورځ هلاک کړے شی چه دوئ به په نهایت بے دردئ سره په دیکو دیکو جهنم ته گوزار کړے شی۔
مقاتلؒ وائی چه د دوئ لاسونه به د دوئ څټونو سره، او د دوئ سرونه به د دوئ د خپو سره اوتړلے شی، بیا به پرمخې جهنم ته وردیکه کړے شی۔
دع په اصل کښې اَلدَّفْعُ بِعُنْفٍ وَّجَفْوَةٍ ته وئیلے شی، یعنی په سختئ او بے دردئ سره دیکه کول، چه ملائك به دوئ لره په څټونو کښې په گورزونو سره وهی او اُور ته به ئے راولی۔
هٰذِهِ النَّارُ الَّتِيْ: یعنی دوئ ته به په جهنم باندې مقرر ملائك وائی چه همدا د جهنم هغه اُور دے چه په دنیا کښې به تاسو دا دروغژن گنړلو، او الله تعالیٰ به د دوئ د ذلت او سپکاوی زیاتولو دپاره دوئ ته وائی چه د جهنم دا اُور گوم چه تاسو اُوس په خپلو سترگو وینئ،
آیا دا جادو او توقه ده څنگه چه تاسو په دنیا کښې زمونږ رسولانو ته جادوگر او زمونږ کتابونو ته جادو او چتی قیصے وئیلے، یا تاسو ړانده یئ، او د جهنم اُور نهٔ وینئ، څنگه چه تاسو په دنیا کښې د زړونو ړانده وئ او نیغه لاره به مو نهٔ موندله۔
اِصْلَوْهَا: اُوس خو هغه حقیقت چه د هغې نه به تاسو په دنیا کښې انکار کولو ستاسو د سترگو مخامخ دے۔ اُوس جهنم ته داخل شئ، او ددے د عذاب سختئ برداشت کوئ، که صبر کوئ او که نهٔ ئے کوئ دواړه حالته برابر دی۔
هیڅکله ستاسو اُوس د جهنم د اُور نه خلاصون نشته، تاسو د خپل رب نه انکار کړے وو، او زمکه مو د گناهونو نه ډکه کړے وه، نو دا عذاب ستاسو د همدغه بدعملیو نتیجه ده۔

Scanned by CamScanner

| |
|---|
| إِنَّ الْمُتَّقِيْنَ فِيْ جَنَّاتٍ وَنَعِيْمٍ ﴿١٧﴾ فَاكِهِيْنَ |
| یقیناً تقوئ والا بندګان به په جنتونو او نعمتونو کښې وي۔ مزې اخستونکی به وي |
| بِمَا آتَاهُمْ رَبُّهُمْ وَوَقَاهُمْ رَبُّهُمْ عَذَابَ |
| په هغه څه چه ورکړیدی دوی ته رب د دوی او ساتلی ئې دوی لره رب د دوی د عذاب د |
| الْجَحِيْمِ ﴿١٨﴾ كُلُوْا وَاشْرَبُوْا هَنِيْئًا بِمَا كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ ﴿١٩﴾ |
| جهنم نه۔ خورئ او څکئ مبارك دې وي په سبب د هغه عملونو چه تاسو به کول۔ |
| مُتَّكِئِيْنَ عَلٰى سُرُرٍ مَّصْفُوْفَةٍ |
| تکیه به وهونکی وي په تختونو باندې چه صف صف کړې شوي به وي |
| وَزَوَّجْنَاهُمْ بِحُوْرٍ عِيْنٍ ﴿٢٠﴾ وَالَّذِيْنَ |
| او یو ځائې به کړو دوی سره حورې ښائسته سترګو والا۔ او هغه کسان |
| آمَنُوْا وَاتَّبَعَتْهُمْ ذُرِّيَّتُهُمْ بِإِيْمَانٍ أَلْحَقْنَا |
| چه ایمان ئې راوړیدې او تابعداري کړیده اولادو د دوی په ایمان کښې، یو ځائې به کړو |
| بِهِمْ ذُرِّيَّتَهُمْ وَمَا أَلَتْنَاهُمْ مِّنْ عَمَلِهِمْ مِّنْ شَيْءٍ كُلُّ امْرِءٍ |
| دوی سره اولاد د دوی او کم به نۀ کړو دوی لره د عملونو د دوی نه هیڅ شې، هر سړې |
| بِمَا كَسَبَ رَهِيْنٌ ﴿٢١﴾ |
| به د هغه عمل چه کړې ئې دې انتظار کونکې وي۔ (هر سړې به په هغه عمل چه کړې ئې دې ګانړه وي) (بند وي)۔ |

**تفسیر** : د قرآن کریم د عامې قاعدې مطابق، د جهنم والو د بد انجام نه پس اُوس د جنت والو دپاره د تیار شوو نعمتونو ذکر کیږي۔ او دا اسباب د دفع د عذاب دي۔ چه دا لاره اختیار کړئ د عذابونو نه به بچ شئ۔

الله تعالیٰ وفرمایل چه په دنیا کښې د شرك او ګناهونو نه بچ کیدونکی به د قیامت په

ورځ پـه جنتونو او باغونو کښې وی، او دوئ لپاره به هیڅ کله نهٔ ختمیدونکی نعمتونه وی، هلتـه به دوئ د الله له خوا د ورکړے شوو نعمتونو نه ښهٔ راحت او خوندونه مومی۔ او یـو ډیر لـوی نـعـمـت بـه دا وی چـه د دوئ رب بـه د دوئ د آزادئ اعلان کوی، پابندی ختـمـه، او دوئ تـه بـه وئیـلے کیـږی چه په دنیا کښې چه تاسو کوم نیك عملونه کول، د هغے پـه سبب اُوس د جنت دے مثاله نعمتونو نه چه مو څهٔ زړهٔ غواړی خورئ څکئ، دلتـه بـه ستـاسـو پـه عیـش او آرام کـښې هیـڅ خلل رانشی، او نهٔ به تاسو له اُوس مرګ راځی۔

فَاكِهِيْنَ: اَیْ نَاعِمِیْنَ مُتَلَذِّذِیْنَ۔ یعنی دوئ به مزے او خوندونه اخستونکی وی په هغه نـعـمتونو چه دوی ته ئے خپل رب ورکوی۔ تفکه په معنیٰ د تعجب او ګپ شپ لګولو، تکبر کولو، او پښیمانه کیدو سره راځی لکه ﴿ فَظَلْتُمْ تَفَكَّهُوْنَ ﴾ (الواقعه : ٦٥)

لیکن دلته ئے اوله معنیٰ مناسب ده۔

وَوَقٰهُمْ : یـعـنـی دوئ سـره الله لـوی احسـان دا وکړو چه دوی ئے د عذاب د جهنم نه بچ وساتل۔

مُتَّكِئِيْنَ : دا د فَاكِهِيْنَ تشـریـح ده۔ یـعنی په دے جنتونو کښې به جنتیان په صفونو کښې لګیدلـو تـکیـه ګـانـو بـانـدے تـکیـه لګولو سره کینی، او الله تعالیٰ به د دوئ سره غټو سترګو والا حُورے یو ځای کړی۔ دلته د تزویج نه مراد نکاح کول نهٔ دی بلکه په معنیٰ د یـو ځای والـی سره دے ځـکـه چـه حـورو باندے به د انسان ملك یمینی راځی، نهٔ ملك نکاحی ځکه چه ملك یمینی ډیر قوی دے د ملك نکاحی نه۔

وَالَّذِیْنَ آمَنُوْا : دا بـل نـعـمـت دے چه الله تعالیٰ مؤمن یواځے جنت ته نهٔ بوځی بلکه کـومـو بـچو چه په دنیا کښې ایمان راوړے وی، نیك عملونه ئے کړی وی، او د ګناهونو نه بچ شـوی وی، دوئ کـه چـرے پـه خپلو عملونو باندے د جنت هغه مقام حاصلولے نشو کـوم چه د دوئ د نیـکـانـو مـور پلار وی، نو الله تعالیٰ به د دوئ د والدینو په خوشحالئ کـښې د زیـاتـوالـی دپـاره د دوئ درجے پـورتـه کړی، او د دوئ د مور پلار مقام تـه بـه ئے اورسـوی۔ سعید بن جبیرؒ د ابن عباس ﷺ نـه هـمدا تفسیر روایت کړے دے۔ نو د مؤمن نیك عمل د اولادو دپاره هم مفید ثابت شو۔

بیا غوره دا ده چـه دا اولاد وړوکـی وی او کـه بـالـغان وی خو د مور او پلار سره به ئے الله

Scanned by CamScanner

تعالیٰ د هغوی د سترګو د یخوالی دپاره یو ځای کوی۔
بِاِیْمَانٍ: دا حال دے یعنی په حال کون د دغه اولاد کښ چه دویٔ ایمان سره وی، او د ورو کو ایمان تبعی دے، د مور او پلار تابع دی۔
او السراج المنیر ذکر کړیدی چه ذریت لفظ د اولاد نه عام دے، شامل دے پلارانو، اولادو او تابعداری کونکو ملګرو او شاګردانو ته، او دے ته ذُرِّيَّةُ الْوِلَادَة او ذُرِّيَّةُ الْإِفَادَة او ذُرِّيَّةُ الْمَحَبَّة وائی۔ او دلیل پرے (اَلْمَرْءُ مَعَ مَنْ اَحَبَّ) دے۔ نو بیا پدے کښ ډیر زیرے دے چه الله به د جنتیانو سره د هغوی روستو تول مؤمن نسل یو ځای کوی، او د هغهٔ ملګری او شاګردان به هم ورسره وی۔ اَللّٰهُمَّ اجْعَلْنَا مِنْهُمْ ۔ دغه شان د ' ، طرفنه واخله که ځوی اعلیٰ مقام والا وی، نو الله به ورسره پلاران یو ځای کړی۔
وَمَا اَلَتْنٰهُمْ: یعنی د دویٔ د خوشحالولو دپاره چه د دویٔ اولاد د دویٔ سره یو ځای کولے شی، نو پدے سره به د پلارانو په اجر او ثواب کښ کمے نهٔ کیږی۔ دا په وَيَزِيْدُهُمْ مِنْ فَضْلِهٖ نعمت کښ داخل شو۔
كُلُّ امْرِءٍۭ بِمَا كَسَبَ رَهِيْنٌ: (۱) دا په حشر کښ مراد دے، او پدے کښ د الله تعالیٰ د عدل او انصاف بیان دے، یعنی هر چا چه څه عمل کړے وی، نو په هغے کښ به ګانړه وی او راګیر وی، الله به د چا نیوکه د بل چا د ګناهونو په وجه نهٔ کوی۔
هر انسان به صرف د خپل عمل ذمه وار وی، په دهٔ به د بل چا د ګناهونو بوج نشی اچولے، اګرکه ددهٔ پلار یا ځوی ولے نهٔ وی، لکه څنګه چه الله تعالیٰ د سورتِ مدثر په (۳۹/۳۸) آیتونو کښ فرمائیلی دی:

﴿كُلُّ نَفْسٍۭ بِمَا كَسَبَتْ رَهِيْنَةٌ اِلَّا اَصْحٰبَ الْيَمِيْنِ﴾

(هر نفس د خپلو عملونو په بدله کښ ګانړه دے، مګر ښی طرف والا)۔
رَهِيْنٌ: مُرْتَهَن (یعنی ګانړه کړے شوی) ته وائی۔ لکه څنګه چه یو سړی پورے ستا قرض دے، او تهٔ ترے د هغے په بدله کښ ګانړه ونیسے، نو دا شے به بند وی ترڅو چه قرض ادا شوے نهٔ وی، نو دغه شان هر انسان به په خپل عمل کښ بند وی۔
دلته كُلُّ امْرِئٍ نه کافران مجرمان مراد دی، مؤمنان به ګانړه نهٔ وی لکه د سورتِ مدثر په دغه آیت کښ د هغوی استثناء ذکر ده۔
(۲) دے کښ دا هم جائز ده چه د دنیا سره متعلق شی، یعنی هر سړے په خپل نیک او

بد عمل کښې بند دے، که نیك عمل ئې کړے وی نو هغه به ئې خلاصوی او که بد عمل ئې کړے وی نو هغه به ئې رابندوی او هلاکوی به ئې.

| وَأَمْدَدْنَاهُمْ بِفَاكِهَةٍ وَلَحْمٍ مِّمَّا يَشْتَهُونَ ﴿٢٢﴾ |
|---|
| او وربه کړو دوی ته میوے او غوښے د هغے نه چه دوی ئې خوښوی. |
| يَتَنَازَعُونَ فِيهَا كَأْساً لَّا لَغْوٌ فِيهَا |
| یو بل نه به اخلی پدے کښې کاسے ډکے نۀ به بے فائدے خبرے (بکواس) وی په هغے |
| وَلَا تَأْثِيمٌ ﴿٢٣﴾ وَيَطُوفُ عَلَيْهِمْ غِلْمَانٌ لَّهُمْ كَأَنَّهُمْ |
| کښې او نۀ ګناه. او ګرځی به (د خدمت دپاره) په دوی باندے هلکان د دوی ګویا کښې |
| لُؤْلُؤٌ مَّكْنُونٌ ﴿٢٤﴾ وَأَقْبَلَ بَعْضُهُمْ عَلَىٰ بَعْضٍ |
| دوی ملغلرے دی پټے ساتلے شوے. او مخامخ به شی بعض د دوی بعضو ته |
| يَتَسَاءَلُونَ ﴿٢٥﴾ قَالُوا إِنَّا كُنَّا قَبْلُ |
| یو بل نه به تپوس کوی. وائی به دوی یقیناً مونږ وو مخکښېددے نه |
| فِي أَهْلِنَا مُشْفِقِينَ ﴿٢٦﴾ فَمَنَّ اللَّهُ عَلَيْنَا |
| په کورنئ کښې یریدونکی (د الله نه). نو احسان اوکړو الله تعالیٰ په مونږ باندے |
| وَوَقَانَا عَذَابَ السَّمُومِ ﴿٢٧﴾ إِنَّا كُنَّا مِن قَبْلُ |
| او وے ساتلو مونږ د عذاب د ګرمے هوا نه. یقیناً مونږ به ددے نه مخکښې |
| نَدْعُوهُ إِنَّهُ هُوَ الْبَرُّ الرَّحِيمُ ﴿٢٨﴾ |
| دعاګانے غوختلے د الله نه، یقیناً هغه ډیر احسان کونکے، رحم کونکے دے. |

**تفسیر** :وَأَمْدَدْنَاهُمْ بِفَاكِهَةٍ: او مونږ به د دوئ د رغبت (مینے) مطابق دوئ له نښے میوے او غوښه ورکوو هلته به دا خلق یو بل نه مخکښې کیدو سره د یو بل نه د شرابو پیالے راخلی، چه د هغے په وجه به دوئ نۀ بیهوده خبرے کوی، نۀ څۀ ګناه او په دوئ

Scanned by CamScanner

بانـدے بـه د دوئ دپاره خاص کړے شوی خدمتګاران هلکان تیریږی، چه هغه به په سیپیو کښ بندو ملغلرو غوندته ښائسته وی.

يَتَنَازَعُونَ: ۱ - اَیۡ يَتَعَاطَوۡنَ. یعنی یو بل له به ورکوی.

۲ -تنازع په لغت کښ جنګ ته وائی، یعنی یو بل سره به ګلاسونه د شرابو جنګوی. لکه دا د شرابیانو طریقه ده چه کله شراب څکی، نو اول ئے د یو بل سره وجنګوی نو دے حالت ته اشاره ده.

۳- یا د نزع نه دے په معنیٰ د راښکلو سره، یعنی د یو بل نه به د شرابو ګلاسونه تښتوی، او راکاږی به ئے لکه څنګه چه په دنیا کښ خوشحاله مست ملګری داسے کوی.

كَأۡسًا: د شرابو لوښی ته وائی، بیا هر هغه لوښی باندے ئے اطلاق کیږی چه ډك وی برابره ده چه د شرابو نه وی او که د بل څه نه.

لَّا لَغۡوٌ فِيهَا: لغوه هغه خبرے ته وائی چه په هغے کښ فائده نهٔ وی، او تأثیم د ګناه خبرے ته وائی. نو د لغو نه مراد د جګړے خبرے، کنځل او باطل دے.

او تأثیم نه مراد ابن عباس ﷺ فرمائی: لَا كَذِبَ فِيهَا. دروغ به پکښ نهٔ وی.

وَيَطُوفُ عَلَيۡهِمۡ غِلۡمَانٌ لَّهُمۡ: او د دوئ د خدمت لپاره به د دوئ نه ګیر چاپیره خادمان هلکان ګرځی، او د دوئ د خوراك دپاره به دوئ ته میوے او د څښکلو لپاره ډك جامونه پیش کوی، او دا به داسے ښائسته شکل والا وی لکه په سیپئ کښ بندے ملغلرے، چه په هغے باندے چا لاس نهٔ وی وهلے. نو دا ئے خادمان شو نو د مخدومینو حسن او ښائست به څومره وی!!. او هلکانو قید څکه لګوی چه کله مشر سړے خدمت کوی نو انسان باندے بوج پریوزی، او چه کشر خدمت کوی نو دا ډیره مزه کوی.

وَأَقۡبَلَ بَعۡضُهُمۡ: جنتیان به خپلو کښ داسے خبرے کوی چه ددے نه به مقصد په جنت کښ د رب العالمین د ورکړو نعمتونو ذکر او په دے باندے د هغهٔ شکر اداء کول وی.

او دارنګه پدے تپوس کښ به مقصد خپل تعب او خوف رایادوی.

یا بـه یـو بل ته وائی چه تاسو ته دا اُوچته مرتبه څنګه ملاؤ شوه؟ نو الله د ټولو خلقو د جـواب خـلاصه بیانوی چه هغه درے خبرے دی چه پدے سره بنده جنت ته داخلیږی. او پدے کښ په طریقه د جملے خبریې سره دعوت دے.

Scanned by CamScanner

اول :إِنَّا كُنَّا قَبْلُ فِيْ أَهْلِنَا مُشْفِقِيْنَ: ۱ – اَیْ خَائِفِيْنَ وَجِلِيْنَ مِنْ عَذَابِ اللّٰهِ۔
يعنى مونږ به د قيامت د ورځے راتگ نه مخکښې په دنيا کښې د الله د عذابونو نه يريدو۔
(۲) خَائِفِيْنَ مِنْ عِصْيَانِ اللّٰهِ۔ يا يريدونکى وو د الله د نافرمانئ نه۔
(۳) مِنْ نَزْعِ الْاِيْمَانِ وَفَوْتِ الْاَمَانِ ۔ ددے نه يريدو چه چرته ايمان رانه وانخستے شى او هلاك نشو۔
(٤) مِنْ رَدِّ الْحَسَنَاتِ وَالْاَخْذِ بِالسَّيِّئَاتِ ۔ ددے نه يريدو چه زمونږ نيکيانے به قبولے نشى، او په گناهونو به راونيولے شو۔ مقصد دا چه هر وخت په يره کښې وو ځکه چه په کور کښې انسان په امن کښې وى، نو دوئ چه هرکله په ځاى د امن کښې په يره وسيدل، نو د خوف په ځاى کښې خو به په طريق اولىٰ سره په يره کښې وو۔
او مُشْفِقِيْنَ کښې شفقت ته هم اشاره ده، يعنى دوئ د الله تعالىٰ په مخلوق باندے شفقت لرونکى وو۔ لکه په اِنَّا كُنَّا نَدْعُوْهُ کښې د الله تعالىٰ د امر تعظيم ته اشاره ده۔
ابراهيم تيمىؒ به وئيل : [اَخْشٰى اَنْ مَنْ لَّمْ يَكُنْ فِيْ قَلْبِهٖ حُزْنٌ وَّلَا اِشْفَاقٌ اَنْ لَّا يَكُوْنَ مِنْ اَهْلِ الْجَنَّةِ] زۀ يريږم چه د چا په زړه کښې غم او يره نۀ وى چه هغه به د جنتيانو نه نۀ وى۔ ځکه چه الله تعالىٰ د جنتيانو په باره کښې فرمائى :

﴿ اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِيْٓ اَذْهَبَ عَنَّا الْحَزَنَ ﴾ او ﴿ فِيْٓ اَهْلِنَا مُشْفِقِيْنَ ﴾

يو سړى کښې يره نۀ وى، نو هغه به څنگه ووائى چه مونږ به په دنيا کښې د الله تعالىٰ نه يريدو۔ او د يرے نښه دا ده چه د انسان په زندگئ کښې تبديلى پيدا شى۔
فَمَنَّ اللّٰهُ عَلَيْنَا : دا دويم سبب د نجات دے۔ چه د الله احسان زمونږ سره شاملِ حال شو، هغه مونږ ته گناهونه معاف کړل، او په مونږه ئے رحم وکړو او د خپل طاعت توفيق ئے راکړو۔
السَّمُوْمِ: دا هغه گرمه هوا ده چه د بدن په مساماتو کښې ننوزى، او دلته د جهنم گرمه هوا مراد ده۔
إِنَّا كُنَّا مِنْ قَبْلُ نَدْعُوْهُ : دا دريم سبب دے۔ او دعاء په معنىٰ د عبادت سره ده۔ يعنى مونږ به په دنيا کښې صرف د هغۀ عبادت کولو، نو مخکښې خوف او دلته عبادت ذکر دے۔
۲– يا دعاء په خپله معنىٰ ده، يعنى مونږ به د هغۀ مخے ته ژړا او فريادونه کول چه

Scanned by CamScanner

ارحم الراحمین! تهٔ مونږ له د جهنم د عذاب نه نجات راکړه، او په جنت کښې مو داخل کړه، نو هغهٔ زمونږ دعاء قبوله کړه، ځکه چه ځوك هغه رابلی، هغه خامخا ددهٔ آوری، او په هغهٔ باندے خامخا احسان کوی، او ځوك چه صرف د هغهٔ عبادت کوی، او د هغهٔ د عذاب نه یریږی، په هغهٔ باندے رحم کوی، او هغهٔ له خامخا په نیغه لاره باندے د روانیدو توفیق ورکوی۔

الْبَرُّ الرَّحِيْمُ: هغه فراخه احسان کونکے دے۔ رحیم کښې اشاره ده د عذاب نه بچاؤ ته او بر کښې اشاره ده جنت ورکولو ته۔

| |
|---|
| فَذَكِّرْ فَمَا أَنْتَ بِنِعْمَتِ رَبِّكَ بِكَاهِنٍ |
| نو بیان کړه قرآن (نصیحت بیان کړه) پس نهٔ ئے تهٔ په نعمت د رب ستا تروپتی |
| وَّلَا مَجْنُوْنٍ ﴿۲۹﴾ أَمْ يَقُوْلُوْنَ شَاعِرٌ نَّتَرَبَّصُ بِهٖ رَيْبَ |
| (جوگی) او نهٔ لیونے۔ آیا وائی دوی دا شاعر دے انتظار کوو مونږ په دهٔ باندے د حادثے |
| الْمَنُوْنِ ﴿۳۰﴾ قُلْ تَرَبَّصُوْا فَإِنِّيْ مَعَكُمْ مِّنَ الْمُتَرَبِّصِيْنَ ﴿۳۱﴾ |
| د مرگ۔ (حادثے د زمانے)۔ اُووایه انتظار کوئ یقیناً زهٔ تاسو سره د انتظار کونکو نه |
| أَمْ تَأْمُرُهُمْ أَحْلَامُهُمْ بِهٰذَا أَمْ هُمْ قَوْمٌ طَاغُوْنَ ﴿۳۲﴾ |
| یم۔ آیا حکم کوی دوی ته عقلونه د دوی پدے کفر باندے بلکه دوی قوم سرکشان |
| أَمْ يَقُوْلُوْنَ تَقَوَّلَهٗ بَلْ لَّا يُؤْمِنُوْنَ ﴿۳۳﴾ |
| دی۔ آیا وائی دوی دا قرآن ئے د ځان نه جوړ کړیدے بلکه دوی ایمان نهٔ راوړی۔ |
| فَلْيَأْتُوْا بِحَدِيْثٍ مِّثْلِهٖ إِنْ كَانُوْا صَادِقِيْنَ ﴿۳۴﴾ |
| نو راودے وړی یو کتاب پشان ددے قرآن که چرته وی دوی رشتینی۔ |

**تفسیر:** فَذَكِّرْ : دا تفریع ده په اوم آیت ﴿إِنَّ عَذَابَ رَبِّكَ لَوَاقِعٌ﴾ ستا د رب عذاب راځی نو تهٔ بیان وکړه او خلق ویره وه، او د الله توحید ته ئے رادعوت کړه۔

او پدے آیتِ کریمه کښې د رسول الله ﷺ رشتینوالے دے، او د مشرکانو ددے وینا رد

Scanned by CamScanner

کول دي چه محمد یا خو کاهن (ترویتی) دے چه د غیبو خبرونو راوړلو دعوئ کوی، یا دهٔ ته لیونتوب لګیدلے دے چه ددے په سبب ګډے وډے خبرے کوی۔
بِنِعْمَتِ رَبِّكَ : ددے دوه مطلبه دی، یو ۱- بِسَبَبِ اِنْعَامِ اللّٰهِ عَلَيْكَ۔ یعنی الله درباندے احسان کړیدے نو لیونتوب ئے درکښې نهٔ دے اچولے۔
۲- یا نعمت نبوت ته وائی۔ یعنی په تا باندے ستا د رب لوی انعام دے چه هغهٔ تاله نبوت، درونډ عقل او عظیم شریفانه اخلاق درکړی دی، تهٔ کاهن او لیونے څنګه کیدے شے؟ تهٔ خو چه څهٔ بیانوے هغه د الله وحی وی، او بندګانو دپاره د هغهٔ پیغام وی، چه هغه تهٔ په غیر د زیاتی کمی نه دویٔ ته رسوے۔
بِكَاهِنٍ: کاهن : اَلَّذِیْ یُخْبِرُ عَمَّا فِیْ غَدٍ مِنْ غَیْرِ وَحْیٍ۔ هغه شخص دے چه د راتلونکے زمانے د غیبو خبرو خبر ورکوی چه وحی ورته نهٔ وی شوی۔ او دے ته ترویتی او جوګی هم وائی۔ دے د کوم ځای نه معلوموی؟ نو یا خو دهٔ ته پیریانو د دروغو خبره راوړی وی یا پیریانو د د ملائکو نه بعض خبرے آوریدلی وی، او دے ورسره دروغ یو ځای کړی او څه د بعض آلاتو او تجربو نه معلوموی، او اکثر کاهنان د غیبو دعوے کوی، پدے وجه دا کافر حسابیږی، او حدیث کښې دی :

[مَنْ أَتٰی کَاهِنًا فَصَدَّقَهُ بِمَا یَقُوْلُ فَقَدْ کَفَرَ بِمَا اُنْزِلَ عَلٰی مُحَمَّدٍ ﷺ]

څوك چه کاهن ته راغے او د هغهٔ تصدیق ئے وکړو نو دهٔ کفر وکړو په هغه کتاب چه په محمد ﷺ باندے نازل شویدے۔

(ابوداود: ۳۹۰۶) احمد (۹۵۳۲) اسناد صحیح)

أَمْ يَقُولُونَ: اُوس د مشرکانو د رسول الله ﷺ په باره کښې ګډے وډے خبرے رانقل کوی او بیا پرے رد کوی۔ د مکے مشرکانو به کله وئیل چه محمد (ﷺ) یو شاعر دے، څنګه چه په عربی ښارونو کښې لوی لوی شاعران تیر شوی دی۔ دا به هم مونږ ته یو څو کالو پورے خپله شاعری آوروی، بیا به طبعی عمر ته رسیدو سره مړ شی، او قصه به ختمه شی۔
رَيْبَ الْمَنُونِ : ریب په اصل کښې سخت شك ته وائی، دلته ترے مراد حوادث دی۔ او منون زمانے ته وائی یعنی حوادث د زمانے۔ او منون کله مرګ ته هم وائی۔ د مَنٌّ نه دے په معنیٰ د قطع سره او مرګ هم شمار کموی او مدد قطع کوی۔

Scanned by CamScanner

او زمانـه هـم نیتـې پریکوي۔ او دلتـه د حوادثو تشبیـه د ریب (شك) سره ورکړے شویده، دا استعاره تصریحیه ده، یعني لکه څنګه چه شك همیشه نهٔ وي او په یو حال باقي پاتې نهٔ وي نو دغه شان زمانه هم ده۔

اصمعيؒ وائي : منون واحد دے چه جمع ئے نشته۔

اخفشؒ وائي : دا جمع ده چه واحد ئے نشته۔

او قریشـو پـه دار الـنـدوه کښې دا خبره کړے وه چه دا جیل ته وا چوئ نو د نورو شاعرانو زهیـر او نـابـغـه ذُبْیَـانـي پـه شان به مړه شي ځکه چه دا هم د هغوي هم په شان یو شاعر دے۔ (ابن عباسؓ)

قُلْ تَرَبَّصُوْا : یـعـنـي مرګ خو په تاسو هم راځي یوائے په ما خو نهٔ دے۔ نو دا ستاسو کور مغزي ده چه زما په باره کښې د مرګ انتظار کوئ، نو مونږ ستاسو په باره کښې د الله د فیصلے انتظار کوو چه په تاسو به عذاب نازلوي۔

دلتـه پـنـځـلـس کـرتـه اَمْ ذکر شویدے، او مقصد پدے کښې اِلزام دے په مخاطبینو چه د دوئ سره ئے هیڅ جواب نشته۔

او مـقـصـد پدے تپوسونو کښې د هغوي تقبیح (بدي بیانول) او هغوي ته زورنه ورکول دي۔

اَمْ تَـاْمُرُهُمْ اَحْلَامُهُمْ : یـعـنـي آیـا دوئ تـه د دوئ عـقـلـونو پدے کفر او تکذیب حکم کـړیـدے او پـه دے خبـره چـه رسول الله ﷺ شاعر دے، یعني د قریشو سرداران خو د غټ عـقـل والا ګنړل کیدل، هغوئ ته پته وه چه محمد نهٔ کاهن دے نهٔ لیونے، بلکه دا واقعي د الله رسـول دے، نو بیا څرنګ داسے متناقضے او متضاد خبرے کوي ځکه چه کاهن خو ډیر هوښیار او ذهین او زیرکه وي، او لیونے خو بے عقله وي۔

نو دا د دوئ څرنګه عقلونه دي چه حق او باطل پرے نشي پیژندلے، بلکه ددے وجه دا ده چـه دوئ صرف د کبر او عناد په وجه داسے خبرے کوي، دوئ په عناد او ضد کښې د حد نه تیروتلي دي۔

احلام جمع د حِلْمْ ده، بُردبارئ ته وئیلے شي او بردباري د عقلمند سړي کار وي پدے وجه حلم په معنیٰ د عقل سره هم استعمالیږي۔

بِهٰذَا: کښې اشاره ده کفر او تکذیب ته۔ او دے متناقضو خبرو ته۔

Scanned by CamScanner

أَمْ يَقُوْلُوْنَ تَقَوَّلَهُ : دا د دوئ بله سرکشی ده چه د قرآن په باره کښ غلطه خبره کوی، وائی چه قرآن د محمد (ﷺ) کلام دے، دهٔ د خپل ځان نه جوړ کړے دے، بلکه خبره ددے نه هم وړاندے تلے ده، په اصل کښ دا متضادے خبرے دوئ ځکه کوی چه دوئ کافران دی، نهٔ په الله ایمان لری، او نهٔ د رسول اکرم ﷺ د نبوت تصدیق کوی، په دے وجه دا قِسم دروغ تړی۔

فَلْيَأْتُوْا بِحَدِيْثٍ: پدے کښ چیلنج ورکوی چه که دوئ زما په پیغمبر باندے دا تهمت لګوی چه دهٔ دا کتاب د ځان نه جوړ کړیدے، نو بیا دے دوئ تکړه شی ددے قرآن په شان کتاب دے راوړی چه د دوئ رشتیا معلومه شی۔

بِحَدِيْثٍ: د حدیث نه مراد یوه خبره نهٔ ده ځکه چه ددے جوړول خو هر چا ته آسان دی چه مثلاً (قَالَ) ووائی، بلکه ددے نه مراد ټول قرآن دے لکه داسے چیلنج په سورة الاسراء (۸۸) آیت کښ هم ورکړے شوے وو۔

﴿ اَنْ يَّاْتُوْا بِمِثْلِ هٰذَا الْقُرْاٰنِ ﴾۔ حدیث دلته د قرآن نوم او صفت دے۔

مِّثْلِهٖ: یعنی ددے قرآن پشان کلام دے راوړی کوم چه په ښائسته بیان، ناشنا اسلوب او فصاحت او بلاغت کښ انتهاء ته رسیدلے وی، ځکه چه قرآن په عربئ ژبه کښ دے، او د دوئ عوئ ده چه دوئ د فصاحت او بلاغت آخری سرته رسیدلی دی۔

| أَمْ خُلِقُوْا مِنْ غَيْرِ شَيْءٍ أَمْ هُمُ الْخَالِقُوْنَ ﴿۳۵﴾ |
|---|
| آیا دوی پیدا کړے شویدی په غیر د څه فائدے نه آیا دوی پیدا کونکی دی (د ځانونو |
| أَمْ خَلَقُوا السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضَ بَلْ لَّا يُوْقِنُوْنَ ﴿۳۶﴾ أَمْ |
| خپلو)۔ آیا دوی پیدا کړیدی آسمانونه او زمکه بلکه دوی یقین نهٔ لری۔ آیا |
| عِنْدَهُمْ خَزَائِنُ رَبِّكَ أَمْ هُمُ الْمُصَيْطِرُوْنَ ﴿۳۷﴾ |
| دوی سره خزانے د رحمت د رب ستا دی یا دوی مقرر کړے شویدی (د هغے په تقسیم |
| أَمْ لَهُمْ سُلَّمٌ يَّسْتَمِعُوْنَ فِيْهِ |
| باندے)۔ آیا دوی لره پارسنګ (پوړئ) شته چه غوږ کیږدی په هغے کښ |

Scanned by CamScanner

فَلْيَأْتِ مُسْتَمِعُهُمْ بِسُلْطَانٍ مُّبِينٍ ﴿۳۸﴾

نو راډې وړي آوریدونکے د دوی دلیل ښکاره.

**تفسیر** : اُوس د مکے مشرکانو ته په بله طریقه زورنه ورکولے شي او د هغوی په خلاف دلیل قائموی چه ددے په نتیجه کښې دوئ له د توحید اقرار کول پکار دی، ځکه چه که انکار کوی نو د دوئ په خلاف به حجت قائم شي.

نو فرمائي چه دا خلق چه په پیغمبر اعتراض کوی، او دا نۀ مني، او په دنیا کښې هسے بے مقصده ژوند تیروی، نو دوئ به څه خالق نۀ لري ځکه به داسے کوی، ځوك چه خپل خالق لري نو ضرور به د هغۀ طاعت کوی.

مِنْ غَيْرِ شَيْءٍ : ددے درے مطلبه دی (۱) مِنْ غَيْرِ خَالِقٍ . یعنی آیا دوئ د خالق نه بغیر پیدا شویدی، (ابن عباسؓ)

اَمْ هُمُ الْخَالِقُوْنَ: او که ځانونه ئے خپله پیدا کړیدی چه دوی ته به امر او نهی نۀ کیږی. یعنی دوی به د الله بندګان نۀ وی پدے وجه به دوئ د الله تعالیٰ بندګی نۀ کوی، هرکله چه دوی الله خپل خالق ګڼري نو بیا خو په دوی باندے حجت (دلیل) قائم دے، بیا دوئ د هغۀ توحید ولے نۀ مني، د هغۀ رسولان او کتابونه ولے نۀ مني.

اَمْ خَلَقُوا السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضَ : که دوی دعوه وکړی چه مونږ خپله ځانونه پیدا کړیدی، نو اُوس ورته ترقي کوی چه بیا دا آسمانونه او زمکه چا پیدا کړل؟ آیا دا دوئ پیدا کړی؟، نو لازمی خبره ده چه دوئ به دا اقرار کوی چه دا یواځے الله پیدا کړیدی نو بیا ولے په هغۀ ایمان نۀ راوړی. خو اصل خبره دا ده چه (بَلْ لَّا يُوْقِنُوْنَ) بلکه دوی په الله باندے یقین نۀ لري ځکه په داسے شکونو او ګډو وډو روان دی.

او پدے کښې رسول الله ﷺ ته تسلي هم ده چه که دوی په تا اعتراضونه کوی او تا نۀ مني نو دوی د الله په توحید هم اعتراضونه لري.

جُبیر بن مطعم ﷜ فرمائي : د مابنام په مانځه کښې رسول الله ﷺ دا سورت لوستلو نو دا آیت چه ما واوریدو زما په زړه کښې دننه ننوتو او دے وخت کښې زۀ په قیدیانو کښې راغلے وم نو ایمان مے راوړو.

(ځکه چه ځوك پدے آیتونو کښې فکر وکړی نو د الله سره ئے مینه پیدا شي، او هغۀ

Scanned by CamScanner

باندے ئے یقین مضبوط شي، او د هغهٔ طاعت او بندگئ ته غاړه ایږدي)۔
(۲) مِنۡ غَیۡرِ شَیۡءٍ: نه مراد فائده ده، یعني بے فائدے او عبث پیدا دي لکه ﴿ اَیَحۡسَبُ الۡاِنۡسَانُ اَنۡ یُّتۡرَكَ سُدًی﴾ په شان دے۔ یعني آیا دوئ به په دنیا کښې بے مقصده بیکاره پیدا شوي وي، چه امر او نهي به ورته نهٔ کیږي، نهٔ بلکه دوي باندے لوی مقصد پروت دے۔
نو من په معنیٰ د (لام) سره دے۔ (ابن کیسان)
(۳) مِنۡ غَیۡرِ شَیۡءٍ: اَیۡ مِنۡ غَیۡرِ اَبٍ وَّلَا اُمٍّ مِثۡلَ الۡجَمَادِ۔ یعني آیا دوئ په غیر د مور او پلار نه پیدا شویدي لکه د جماد (کاڼرو) په شان چه نهٔ ورته امر کیږي او نهٔ نهي۔ او د الله به په دوي باندے هیڅ حجت قائم نهٔ وي۔ یعني دوئ خو مکلف مخلوق دے۔ آیا دوي گنے د نطفے او علقے او مضغے نه نهٔ دي پیدا۔ (ابن عطاءؒ) اوله معنیٰ زیاته ظاهره ده۔
اَمۡ عِنۡدَهُمۡ خَزَآئِنُ: دا بل زجر دے چه د مخکښې سره متعلق دے، چه آیا د الله تعالیٰ خزانے د دوئ سره دي، او د دوئ په اختیار کښې دي،
(۱) یعني د باران او د رزق وغیره خزانے۔ حَتّٰی یَسۡتَغۡنُوۡا عَنۡ عِبَادَتِهٖ۔ (ابن عباسؓ)
تردے چه د دوئ د الله بندگئ ته حاجت نهٔ دے پاتے شوے۔ او خپله د هر څه نه پوره دي۔ نو دا هم نشته، بلکه دوي الله ته محتاج دي، نو بیا دوي ولے د هغهٔ توحید او د هغهٔ رسولان نهٔ مني۔ (۲) (یا کنجیانے د رحمت مراد دي)
(۳) یا د خزائنو نه مراد د نبوت د تقسیمولو خزانے او اختیار دے، (عکرمةؒ)
او دا رد دے د مشرکانو پدے خبره چه د رسول الله ﷺ د نبوت به ئے انکار کولو او وئیل به ئے چه الله د مکے او طائف لوی لوی مشران پریښودلو سره څنگه محمد له نبوت ورکړو؟۔
نو الله فرمائي: چه آیا ستا د رب د رحمت خزانے د دوئ په اختیار کښې دي چه دوئ چاله غواړي ورکوي ئے، او چاله چه غواړي محروموي ئے۔ دے وجے نه دوئ په الله اعتراض کوي چه هغهٔ خپل بنده او رسول محمد (ﷺ) له ولے نبوت ورکړے دے، حالانکه دا خو د الله په نظر کښې انتهائي حقیر او ذلیل خلق دي، د دوئ په اختیار کښې خو خپل نفع او نقصان هم نشته۔ دوئ په خپل طاقت سره د الله په بادشاهي او د هغهٔ په اختیاراتو باندے قابض شوي نهٔ دي چه داسے خبرے کوي، دوئ خو انتهائي محتاج او عاجزه خلق دي۔

Scanned by CamScanner

خزائن ئې جمع راوړه ځکه چه خزانه هغه کوټه ده چه د هر قسم سامانونو او څیزونو او ذخائرو د راجمعه کولو دپاره تیاره شوی وی او په هغې کښې هر جنس شے وی نو د الله مقدورات هم د خزانو په شان دی چه هر جنس پکښې شته او هیڅ انتهاء ئې نشته.

(قرطبی)

أَمْ هُمُ الْمُصَيْطِرُوْنَ: (۱) یعنی آیا الله دوی مقرر کړیدی په تقسیمولو د خزانو چه دوی پکښې چا ته نبوت ورکول غواړی هغه له ئې ورکړی، او څوك منع کړی.

مُصَيْطِرُوْنَ: (۲) بله معنیٰ ده. اَلْغَالِبُوْنَ الْمُسَلَّطُوْنَ الْقَاهِرُوْنَ الْجَبَّارُوْنَ.

یعنی آیا دوی غالبه او مسلط او زوره ور دی چه په زوره چا ته څه ورکول غواړی هغه ورکړی. (ابن عباسؓ)

(۳) اَلْمُحَاسِبُوْنَ لِلْخَلَائِقِ (ابن کثیرؒ) یعنی آیا دویٔ به د مخلوق سره حساب کوی چه ته ولے د نبوت دعوه کوے او دا بل ئې ولے نهٔ کوی؟ - او دا خبره هم نشته.

أَمْ لَهُمْ سُلَّمٌ: په دے آیت کښې هم استفهام د نفی په معنیٰ سره دے، یعنی آیا دویٔ سره څهٔ داسے پوړیٔ شته چه د هغے په ذریعه دویٔ آسمانه پورے رسیږی، او د ملائکو هغه خبرے آوری کومے چه هغویٔ ته د وحی په ذریعه معلومیږی،

او په هغے کښې د شرك اباحت وی، نو دویٔ به هغه وحی آوریدلی وی، او بیا به ئې لاندے بیان کړی وی چه مونږ د ملائکو نه واوریدل چه شرك جائز دے.

که څوك ددے دروغو دعوه وکړی، نو بیا دے دویٔ په خپل رشتینوالی باندے ښکاره دلیل راوړی.

او دویٔ به دلیل څنګه پیش کړے شی، د غیبو خبرے خو صرف الله سره دی، هغه خو په دے باندے هیچا لره نهٔ خبروی، سویٰ د هغه رسول نه چه هغهٔ لره د خپل پیغام رسولو دپاره چوڼ کوی، نو هغهٔ له چه د څومره خبرو هغه غواړی خبر ورکوی.

او محمد (ﷺ) د الله رسول دے، چه هغهٔ له ئې د خپل توحید او دینِ اسلام د رشتین والی خبر ورکړے، او د مکے مشرکان ناپوهه، ګمراه او په کبر او عناد کښې مبتلا دی، چه دویٔ سره د آسمان نه هیڅ خبر نهٔ راځی، نو ښه اُوس د چا خبره اومنلے شی؟، د دویٔ یا د محمد (ﷺ) چه ددهٔ خواته د آسمان نه وحی راځی.

Scanned by CamScanner

| |
|---|
| أَمۡ لَهُ ٱلۡبَنَٰتُ وَلَكُمُ ٱلۡبَنُونَ ﴿٣٩﴾ أَمۡ تَسۡـَٔلُهُمۡ أَجۡرٗا فَهُم |
| آیا هغهٔ لره لونړه دي او تاسو لره ځامن دي۔ آیا غواړې ته د دوی نه مزدوري نو دوی |
| مِّن مَّغۡرَمٖ مُّثۡقَلُونَ ﴿٤٠﴾ أَمۡ عِندَهُمُ ٱلۡغَيۡبُ فَهُمۡ |
| د وجې د تاوان نه درانهٔ شویدي۔ آیا دوی سره غیب (وحی) شته نو دوی د هغې نه |
| يَكۡتُبُونَ ﴿٤١﴾ أَمۡ يُرِيدُونَ كَيۡدٗا فَٱلَّذِينَ كَفَرُواْ هُمُ |
| لیکل کوی۔ آیا اراده لري دوی د چل ول نو هغه کسان چه کفرئے کړیدے هم دوی به |
| ٱلۡمَكِيدُونَ ﴿٤٢﴾ أَمۡ لَهُمۡ إِلَٰهٌ غَيۡرُ ٱللَّهِۚ |
| په مکر کښې کمزوری کړے شی۔ آیا دوی لره حقدار د بندګئ شته سوئ د الله نه، |
| سُبۡحَٰنَ ٱللَّهِ عَمَّا يُشۡرِكُونَ ﴿٤٣﴾ |
| پاك دے الله د هغې نه چه دوی ورسره برخه داران جوړوی۔ |

آیا هغه لره لونړه دي او تاسو لره ځامن دي۔ آیا غواړې ته د دوی نه مزدوري نو دوی د وجې د تاوان نه درانه شویدي۔ آیا دوی سره غیب (وحی) شته نو دوی د هغې نه لیکل کوی۔ آیا اراده لري دوی د چل ول نو هغه کسان چه کفرئے کړیدے هم دوی به په مکر کښې کمزوری کړے شی۔ آیا دوی لره حقدار د بندګئ شته سوئ د الله نه، پاك دے الله د هغې نه چه دوی ورسره برخه داران جوړوی۔

**تفسیر:** د مکے مشرکانو نه پوښتنه کیږی چه آیا ستاسو د ګمان مطابق الله دپاره لونړه دی، او ستاسو دپاره ځامن دی؟ د الله تعالیٰ په خِلاف دا څنګه بے ځای زړورتیا ده، چه تاسو خو خپل ځان له ځوی خوښوئ، او هغهٔ له لونړے ثابتوئ۔ آیا د رب العالمین ددے نه هم زیاته بله عیب جوئی کیدے شی۔

دا ستاسو څنګه بیوقوفتیا او بے عقلی ده۔ او پدے کښې اشاره ده چه هرکله دوئ داسے پریوتے عقیده لري نو ددوئ فهم او عقل ختم شویدے نو که دوئ د بعث بعد الموت نه انکار کوی، او د الله توحید نهٔ منی نو د دوئ د شان نه دا لرے نهٔ ده۔

**أَمۡ تَسۡـَٔلُهُمۡ أَجۡرٗا:** دا جمله روستو سورة القلم کښې بیا راغلې ده، ددے مطلب دا دے چه

Scanned by CamScanner

دوئ چه انکار کوی نو کیدے شی چه ددے انکار سبب به ئے دا وی چه تهٔ به د دوئ نه ډیرے پیسے غواړے چه مثلاً یوه مسئله په زر روپئ ده، نو مشرکان وائی چه دا خو مونږ ته گرانه ده، نو راځئ چه دا پیغمبر پریدو۔ دا دین خو په پیسو اخستل گران دی۔

نو الله دوی ته رټنه ورکوی چه اے زما حبیبه ! تهٔ خو د دوئ نه هیڅ مزدوری نهٔ غواړے، چه دوئ د اسلام په نهٔ قبلولو کښ معذوره وګنړل شی بلکه تهٔ دوئ له مال ورکوے دے دپاره چه دوئ په اسلام کښ داخل شی، د دوئ هیڅ تاوان په دین او رسول منلو کښ نشته، او بیا هم خبره نهٔ منی معلومیږی چه دوئ لوی ضدیان دی۔

**أَمْ عِندَهُمُ الْغَيْبُ**: دلته درے مطلبه دی۔ (۱) أَمْ عِندَهُمُ الْغَيْبُ بِأَنَّ مُحَمَّدًا يَمُوتُ قَبْلَهُمْ۔ یعنی آیا دوئ سره د غیبو علم شته چه د هغے نه ئے دا خبره ځان سره لیکلی وی چه محمد (ﷺ) به د دوئ نه مخکښ وفات کیږی چه تاسو وایئ چه انتظار وکړئ په دهٔ باندے د مرگ۔

(۲) فَهُمْ يَكْتُبُونَ الدِّيْنَ لِاَنفُسِهِمْ مِنْ عِبَادَةِ الْاَصْنَامِ ۔ آیا د دوئ سره د غیبو علم شته چه دوئ د هغے نه د خپلو خپلو ځانونو دپاره دین لیکی چه هغه د بتانو عبادت دے۔

یعنی چه دوئ ووائی چه مونږ سره د لوح محفوظ علم دے، او د هغه ځای نه مو کشف وکړو چه شرك جائز دے۔ او د هغه ځای نه مو ځانله دا دین ولیکلو او رانقل مو کړو۔

(۳) فَهُمْ يَكْتُبُونَ بِاَنَّنَا لَا نُعَذَّبُ ۔ آیا د دوئ سره علم غیب شته چه مونږ ته به عذاب نهٔ راکړے کیږی، یعنی آیا دوی به لوح محفوظ کښ کتلی وی چه په هغے کښ ئے لیکلی وي چه دوئ ته به سره د شرك نه عذاب نهٔ ورکړے کیږی۔ دا هیڅ خبره نشته۔

**أَمْ يُرِيْدُوْنَ كَيْدًا** : یعنی آیا د مکے مشرکان په تا او په تا باندے په نازل شوی قرآن باندے عیب لگوی، او د دینِ اسلام او ستا په خِلاف څهٔ چل جوړوی؟ نو پو هه شئ چه د دوئ سازش به د دوئ د مرئ پلوا نبهٔ جوړ شی۔

لکه چه دغسے وشوه، کافرانو نبی کریم ﷺ او دینِ اسلام ته د نقصان په رسولو کښ هیڅ کوتاهی نهٔ ده کړے، لیکن دوئ ماتے وخوړله، او الله د خپل رسول مدد وکړو، د هغهٔ دین ئے غالبه کړو، او کافران ئے ذلیله او رسوا کړل۔

**كَيْدًا** : اَیْ مَكْرًا بِرَسُوْلِ اللّٰهِ ﷺ ۔ یعنی آیا دوئ اراده لری چه د رسول الله ﷺ د وژلو دپاره چل جوړ کړی۔

Scanned by CamScanner

او دا سورت مکی دے او دوئ چه په رسول الله ﷺ باندے په دار الندوه (مکه) کښې د هجرت په ابتداء کښې چل جوړه ولو هغه روستو وو، نو دا د الله تعالیٰ اخبار بالغیب دے چه د مخکښې نه ئے پیشن گوئی وکړه چه دوئ به په خپل مکر او فریب کښې راگیریږی او خواری به ئے ضائع کیږی۔

اَمْ لَهُمْ اِلٰهٌ غَيْرُ اللّٰهِ : آیا د مکے د مشرکانو بل کوم معبود شته دے چه هغه د رابللو مستحق دے، چه د هغهٔ د نفع امید کیدلے شی، او د هغهٔ د ضرر رسولو نه یره کیدلے شی؟ او مشرکان وائی چه بس زمونږ د بل معبود نه حاجت پوره دے، او همدغه غیر الله زمونږ حاجتونه پوره کوی۔ داسے څهٔ خبره خو نشته دے،

الله د مشرکانو د شرك نه پاك دے، نهٔ د هغهٔ په بادشاهئ کښې د هغهٔ څوك شریك شته، او نهٔ د هغهٔ په وحدانیت او عبودیت کښې۔

| وَاِنْ يَّرَوْا كِسْفًا مِّنَ السَّمَاۗءِ سَاقِطًا يَّقُوْلُوْا سَحَابٌ مَّرْكُوْمٌ ﴿٤٤﴾ |
|---|
| او که اُووینی دوی ټوټے د آسمان نه راپریوتونکی وائی دوی دا وریځ ده د یو بل دپاسه |
| فَذَرْهُمْ حَتّٰى يُلٰقُوْا يَوْمَهُمُ الَّذِيْ |
| ۔(لاندے باندے)۔ نو پریږده دوی لره تردے چه ملاؤ شی د ورځے د دوی سره هغه |
| فِيْهِ يُصْعَقُوْنَ ﴿٤٥﴾ يَوْمَ لَا يُغْنِيْ عَنْهُمْ كَيْدُهُمْ |
| چه په هغے کښې به بیهوشه کړے شی۔ په هغه ورځ چه دفع به نکړی د دوی نه چل |
| شَيْـًٔا وَّلَا هُمْ يُنْصَرُوْنَ ﴿٤٦﴾ وَاِنَّ لِلَّذِيْنَ |
| ول دوی هیڅ شے او نهٔ به دوی سره مدد اُوکړے شی۔ او یقیناً هغه کسانو لره |
| ظَلَمُوْا عَذَابًا دُوْنَ ذٰلِكَ وَلٰكِنَّ اَكْثَرَهُمْ لَا يَعْلَمُوْنَ ﴿٤٧﴾ |
| چه ظلم ئے کړیدے عذاب دے مخکښې ددے نه لیکن ډیر د دوی نه نهٔ پوهیږی۔ |
| وَاصْبِرْ لِحُكْمِ رَبِّكَ فَاِنَّكَ بِاَعْيُنِنَا وَسَبِّحْ |
| او صبر کوه دپاره د حکم د رب خپل نو یقیناً تهٔ زمونږ په سترګو ئے، او تسبیح وایه |

Scanned by CamScanner

| بِحَمْدِ رَبِّكَ حِينَ تَقُومُ ﴿٤٨﴾ وَمِنَ اللَّيْلِ |
| --- |
| سره د حمدونو د رب ستا نه په هغه وخت چه اُودریږې ته۔ او د شپې نه |
| فَسَبِّحْهُ وَإِدْبَارَ النُّجُومِ ﴿٤٩﴾ |
| پاکي وایه د هغهٔ او په وخت د شاګرځولو د ستورو کښې۔ |

**تفسیر** : پدې آیت کښې د مکې د مشرکانو د زړه سختوالے بیانیږی، یعنی د مکې د مشرکانو سرکشی د حد نه تیره شوې وه، دوئ باطل خپلې مرئ سره داسې لګولې دې چه د حق په تائید کښې که هر یو دلیل پیش کړې شی، هغه نهٔ قبلوی، او د کبر او عناد نه نهٔ منع کیږی۔

که چرې په دوئ باندې د آسمان نه د عذاب غتې غتې ټکړې راشی او دوی ئې وینی نو دوئ به هغې ته عذاب نهٔ وائی بلکه د هغې نسبت به وریځې ته کوی چه دا خو د لاندې باندې وریځې ټکړې دی۔ او وریځ راجمع کړې شویده په مونږ باندې باران کوی۔ ځکه چه دوئ ځان ګناهګار نهٔ ګنړی، نو که عذاب ئې په سر راروان وی، هم دومره سخت زړی دی چه هغوی ځان پاك ګنړی، خو چه کله پرې نازل شی بیا به ورته پته ولګی لکه عادیانو وئیلی وو ﴿ هٰذَا عَارِضٌ مُّمْطِرُنَا﴾ دا وریځ په مونږ باران کوی۔

او بل طرفته د رسول الله ﷺ زړه دومره نرم وو چه سره ددې نه چه ګناهګار هم نهٔ دې، بیا به ئې هم چه کله وریځ ولیدله نو پریشانه به شو۔ او داسې د زړه سختی خو په اُوس زمانه کښې بیخی زیاته ده، سیلابونه راشی، خلق پکښې غلاګانې کوی، د زلزلو په وخت کښې غلاګانې، زناګانې کیږی۔ عذاب ته عذاب نهٔ وائی۔

کِسفًا : دا که په زیر د کاف او سکون د سین سره شی نو واحد دې، او که د سین زبر وی نو جمعه ده۔ (اخفش، کذا فی صحاح اللغات ۱۱۵/۲)

مَرْكُومٌ : د رکام نه دې، یو بل دپاسه کیدل، تیه به تیه کیدل۔

فَذَرْهُمْ : یعنی تهٔ دوئ د قیامت ورځې پورې په خپل حال باندې پریده، او د بنو مزو اخستلو موقع ورکړه۔ د قیامت په ورځ به دوئ ته خپل انجام معلوم شی، هر کله چه د دوئ تمام سازشونه درې وړې پاتې شی، او هیڅوك به د دوئ د مدد لپاره رانشی۔

Scanned by CamScanner

يُصْعَقُونَ: یعنی د عذاب د هیبت د وجه نه یا د قیامت د وجے نه به بے هوشه شی۔ یا د صعق نه مراد په دنیاوی عذاب سره مړ کیدل دی۔

وَإِنَّ لِلَّذِينَ: یعنی کوم خلق چه د کفر او شرك په کولو سره په خپلو ځانونو ظلم کوی، دوئ له الله تعالیٰ د قیامت د ورځے نه مخکښ په دنیا کښ هم عذاب ورکوی، او ددے نه مراد یا خو د قبر عذاب دے، (قاله براء بن عازب ﷺ)

یا دنیا کښ قحط کالی، ﷺ یا د زمانے نور حوادث او مصیبتونه دی چه هغه د دوئ ځان او مال ته رسیږی، لیکن په دوئ کښ د اکثرو خلقو په ذهنونو کښ دا خبره نهٔ راځی چه د دوئ پشان فاسقانو او فاجرانو په باره کښ همیشه د الله تعالیٰ همدا سنت را روان دے، چه ظلمونه او ګناهونه کوی، او په آخر کښ الله تعالیٰ رانیولی دی۔ او دوی پدے نهٔ پوهیږی چه دا عذاب دے، او د څه مقصد دپاره دے،

لکه چه یو حدیث کښ دی: [وَإِنَّ الْمُنَافِقَ إِذَا مَرِضَ ثُمَّ أُعْفِيَ كَانَ كَالْبَعِيرِ عَقَلَهُ أَهْلُهُ ثُمَّ أَرْسَلُوهُ فَلَمْ يَدْرِ لِمَ عَقَلُوهُ وَلَمْ يَدْرِ لِمَ أَرْسَلُوهُ] منافق چه ناجوړه شی بیا جوړ شی نو ددهٔ مثال د اُوښ دے نهٔ پوهیږی چه د څه دپاره ئے تړلے وو او د څه دپاره ئے پرانستلو۔ (ابوداود: ۳۰۹۱) مرفوعا باسناد ضعیف والادب المفرد رقم: ۳۷۹/۴۹۳ صحیح موقوفا علی سلمان)

دُونَ ذَٰلِكَ: اَیْ غَیْرَ عَذَابِ یَوْمِ الْقِیَامَةِ: یعنی ما سویٰ د عذاب د قیامت نه۔ یا دون په مخکښ سره دے، یعنی مخکښ د قیامت نه۔

وَاصْبِرْ: هر کله چه د قرآن کریم او د نبی کریم ﷺ په باره کښ د مکے د کافرانو تمام دروغ جوړول په دلیلونو سره رد کړے شول، نو اُوس الله تعالیٰ خپل نبی ﷺ ته حکم وکړو چه تهٔ ددے کافرانو ډیره پرواه مهٔ ساته، په دوئ باندے به عذابونه خامخا راځی، د دوئ په تکلیفونو صبر کوه، او تا ته چه د خپل رب دطرف نه کومه ذمه واری راغلے ده، هغه پوره صبر او استقامت سره اداء کوه، او د خپل ځان په باره کښ هیڅ یره مهٔ کوه، الله به ستا حفاظت کوی، او کله چه د شپے راپاسے نو د خپل رب تسبیح بیانوه۔

امام احمدؒ، بخاریؒ او اصحاب سنن د عباده بن صامت ﷺ نه روایت کړے، رسول الله ﷺ وفرمایل چه څوك د شپے راویښ شی او دا دعاء ووائی: [ لَا إِلَٰهَ إِلَّا اللَّهُ وَحْدَهُ لَا شَرِيكَ لَهُ، لَهُ الْمُلْكُ وَلَهُ الْحَمْدُ وَهُوَ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ. سُبْحَانَ اللَّهِ، وَالْحَمْدُ لِلَّهِ، وَلَا إِلَٰهَ إِلَّا اللَّهُ، وَاللَّهُ أَكْبَرُ، وَلَا حَوْلَ وَلَا قُوَّةَ إِلَّا بِاللَّهِ ] بیا ئے اَللّٰهُمَّ اغْفِرْ لِیْ ووئیل، یا ځانله دعاء وغواړی، نو الله

Scanned by CamScanner

تعالیٰ د هغهٔ دعاء قبلوی۔ او که د هغې نه پس اودس اوکړي، او مونځ وکړي نو د هغهٔ مونځ قبلیږي۔ (بخاري: ۱۱۵٤ باب فضل من تعار من اللیل فصلی باب رقم: ۲۱)

مفسرین لیکي چه په دې کښې نبي ﷺ ته د قیام اللیل (د تهجدو د مانځه) حکم شوې دې۔ عبادتونه او تسبیحات د عذاب د دفع کولو او د صبر د آسانولو او په دشمن باندې د غلبې دپاره ښکلې اسباب دي۔

بِأَعۡيُنِنَا: د الله تعالیٰ دا صفت په ظاهري معنیٰ باندې دې، او کیفیت باندې ئې الله تعالیٰ عالِم دې، خو په دې کښې دا اشاره ده:

[اَیْ اِنَّكَ بِحَیۡثُ نَرَاكَ وَنَحۡفَظُكَ وَنَرۡعَاكَ فَلَا یَصِلُوۡنَ اِلَیۡكَ] (زجاج)

یعنی ته په داسې مقام کښې ئې چه مونږ تا وینو او ستا حفاظت به کوو، دوئ به تا نشي وژلې نو پروا مهٔ کوه۔

حِیۡنَ تَقُوۡمُ: (۱) [حِیۡنَ تَقُوۡمُ اِلَی الصَّلَوَاتِ الۡخَمۡسِ] یعنی کله چه ته پنځه مونځونو ته ودریږې نو تسبیح وایه۔ امام مسلمؒ په خپل صحیح کښې د عمر ؓ نه روایت کړې چه نبي ﷺ به د مانځه په شروع کښې: سُبۡحَانَكَ اللّٰهُمَّ وَبِحَمۡدِكَ وَتَبَارَكَ اسۡمُكَ وَتَعَالیٰ جَدُّكَ وَلَا اِلٰهَ غَیۡرُكَ] لوستلو، (مسلم: ۹۱۸)

او پدې باندې دلیل روستو (٤۹) آیت دې چه په هغې کښې الله تعالیٰ نبي ﷺ ته د شپې د راویښېدو نه پس او د شپې په آخري برخه کښې د خپل رب د تسبیح بیانولو حکم کړې، نو ددې نه معلومیږي چه دلته د ﴿حِیۡنَ تَقُوۡمُ﴾ نه مراد پنځه وخته مونځ دې۔

(۲) مجاهدؒ وائي: ﴿حِیۡنَ تَقُوۡمُ﴾ اَیۡ مِنَ الۡمَجۡلِسِ یعنی کله چه د هر مجلس نه پاڅیږې۔ مسند احمد کښې د ابو هریره ؓ نه روایت دې چه رسول الله ﷺ وفرمایل:

کوم شخص چه په یو مجلس کښې کېني، او په هغې کښې زیاتې خبرې وکړي، او د پاڅېدو نه وړاندې ووائي:

[سُبۡحَانَكَ اللّٰهُمَّ وَبِحَمۡدِكَ اَشۡهَدُ اَنۡ لَّا اِلٰهَ اِلَّا اَنۡتَ اَسۡتَغۡفِرُكَ وَاَتُوۡبُ اِلَیۡكَ]

نو الله تعالیٰ د هغهٔ د دغه مجلس ګناهونه معاف کوي۔

دا حدیث ترمذي (۳٤۳۳) او حاکم هم راوړې او سند ئې صحیح دې۔ (احمد: ۱۵۷٦۷)

(۳) حِیۡنَ تَقُوۡمُ مِنَ النَّوۡمِ۔ یعنی کله چه د خوب نه رابیداریدلې نو تسبیحات وایه۔ رسول الله ﷺ به چه کله د خوب نه رابیدار شو نو سبحان الله، به ئې لس کرته ووئیله، الحمد

لله به ئې وئیله. او نورې دعاګانې به ئې وئیلې، دارنګه سُبْحَانَ اللهِ وَبِحَمْدِهِ، سُبْحَانَ رَبِّيْ وَبِحَمْدِهِ، سُبْحَانَ رَبِّيْ وَبِحَمْدِهِ، سُبْحَانَ رَبِّ الْعَالَمِيْنَ، سُبْحَانَ رَبِّ الْعَالَمِيْنَ به ئې ولوستلو. السنن الکبری للنسائی (١٠٦٣٢) دارنګه دعاء ذکر شوه.

﴿ إِدْبَارَ النُّجُومِ ﴾ یعنی په وخت د شاګرځولو د ستورو کښې، او دا وخت د صبا د راښکاره کیدو دې چه په دغه وخت کښې ستورې په پټیدو شروع شي، او ددې نه مراد د سهار دوه رکعاته سنت دي لکه چه په حدیث د ترمذی کښې راغلي دي.

او یا ددې نه مراد د سهار فرض او سنت دواړه دي.

په بخاری او مسلم کښې د عائشې رضی الله عنها نه روایت دې چه نبی کریم ﷺ به د سهار د دوو رکعتونو نه زیات د بل هیڅ قِسمه نفل مانځه اهتمام نهٔ کولو.

او د امام مسلمؒ (١٧٢١) په یو روایت کښې دي چه د سهار دوه رکعته د دنیا او ما فیها نه غوره دي. وبالله التوفیق.

## امتیازات د سورة الطور

١- په سورة الطور کښې ډیر شواهد وو په وقوع د عذاب د رب باندې.

٢- او د الله د عذاب د واقع کیدو خبر ورکول.

٣- د رسول الله ﷺ په باره کښې د مشرکانو د ډیرو اعتراضونو جوابونه او هغوی ته زورنې ذکر شوې.

٤- او په دې آیتونو کښې دوه تنبیهات وو چه کافران مغلوبه کیدو والا دي، او په دنیا کښې پرې عذاب راتلو والا دې.

ختم شو تفسیر د سورة الطور په فضل د رب العزت ١٤٣٧ هـ رجب /٧ ١٣/٤/٢٠١٦ بجه : ١١:٥٤ - یوم الثلاثاء.

❁❁❁

Scanned by CamScanner

بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ط

| آیاتها (٦٢) | (٥٣) سورة النجم مكية (٢٣) | ركوعاتها (٣) |
| --- | --- | --- |

سورة النجم مکی دے، په دے کښې دوه شپیتۀ آیتونه او درے رکوع دی۔

## تفسیر سورة النجم

نوم: ددے سورت اولنے لفظ ﴿ النَّجْمِ ﴾ دے، همدا ددے نوم ایښودے شوے۔

### مناسبت

١ – مخکښې سورت کښې د رسول الله ﷺ په باره کښې اعتراضات وو نو دلته د رسول الله ﷺ شان بیانیږی۔

٢ – هغه سورت کښې دا بیان شو چه رسول الله ﷺ باندے اعتراضونه مۀ کوئ نو دے سورت کښې د توحید عقیده بیانیږی۔

٣ – مخکښې سورت کښې د عذاب وقوع ذکر وه نو دلته سبب د عذاب ذکر کوی۔

٤ – مخکښې سورت کښې زجرونه وو منکرینو ته، نو دلته د هغوی دلیل باطلوی چه هغه اتباع د ظن او د هوئ ده۔

د نازلیدو زمانه: د تفسیر د اکثرو عالمانو په نیز ټول سورت مکی دے۔ ابن مردویة د ابن عباس رضی الله عنه نه روایت کړے چه سورتِ نجم په مکه کښې نازل شوے وو۔

بخاریؒ او مسلمؒ او نورو محدثینو د عبد الله بن مسعود رضی الله عنه نه روایت کړے چه اولنے سورت چه په هغے کښې سجده نازله شوے وه، سورتِ النجم دے۔ [إِنَّ النَّبِيَّ ﷺ قَرَأَ سُوْرَةَ النَّجْمِ فَسَجَدَ بِهَا فَمَا بَقِيَ أَحَدٌ مِنَ الْقَوْمِ إِلَّا سَجَدَ فَأَخَذَ رَجُلٌ مِنَ الْقَوْمِ كَفًّا مِنْ حَصًى، أَوْ

Scanned by CamScanner

تُرَابٍ فَرَفَعَهٗ اِلٰی وَجْهِهٖ وَقَالَ يَكْفِيْنِيْ هٰذَا فَلَقَدْ رَاَيْتُهٗ بَعْدُ قُتِلَ كَافِرًا] (بخاری : ۱۰۷۰)
نبی ﷺ سورة النجم ولوستو او سجده ئے وکړه، او ټولو خلقو سجده وکړه، صرف یو سړے ما اولیدهٔ چه هغهٔ یو موټے خاوره را واخسته او په هغے ئے سجده وکړه۔ نو ما د هغے نه پس هغه اولیدهٔ چه هغه سړے د کفر په حالت کښې قتل کړے شو، (هغه سړے امیه بن خلف وو۔ بعضِ روایتونو کښې د هغهٔ نوم عتبه بن ربیعه ښودلے شوے)۔
بعضِ محدثینو (مثلًا اسود بن یزیدؒ، ابو اسحاقؒ، او زهیر بن معاویةؒ) د عبد الله بن مسعود ؓ په پورته ذکر شوی روایت کښې دا خبره په ډاګه بیان کړے چه سورتِ نجم اولنے سورت دے چه هغه رسول الله ﷺ د قریشو د کافرانو د عامے مَجمعے په وړاندے لوستلے وو، او کله چه رسول الله ﷺ په آخره کښې سجده وکړه، نو کفارو هم سجده وکړه۔ صرف یو سړی سجده ونهٔ کړه چه د هغهٔ ذکر پورته وشو۔

## د سورت موضوع او مقصد

(۱) – رَدُّ عَقَائِدِ الْمُشْرِكِيْنَ۔ د مشرکانو د یو څو عقیدو رد کول دی۔
❁ اوله عقیده دا وه چه رسول الله ﷺ رښتینی نهٔ دے،
❁ دویمه عقیده ئے د بت پرستئ وه۔
❁ دریمه : ملائك د الله لونړه دی۔
❁ څلورمه : د ستورو عبادت دے خاصکر د شِعریٰ ستوری۔
❁ او پنځمه عقیده د آخرت نه انکار دے۔ دا ټول ئے پدے سورت کښې رد کړیدی۔
(۲) غوره دا ده چه پدے سورت کښې شان د رسول الله ﷺ ذکر دے، نو کله چه د هغه شان ډیے وپیژندو نو د هغهٔ دعوت به رښتینی ګڼړے، او د هغهٔ دعوت دے ته دے چه د الله سره شریکان مهٔ جوړوئ، او د آخرت دپاره تیارے وکړئ، ددے وجه نه په شرك به هم رد وی، د شرك انواع ئے ذکر کړیدی، چه لات، منات او عزیٰ شریکول، ملائك او ستوری د الله سره شریکول۔ او دا موضوع د اول ﴿مَا ضَلَّ صَاحِبُكُمْ﴾ او د آخر ﴿هٰذَا نَذِيْرٌ مِّنَ النُّذُرِ الْاُوْلٰى﴾ نه معلومیږی۔
په سورت کښې د رسول الله ﷺ شان او د هغهٔ د دعوت صدق پکښې ذکر دے۔
خلاصه : په اول کښې د رسول الله ﷺ شان او رښتینوالے ذکر دے تر (۱۸) آیت پورے، او

Scanned by CamScanner

بیا د (۱۸) آیت نه روستو په شرك رد او بیا په راتلونکے رکوع کښې په انکار د آخرت رد دے۔ او په دریمه رکوع کښې زجر دے هغه چا ته چه په دین باندے عمل نکوی، او د اثبات د آخرت دپاره ئے دلیلونه راوړیدی، او په آخر کښې د رسول الله ﷺ صدق ذکر دے۔ او ترغیب دے قرآن کریم او د الله تعالیٰ بندګئ ته۔

دے سورت کښې هم ډیر ناشنا والے دے۔

| وَالنَّجْمِ إِذَا هَوٰى ﴿۱﴾ مَا ضَلَّ صَاحِبُكُمْ |
|---|
| قسم دے په ستوری کله چه پریوځی۔ نهٔ دے ګمراه (بے لارے) ملګرے ستاسو |
| وَمَا غَوٰى ﴿۲﴾ |
| او نهٔ دے د حد نه تیروتلے۔ |

**تفسیر**: وَالنَّجْمِ: ددے دوه مصداقه دی (۱) یو دا چه ددے نه مراد ستوری دی، بیا ددے ستورو نه مراد هغه ستوری دی چه شیطانان پرے ویشتلے کیږی۔ اَیْ وَالنُّجُمِ اِذَا رُمِیَ بِهَا الشَّیْطَانُ۔ قسم دے په ستورو چه کله په دے سره شیطان ویشتلے کیږی۔

❁ یا ددے نه مراد جنس ستوری دی چه کله د شپے په آخری حصه کښې پریوتی په نظر راځی۔

❁ او بعض مفسرینو ددے نه [ ثُرَیَّا ] ستورے مراد اخستے دے، چه دے ته (تلے پیرونه) ستوری وائی، دا اُوه ستوری دی چه په یو ځای راجمع شویدی۔ لیکن د زیاتره مفسرینو رائے داده چه ددے نه عام ستوری مراد دی۔

او مناسبت د قسم او جواب قسم (یعنی مَا ضَلَّ صَاحِبُكُمْ) دا دے چه ستورو باندے شیطانان څکه ویشتلے کیږی چه الله تعالیٰ ئے آسمان ته نهٔ پریدی چه د وحی خبره واوری، نو معلومه شوه چه رسول الله ﷺ ته شیطانان وحی نهٔ راوړی بلکه دا د الله رشتینی نبی دے، دهٔ ته جبریل وحی راوړیده۔

نو دا په شان د ﴿ اِنَّهُمْ عَنِ السَّمْعِ لَمَعْزُوْلُوْنَ ﴾ (الشعراء: ۲۱۲) دے۔

❁ بل مناسبت: لکه څنګه چه ستوری د آسمان ښائست دے، دغه شان اِلٰهی وحی سره زمکے ته ډول ملاویږی، څکه که د انبیاؤ په ذریعه دا الٰهی علم زمکے والو ته نهٔ

Scanned by CamScanner

ملاویدے نو زمکه به د تیرے شپے نه هم زیاته تیارهٔ وے۔
دارنګه کله چه تهول ستوری غائب شی نو د صبا رنړا راښکاره کیږی او بیا نمر راښکاره کیږی نو دغه شان نور رسولان غائب شول او آخری رسول د صبا او د نمر د رنړا په شان ښکاره شو۔ (احسن الکلام)۔
(۲) یا د النجم نه مراد قرآن دے ځکه چه دا نَجْمًا نَجْمًا (لړ لړ) د بره نه نازل شویدے۔
او هویٰ په معنیٰ د نزول سره دے۔ یعنی قسم په قرآن چه کله نازل شی۔
نو دا به د ﴿ يٰسٓ وَالْقُرْآنِ الْحَكِيْمِ ۞ اِنَّكَ لَمِنَ الْمُرْسَلِيْنَ ﴾ په شان شی۔ یعنی قرآن ګواه دے چه ته ګمراه نهٔ ئے۔
اِذَا هَوٰى: هویٰ د ماضی صیغه ده د باب د ضرب نه، په معنیٰ د سقوط (غورزیدو) سره لکه هاویه هغه کندے ته وائی چه انسان پکښې غورزیږی۔ او د باب د سمع نه په معنیٰ د خواهش او محبت سره راځی لکه روستو (وَمَا يَنْطِقُ عَنِ الْهَوٰى) کښې راغلے دے۔
اِذَا هَوٰى: کله چه په خپل مدار کښې پریوزی، یا د شیطانانو پسے ویشتلو وخت کښې پریوزی۔
مَا ضَلَّ صَاحِبُكُمْ وَمَا غَوٰى:

## د ضلال او غویٰ فرق

(۱) ضال: اَلَّذِىْ يَسْلُكُ عَلٰى غَيْرِ طَرِيْقٍ بِغَيْرِ عِلْمٍ۔ وَالْغَاوِىْ اَلْعَالِمُ بِالْحَقِّ الْعَادِلُ عَنْهُ قَصْدًا اِلٰى غَيْرِهٖ۔ ګمراه انسان هغه دے چه په صحیح لاره نهٔ وی روان په ناپوهۍ سره۔ او غاوی هغه شخص دے چه په حق باندے پوهه وی لیکن د هغے نه اوړی، او بله لاره د ضد او عناد د وجه نه قصد کوی۔
(۲) ضلال ګناهونو کولو ته وائی، او غی جهل مرکب ته وائی۔
(۳) یا دا عطف د خاص دے په عام باندے دپاره د اهتمام د شان د اعتقاد ځکه چه کله انسان هیڅ عقیده نهٔ لری، نهٔ نیکه او نهٔ بده نو دا ضلال شو او کله چه د غلط شی عقیده لری نو دا غی شوه۔ (فتح البیان)۔
(٤) ضلال عام دے عقیدو او عملونو دواړو ته شامل دے، او غوایت خاص دے په عقیده فاسده پورے۔

Scanned by CamScanner

(۵) ددے نه داسے تعبیر هم کیږي چه ضلال د لارے نه خطاء کیدل دي، او غوایت دا دے چه د مقصد نه محرومه شي.
او پدے کښې اشاره ده چه رسول الله ﷺ کښې نۀ جهالت شته، او نۀ ضد او عناد، نو پدے کښې تعریض دے چه څوك په دۀ باندے اعتراض کوي او دے نۀ مني نو هغه په حقیقت کښې ضال او غاوي دے لکه قریش کافران.
صَاحِبُكُمْ: کښې ئے نسبت مخاطبینو ته وکړو، پدے کښې اشاره ده چه مشرکان د هغۀ د حقیقتِ حال نه ښه خبر وو.
او په صحبت (ملګرتیا) سره ئے ترے تعبیر وکړو پدے کښې د هغوی متوجه کول او هغوی ته ترغیب ورکول دي، او د هغوی بدی بیانول دي چه هغوی په دۀ باندے په نبوت کښې تهمت لګوی حال دا چه هغوی ددۀ پاك اخلاق پیژني.

| وَمَا يَنْطِقُ عَنِ الْهَوٰى ﴿٣﴾ إِنْ هُوَ إِلَّا وَحْيٌ يُّوحٰى ﴿٤﴾ |
|---|
| او خبرے نۀ کوي دے د خواهش نه. نۀ ده دا مګر وحي ده چه وحي ورته کیدے شي. |
| عَلَّمَهٗ شَدِيْدُ الْقُوٰى ﴿٥﴾ ذُوْ مِرَّةٍ فَاسْتَوٰى ﴿٦﴾ وَهُوَ |
| خو دنه کړیده دۀ ته سخت قوتونو والا. خائست والا، نو برابر شو. او حال دا چه هغه |
| بِالْأُفُقِ الْأَعْلٰى ﴿٧﴾ ثُمَّ دَنَا فَتَدَلّٰى ﴿٨﴾ فَكَانَ قَابَ |
| په اُوچته کناره باندے وو. بیا رانزدے شو نو ښه رانزدے شو. نو شو په شان د پاتو د |
| قَوْسَيْنِ أَوْ أَدْنٰى ﴿٩﴾ فَأَوْحٰى إِلٰى عَبْدِهٖ مَا أَوْحٰى ﴿١٠﴾ |
| دوه لیندو یا ډیر نزدے. نو وحي اُوکړه الله بنده خپل ته هغه چه وحي ئے اُوکړه. |

**تفسیر**: وَمَا يَنْطِقُ: دا دویم جوابِ قسم دے. او مطلب دا دے چه دا نبي د خپل خواهش نه خبرے نۀ کوي، یعني ددۀ چه کوم دعوت دے، نو دا ټول الله ته دے، او د خپل خواهش دپاره نۀ دے لکه انسانان کله کله داسے کوي چه په دعوت کښې خپل ځان ته تسکورے وهي، دے دپاره چه ددۀ اکرام وشي، او خلق ورته مال ورکړي، راحت ورته ملاؤ شي. نو دا نبي داسے نۀ دے چه په دعوت کښې ئے هدف خپل خواهش پوره کول وي،

Scanned by CamScanner

څوك ورتـه مـال ورکړی، یا ورته ښځه او جائیداد ورکړی بلکه ددهٔ ټوله خواری د الله دپاره ده۔ ددې وجه نه په ځان باندې سخته تیروی۔

وَمَا يَنْطِقُ: نطق هر هغه خبره ده چه د خُلې نه راوځی، او دا شامل دے قرآن او حدیث ته چه دا دواړه د اتباع د خواهش نه نهٔ دی صادر شوی۔

إِنْ هُوَ: هُوَ ضمیر قرآن ته راجع دے، یعنی قرآن ورته الله تعالیٰ د وحی په ذریعه رالیږلے دے، دا ددهٔ خپل جوړ کړے شوے کتاب نهٔ دے۔ بعض مفسرین هُوَ ضمیر (نطق) ته راجع کوی، او مطلب دا اخلی چه هره خبره د رسول الله ﷺ وحی ده۔ دا رایه مرجوحه ده ځکه چه د رسول الله ﷺ ډیرے خبرے اجتهادی وے، کله به ئے مشورے کولے او کله به ورته یوه خبره معلومه نهٔ وه، او په خپل اجتهاد به ئے وکړه، نو خطاء به شو بیا به ورته الله تعالیٰ خبر ورکړو لکه د بدر د قیدیانو په باره کښ۔

دارنګه یو صحابی ترے په کور کښ د مانځه کولو اجازت وغوختو ځکه چه ړوند وو نو ورته ئے وفرمایل چه تا ته اجازت دے، [فَلَمَّا وَلَّى دَعَاهُ فَقَالَ : هَلْ تَسْمَعُ النِّدَاءَ بِالصَّلَاةِ؟، فَقَالَ : نَعَمْ، قَالَ : فَأَجِبْ] کله چه هغه روان شو آواز ئے ورته وکړو چه آیا تهٔ اذان آورے؟ هغه وویل آؤ، نو وے فرمایل چه جَمعے ته به راځے۔ (صحیح مسلم :۱۵۱۸)

معلومه شوه چه دا خبره په اجتهاد شوے وه بیا ورته جبریل ؑ راغے او وحی ئے ورته وکړه چه دا اجازه ورکول صحیح نهٔ دی۔ نو معلومیږی چه عام احادیث د رسول الله ﷺ په اجتهاد سره وئیل شویدی، دے وجه نه کله نا کله به رسول الله ﷺ ځان ته نسبت کولو [لَوْلَا أَنْ أَشُقَّ عَلَى أُمَّتِيْ لَأَمَرْتُهُمْ بِالسِّوَاكِ] (که ما په امت مشقت نهٔ راوستے نو ما به ورته د مسواك په وهلو (فرضی) حکم کړے وے)۔ نو په کومو خبرو چه به الله نا رضا وو نو وحی سره به ئے هغه بدله کړه او په کومه چه به رضا وو نو هغه به سنتِ تقریری جوړ شو، دا وجه ده عام احادیث سنتِ تقریری د الله تعالیٰ دے۔

البته ټول صحیح احادیث چه الله تعالیٰ ئے تائید کړے وی، او رد ئے پرے نهٔ وی کړے نو هغه په وحی کښ داخلیږی۔ یعنی کومے خبرے چه د رسول الله ﷺ په زړهٔ کښ اچولے کیدے او په هغے به د الله د طرفنه رد نهٔ راتللو نو دا وحی ده۔

**فائده** : پدے آیتونو کښ د صحیح حدیث شرطونه ذکر دی۔

(۱) اول شرط دا چه د هغے ټول راویان به ثقات وی،

Scanned by CamScanner

(۲) دویم دا چه اتصال السند به وی۔ مینځ کښې به انقطاع نهٔ وی راغلی،
(۳) دا چه اَنْ لَّا يَكُوْنَ الرَّاوِيُ مُبْتَدِعًا وَّلَا فَاسِقًا۔ یعنی راوی به بدعتی او فاسق نهٔ وی۔
(٤) اَنْ لَايَكُوْنَ الرَّاوِيُ كَذَّابًا۔
راوی به دروغژن نهٔ وی، ورنه بیا به روایت ته موضوع او منکرت روایت وائی۔
(٥) اَنْ لَا يَكُوْنَ الرَّاوِيُ مُغَفَّلًا۔ راوی به مغفل (غافل) نهٔ وی۔
(٦) راوی به مدلس نهٔ وی بلکه د خپل مَرْوِی عَنْهُ سره به ئې ملاقات شوے وی، او هغه به ئې پیژندلے وی، چه دا زما استاذ دے، نو معنعن حدیث ضعیف حسابیږی۔
نو هر راوی کښې به دا کمال وی تردے چه رسول الله ﷺ ته دا خبره ورسیږی، نو داسے حدیث چه تا ته راورسیدو نو اُوس په تا فرض ده چه ددے اتباع به کوے۔ ځکه چه حجت درباندے قائم شو، نو ددے انکار کول جرم دے۔
او همدا طریقه الله تعالیٰ دلته د قرآن کریم دپاره ذکر کړیده۔
نو دا قرآن د الله حدیث دے، سند ئې جبریل ؑ او محمد رسول الله ﷺ دے۔ یعنی عَنْ مُحَمَّدٍ عَنْ جِبْرِيْلَ عَنِ اللّٰهِ عَزَّ وَجَلَّ۔ محمد ﷺ د جبریل ؑ نه او جبریل ؑ د الله تعالیٰ نه نقل کړیدے۔ نو اول راوی محمد ﷺ دے، نو هغه ﴿مَا ضَلَّ صَاحِبُكُمْ وَمَا غَوٰى﴾ دے، یعنی نهٔ په خطاء دے، او نهٔ پکښې غوایت (بدعت) شته۔ او بره راوی جبریل ؑ هم ډیر قوی او ثقه راوی دے ﴿شَدِيْدُ الْقُوٰى ذُوْ مِرَّةٍ﴾ دے۔
کیدے شی چه دواړه راویان قوی وی، لیکن سند به متصل نهٔ وی، مینځ کښې به انقطاع راغلی وی۔ نو الله فرمائی: ﴿ثُمَّ دَنَا فَتَدَلّٰى فَكَانَ قَابَ قَوْسَيْنِ اَوْ اَدْنٰى﴾ او دوه ځله ئې ملاقات شویدے ﴿وَلَقَدْ رَاٰهُ نَزْلَةً اُخْرٰى﴾ لکه مشرکانو وئیلی وو چه کیدے شی چه شیطان ورته وحی راوړی وی او دے به وائی چه دا د الله د طرفنه ده۔
نو الله جواب ورکړو چه دے خپل استاذ جبریل ؑ پیژنی، دوه ځله ئې په خپل شکل لیدلے دے، نو ددهٔ سند متصل دے۔ نو هرکله چه دا د داسے کامل راوی نه نقل شو نو په امت باندے ددے منل حق او لازم شو، او ددے تابعداری فرض شوه۔
نو پدے کښې چه کوم مسائل او احکام دی په هغے به عمل کولے شی، نو پدے کښې اُوس دا مسئله ده چه ﴿اَفَرَءَيْتُمُ اللّٰتَ وَالْعُزّٰى﴾ یعنی د شرك نه به ځان ساتے، که ځان دِے ونهٔ ساتو، جهنم دِے ځای دے۔ نو پدے آیتونو کښې د مصطلح الحدیث بنیاد ذکر دے۔

Scanned by CamScanner

## فوائد الآيات :

شَدِيْدُ الْقُوٰى : ددے نه مراد جبريل عليه السلام دے چه ددهٔ قوتونه ډير مضبوط دی۔ داسے قوی دے چه د قوم لوط کلی ئے د بيخ نه راويستل، او آسمان ته ئے پورته کړل، بيا ئے اپوته گوزار کړل۔ او په ثموديانو باندے ئے داسے چغه ووهله چه ټول پر مخے پراتهٔ وو۔ او انبياء عليهم السلام ته به ئے وحی په سيکينډونو کښ راوړه۔

ذُوْ مِرَّةٍ: (۱) مِرّه صحت او قوت د بدن او اندامونو ته وئيلے کيږی۔ لکه حديث کښ دی : [لَا تَحِلُّ الصَّدَقَةُ لِغَنِيٍّ وَّلَا لِذِيْ مِرَّةٍ سَوِيٍّ] (ابوداود فی الزكاة باب ٢٤ والترمذی والنسائی) او داسے قوت والا ته وائی چه د کوم شی اراده وکړی نو د هغے نه څه شے منع کونکے ئے مخے ته نشی راتللے۔ او کوم کار چه کوی په هغے ستړے کيږی نهٔ۔ (فتح البيان)

(۲) او مره خائسته شکل او صورت ته هم وائی۔ اَیْ ذُوْ مَنْظَرٍ حَسَنٍ۔ (ښکلے شکل والا دے)

(۳) قُطربؒ وائی چه څوك كامل رأی او صفا قوی عقل والا وی نو هغه ته عرب ذُوْ مِرَّه وائی۔ او دلته دا تفسير اولیٰ دے ځکه چه مخکښ قوت د بدن بيان شو، نو اُوس قوت د عقل بيانيږی۔ کله ديو انسان بدن قوی وی ليکن عقل ئے کمزورے وی، جبريل عليه السلام کښ دواړه قوتونه راجمع دی۔ د هغهٔ د شدت او قوت نه دا ده چه هغه په مختلفو شکلونو راتللو باندے قادر دے۔

معلومه شوه چه دا وحی ترے کوم شيطان په لاره کښ نهٔ ده اخستے، د شيطان په هغهٔ باندے وس نهٔ بريږی۔

فَاسْتَوٰی: اُوس د ملاقات خبره بيانوی۔ اَیْ اِرْتَفَعَ جِبْرِيْلُ وَعَلَا اِلٰى مَكَانِهٖ فِى السَّمَاءِ بَعْدَ اَنْ عَلَّمَ مُحَمَّدًا۔ (سعيد بن المسيبؒ وسعيد بن جبيرؒ)

يعنی جبريل عليه السلام خپل ځای ته پورته شو چه کوم ددهٔ دپاره په آسمان کښ وو پس د هغے نه چه محمد ﷺ ته ئے د وحی خودنه وکړه۔

بعض وائی : معنیٰ ئے ده : [قَامَ فِىْ صُوْرَتِهِ الَّتِىْ خَلَقَهُ اللّٰهُ عَلَيْهَا، لِاَنَّهٗ كَانَ يَأْتِى النَّبِىَّ ﷺ فِىْ صُوْرَةِ الْآدَمِيِّيْنَ]۔ يعنی جبريل عليه السلام اُودريدو په خپل هغه صورت کښ چه الله تعالیٰ په هغے باندے پيدا کړيدے ځکه چه هغه به رسول الله ﷺ ته د انسانانو په شکل راتللو

Scanned by CamScanner

نو نبی کریم ﷺ ترے وغوختل چه دهٔ ته خپل اصلی شکل وښائی نو هغه ورته ځان په خپل اصلی شکل کښې دوه ځل وخودو، یو ځل په زمکه کښې د آسمان نه لاندے په کنارو د آسمان کښې، او بل ځل په اُوم آسمان کښې.

**وَهُوَ بِالْاُفُقِ الْاَعْلٰى:** دا ضمیر هم جبریل علیه السلام ته راجع دے، او پدے کښې واقعه د ابتداء د وحی ته اشاره ده چه رسول الله ﷺ ته جبریل علیه السلام په مکه کښې په اَبْطَح مقام کښې (په روایت د ترمذیؒ کښې دی په محله اجیاد کښې) په اصلی شکل کښې ښکاره شو چه د هغه شپږ سوه وزرے وے او د آسمان کنارے ئے پټے کړے وے.

**اَلْاُفُقِ:** هغه طرف د آسمان ته وئیلے کیږی چه صبا او نمر ترینه ښکاره کیږی.

ابن جریرؒ وئیلی دی چه دا ضمیر محمد ﷺ ته راجع دے، او پدے کښې د معراج واقعے ته اشاره ده چه دواړه د معراج په شپه کښې د زمکے نه ملګرے شول او د آسمان افق ته ورسیدل. او پدے باندے ابن کثیرؒ اګرکه رد کړیدے لیکن د قرآن الفاظ دے ته هم شامليږی، لهٰذا دا احتمال هم صحیح دے.

**ثُمَّ دَنَا فَتَدَلّٰى:** بیا جبریل علیه السلام رانزدے شو نو رازوړند شو یعنی راخکته شو رسول الله ﷺ ته.

**فَكَانَ قَابَ قَوْسَيْنِ:** قوس لیندے ته وائی، او قاب د لیندے موتی ته وائی، او د هرے لیندے یو یو موتے وی، نو دا په اصل کښې قَابَا قَوْسَيْنِ دے، لیکن عرب په دواړه تثنیه ؤ کښې د اختصار دپاره یو مفرد کوی.

نو معنیٰ دا شوه چه شو په اندازه د موتو د دوه لیندو، یعنی ډیر رانزدے شو. او د عربو عادت دا وو چه کله به دوه یارانو د یو بل سره صلح کوله نو دواړو به د یو بل سره لیندے یو ځای کړے، او موتی به ئے نزدے کړل پدے کښې به اشاره وه چه مونږ به د مخالف دشمن په مقابله کښې د یو طرف نه حمله کوو او مونږ به یَو یُو.

په ګانَ کښې ضمیر مقدار او فاصلے ته راجع دے چه د جبریل او د محمد علیهما السلام ترمینځ وه او قاب د کان دپاره خبر دے.

(۲) په صحاح کښې جوهریؒ لیکلی دی چه قاب او قیب دواړه په معنیٰ د اندازے سره استعمالیږی. یعنی شوه هغه فاصله او نزدے والے په اندازه د دوه لیندو.

دا مخکنے تفسیر د ابن مسعود، ابن عباس، عائشه رضی الله عنهم او حسنؒ او قتادهؒ

Scanned by CamScanner

دے۔ پدے کښې بعض مفسرينو ددے دواړو نه مراد الله تعالیٰ او رسول الله ﷺ اخستی دی چه دواړه د يو بل سره داسے نزدے شو لکه د دوه ليندو په شان، دا روايت ابن عباس ﷺ او ضحاکؒ ته منسوب دے۔ او دا نزدے والے په ليلة المعراج کښې دے، ليکن ددے د حقيقت نه الله بنهٔ خبر دے۔

او په روايت د بخاری کښې ذکر دی [وَدَنَا الْجَبَّارُ رَبُّ الْعِزَّةِ فَتَدَلّٰى حَتّٰى كَانَ مِنْهُ قَابَ قَوْسَيْنِ] او رانزدے شو جبار رب العزت نو راخکته شو تردے چه هغهٔ ته په اندازه د دوه ليندو شو۔ (بخاری: ۷۵۱۷)　او رسول الله ﷺ ورته په سجده پريواتهٔ۔

بيا پدے کښې بعض ناپوهه قصه خوانان دا خبره زياتوی چه الله خپل حبيب ته وويل چه ما ته رانزدے شه، آخر دا چه العياذ بالله دواړه يوے کمرے ته ننوتل او الله د خپل حبيب سره يو ځای شو۔ دا سوچه گمراهی خورول دی، او د الله تعالیٰ شان نهٔ پيژندل دی۔ خو دلته ظاهر اول تفسير دے د وجه د سياق نه۔

فَأَوْحٰى إِلٰى عَبْدِهٖ مَا أَوْحٰى: دے کښې دوه تفسيره دی (۱) يو دا چه أَوْحٰى کښې ضمير الله ته راجع دے، او مَا أَوْحٰى کښې ضمير جبريل ته۔ يعنی وحی وکړه الله تعالیٰ جبريل ته هغه وحی چه جبريل وکړه نبی کريم ﷺ ته۔ نو سند متصل شو۔

(۲) دا هم جائز ده چه أَوْحٰى کښې ضمير جبريل ته راجع دے يعنی وحی وکړه جبريل عليه السلام د الله بنده ته چه نبی عليه السلام دے هغه وحی چه کومه ئے وکړه چه هغه الله ته معلومه ده۔ اوله معنیٰ دلته ظاهره ده۔

(۳) او په روايت د بخاری کښې دی: [فَأَوْحَى اللّٰهُ فِيمَا أَوْحٰى إِلَيْهِ خَمْسِينَ صَلَاةً عَلٰى أُمَّتِكَ] نو الله وحی وکړه په هغه وحی کښې چه کومه ئے هغه ته وکړه د پنځوسو مونځونو ستا په اُمت باندے)

| مَا كَذَبَ الْفُؤَادُ مَا رَأٰى ﴿۱۱﴾ أَفَتُمَارُوْنَهٗ |
|---|
| ندے خطاء شوے زړهٔ د هغهٔ د هغه څه نه چه ليدلے ئے دے۔ آيا جګړے کوئ تاسو ددهٔ |
| عَلٰى مَا يَرٰى ﴿۱۲﴾ وَلَقَدْ رَاٰهُ نَزْلَةً أُخْرٰى ﴿۱۳﴾ عِنْدَ |
| سره په هغه څه کښې چه دهٔ اُوليدو۔ او يقيناً دهٔ ليدلے وو هغهٔ لره بل ځل۔ په خوا د |

Scanned by CamScanner

| |
|---|
| سِدْرَةِ الْمُنْتَهٰی ﴿۱۴﴾ عِنْدَهَا جَنَّةُ الْمَاْوٰی ﴿۱۵﴾ اِذْ یَغْشَی السِّدْرَةَ |
| سدرة المنتهیٰ کښې۔ د هغې سره جنت المأوی دے۔ کله چه پټ کړو بیرے لره |
| مَا یَغْشٰی ﴿۱۶﴾ مَا زَاغَ الْبَصَرُ وَمَا طَغٰی ﴿۱۷﴾ |
| هغه څه چه پټ ئے کړو۔ نۀ دے کوږ شوے نظر او نۀ د حد نه تیر شویدے۔ |
| لَقَدْ رَاٰی مِنْ آیَاتِ رَبِّهِ الْکُبْرٰی ﴿۱۸﴾ |
| یقیناً دۀ لیدلی دی د نخو د رب خپل نه لوئی نخے۔ |

**تفسیر** :مَا كَذَبَ الْفُؤَادُ مَا رَاٰی: اُوس دا خبره بیانوی چه رسول الله ﷺ هغه راوی نـۀ دے چه هغه مُغَفَّل (کثیر الغفلت) وی، کله یو ځای ته گوری او کله بل ځای ته۔ نو فرمائی چه سترگو چه څه ولیدل نو زړۀ د هغه نه خطائی نۀ ده کړے بلکه هغه ورته په زړۀ سره هم متوجه وو۔ کذب دروغ وئیل او مخالفت او خطائی کولو ته وائی۔

یعنی زړۀ د سترگو لیدلی حال تصدیق کړے، او دروغ ئے ورته نۀ دی وئیلی، او نۀ ئے مخالفت کړیدے، او نۀ خطاء شویدے۔

((دروغ ونۀ وئیل زړه د محمد ﷺ هغه څۀ ته چه وے لیدل په سترگو سره))

أَفَتُمَارُوْنَهٗ : اَیْ اَفَتُجَادِلُوْنَهٗ عَلٰی رُؤْیَتِهٖ جِبْرِیْلَ۔ آیا تاسو جګړے کوئ دده سره د جبریل علیه السلام په لیدو کښې۔ لکه مشرکانو وئیلی وو چه دۀ جبریل علیه السلام نۀ بلکه شیطان ئے لیدلے دے۔ نو الله پرے رد وکړو۔

عَلٰی مَا یَرٰی : غوره دا ده چه ددینه مراد جبریل علیه السلام دے۔ او که ددے نه مرَاد د الله تعالیٰ لیدل شی، نو هغه اختلافی مسئله ده،

ابن عباس رضی الله عنه به وئیل چه (رَاٰهُ بِفُؤَادِهٖ مَرَّتَیْنِ) یعنی په زړۀ سره ئے خپل رب دوه کرته لیدلے دے۔ (مسلم عن ابی العالیه عن ابن عباس رضی الله عنه)

او په کوم روایت د ترمذی چه کښې مطلق راغلی دی چه محمد ﷺ خپل رب لیدلے دے، نو هغه به هم پدے مقیّد باندے حمل وی۔

او فراءُ د انس بن مالك رضی الله عنه او حسنؒ او عکرمةؒ نه نقل کړیدی چه په سترگو ئے لیدلے دے۔ لیکن ابن کثیرؒ وائی چه (وفیه نظر) (پدے کښې نظر (یعنی اعتراض) دے)

Scanned by CamScanner

او ددې مسئلې تفصیل په تفسیر د سورة الاسراء کښې دوباره وګورئ.
نَزۡلَةً اُخۡرٰی: یعنی بل ځل. نزله په معنیٰ د مَرّة (کرت) سره دے. او نزله ئې ورته ځکه ووئیله چه په هغې کښې هم جبریل ﷺ ځکته راغلے وو، او رسول الله ﷺ په آسمانونو کښې ولیدو او دا کار په لیلة الاسراء کښې شوے وو. او مقصد ددے جملې دا دے چه رسول الله ﷺ جبریل لره پیژنې د هغه په باره کښې نۀ خطاء کیږی ځکه چه هغه ئې دوه ځله په خپل اصلی شکل کښې لیدلے دے نو څنګه به خطاء شی.
او دا آیت دلیل دے چه معراج د رسول الله ﷺ په قرآن کښې ذکر دے لکه څرنګ چه اسراء ذکر ده.
عِنۡدَ سِدۡرَةِ الۡمُنۡتَهٰی : ۱– د هغه بیرے سره چه هغې ته منتهیٰ د اعمالو د بنیادمانو کیږی. ۲– اَیۡ مُنۡتَهَی الۡعُلُوۡمِ .لَا یُجَاوِزُهَا عِلۡمُ عَالِمٍ وَّلَا مَلَکٌ مُّقَرَّبٌ . یعنی ځای د انتهاء د علمونو چه د هغې نه د هیڅ عالِم علم نۀ تیریږی او نۀ یو مقرب ملائک.
منتهیٰ، مکان الانتهاء ته وائی، یعنی بیرے د هغه ځای ته چه هغې ته انتهاء (ختمیدل) کیږی. چه هیڅ مخلوق ته دا پته نشته چه د هغې نه اخوا څه کیږی.
۳– یَنۡتَهِیۡ اِلَیۡهَا مَا یُعۡرَجُ بِهٖ مِنَ الۡاَرۡضِ وَاِلَیۡهَا یَنۡتَهِیۡ مَا یُهۡبَطُ بِهٖ مِنۡ فَوۡقِهَا) یعنی د زمکے نه چه کوم څیزونه خیژی، نو دغه ځای ته ئې انتهاء کیږی، اخوا نشی تللے. او دغه شان د بره نه دغه ځای ته څیزونه او اجرونه وغیره راځی. (صحیح مسلم)
٤– یا د شهداؤ د اَرواحو انتهاء هغې ته کیږی.
بعض وائی دلته جار مجرور حذف دے اَیۡ عِنۡدَ سِدۡرَةِ الۡمُنۡتَهٰی اِلَیۡهِ وَهُوَ اللّٰهُ عَزَّ وَجَلَّ . یعنی خوا ته د ونې د بیرے د هغه الله چه هغه ته انتهاء کیږی. لکه چه الله روستو فرمائی: ﴿وَاَنَّ اِلٰی رَبِّکَ الۡمُنۡتَهٰی﴾ (النجم: ٤٢) ستا رب ته انتهاء د ټولو کارونو کیږی.
او په حدیث د مسلم کښې دی چه دا ونه په شپږم آسمان کښې ده.
او ماوردیؒ وئیلی دی چه تخصیص د بیرے ئې وکړو ځکه چه په بیره کښې درے صفتونه دی (۱) اُوږد سورے. (۲) مزیدار خوند. (۳) خائسته بوئی.
نو دارنګه ایمان هم مشتمل دے په قول او عمل او نیت باندے، نو بوئی ددے په شان د قول د ایمان دے او سورے ددے په شان د عمل د ایمان دے، او خوند ددے په شان د نیت د ایمان دے، ددے وجه نه دا محل د اَرواحو د مؤمنانو دے.

Scanned by CamScanner

عِنۡدَهَا جَنَّةُ الۡمَاۡوٰی: دا تعریف د مکان د جنت دے چه جنت اُوس په اُوم آسمان کښې د سدرة المنتهیٰ سره دے، اګرکه وسعت د جنت د آسمانونو او زمکے نه لوئی دے لکه چه سورة العمران (۱۳۳) او سورة حدید (۲۱) آیت کښې ذکر دی۔

لیکن الله تعالیٰ قادر دے چه په لږ ځای کښې لوی څیز راولی لکه چه په یوه سترګه کښې ډیره دنیا په نظر کولو کښې ځای کولے شی۔

په بعض روایاتو کښې دی چه سدرة المنتهیٰ په شپږم آسمان کښې ده، او جنت په اُوم آسمان کښې دے، نو معلومیږی چه د سدرة المنتهیٰ نه اخوا جنت شروع کیږی۔

رسول الله ﷺ فرمائی: ددے ونے میوه د هجر (مقام) د منګو په شان (غټے) وے۔ [وَإِذَا وَرَقُهَا مِثْلُ آذَانِ الْفِيلَةِ] او د هغے پانړے د هاتی د غوږونو په شان وے۔

[وَإِذَا فِي أَصْلِهَا أَرْبَعَةُ أَنْهَارٍ نَهْرَانِ بَاطِنَانِ وَنَهْرَانِ ظَاهِرَانِ] او ددے په بیخ کښې څلور نهرونه وو، دوه نهرونه پټ او دوه نهرونه ښکاره۔ دوه نهرونه پټ جنت کښې روان دی او دوه ښکاره نهرونه دریائے فرات او دریائے نیل دی۔ (سنن النسائی: ٤٤٨)

الۡمَاۡوٰی: ورته ځکه وائی چه دے ته آدم ؑ پناهی وړے وه۔ بعض وائی د مؤمنانو روحونه دے کښې وسیږی۔ بعض وائی جبریل ؑ او عام ملائک ورته پناهی حاصلوی۔

اِذۡ یَغۡشَی السِّدۡرَةَ: اُوس د رسول الله ﷺ په لیلة المعراج کښې لیدلے شوی بعض څیزونه بیانوی۔ یعنی کله چه بیرے لره هغه څیزونو پټه کړه چه کومو پټه کړه چه د هغے بیان نهٔ دے کړے شوے۔ رسول الله ﷺ فرمائی: [فَغَشِيَهَا أَلْوَانٌ مَا أَدْرِي مَا هِيَ؟] څه ښکلے رنګونه وو چه ما ته پته نهٔ وه چه هغه د څه رنګونه وو۔

(مسند احمد: ۲۱۳۲۶) واسناده صحیح علی شرط مسلم)

الله ورته د خپل قدرت نمونے خودلے۔ او بیره چونکه ډیره مزیداره فائده منه ونه ده ځکه الله تعالیٰ هلته هم راخیژولے ده۔ او په حدیث د مسلم کښې دا هم دی [فَرَاشٌ مِنْ ذَهَبٍ] د سرو زرو پتنګان وو۔ (مسلم: ٤٤٩)

مَا زَاغَ الۡبَصَرُ: اَیْ عَمَّا رَاٰی مِنَ الْعَجَائِبِ۔ یعنی د رسول الله ﷺ نظر د هغه عجائبو او انواراتو نه نهٔ وو اوړیدلے، کوم چه ورته الله تعالیٰ په آسمانونو کښې خودلی وو۔ یعنی نبی او کس طرفته ئے نظر نهٔ وو کوږ شوے۔

وَمَا طَغٰی: او نهٔ ئے د هغے نه پورته طرفته تجاوز کړے وو۔ بلکه څه چه الله ورخودلی

هغې ته ئې کتل، او دے ته علماء حُسْنُ الْأَدَبِ مَعَ اللهِ وائی چه د الله سره ئې ډیر ادب کړیدے، او دے ادبه خلقو طریقه دا وی چه د یو چا مجلس له راشی، کله یو شی او کله بل شی ته کوری، او مقصدی خبرے ته نهٔ متوجه کیږی۔

رَأَىٰ مِنْ آيَاتِ رَبِّهِ الْكُبْرَىٰ: ددے نه معلومه شوه چه رسول الله ﷺ د خپل رب د قدرت لوی لوی نخے ولیدلے په تلو راتلو کښې په دغه شپه کښې، او الله تعالیٰ ئې نهٔ دے لیدلے ګنے هغه به ئې هم ذکر کړے وے۔ او دا نخے ئې ورته ددے دپاره وخودلے چه صبا له به امت ته بیان کوی نو دے دپاره چه د هغهٔ پوره حق الیقین پیدا شی او زړه ئې مضبوط شی۔

| أَفَرَأَيْتُمُ اللَّاتَ وَالْعُزَّىٰ ﴿١٩﴾ وَمَنَاةَ الثَّالِثَةَ |
|---|
| آیا تاسو سوچ کړیدے په حال د لات او عزیٰ کښې۔ او په مناة کښې چه دریم دے، |
| الْأُخْرَىٰ ﴿٢٠﴾ أَلَكُمُ الذَّكَرُ وَلَهُ الْأُنثَىٰ ﴿٢١﴾ تِلْكَ إِذًا |
| روستو دے۔ آیا تاسو لره دے نارینه وی او الله لره به زنانه وی۔ دا په دغه وخت کښې |
| قِسْمَةٌ ضِيزَىٰ ﴿٢٢﴾ إِنْ هِيَ إِلَّا أَسْمَاءٌ سَمَّيْتُمُوهَا |
| تقسیم دے د ظلم۔ نهٔ دی دا (باباګان) مګر نومونه دی چه ایخودی دی تاسو |
| أَنتُمْ وَآبَاؤُكُم مَّا أَنزَلَ اللَّهُ بِهَا مِن سُلْطَانٍ |
| او پلارانو ستاسو، نهٔ دے رالیږلے الله په شراکت ددے باندے هیڅ دلیل، |
| إِن يَتَّبِعُونَ إِلَّا الظَّنَّ وَمَا تَهْوَى الْأَنفُسُ |
| نهٔ دی روان دوی مګر د ګمان پسے او هغه چه څه غواړی نفسونه د دوی |
| وَلَقَدْ جَاءَهُم مِّن رَّبِّهِمُ الْهُدَىٰ ﴿٢٣﴾ |
| او یقیناً راغلے دے دوی ته د طرف د رب د دوی نه هدایت۔ |

**تفسیر:** ربط :

(۱) په پورتنو آیتونو کښې د دینِ اسلام او د نبی کریم ﷺ رشتین والے، د وحی الٰهی، او د

Scanned by CamScanner

الله تعالىٰ د توحيد ذكر وشو اُوس د مكے د مشركانو بُت پرستى او د هغوى بدى او د هغوى د دروغژنو معبودانو سپكاوے بيانيږى چه دا خو د خاورو او كاڼړو نه جوړ شوى بُتان دى چه ددے تاسو مختلف نومونه ايښى دى، چه دا تاسو ته نۀ نفع رسولے شى، او نۀ نقصان، آيا تاسو رانده شوى يئ چه تاسو دا د هغه الله سره برابر گنړئ كوم چه د آسمانونو او زمكے خالق دے ؟!۔

(۲) مخكښ د رسول الله ﷺ د جبريل عليه السلام سره ملاقات او د هغه رشتينوالے بيان شو نو اُوس د هغهٔ د دعوت رشتينوالے ذكر كيږى چه هغه رد د شرك دے۔

أَفَرَأَيْتُم: اَىْ هَلْ لَهَا مِنْ قُدْرَةٍ وَعَظَمَةٍ ـ يعنى ما ته ددے بتانو په باره كښ خبر راكړئ چه آيا ددے څه قدرت او عظمت شته، دوى كښ څۀ كمالات دى، هغه خو لږ بيان كړئ۔

لات، منات، عزىٰ د درے مشهورو بتانو نومونه دى چه د عربو په دوى باندے ډيره عقيده وه، او د الله د نومونو نه ئے د دوئ نومونه راخستى وو،

د الله نه [اللّات] او د العزيز نه [العُزّىٰ] اخستے شوے دى، چه دا د [الْأَعَزُّ] مؤنث ده، او د [الْعَزِيْزَة] په معنىٰ سره دے۔ او د [المَنَّان] نه ئے [مَنَاة] اخستے وو۔ دغه شان دوئ به خپل دا بتان د الله شريكان گڼړل، او د دوئ عبادت به ئے كولو۔

په الصحاح كښ دى چه [اللّات] د ثقيف قبيلے د يو بُت نوم وو چه په طائف كښ وو۔

مجاهدؒ وائى چه دا يو سړے وو چه د غر په سر كښ وسيدو هغه سره گډے بزے وے د هغے د پيو او غوړو نه به ئے حلوا جوړه وله، او حاجيانو باندے به ئے خوره وله، او دے په بطن نخله كښ وو خو كله چه مړ شو نو خلقو ئے عبادت شروع كړو۔ (يعنى ددهٔ په شكل ئے بت جوړ كړو او د هغے بندگى ئے شروع كړه)

امام بخاريؒ د ابن عباس رضی الله عنه نه نقل كړيدى چه هغه ئيلى دى :

[كَانَ اللّاتُ رَجُلًا يَلُتُّ السَّوِيْقَ لِلْحَاجِّ] (بخارى : ۴۸۵۹)

لات يو سړے وو چه د حاجيانو دپاره به ئے ستوان د غوړو يا اُوبو سره لړل، او هغوى ته به ئے د خوراك دپاره وركول، يعنى سخى او بزرگ سړے وو۔

او قرطبىؒ وئيلى دى چه هغه كله مړ شو نو مشركانو د هغهٔ د قبر عبادت كوو، او هغه چه په كومه گټه باندے ناست وو، او ستوان به ئے د حاجيانو دپاره وړه كول نو ثقيف قبيلے د هغے گټے عبادت شروع كړو، او د هغے دپاره ئے يوه كوټه جوړه كړه، او هغه به ئے

Scanned by CamScanner

په غلافونو باندے پټه کړے وه، او طوافونه به ئے د هغے کول، او هرکله چه طائف فتح کړے شو نو رسول الله ﷺ مغیره بن شعبه او ابوسفیان رضی الله عنهما ولیږل او هغه ئے ونړوله او کوټه ئے وسیزله۔

او [ الْعُزّٰی ] د قریشو او بنی کنانه یو بُت وو۔ مجاهدؒ وائی چه دا په غطفان کښې یوه وُنه وه، چه خلقو به ددے عبادت کولو، ددے نه به یوه پیرئ راښکاره کیده۔

نبی کریم ﷺ خالد بن ولید ولیږلو او هغه ئے پریکړه او هغه پیرئ ئے قتل کړه۔

او بعض وائی چه په بطنِ نخله کښې (د طائف او د مکے ترمینځ) یوه شیطانه وه چه هر کال به په درے موسمونو کښې راتلله۔

د سعید بن جبیرؒ وینا ده چه [ الْعُزّٰی ] یو سپین کاڼړے وو چه خلقو به ددے عبادت کولو۔ او په روایت د نسائی کښې دی چه په بطن نخله کښې د کیکر درے ونے وے، او یوه کوټه وه (چه په هغے کښې به د عزیٰ عبادت کیدو) ۔

خالد بن الولید ﷺ هغه ونے پریکړے او کوټه ئے ونړوله، بیا رسول الله ﷺ ته راغے خبر ئے ورکړو نو هغه ورته وفرمایل : آیا تا څه ولیدل؟ هغه وویل : نهٔ، ورته ئے وفرمایل : واپس لاړ شه تا هیڅ کار نهٔ دے کړے (عزی درنه پاتے شویده) هغه چه واپس راغے نو د عزی منجوران ورته راجمعه شو او چغے ئے کړے یَا عُزّٰی یَا عُزّٰی (چه پدے سره ئے خالد بن الولید یره ولو) په بعض روایاتو کښې دی : چه داسے اشعار ئے وویل :

| | | |
|---|---|---|
| اَعُــزَّاءُ شَـدِّیْ شِـدَّ ةً لَا تُـكَـذِّبِـیْ | ❀ | عَـلٰی خَـالِـدٍ اَلْـقِـیْ الْـخِـمَـارَ وَشَمِّرِیْ |
| فَـاِنَّكِ اِنْ لَا تَـقْـتُـلِـیْ الْیَوْمَ خَـالِـدًا | ❀ | تَبُـوْئِـیْ بِـذُلٍّ عَـاجِلًا وَّتَـنَـصَّـرِیْ |

اے عزیٰ سخته رشتینی حمله په خالد وکړه لوپټه گوزار کړه او پڅے ووهه، که ته نن ورځ خالد له قتل نهٔ کړے نو بیا به په لوی ذلت سره واپس شے، او شابه مدد وکړه۔

نو پدے کښې یوه توره زنانه برینډه ببر سرے راښکاره شوه، او په سر ئے خاوره له خاورے اچولے نو خالد هغه په توره سره ووهله او هغے ته ئے وویل :

| | | |
|---|---|---|
| یَـا عُـزّٰی كُـفْـرَانَكِ لَا سُبْـحَـانَكِ | ❀ | اِنِّـیْ رَاَیْـتُ الـلّٰـهَ قَـدْ اَهَـانَكِ |

اے عزیٰ مونږ په تا باندے کفر کوو، ستا هیڅ پاکی نهٔ بیانوو، زهٔ الله وینم چه ته ئے ذلیله کړے ئے۔

Scanned by CamScanner

پدے کښې ئے نورو خلقو ته دعوت ورکړو چه دا هیڅ نشی کولے۔ کله چه خالد راغے نو رسول الله ﷺ وفرمایل: (تِلْكَ الْعُزّٰی) دغه عزیٰ وه چه ددے نه روستو به ئے عبادت ونکړے شی۔

قریشو او بنو کنانه به دا په دویمه مرتبه کښې معبوده گڼړله، او د هغے د کوټے نه به ئے طوافونه کول، او د هغے په نوم به ئے نذرونه ورکول۔

وَمَنٰوةَ الثَّالِثَةَ: یعنی هغه منات بت چه په دریمه مرتبه کښې ئے معبود گڼړلو چه د مخکنو دوه معبودانو نه روستو وو په مرتبه کښې۔

[مَنَاة] د بنو هلال قبیلے د بُت نوم وو۔ او ابن هشامؒ وئیلی دی چه دا د هُذیل او خُزاعه قبیلے د بُت نوم وو۔

صاحب د محاسن التنزیل لیکلی دی چه دا د مکے اومدینے ترمینځه د قُدید علاقے خواته په مُشَلَّلْ کښې یو کانړے وو، چه خزاعه او اَوس او خزرج والو به د جاهلیت په زمانه کښې ددے تعظیم (ادب) کولو، او د همدغه ځای نه به ئے د بیت الله د حج دپاره تکبیرونه وئیل شروع کړل۔

امام بخاریؒ د عائشے رضی الله عنها نه همدا روایت نقل کړے۔ او اَوس او خزرج والو د هغه په نوم یوه کوټه جوړه کړے وه، او په هغے باندے ئے غلافونه اچولی وو، د هغے نه به ئے طوافونه کول او په هغه ځای کښې ئے ډیر ځاروی د منات په نوم سره ذبح کول۔

بیا رسول الله ﷺ ابوسفیان ﷺ یا علی بن ابی طالب ﷺ ولیږلو او هغه ئے ونړوله۔

ددے بتانو په خپلو خپلو علاقو کښې ښه په جوش خروش سره عبادت کیدو، بیا شیطان ورته دا ښائسته کړه چه دا خو ډیر لرے دی، دے ته خو ورتلل گران دی نو بیا ئے د هغے نه نور بتان د هغوی په شکلونو جوړ کړل، او په کعبه کښې ئے کیخودل دے دپاره چه د نزدے نه ئے عبادت کوی۔

دے وجه نه مفسرین لیکی: [كَانَتْ اَسْمَاءَ لِاَصْنَامِهِمْ فِيْ جَوْفِ الْكَعْبَةِ] ۔ دا د دویٔ د بتانو نومونه وو چه د کعبے په مینځ کښې ئے ایخودی وو۔

حافظ ابن کثیرؒ لیکلی دی چه په جزیرهٔ عرب کښې د دغه مذکوره بتانو نه علاوه هم طواغیت یعنی دروغژن معبودان وو، چه عربو به د هغے د خانه کعبے غونته قدر کولو، لیکن دغه درے زیات مشهور وو پدے وجه الله تعالیٰ دلته صرف درے ذکر کړل۔

Scanned by CamScanner

أَلَكُمُ الذَّكَرُ: (۱) یعنی تاسو د عدل او انصاف نه څومره لرے یئ چه خپل ځان له خو ځامن خوښوئ، او جینکئ ژوندئ ښخوئ، او کومے جینکئ چه خپل ځان له نهٔ خوښوئ، هغه الله لره ثابتوئ، او دا وایئ چه ملائك او ستاسو دا بتان د الله تعالیٰ لونړه دی۔

(۲) بعض مفسرینو ئے دا مطلب بیان کړیدے چه لات او عزیٰ او منات کوم چه تاسو د الله شریکان جوړوئ، دوئ ته مؤنث نومونه وایئ (دوئ مؤنث ګنړئ)، حالانکه تاسو مؤنث سپك ګنړئ، او تاسو دا نهٔ برداشت کوئ چه ستاسو په کورونو کښې لونړه پیدا شی، او ستاسو طرفته د دوئ نسبت وکړے شی، نو بیا دا څنګه انصاف دے چه کوم دروغژن معبودان چه تاسو د الله شریکان ګنړئ، هغے ته مؤنث وایئ۔

ضِيزَىٰ: اَیْ اِنَّهَا قِسْمَةٌ خَارِجَةٌ عَنِ الصَّوَابِ، جَائِرَةٌ عَنِ الْعَدْلِ، مَائِلَةٌ عَنِ الْحَقِّ۔

یعنی دغه تقسیم د حق نه وتلے دے، او د ظلم تقسیم دے او د حق نه د کږیدو تقسیم دے، او دا ناقص تقسیم دے۔

عرب وائی: ضَازَ فِي الْحُكْمِ اَیْ جَارَ وَضَازَهٗ حَقَّهٗ اَیْ نَقَصَهٗ وَبَخَسَهٗ۔ (اخفش) ضاز یعنی په فیصله کښې ئے ظلم وکړو، او ضَازَهٗ یعنی د هغه حق ئے نیمګړے او نقصانی کړو۔

إِنْ هِيَ إِلَّا أَسْمَاءٌ سَمَّيْتُمُوهَا: یعنی ستاسو دا دروغژن معبودان چه تاسو او ستاسو پلارانو ورته نومونه ایخودی دی چه دوی آلِهه (یعنی معبودان) دی، نو دا تش نومونه دی، د حقیقت سره ئے هیڅ تعلق نشته۔ په دوئ کښې د معبود جوړیدو هیڅ صفت نشته، او په دے باندے الله تعالیٰ هیڅ دلیل نهٔ دے نازل کړے۔ تاسو خالص د خپل وَهُم او ګمان او د خپل نفس د خواهش پیروی کوئ۔

حالانکه تاسو ته ستاسو د خپل رب واضح دلیل راغلے چه دا بُتان ددے لائق نهٔ دی چه د دوئ عبادت وکړے شی۔ عبادت خو صرف هغه الله لره خاص دے چه د هریو شیٔ خالق او د آسمانونو او زمکے او ددے ترمینځه د هریو شیٔ مالك دے۔

سَمَّيْتُمُوهَا: دا جدید شرك ته اشاره ده، او (وَآبَاؤُكُمْ) کښې پخوانے شرك مراد دے۔ یعنی په واقع کښې خو سوئ د الله نه بل هیڅ معبود نشته، خو تاسو د ځان نه مخلوق ته معبودان وایئ نو دا بے حقیقته نومونه دی۔

إِلَّا الظَّنَّ: ظن څکه دے چه بابا له لاړ شی هلته ئے الله بنهٔ کړی، بیا وائی چه زهٔ بابا بنهٔ

Scanned by CamScanner

کرم۔ نو گمان ئے پیدا شی چه بابا بنهٔ کول کولے شي۔ او فلانے بابا د من دانے ذمه وار دے او فلانے سر خوړیے دے۔

**وَمَا تَهْوَى الْأَنْفُسُ:** په شرك کښې د خپل خواهش تابعداری ده څکه چه په خپل خواهش سره څان له معبود مقرر کړی، کله کانړی او کله بوټی او کله انسانان او کله پیریان۔

**الْهُدٰى:** یعني دا خلق الله تعالیٰ پوهه کړیدی، هدایت ورته راغلے دے لیکن دوئ د خپل خواهش تابعداری کړیده۔ نو هدی په مقابله د هویٰ کښې دے۔

| |
|---|
| أَمْ لِلْإِنْسَانِ مَا تَمَنَّى ﴿٢٤﴾ فَلِلَّهِ الْآخِرَةُ |
| آیا وی به د انسان دپاره هغه څه چه دے ئے آرزو کوی۔ نو خاص الله لره آخرت دے |
| وَالْأُولَىٰ ﴿٢٥﴾ وَكَمْ مِنْ مَلَكٍ فِي السَّمَاوَاتِ لَا تُغْنِي شَفَاعَتُهُمْ |
| او دنیا ۔ او ډیر ملائك شته په آسمانونو کښې چه فائده نشي ورکولے سفارش د دوی |
| شَيْئًا إِلَّا مِنْ بَعْدِ أَنْ يَأْذَنَ اللَّهُ لِمَنْ يَشَاءُ |
| هیڅ شے مگر پس د هغے نه چه اجازه ورکړی الله تعالیٰ چا لره چه اوغواړی |
| وَيَرْضَىٰ ﴿٢٦﴾ إِنَّ الَّذِينَ لَا يُؤْمِنُونَ |
| او رضا ئے شی۔ (او الله ترے رضا دے)۔ یقیناً هغه کسان چه ایمان نهٔ لری |
| بِالْآخِرَةِ لَيُسَمُّونَ الْمَلَائِكَةَ تَسْمِيَةَ الْأُنْثَىٰ ﴿٢٧﴾ |
| په آخرت باندے خامخا نوم ونه ایږدی ملائکو ته نوم ونه د زنانو۔ |
| وَمَا لَهُمْ بِهِ مِنْ عِلْمٍ إِنْ يَتَّبِعُونَ إِلَّا الظَّنَّ |
| نشته دوی لره پدے باندے هیڅ علم، تابعداری نهٔ کوی دوی مگر د گمان |
| وَإِنَّ الظَّنَّ لَا يُغْنِي مِنَ الْحَقِّ شَيْئًا ﴿٢٨﴾ |
| او یقیناً گمان فائده نهٔ ورکوی د حق (د ثابتولو) نه هیڅ شے۔ |

Scanned by CamScanner

**تفسیر** : دا د مخکښې سره پدې طریقه متعلق دے چه د انسان آرزو دا ده چه زۀ به شرك كوم او بابا به راله په دنيا او په آخرت کښې سفارش وکړی نو کامیاب به شم- نو الله فرمائی : چه آیا ددے انسان آرزو به حاصله شی څۀ؟ یعنی په دے دنیا کښې د انسان د مرضئ او خواهش مطابق معاملات نۀ ترسره کیږی، بلکه د تمامو کارونو تعلق د الله د مرضئ او د هغۀ په ارادے او اختیار سره دے، نو بیا دوئ څنګه دا ګمان کړے دے چه د دوئ دروغژن معبودان به د دوئ د مرضئ مطابق د دوئ سفارشیان جوړیږی۔

یقیناً دا د دوئ ډیره لویه بے ځایه زرورتیا ده چه د نبی کریم ﷺ په ذریعه راغلے یقین پریدی، او د خپل باطل ګمان پیروی کوی، او د الله د شریعت نه آزادیږی او د خپل نفس د خواهشاتو پیروی کوی۔ الله تعالی د سورتِ مؤمنون په (۷۱) آیت کښې فرمائیلی :

﴿وَلَوِ اتَّبَعَ الْحَقُّ أَهْوَاءَهُمْ لَفَسَدَتِ السَّمٰوٰتُ وَالْأَرْضُ وَمَنْ فِيهِنَّ﴾

(که چرے شرعی دین د دوئ د خواهشاتو نوم شی نو آسمانونه او زمکه او د دوئ ترمینځه هر یو شے به درے ورے شی)۔

مَا تَمَنّٰى: اَیْ مِنْ شَفَاعَةِ الْآلِهَةِ۔ هغه آرزو د دوی د دروغژنو معبودانو سفارش دے۔

ددے یو مطلب دا دے چه [لَيْسَ كُلُّ مَنْ تَمَنّٰى خَيْرًا حَصَلَ لَهُ وَمَا كُلُّ مَنْ زَعَمَ أَنَّهُ مُهْتَدٍ يَكُوْنُ كَمَا قَالَ وَلَا كُلُّ مَنْ وَدَّ شَيْئًا يَحْصِلُ لَهُ]۔ (ابن کثیرؒ)

یعنی داسے نۀ ده چه هر څوك د يو خير تمنی وکړی هغه ته به حاصلیږی، او نۀ هر هغه څوك چه ګمان وکړی چه دے په هدایت دے، نو هغه به هدایت والا وی، او نۀ هر هغه څوك چه یو شے غواړی هغه ډے ورته حاصل شی۔ متنبی وائی : ؎

| مَا كُلُّ مَا يَتَمَنَّى الْمَرْءُ يُدْرِكُهُ ❁ تَجْرِي الرِّيَاحُ بِمَا لَا تَشْتَهِي السُّفُنُ۔ |
|---|

هر آرمان د انسان نۀ پوره کیږی، هواګانے په هغه طریقه روانے وی چه کشتئ ئے نۀ غواړی۔

❁ بل مطلب دا دے چه مشرکانو په خپل تمنا سره ځان ته هدایت والا وئیل، شرکونه به ئے کول او وئیل به ئے چه دا د خیر کار دے، نو پدے سره خو انسان د هدایت والا نۀ ګرځی۔ دارنګه څوك نور بدعات او رسمونه کوی او په هغے کښې ثواب ګنړی نو ددۀ په وینا سره خو هغه د ثواب کار نۀ ګرځی۔

او پدے کښې مقصد دعوت ورکول دی چه اے انسانه! تش آرمانونه مۀ لره چه عمل نۀ

Scanned by CamScanner

کوي او عقیده دې خرابه ده، بلکه تا له پکار دي چه په دلائلو او نخو سره حق وپیژنې اګر که هغه به ستا د تمنا خلاف هم وي. نو دا د إِنْ يَتَّبِعُوْنَ إِلَّا الظَّنَّ سره لګیږي. یعنی اګر که حق به ستا د خواهش خلاف وي خو تا له پکار دي چه ته خپل نفس د حق په طلب کولو او د حق په قبلولو مجبوره کړې. (ابن عاشورؒ)

قرطبيؒ وئیلي دي چه ددې مطلب دا هم دې چه آیا د انسان دا ګمان دې چه دې کوم ارمان وکړي هغه به ورته حاصليږي او دهٔ باندې به هیڅ جزاء او سزا نهٔ وي.

یا دې ارمان د ځامنو وکړي او هغه به ورته حاصل شي، یا دې د نبوت ارمان وکړي هغه به ورته حاصل شي، یا د بتانو د سفارش آرمان کوي هغه به ورته حاصل شي.

دا هیڅکله نشي کیدې. بلکه ټول کارونه د الله په اختیار کښ دي. نو د هغهٔ نه ئې غوښتل پکار دي.

فَلِلّٰهِ الْآخِرَةُ وَالْأُوْلٰى : یعنی دنیا او آخرت کښ اختیارات صرف د الله تعالیٰ چلیږي نو بس هغهٔ ته متوجه کیدل پکار دي، او هم د هغهٔ نه ئې غوښتل پکار دي، تش آرمانونه نهٔ دي پکار. نو پدې کښ رد دې په ټولو مشرکانو چه د لات منات او عزی هیڅ اختیار او تصرف نشته، نهٔ د غوث أعظم (د دوی په نیز) او نهٔ د بل پیر فقیر.

او دارنګه د انسان د تمنا ګانو پوره کولو اختیار صرف د الله تعالیٰ سره دې، هغه ئې د خپل مشیت او ارادې مطابق چا لره چه غواړي پوره کوي او چا له ئې نهٔ پوره کوي.

وَكَمْ مِّنْ مَّلَكٍ : که څومره ووائي چه مونږ د ملائکو عبادت پدې وجه کوو چه مونږ دپاره به دعاء او سفارش کوي، او ملائك خو د الله بنات (لونړه) دي؟

نو الله په دواړو خبرو رد کوي او مشرکانو ته رټنه ورکوي چه د الله تعالیٰ په نیز د ملائکو حالت دادې چه دوئ د خپل رب د مرضۍ او اجازت نه بغیر هیچا لپاره د شفاعت هیڅ خبره د خپلو ژبو نه نشي راوستلې. او بله دا چه ملائکو ته لونړه څنګه وایئ، دا خو بې علمه جاهلانه خبرې دي.

شَفَاعَتُهُمْ : د شفاعت نه مراد دلته دعاء ده په دنیا او په آخرت کښ.

لِمَنْ يَّشَاءُ وَيَرْضٰى : یعنی کوم مؤمن دپاره چه الله تعالیٰ وغواړي او الله تعالیٰ ترې راضي شي، یعنی مشرك نهٔ وي نو بیا به د الله تعالیٰ په اجازت سره سفارش کوي، نو پدې کښ د ملائکو عجز او الله تعالیٰ ته محتاجي ذکر شوه، چه دوئ هم بغیر د اجازت د

Scanned by CamScanner

الله تعالیٰ نه هیڅ تصرف نشي کولے۔
إِنَّ الَّذِينَ لَا يُؤْمِنُونَ: يعنی د مکے مشرکانو، چه دوئ به د مرګ نه پس په دوباره ژوند او د آخرت په ورځ ایمان نهٔ لرلو، د دوئ یو لوی جُرم دادے چه دوئ ملائك د الله لونړه ګنړي۔ نو دے نه معلومه شوه چه څوك آخرت نهٔ مني، نو هغه به د خپل خواهش مطابق خبرے کوی، او ملائکو ته به لونړه وائی، او څوك چه آخرت مني نو د هغوی عقیده به د شریعت مطابق وی چه ملائك به د الله تعالیٰ مکرم او معزز بندګان ګنړي، نهٔ مؤنث دی او نهٔ مذکر۔
وَمَا لَهُمْ بِهِ مِنْ عِلْمٍ: یعنی نشته دوئ لره پدے خبره چه ملائك لونړه دی، او مؤنث دی پدے خبره ئے هیڅ علم نشته۔ یعنی دا صرف د دوئ د خولے خبره ده ځکه چه دوئ هغوئ لره نهٔ لیدلی او پیژندلی، او نهٔ دوئ ته د الله له اړخه په دے باره کښې څهٔ خبر راغلے، دا خبره دوئ صرف د خپل وَهَم او ګمان او ناپوهئ او ګمراهئ په بنیاد کړے ده۔ او معلومه ده چه حقیقت موندل د وَهُم او ګمان په ذریعه نهٔ، بلکه د یقینی دلائلو په ذریعه کیږي۔
وَإِنَّ الظَّنَّ لَا يُغْنِي مِنَ الْحَقِّ شَيْئًا : ددے بل مطلب دا دے چه ګمان د یقین په شان نهٔ وی او نهٔ د یقین په ځای قائمیږي، او نهٔ څه فائده ورکوی۔ یعنی حق او عقیده په ګمان نهٔ ثابتیږي۔ نو دلته جنس ظن مراد دے، او مِنْ په معنیٰ د عَنْ دے او حق نه مراد علم دے۔ یعنی جنس ګمان د علم (یقین) نه بے پرواهي نهٔ راولی او د هغه په ځای نهٔ قائمیږي۔
او دا آیت دلیل دے چه د دینْ په اصولو او عقائدو کښې ظن لره اعتبار نشته بلکه یقین لره اعتبار دے۔
البته په احکام شرعیه او مسائل عملیه ؤ کښې شریعت غالب ګمان لره اعتبار ورکړیدے۔ هغه دلته مراد نهٔ دے، بلکه دلته مقصد رد دے په مشرکانو چه دوئ په خپل ګمان عقیدے جوړے کړیدی، دوی د یقین او علم حقیقی نه بیخی وړاندے دی، هیڅ دلیل یقینی ورسره نشته۔

**نکته :**

دلته ابن عاشورؒ ډیره مزیداره نکته وئیلے ده چه ظن په دوه قسمه دے، یو په اصطلاح د قرآن کښې دے، نو دا هغه خطاء عقیدے ته وائی چه د دلیل نه بغیر وی، او انسان په هغے

Scanned by CamScanner

بانـدے د حـق او صـحـیـح گـمان لري، او ددے نه دا قول د نبي كريم ﷺ دے چه [وَإِيَّاكُمْ الظَّنَّ فَإِنَّ الظَّنَّ أَكْذَبُ الْحَدِيثِ] (مسلم)

تاسو د گمان نه ځان وساتئ ځکه چه گمان ډیره دروغژنه خبره ده۔

او دویم ظن په اصطلاح د فقهاؤ کښې دے په امور تشریعیه (احکامو) کښې۔

نو د دوئ په نیز د ظن نه مراد [اَلْعِلْمُ الرَّاجِحُ فِي النَّظَرِ مَعَ احْتِمَالِ الْخَطَإِ احْتِمَالًا مَرْجُوحًا] دے، یعنی هغه علم چه په نظر کښې راجح وي اګرکه د خطائي احتمال به هم پکښې وي په احتمال مرجوح سره۔ یعني غالب گمان۔ نو دے لره په شریعت کښې اعتبار دے۔

(التنویر والتحریر لابن عاشورؒ سورة الانعام : ۱۱۷)

| فَأَعْرِضْ عَنْ مَّنْ تَوَلّٰى عَنْ ذِكْرِنَا وَلَمْ يُرِدْ إِلَّا الْحَيَاةَ |
|---|
| نو مخ واړوه د هغه چا نه چه واوړیدو د ذکر زمونږ نه او اراده نۀ لري مګر ژوند |
| الدُّنْيَا ﴿۲۹﴾ ذٰلِكَ مَبْلَغُهُمْ مِّنَ الْعِلْمِ إِنَّ |
| دنیوي۔ دغه دنیا انتهاء ده د دوي د علم نه (دا آخري مقصد دے د علم د دوي)۔ یقیناً |
| رَبَّكَ هُوَ أَعْلَمُ بِمَنْ ضَلَّ عَنْ سَبِيلِهِ وَهُوَ أَعْلَمُ |
| رب ستا ښۀ پوهه دے په هغه چا چه گمراه شو د لارے د الله نه او هغه ښۀ پوهه دے |
| بِمَنِ اهْتَدٰى ﴿۳۰﴾ وَلِلّٰهِ مَا |
| په هغه چا چه په هدایت روان دے۔ او خاص د الله په اختیار کښې دي هغه څه چه |
| فِي السَّمَاوَاتِ وَمَا فِي الْأَرْضِ لِيَجْزِيَ |
| په آسمانونو کښې دي او په هغه څه چه په زمکه کښې دي دے دپاره چه بدله ورکړي |
| الَّذِينَ أَسَاؤُوا بِمَا عَمِلُوا وَيَجْزِيَ |
| الله هغه کسانو ته چه بدئ ئے کړیده په هغه عملونو چه دوي کړيدي او بدله ورکړي |
| الَّذِينَ أَحْسَنُوا بِالْحُسْنٰى ﴿۳۱﴾ الَّذِينَ يَجْتَنِبُونَ |
| هغه کسانو ته چه نیکي ئے کړیده په نیکه بدله۔ هغه کسان دي چه ځان ساتي |

Scanned by CamScanner

| كَبَائِرَ الْإِثْمِ وَالْفَوَاحِشَ إِلَّا اللَّمَمَ إِنَّ رَبَّكَ وَاسِعُ الْمَغْفِرَةِ |
|---|
| د لويو ګناهونو نه او د بې حيايانو نه مګر واړهٔ ګناهونه، يقيناً رب ستا فراخه بخنے |
| هُوَ أَعْلَمُ بِكُمْ إِذْ أَنْشَأَكُمْ مِنَ الْأَرْضِ |
| والا دے، هغه ښهٔ پوهه دے په تاسو باندے کله ئے چه پيدا کولئ تاسو د زمکے نه |
| وَإِذْ أَنْتُمْ أَجِنَّةٌ فِي بُطُونِ أُمَّهَاتِكُمْ فَلَا تُزَكُّوا أَنْفُسَكُمْ |
| او کله چه تاسو بچی وئ په خيټو د ميندو کښې، نو پاکی مهٔ بيانوئ د ځانونو خپلو، |
| هُوَ أَعْلَمُ بِمَنِ اتَّقَىٰ ﴿٣٢﴾ |
| الله ښهٔ پوهه دے په هغه چا چه اُويريدو د الله نه۔ |

**تفسير:** ددے ځای نه روستو امر دے په اعراض کولو او د اِعراض کولو درے اسباب، او درے صفات د اعراض کونکو ئے ذکر کړيدی۔ او پدے کښې رټنه ده چه دا کافران د آخرت منکرين دی پدے وجه پکښې داسے غلطے عقيدے راغلی دی۔

الله فرمائی : تهٔ د هغه کافرانو نه اعراض وکړه کوم چه زمونږ د ياد نه غافله دی، او د کومو آخري مقصد چه د دنيا د خوندونو نه فائده پورته کول دی۔

عَنْ ذِكْرِنَا : ١ – اَیْ بِالتَّوْحِيْدِ ۔ يعنی د يادولو زمونږ نه په توحيد سره ځکه چه مشرکانو به هم الله تعالیٰ يادولو ليکن شرك به ئے ورسره کولو۔

٢ – دويم ذکر په معنیٰ د قرآن سره دے۔ د دواړو مطلب يو دے ځکه چه مشرکانو د قرآن نه هم اعراض کولو۔

او د مخ اړولو نه مراد دا دے چه دوی سره بې ځايه جګړے مهٔ کوه ځکه چه تا دوئ ته تبليغ وکړو، او د الله کومه ذمه واری چه په تا باندے وه هغه دِے ادا کړه۔ يا د دوئ هيڅ پرواه مهٔ لره که ايمان نهٔ راوړی۔

وَلَمْ يُرِدْ إِلَّا الْحَيَاةَ الدُّنْيَا : يعنی دوئ کښې دوه عيبونه راجمع دی، يو دا چه د الله د توحيد نه مخ اړوی، او بل دنيا ئے اصلی مقصد جوړ کړيدے۔ او فَأَعْرِضْ کښې د فاء مطلب دا دے چه هرکله مشرکان د ګمان او د خواهش تابع دی نو په حق والو باندے لازم

Scanned by CamScanner

ده چه د هغوی نه مخ واړوی او د هغوی د دین او مسلك نه ځان وساتي۔
ذٰلِكَ مَبْلَغُهُمْ مِّنَ الْعِلْمِ : دا دریم عیب دے۔ ذلك اشاره ده دوه څیزونو ته، او دواړه مراد دی ۱ – یعنی دا وینا د دوئ چه ملائك د الله لونړه دی۔ دا د دوئ د علم انتهاء ده چه هیڅ دلیل ورسره نشته۔
۲ – یا ذلك اشاره ده دنیا ته۔ یعنی د مشرك علم صرف دنیا پورے رسیږی، اخوا په الله او په آخرت باندے ئے نظر نۀ لګی۔ او د مؤمن بصیرت دومره زیات دے چه ناست په دنیا کښې په کوټه او خیمه کښې وی، او زړه ئے په آخرت کښې او په آسمانونو او په عرش باندے وی۔ او په غیب مخلوق باندے یقین لری، د دهریه ؤ په شان نۀ وی چه ظاهربین وی۔
او ددے آیت نه معلومه شوه چه لوی علم د هغه چا سره دے چه څوك په الله او په آخرت باندے علم او یقین لری، او که پدے باندے یقین نۀ لری نو دا د الله په نیز لوی جاهل دے۔
ددے نور مطلبونه دا هم دی (۱) یعنی دوئ صرف په دنیا او د دنیا په طلب باندے پو هیږی لکه په سورة روم (۷) آیت کښې ذکر وو۔
(۲) یا دا چه د دنیا علمونه حاصلوی او په دین باندے نۀ پو هیږی۔
(۳) یا دا چه د دین علم د دنیا د حاصلولو دپاره سبب جوړوی۔
إِنَّ رَبَّكَ هُوَ أَعْلَمُ : دا د امر د اعراض دپاره علت دے، یعنی الله تعالیٰ د دواړو حالات جدا جدا پیژنی، دے وجه نه هدایت والو ته ئے د اعراض او جدائی امر وکړو۔ یا مطلب دا دے چه تۀ بیان کوه الله تعالی ته هدایت والا او ګمراهان معلوم دی، چا ته به هدایت کوي او چا ته نۀ۔
وَلِلَّهِ مَا فِي السَّمَاوَاتِ: اُوس د اثبات د آخرت دپاره دلیل او حکمت بیانوی۔
لِيَجْزِيَ: دا متعلق دے د پټ فعل پورے (وَخَلَقَ الْخَلْقَ بِالْحَقِّ) او الله تعالیٰ مخلوق په حق پیدا کړو دے دپاره چه الله بدله ورکړی هغه خلقو ته چه بدی ئے کړیده په خپلو عملونو کښې، یعنی بد عملونه ئے کړیدی، او نیکانو ته نیکه بدله ورکړی۔ یعنی آسمان او زمکه د څه دپاره پیدا دی؟ نو یو مقصد له پیدا دی، او هغه مقصد دا دے چه په دنیا کښې نیك عمله او بد عمله موجود دی، چه هغوی ته جزاء او سزا ملاؤ شی، نو

Scanned by CamScanner

دا د اثبات د آخرت دپاره دلیل شو۔
بِمَا عَمِلُوْا: باء په معنیٰ د فِیْ سره ده لکه په تشریح کښې واضحه شوه۔ یا باء سببیه ده یعنی بدی ئے کړیده په سبب د عملونو د دوئ۔
بِالْحُسْنٰی: ۱-اَیْ بِالْمَثُوْبَةِ الْحُسْنٰی وَهِیَ الْجَنَّةُ۔
یعنی ښائسته بدله چه هغه جنت دے۔
۲- اَوْ بِسَبَبِ اَعْمَالِهِمُ الْحُسْنٰی - یعنی په سبب د ښائسته اعمالو د دوئ سره۔ او د دواړو دلو سره ئے (لِیَجْزِیَ) لفظ جدا جدا ذکر کړو پدے کښې د اعمالو د بدلو اهتمام ته اشاره ده، او اشاره ده چه د دواړو جزاګانو کښې فرق دے۔
او اَحْسَنُوْا کښې د احسان نه مراد ټول نیك اعمال دی چه هغه اتباع د وحی ده، او د اتباع د ظن او هویٰ نه ځان ساتل دی، او د کتاب او سنت پوره تابعداری ده۔
اَلَّذِیْنَ یَجْتَنِبُوْنَ: دا صفات دی د (اَلَّذِیْنَ اَحْسَنُوْا) دپاره یعنی دا هغه خلق دے چه واجب ځیزونه اداء کوی چه د هغے پریښودل لویه ګناه ده، او د غټو حرامو کارونو نه هم بچ کیږی، مثلاً زنا کولو، شراب څکلو، سود خوړلو، نفس وژلو او ددے پشان نور غټ غټ حرام کارونه۔ البته دوئ نه کله نا کله ځینے واړهٔ واړهٔ ګناهونه کیږی۔
د [لَمَم] لغوی معنیٰ ده [ قَلِیْل اَوصَغِیْر] (کم او وړوکے)۔
او ازهرِیؔ وائی: عرب اِلْمَام په معنیٰ د نزدے والی سره استعمالوی۔
زجاجؔ وائی: چه (لَمَم) هغه ګناه ده چه هغه د انسان نه کله نا کله کیږی، او په دے باندے ټینګار نهٔ کوی۔
ددے درے تفسیرونه دی (۱) وړاندے تفسیر دا دے چه لمم وسوسو ته وائی۔ لکه حدیث کښې دی: (اِنَّ لِلشَّیْطَانِ لَمَّةً وَلِلْمَلَكِ لَمَّةً) (ترمذی: ۲۹۸۸) او دا استثناء منقطع ده۔ یعنی لٰكِنِ اللَّمَمَ لَا یُؤَاخَذُوْنَ بِهٖ۔ لیکن په وسوسو باندے به نهٔ رانیولے کیږی۔
(۲) د جمهورو عالمانو په نیز ددے نه مراد واړهٔ ګناهونه دی۔ ابو هریره رضی الله عنه ددے مثال بوسه (چپه اخستل)، اشاره کول او کتل ښودلی دی۔ دارنګه پردو کورونو ته ورښکاره کیدل، فرض مانځه کښې خندل، د فاسقانو سره د هغوی د محبت د وجه نه کیناستل۔
ابن عباس رضی الله عنه نه ددے دا معنیٰ نقل ده چه انسان ګناه ته نزدے ورشی بیا توبه کړی۔ نو دے وخت کښې به دا استثناء متصل وی، او د ګناه نه به استثناء وی۔ یعنی د دوئ نه واړه

Scanned by CamScanner

گناهونه کیږي. او دا قول زجاج او نحاس غوره کړیدے.
(۳) بعض وائي ددے نه د جاهلیت د زمانے لوی گناهونه مراد دي چه د اسلام نه روستو په هغے باندے نیو که نهٔ کیږي. دا قول د زید بن ثابت ﷺ او زید بن اسلمؒ دے.
دے قِسم وړو گناهونو کولو په وجه انسان د ښو خلقو د صف نه نهٔ اُوځي، بلکه الله تعالیٰ دوئ معاف کوي، ځکه د هغهٔ رحمت ډیر زیات فراخه دے، چه په هغے کښې دننه هغه خپل دغسے تهول بندگان پټوي. الله تعالیٰ د سورتِ نساء په (۳۱) آیت کښې فرمایلي: ﴿إِنْ تَجْتَنِبُوا كَبَائِرَ مَا تُنْهَوْنَ عَنْهُ نُكَفِّرْ عَنْكُمْ سَيِّئَاتِكُمْ﴾ (که چرے تاسو د هغه غټو گناهونونه ډډه وکړئ د کومو نه چه تاسو منع شوی یئ، نو مونږ به خامخا ستاسو (وړے وړے) کوتاهئ معاف کړو).
او د نبی کریم ﷺ صحیح حدیث دے: (پنځه مونځونه، او د جُمعے نه جُمعے پورے، او د رمضان نه رمضان پورے، ددے ترمینځه شوی گناهونه ختموي، تر څو پورے چه انسان د غټو گناهونو نه بچ اُوسیږي). (مسلم: ٥٧٤)
كَبَائِرَ الْإِثْمِ: دے کښې کفر او شرك او لوی گناهونه داخل دي. او فواحش کښې زنا، لواطت، بُخل او قذف (مسلمان ته د زنا نسبت کول) دي.
وَاسِعُ الْمَغْفِرَةِ: دا د وړو گناهونو سره هم لگی چه الله فراخه بخنے والا دے چه د لوی گناهونو نه د ځان ساتلو په وخت کښې واړه گناهونه معاف کوي. او د لوی گناهونو سره هم لگي چه هغه هم معاف کوي ځوك چه ورته توبه وباسي. که دا نهٔ وے نو انسانان به ډیر گنده وے او د صفائي ذریعه به نهٔ وے.
هُوَ أَعْلَمُ بِكُمْ: یعني اے انسانانو! ستاسو رب ستاسو د کمزوریو نه د هغه وخت راسے بنهٔ خبر دے هر کله چه هغهٔ ستاسو پلار آدم د خاورے نه پیدا کړو، او کله چه تاسو د خپلو میندو په خیټو کښې پرورش موندلو. هغه پیژني چه په تاسو کښې د نیکئ کولو جذبے سره د گناه کولو جذبه هم شته، کله چه د گناه سبب اُوموندلے شي نو ستاسو کشش دے طرفته زیاتیږي.
دے وجے نه هغه په خپل فضل او کرم سره ستاسو واړهٔ گناهونه معاف کوي، او خاص طور سره د خپلو هغه بندگانو واړهٔ گناهونه چه هغوئ هر وخت د خپل حقیقي مولیٰ په تالاش کښې لگیا وي، او کله نا کله د دوئ نه څهٔ وړه گناه کیږي.

Scanned by CamScanner

او ددے ربط د مخکښې سره دا هم دے چه (بَعْضُ مَنْ يَّجْتَنِبُ الْكَبَائِرَ يَتَبَجَّحُ بِعَمَلِهِ) بعض خلق د لويو ګناهونو نه ځان ساتي نو په خپل عمل تکبر کوي او ځان لوی ګڼړي او د ځان صفائي بيانوي، نو الله فرمائي چه ما ته ستاسو عملونه معلوم دي۔

فَلَا تُزَكُّوْا اَنْفُسَكُمْ: يعني اے خلقو! تاسو د خپل ځان پاکي مهٔ بيانوئ، او دا مهٔ وائے چه مونږ خو د ګناهونو نه بيخي پاك صفا يو۔ الله ته ستاسو د بيانولو نه په غير ښه معلومه ده چه د هغهٔ نه پريدونکے څوك دے۔

احمدؒ، مسلمؒ او ابوداودؒ د زينب بنت ابی سلمه رضی الله عنها نه روايت کړے دے چه ددے نوم [بَرَّه] يعني پاکيزه کيښبول شوے وو۔ نو رسول الله ﷺ وفرمايل:

[لَا تُزَكُّوْا اَنْفُسَكُمُ اَللّٰهُ اَعْلَمُ بِاَهْلِ الْبِرِّ مِنْكُمْ، قَالُوْا بِمَ نُسَمِّيْهَا ؟ قَالَ : سَمُّوْهَا زَيْنَبَ]

(تاسو خپله پاکي مهٔ بيانوئ، الله تعالیٰ ته ښه معلومه ده چه پاکيزه څوك دے۔ ددے نوم زينب کيدئ)۔ (مسلم : ۵۷۳۳)

او په بخاريؒ او مسلمؒ کښې د ابو بکر ﷺ نه روايت دے چه يو کس د نبی کريم ﷺ مخامخ د بل کس صفت وکړو، نو نبی ﷺ بار بار وفرمايل چه:

[وَيْحَكَ قَطَعْتَ عُنُقَ صَاحِبِكَ، مَنْ كَانَ مِنْكُمْ مَادِحًا اَخَاهُ لَامَحَالَةَ، فَلْيَقُلْ : اَحْسِبُ فُلَانًا – وَاللّٰهُ حَسِيْبُهُ، وَلَا اُزَكِّيْ عَلَى اللّٰهِ اَحَدًا، اَحْسِبُهُ كَذَا وَكَذَا]

(بخاري : ۲۵۱۹، مسلم : ۳۰۰۰)

((تاله دِے خرابي وي، تا د خپل دوست څټ پريکړو، که د چا تعريف کول ضروري وي، نو داسے دِے وايه چه زهٔ فلانے داسے ګڼړم، او الله د هغهٔ د حال نه ښهٔ خبر دے، او زهٔ د الله د علم په موجودګئ کښې د هيچا پاکي نهٔ بيانوم۔ زما خيال دے چه فلانے انسان داسے دے))۔

بعض مفسرين وائي (خازنؒ، قرطبيؒ وغيره) چه دا آيت د هغه بعض مسلمانانو په باره کښې نازل وو چه هغوی به نيك اعمال کول، او بيا به ئے هغه ذکر کول، او داسے به ئے وئيل (صَلَاتُنَا، وَزَكَاتُنَا وَصِيَامُنَا وَحَجُّنَا) زمونږ مونځونه، زمونږ زکاتونه، زمونږ حجونه، نو الله دا آيت نازل کړو۔

يا معنیٰ دا ده چه د خپل نفس تزکيه مهٔ بيانوه په طريقه د رياء او تکبر سره، او داسے مهٔ وايئ د هغه چا په باره کښې چه تا ته ئے حقيقت نهٔ وي معلوم چه زهٔ ستا نه غوره يم، او زهٔ ستا نه ډير پاك يم، او ډير متقي يم ځکه چه علم د الله سره دے،

Scanned by CamScanner

او پدے کښې اشاره ده چه د عاقبت نه یره کول واجب دی ځکه چه الله تعالیٰ ته معلومه ده چه د چا انجام په تقویٰ باندے دے۔ او د تزکیه نه ځکه منع وشوه چه څوك د ځان صفتونه نهٔ کوی د ریاء نه نفس وړاندے کوی او خشوع ته ئے نزدے کوی۔

او دلته د تزکیه قولیه نه منع راغلے ده، نهٔ تزکیه عملی ځکه چه هغه خو واجب ده چه مؤمن به ځان د ګناهونو او ګندونو نه ساتی۔

ابن عاشورؒ وائی: پدے کښې مؤمنان یره ول دی د تعجب (تکبر) کولو نه په خپلو نیکو عملونو داسے تکبر چه بنده ئے په زړه کښې پیدا کړی، یا ئے یو تن د بل چا په زړه کښې راپیدا کړی چه د هغهٔ په عمل باندے ثناء او صفت ووائی۔ (التحریر)

بیا وائی: خپل نیك اعمال د تفاخر او عجب (تکبر) په طور ذکر کول، یا خلقو ته ښکاره کولو دپاره ذکر کول جائز نهٔ دی مګر که پدے کښې د عامو خلقو مصلحت وی لکه یوسف ؑ وئیلی وو: ﴿قَالَ اجْعَلْنِيْ عَلٰى خَزَائِنِ الْاَرْضِ اِنِّيْ حَفِيْظٌ عَلِيْمٌ﴾ (یوسف: ٥٥) (دارنګه نوروته دعوت ورکول وی)۔

بیا فرمائی: پدے آیت کښې ادب ورکول دی په ځان ساتلو د حکم کولو نه، او د احتیاط کولو نه په علم او خبر ورکولو کښې، او په قرائنو او نخو باندے تهمت لګول۔

نو پدے نهی کښې د خلقو د احوالو نه خبر ورکول نهٔ داخلیږی کله چه دهٔ ته هغه معلوم وی، او په هغه کښې ئے دا تجربه کړی وی لکه د هغهٔ ثقه والے او په ګواهئ او روایت کښې د هغهٔ عدالت۔ (التحریر)

| أَفَرَأَيْتَ الَّذِيْ تَوَلّٰى ﴿٣٣﴾ وَأَعْطٰى قَلِيْلًا |
|---|
| آیا خبر ئے نهٔ په هغه سړی چه واړویدو (د طاعت د الله نه)۔ او ور کړه ئے اوکړه لږه |
| وَّأَكْدٰى ﴿٣٤﴾ أَعِنْدَهٗ عِلْمُ الْغَيْبِ فَهُوَ يَرٰى ﴿٣٥﴾ |
| (طاعت ئے لږ اوکړو) او بند شو۔ آیا ددهٔ سره پوهه د پټو خبرو ده نو دا وینی (نجات |
| أَمْ لَمْ يُنَبَّأْ بِمَا فِيْ صُحُفِ |
| لره په لږ عمل)۔ آیا خبر نهٔ دے ورکړے شوے دهٔ ته په هغه خبرو چه په صحیفو د |

Scanned by CamScanner

| مُوسٰى ﴿٣٦﴾ وَإِبْرَاهِيمَ الَّذِي وَفّٰى ﴿٣٧﴾ |
|---|
| موسیٰ۔ او د ابراهیم (علیه السلام) کښې وو هغه چه وفا داری ئې کړیده۔ (د حق د الله |
| أَلَّا تَزِرُ وَازِرَةٌ وِزْرَ أُخْرٰى ﴿٣٨﴾ |
| تعالیٰ)۔(پدې خبره) چه نۀ شي پورته کوی یو پورته کونکې بوج د بل چا۔ |

**تفسیر** : پدې آیتونو کښې زجر دې غیر مُستقیمینو ته یعنی چه استقامت والا نۀ وی لږ عمل وکړی، بیائې پریدی چه بس همدا کافی دې۔
او همدا انسانان په امت کښې ډیر زیات دی، په رمضان کښې اعمال کوی بیائې پریدی، د جُمعې په ورځ یا شپه عمل وکړی بیائې پریدی، د اختر یا جُمعې مانځه له راشی او نور مونځونه نۀ کوی نو داسې خلقو باندې الله تعالیٰ رد کوی۔

## شان نزول

د مجاهدؒ، ابن زیدؒ او مقاتلؒ وینا ده چه دا آیتونه د ولید بن مغیره په باره کښې نازل شوی وو، هغۀ مخکښې اسلام قبول کړې وو، لیکن بعضِ مشرکانو هغۀ ته د خپل پلار نیکۀ د دین پرېښودلو پیغور ورکړو، (ورته ئې ووئیل : تۀ هوښیار سړې ئې، او د یو کشر سړی تابعداری کوې، (لِمَ تَرَكْتَ دِيْنَ الْاَشْيَاخِ وَضَلَّلْتَهُمْ وَزَعَمْتَ اَنَّهُمْ فِي النَّارِ؟)
تا ولې د خپلو مشرانو دین پریخودو او هغوی ته دې د گمراهئ نسبتونه وکړل، او ستا گمان دې چه دوی په اُور کښې دی۔ (یعنی د مشرانو خو دفاع پکار ده، لکه دا د باطل پرستو طریقه وی) نو هغۀ ورته ووئیل :
(اِنِّيْ خَشِيْتُ عَذَابَ اللّٰهِ) زۀ د الله د عذاب نه یریږم۔ نو هغه قریشی شیطان چه دۀ لره په مرتد کیدو باندې را پارولې وو، هغۀ ورته ووئیل چه که تۀ د قیامت د ورځې د عذاب نه یریږې نو ماله روزانه دومره مال راکوه، زۀ به ستا د طرفه د عذاب بوج اُوچتوم،
[فَاَعْطٰى بَعْضَ مَا كَانَ ضَمِنَ لَهٗ ثُمَّ بَخِلَ وَمَنَعَهٗ فَاَنْزَلَ اللّٰهُ هٰذِهِ الْاٰيَةَ] چنانچه دۀ هغۀ ته روزانه مال ورکول شروع کړل، او بیائې د یو مودې نه پس بند کړو۔ نو د اسلام نه واوړیدۀ، او دوباره په مشرکانو کښې شامل شو۔ نو دا آیت نازل شو۔
(اسباب النزول للواحدی والخازن ٤/ ٢١٢)

Scanned by CamScanner

بعض وائي : دا د عاص بن وائل سهمي په باره کښې نازل وو چه دهٔ به د رسول الله ﷺ موافقت کولو په ډیرو کارونو کښې لیکن بیا ئے هغه سر ته ونهٔ رسول.

محمد بن کعب قُرَظِيّ وائي : دا د ابو جهل په باره کښې نازل دے څکه چه هغه به وئیل : [وَاللّٰهِ مَا يَأْمُرُنَا مُحَمَّدٌ اِلَّا بِمَكَارِمِ الْاَخْلَاقِ]

قسم په الله محمد (ﷺ) مونږ ته د عزتمنو اخلاقو حکم راکوي۔ لیکن ددے خبرے نه روستو دهٔ د رسول الله ﷺ تابعداري ونکړه، نو دا اَعْطٰى قَلِيْلًا وَّاَكْدٰى شو۔ (قرطبيّ)

تَوَلّٰي: یعني د دین او طاعت نه واوړیدو۔

وَاَعْطٰى قَلِيْلًا وَّاَكْدٰى: ۱ – د ابن عباس ﷛ نه نقل دي چه اطاعت وکړي او بیا بند شي۔ نو دغه شان دغه انسان لږ کار د دین وکړو او نور ورته سخت ښکاره شو نو هغه ئے پریخودو۔

وَّاَكْدٰى: د كُدْيَةٌ نه دے، صلابت (سختئ) ته وائي، او دا په اصل کښې هغه چا دپاره استعماليږي چه څوك کوهے کني او مخے ته ئے یوه سخته ګټه راشي چه خکته کنستل بند کړي، نو عرب وائي : اَكْدٰى۔ یعنی عاجز شو د مخکښې تللو نه۔ او اَكْدَى الرَّجُلُ دے دپاره استعماليږي چه کله د يو تن خير کم شي۔

مقاتلؒ وائي : وليد به د قرآن صفتونه کول بيا بند شو نو د ژبے نه ئے لږ خير ورکړو بيا ئے پريکړو۔ قَلِيْلًا نه مراد د شان نزول مطابق لږه زمانه ده، يعني مال ئے ورکړو لږه زمانه بيا ئے پريکړو۔ يا قليل صفت د طاعت دے، يعني ورئے کړو لږ طاعت بيا بند شو د هغے نه، او دا معنیٰ غوره ده څکه چه پدے کښې عموم دے۔

فَهُوَ يَرٰى: ۱ – اَىْ نَجَاتَهٗ بِالْعَمَلِ الْقَلِيْلِ ۔ يعني آيا ددهٔ سره د غيبو علم دے چه دے په لږ عمل سره د خپل ځان نجاتويني۔

۲ – يا آيا دهٔ سره د غيبو علم دے، چه ددے په ذريعه دهٔ ته معلومه ده چه د قيامت په ورځ به څوك د چا د طرفه عذاب برداشت کوي۔ دا ددهٔ دروغ تړل دي، او ډير لوی حماقت او جهالت دے۔

اَمْ لَمْ يُنَبَّاْ :آيا دے د موسیٰ ؑ په صحيفو او د ابراهيم ؑ په صحيفو کښې راغلی خبرو نه خبر نهٔ دے۔ په دے صحيفو کښې خو دا دي چه د قيامت په ورځ هيڅوك د بل

Scanned by CamScanner

چا پوج نشي او ختولے۔ او هر یو انسان ته به صرف دده د خپل عمل بدله ملاویږي۔
وَفّٰی: ۱ – اَیْ وَفّٰی جَمِیْعَ شَرِیْعَتِهٖ۔ یعنی د الله د ټول شریعت وفاداري ئے کړے وه۔
۲ – بل تعبیر دے: عَمِلَ بِجَمِیْعِ اَحْکَامِ اللّٰهِ۔
د الله په ټولو احکامو ئے عمل کړے وو۔ او دا لفظ ئے هم دلته د مناسبت د وجه نه راوړو
چه دغه شخص بے وفاء دے، د ابراهیم ﷺ تابعدار هم نهٔ دے۔

| وَأَنْ لَّيْسَ لِلْإِنْسَانِ إِلَّا مَا سَعٰى ﴿۳۹﴾ وَأَنَّ سَعْيَهٗ |
|---|
| او نشته د انسان دپاره مګر هغه چه دهٔ کوشش کړیدے۔ او یقیناً کوشش دده به |
| سَوْفَ يُرٰى ﴿۴۰﴾ ثُمَّ يُجْزٰىهُ الْجَزَاءَ الْأَوْفٰى ﴿۴۱﴾ |
| زر دے چه اُوخودلے شي دهٔ ته۔ بیا به بدله ورکړے شي دهٔ ته بدله پوره۔ |
| وَأَنَّ إِلٰى رَبِّكَ الْمُنْتَهٰى ﴿۴۲﴾ |
| او یقیناً رب ستا ته آخري رسیدل دي۔ |

**تفسیر**: وَأَنْ لَّيْسَ لِلْإِنْسَانِ إِلَّا مَا سَعٰى: یعنی په هغه کتابونو او صحیفو کښې دا هم راغلي دي چه د هر انسان ته به د هغه شي اجر او سزا رسیږي چه دهٔ کړے وي۔ نیکي وي او که ګناه، نو د بل چا په نیکئ څوك فائده نشي اخستے، او د بل چا ګناه څوك نشي پورته کولے۔ او دده کوشش به د قیامت په ورځ دهٔ ته راښکاره شي لکه ﴿ فَمَنْ يَّعْمَلْ مِثْقَالَ ذَرَّةٍ خَيْرًا يَّرَهٗ ﴾ په شان دے۔ بیا به ورته پوره بدله ورکړے شي۔
وَأَنَّ إِلٰى رَبِّكَ الْمُنْتَهٰى: دا د اِلَی اللّٰهِ الْمَصِیْرُ په شان آیت دے،
۱ – یعنی ستا رب طرف ته انتهاء د مخلوق او د هغوی د عملونو ده، ټول مخلوق به الله ته ورکرځولے شي دپاره د حساب او جزاء ورکولو۔
۲ – یا اِنتهاء د امیدونو یو الله تعالیٰ ته، د بل هیچا نه امید د نفع او د نقصان نشته۔
۳ – یا اِنتهاء د فکرونو الله تعالیٰ پورے ده۔ یعنی هر څیز کښې فکر کیدے شي لیکن د الله په ذات کښې فکر نهٔ چلیږي۔
وَأَنْ لَّيْسَ لِلْإِنْسَانِ: پدے آیت کښې ډیرو مفسرینو ته دا اشکال رامخکښې شویدے چه

Scanned by CamScanner

دے آیت کښې خو دا دی چه د هر انسان کوشش او عمل د خپل ځان دپاره دے، او صرف همده ته به فائده ورکوی، حال دا چه په دین کښې د بل چا عمل هم کله نا کله بل ته فائده ورکوی لکه په مسئله د ایصال ثواب کښې۔

نو بیائے ددے نه جوابونه ورکړیدی۔

(۱) چا وئیلی دی چه لِلْاِنْسَانِ کښې لام د مِلْك دے،

او مطلب دا دے چه په پردی عمل ته فائده اخستے شے لیکن ته ئے مالك نهٔ ئے۔ نو هر عمل د انسان په ملکیت او اختیار کښې دے که دے ئے ځانله گرځوی او که بل ته ئے ثواب بخښی۔ نو دا منافی نشو د هغه روایاتو سره۔

(۲) قرطبیؒ وئیلی دی چه سعی په معنیٰ د نیت سره دے۔ [لَيْسَ لِلْاِنْسَانِ اِلَّا مَا نَوٰى] د انسان دپاره نهٔ وی مگر هغه شے چه دهٔ نیت کړے وی، نو که د ځان دپاره نیت وکړی نو خپله فائده، او که بل دپاره نیت وکړی نو د هغه دپاره جوړیږی۔

(۳) شوکانیؒ وائی : چه دا عام مخصوص البعض دے، یعنی د ځینے نورو آیتونو او حدیثونو په ذریعه ددے عموم تخصیص شوے دے۔ لکه د سورتِ طور په (۲۱) آیت کښې راغلی : ﴿ اَلْحَقْنَا بِهِمْ ذُرِّيَّتَهُمْ ﴾ (مونږ به دے جنتیانو ته د دوئ اولاد اورسوو)۔

او په حدیث کښې راغلی دی چه الله تعالیٰ به د قیامت په ورځ د انبیاؤ او ملائکو شفارس قبلوی۔ او دا هم راغلی چه ژوندے انسان چه د مړی لپاره دعاء کوی نو الله تعالیٰ ئے قبلوی۔

(٤) چا وئیلی دی چه دا شرع د مَنْ قَبْلَنَا ده، یعنی دا په پخوانو کتابونو کښې لیکلے شوی وو چه انسان دپاره صرف خپل عمل فائده ورکوی۔

(٥) پدے کښې حقه ان شاء الله دا ده چه آیت په ظاهر بناء دے، او هر انسان ته خپل عمل فائده ورکوی، پردے عمل ورته فائده نهٔ ورکوی۔ او مسئله د ایصال ثواب په دین کښې نشته چه یو تن د بل دپاره ختمونه کوی، روژے نیسی، مونځونه کوی، او هرچه والدینو ته د بچو د عمل فائده رسیدل دی نو هغه پدے وجه چه (اِنَّ اَوْلَادَكُمْ مِنْ كَسْبِكُمْ) د انسان اولاد د هغهٔ کسب او عمل دے۔ نو دا په مَا سَعٰى کښې داخل شو۔

او نورو خلقو ته صدقے بخښل، د بل دپاره تلاوتونه کول او مونځونه کول په دین کښې نهٔ دی ثابت۔

Scanned by CamScanner

دلته یوه مسئله د ایصال ثواب ده، او بل د نیابت ده، دواړو کښې فرق دے، د نیابت مسئله دا ده چه یو تن په روژه کښې د پلار وغیره نائب جوړ شي، او د هغهٔ د طرفنه روژه نذری یا فرضی ونیسی، یا په هغه باندے حج وی او نشی ئے ادا کولے، یائے نهٔ وی ادا کړے نو دے ورله نائب جوړ شي۔

صرف په شریعت کښې دعاء او جنازه د بل مسلمان دپاره فائده ورکوی، او د باقی اعمالو په باره کښې صحیح حدیث نهٔ دے ثابت۔

حافظ ابن کثیرؒ لیکلی چه امام شافعیؒ او ددهٔ شاګردانو ددے آیتِ کریمه نه استدلال کړے چه د قرآن د تلاوت کولو ثواب مړو ته نهٔ رسیږی، ځکه چه دا د هغویٔ خپل عمل نهٔ وی۔ دے وجے نه رسول الله ﷺ خپل امت ته په ډاګه یا اشارے هیڅ طریقے سره ددے ترغیب نهٔ دے ورکړے، او نهٔ صحابه کرامو دا کار کړے۔

که چرے دا کار ښهٔ وے نو صحابه کرامو به خامخا کړے وے۔ د ثواب په کارونو کښې په نص باندے اکتفاء کیږی، په دے کښې په رائے او قیاس باندے عمل نهٔ کیږی۔

البته د دعاء او خپلے صدقے ثواب مړی ته رسیږی، ځکه دا په نص سره ثابت دی۔

امام مسلمؒ په خپل کتاب (الصحیح) کښې د ابو هریره رضی الله عنه نه روایت کړے :

[إِذَا مَاتَ الْإِنْسَانُ إِنْقَطَعَ عَنْهُ عَمَلُهُ إِلَّا مِنْ ثَلَاثَةٍ إِلَّا مِنْ صَدَقَةٍ جَارِيَةٍ أَوْ عِلْمٍ يُنْتَفَعُ بِهِ أَوْ وَلَدٍ صَالِحٍ يَدْعُوْ لَهُ] مسلم : ۴۳۱۰)

چه کله انسان مړ نو ددهٔ عمل بندیږی، صرف درے ذریعو سره دهٔ ته ثواب ملاویږی : صدقه جاریه او هغه علم چه په هغے سره خلق نفع حاصلوی، او نیک اولاد چه دهٔ دپاره دعاء کوی۔ ځکه چه په حقیقت کښې دا درے کارونه ددهٔ د کوششونو نتیجه ده، او ددهٔ د عمل یوه برخه ده،

لکه د عائشے رضی الله عنها په هغه حدیث کښې راغلی چه هغه نسائی او ابوداود روایت کړے، [إِنَّ مِنْ أَطْيَبِ مَا أَكَلَ الرَّجُلُ مِنْ كَسْبِهِ وَوَلَدُهُ مِنْ كَسْبِهِ]

چه د ټولو نه پاکیزه روزی هغه ده چه انسان خپله ګټلے وی، او ددهٔ ځوی ددهٔ ګټه ده،

(نسائی : ۴۴۴۹ وابوداود : ۳۵۳۰)

او صدقه جاریه لکه وقف وغیره ددهٔ د خپل عمل برخه ده۔

او کوم علم چه دے ئے په خلقو کښې خوروی هغه هم ددهٔ د عمل برخه ده۔

Scanned by CamScanner

| وَأَنَّهُ هُوَ أَضْحَكَ وَأَبْكَىٰ ﴿٤٣﴾ وَأَنَّهُ هُوَ أَمَاتَ وَأَحْيَا ﴿٤٤﴾ |
|---|
| او یقیناً هغه خندول کوی او ژړول کوی، او یقیناً هغه مړهٔ کول کوی او ژوندی کول |
| وَأَنَّهُ خَلَقَ الزَّوْجَيْنِ الذَّكَرَ وَالْأُنثَىٰ ﴿٤٥﴾ مِن نُّطْفَةٍ إِذَا تُمْنَىٰ ﴿٤٦﴾ |
| کوی۔ او یقیناً هغهٔ پیدا کړیدی دوه جوړیٔ نارینه او زنانه۔ د نطفې نه کله چه واړولے |
| وَأَنَّ عَلَيْهِ النَّشْأَةَ الْأُخْرَىٰ ﴿٤٧﴾ وَأَنَّهُ هُوَ أَغْنَىٰ |
| شی (په رَحِم کښ)۔ او یقیناً د هغهٔ په ذمه دے پیدائش بل۔ او یقیناً هغه مالداره |
| وَأَقْنَىٰ ﴿٤٨﴾ وَأَنَّهُ هُوَ رَبُّ الشِّعْرَىٰ ﴿٤٩﴾ |
| کول کوی او غریبول کوی۔ او یقیناً هغه رب د شعریٰ ستوری دے۔ |

**تفسیر**: ددے ځای نه تر (٤٩) آیت پورې د الله تعالیٰ نهه صفتونه ذکر دی دپاره د اثبات د توحید۔ او پدے کښ دوه دوه متضاد څیزونه ذکر دی، دے ته په علم بدیع کښ الطباق المتضادد وئیلے کیږی۔

د موسیٰ علیه السلام او ابراهیم علیه السلام په صحیفو کښ دا هم راغلے ده چه الله رب العالمین هغه ذات دے چه په انسان کښ ئے د خندولو او ژړولو طاقت ایښے۔ په آیت کښ عموم دے۔

(١) اَسَرَّ وَاَحْزَنَ۔ الله خوشحاله کول او خفه کول کوی۔

یعنی په دنیا کښ چا لره خوشحالی ورکولو سره هغه خندوی، او چا لره په غم ورکولو سره په ژړا باندے مجبوره کول کوی۔

(٢) اَضْحَكَ اَهْلَ الْجَنَّةِ فِى الْجَنَّةِ وَاَبْكَى اَهْلَ النَّارِ فِى النَّارِ۔ جنتیان په جنت ته بوتللو سره خندوی او جهنمیان په جهنم ته بوتللو سره ژړوی۔

(٣) اَضْحَكَ الْاَرْضَ بِالنَّبَاتِ وَاَبْكَى السَّمَاءَ بِالْمَطَرِ ۔ زمکه ئے په گیاه باندے خندولے ده او آسمان ئے په باران باندے ژړولے دے۔

(٤) اَضْحَكَ الْمُؤْمِنِيْنَ فِى الْعُقْبٰى بِالْمَوَاهِبِ، وَاَبْكَاهُمْ فِى الدُّنْيَا بِالنَّوَائِبِ۔

مؤمنان ئے په آخرت کښ په تحفو او هبو باندے خندولی دی، او په دنیا کښ ئے په مصیبتونو باندے ژړولی دی۔

Scanned by CamScanner

وَاَنَّهٗ هُوَ اَمَاتَ وَاَحْيَا: دے نه ظاهری مرگ او ژوند هم مراد دے او باطنی هم۔ اَیْ اَمَاتَ بِالْكُفْرِ وَاَحْيَا بِالْاِيْمَانِ۔ په کفر سره مړه کول او په ایمان سره ژوندی کول کوی۔

وَاَنَّهٗ خَلَقَ الزَّوْجَيْنِ: او الله چه چا لره غوارې په مړه نطفه کښې ئے ژوند اچولو سره ژوندے کوی۔ او هم هغهٔ سړے او ښځه د یوے قطرے نطفے نه پیدا کړل کوم چه په توپ سره د مور رحم ته لاړه شی او هلته قرارے اُونیسی۔

مِنْ نُّطْفَةٍ: نطفه په اصل کښې (اَلْمَاءُ الْقَلِيْلُ) لږو اُوبو ته وئیلے شی۔

اِذَا تُمْنٰى: اَیْ اِذَا تُصَبُّ فِی الرَّحِمِ ۔ کله چه واړه ولے شی په رحم کښې۔ نو الله ترے کله نارینه او کله جینئ پیدا کړی د خپل حکمت مطابق، او ښځه او خاوند د هغے د پیدائش نه خبر هم نهٔ وی، دا خالص د الله په قدرت سره کیږی، چه پدے باندے رب پیژندلے کیږی۔

اَغْنٰى وَاَقْنٰى: پدے کښې ډیر اقوال او تفسیرونه دی :

(۱) اغنی : مالداره کول کوی۔ او اقنی : اَیْ اَقْنَعَ، وَاَرْضٰى بِمَا اَعْطٰى۔

یعنی قناعت ورکوی او راضی کول کوی په هغه څه چه څه ورکوی۔ (ابن عباسؓ)

(۲) قنیه په اصل کښې ساتلے شوے/ خزانه شوے مال دے،

نو اُغْنٰی : مطلق مال ورکوی او اُقْنٰی : یعنی زیات مال ورکوی چه هغه ساتلے او خزانه کولے شی۔ یعنی ذخیره اندوزئ دپاره مال ورکوی۔

اَیْ زَادَ فَوْقَ الْغِنٰى۔ یعنی د مالدارئ نه زیات ورکوی۔

(۳) اغنٰی : په نقودو سره، او اقنیٰ په څاروو سره مالداره کول کوی۔

(٤) اغنی : په ډیرو مالونو سره او اقنیٰ په خادمانو او نوکرانو ورکولو سره۔

(٥) اغنی مالداره کول کوی او اقنی غریبول کوی۔ (اخفش ؒ وابن کیسانؒ)

(٦) اغنی : خپل ځان ئے د مخلوق نه بے حاجته کړیدے، او اَقْنٰی مخلوق ئے ځان ته فقیر او محتاج کړیدے۔

وَاَنَّهٗ هُوَ رَبُّ الشِّعْرٰى: او هم هغه د شِعرٰی ستوری رب دے۔

پدے آیت کښې مقصد د خُزاعه قبیلے او هغه خلقو رد کول دی چه هغوئ به ددے ستوری عبادت کولو، ګنے الله تعالیٰ خو د هر یو شیٔ رب دے۔ یعنی شِعرئ ستورے د الله مخلوق دے، خلق دا ولے معبود ګنړی او عبادت ئے کوی۔

Scanned by CamScanner

شعرئ یو ستورے دے چه د جوزاء نه روستو په سخته گرمئ کښې راښکاره کیږي، او دلته د شعرئ نه مراد هغه ستورے دے چه هغې ته عبور وئیلے شي، او دا په رنړا کښې د هغه شعرئ نه زیات دے چه هغې ته غُمیصاء وئیلے شي۔

او ابو کبشه چه د عربو د سردارانو او اشرافو نه وو، هغه اول ددے ستوري عبادت شروع کړے وو، او د نورو خلقو دپاره ئې ددے عبادت بنیاد ایخودے وو، او ددے وجه دا وه چه نور ستوري په آسمان کښې په پلنو باندے مزل کوي او شعرئ ستورے په اُوږدو مزل کوي۔ نو ددے ناشنا والي د وجه نه ابو کبشه ددے عبادت شروع کړو چه دے کښې څه کمال ښکاري او بیا به خزاعه او حِمْیَر قبیلے ددے عبادت کولو۔

او قریشو به رسول الله ﷺ ته ابن ابی کبشه وئیلو ځکه چه دهٔ هم د خپل قوم د دین مخالف شے راوړے وو، او رسول الله ﷺ هم د خپل قوم مخالف دین راوړو، خو فرق دا وو چه ابو کبشه شرك راوړے وو، او رسول الله ﷺ توحید راوړو۔

او ابو کبشه د رسول الله ﷺ د مور د طرفنه نیکهٔ وو۔

| وَاَنَّهٗ اَهْلَكَ عَادَا ِۨ الْاُوْلٰى ﴿۵۰﴾ وَثَمُوْدَ فَمَا اَبْقٰى ﴿۵۱﴾ |
|---|
| او یقیناً هغهٔ هلاك کړیدی عادیان زاړهٔ۔ او ثمودیان نو باقي ئې پرینخودو هیڅوك۔ |
| وَقَوْمَ نُوْحٍ مِّنْ قَبْلُ اِنَّهُمْ كَانُوْا هُمْ اَظْلَمَ وَاَطْغٰى ﴿۵۲﴾ |
| او قوم د نوح ﷺ مخکښې ددے نه یقیناً دوي وو ډیر ظلم کونکي او ډیر سرکشي |
| وَالْمُؤْتَفِكَةَ اَهْوٰى ﴿۵۳﴾ فَغَشّٰىهَا مَا |
| کونکي۔ او مؤتفکه کلے ئې د برے نه گوزار کړو۔ نو پټ کړو هغې لره هغه څیز |
| غَشّٰى ﴿۵۴﴾ فَبِاَيِّ اٰلَآءِ رَبِّكَ تَتَمَارٰى ﴿۵۵﴾ |
| چه پټ ئې کړو۔ نو په کوم یو د نعمتونو د رب ستا باندے ته شك کوے۔ |

**تفسیر:** وَاَنَّهٗ اَهْلَكَ عَادَا ِۨ الْاُوْلٰى: او همدغه الله هغه ذات دے چه هغهٔ اولنی عاد قوم هلاك کړے وو، دوئ ته ئې [عَادِ اُوْلٰى] ځکه اُووئیلو چه د دوئ زمانه د ثمودیانو نه مخکښې وه۔

Scanned by CamScanner

نو د اُولیٰ نه مراد (اَلْقُدَامیٰ) یعنی زاړهٔ عادیان دی۔
بعضو وئیلی دی چه ددے نه مراد قومِ هود دے، او عادِ آخر قومِ ارم ته وئیلے کیږی۔
وَثَمُوْدَ: دا عطف دے په عاداً باندے یعنی همدغه الله ثمودیان هم تباه کړل، یعنی لکه څنګه چه الله تعالیٰ عادیان هلاك کړل، دغه شان ئے ثمودیان هم تباه کړل، د دواړو قومونو نه ئے هیڅوك پرے نښودلو۔
فَمَا اَبْقٰی: ۱ - اَیْ وَاحِدًا مِنْهُمْ۔ یعنی د دوئ نه ئے یو تن هم پرینخودو۔
۲- فَمَا رَحِمَهُمْ۔ یعنی په دوئ ئے هیڅ رحم ونکړو۔
وَقَوْمَ نُوْحٍ: او هم هغهٔ ددے دواړو قومونو نه مخکښې قومِ نوح هلاك کړے وو، چه هغوئ د عاد او ثمود نه هم زیات ظالمان او سرکشه شوی وو۔
وَاَطْغٰی: د هغوی سرکشی او ظلم څکه زیات وو چه هغوی په ګناهونو سره په الله باندے سرکشی کړے وه سره د اُوږدوالی د دعوت د نوح ﷺ نه دوئ ته۔ په نهه نیم سوه کالو کښې یو څو کسانو ایمان راوړے وو، خیر والا خلق پکښې په نشت باندے حساب وو۔
اظلم کښې شرك ته اشاره ده، او اَطْغٰی کښې د پیغمبر مخالفت۔ یعنی د دوئ عقیده هم خرابه وه او عمل ئے هم خراب وو۔
وَالْمُؤْتَفِکَةَ اَهْوٰی: او الله تعالیٰ د قومِ لوط کلی اړولی وو، او د جبریل ﷺ په لاس ئے پورته کړل، او زمکے ته ئے را ویشتل، بیا ئے دوئ د کاڼړو په باران کولو سره پټ کړل۔ لکه د سورتِ حجر په (۷٤) آیت کښې راغلی دی:

﴿ فَجَعَلْنَا عَالِيَهَا سَافِلَهَا وَاَمْطَرْنَا عَلَيْهِمْ حِجَارَةً مِّنْ سِجِّيْلٍ ﴾

(یعنی آخر مونږ دا ښار لاندے باندے کړو، او په دے خلقو مو د کاڼړو باران وکړو)۔
فَغَشّٰهَا مَا غَشّٰی: (۱) غَشّٰهَا کښې ضمیر مستتر الله ته راجع دے، او هَا مفعول اول او (مَا) موصوله مفعول ثانی دے۔ او غَشّٰی کښې دواړه مفعولونه حذف شویدی۔ معنیٰ دا ده چه الله تعالیٰ پټ کړل دغه کلی په هغه کاڼړو سره چه په کومو سره الله پټ کړل۔
(۲) او دا هم جائز ده چه مزید په معنیٰ د مجردو شی لکه د فَغَشِيَهُمْ مِنَ الْيَمِّ مَا غَشِيَهُمْ په شان۔ (اعراب القرآن للدرویش ۹/۳٦۸)
نو مَا فاعل د غَشّٰهَا دپاره دے۔ یعنی پټ کړو دغه قوم لوط لره (مَا) هغه د کاڼړو باران کوم چه پټ کړل۔ او ابهام پکښې د تفخیم دپاره دے، یعنی د کاڼړو دومره باران پرے وشو

Scanned by CamScanner

او دوئ پکښې پټ شول چه که زۀ تا ته د هغې بیان وکړم هم ستا په ذهن کښې به واقع نشي۔

تَتَمَارٰی: دا خطاب هر انسان او خاصکر دغه ولید بن مغیره کافر ته وو۔

تَتَمَارٰی: د مِرْيَةٌ نه دے شك كولو ته وئیلے شي۔ یا د مِرَاءٌ نه دے جګړے کولو ته وائي۔ یعني شك كوے او بیا د الله د طاعت نه اوړے۔

او دے ذکر شوي څیزونو ته ئې نعمتونه ووئیل سره ددے نه چه پدے کښې خو نقمتونه (عذابونه) هم ذکر دي، وجه دا ده چه په دغه عذابونو کښې هم انسانانو ته لوی عبرتونه او نصیحتونه پراته دي، او پدے کښې د ګناهګارو مجرمانو نه بدله اخستل او د انبیاء علیهم السلام او صالحینو مدد کول دي او دا نعمتونه دي۔ (فتح البیان)

| هٰذَا نَذِيْرٌ مِّنَ النُّذُرِ الْأُوْلٰى ﴿٥٦﴾ أَزِفَتِ الْآزِفَةُ ﴿٥٧﴾ |
|---|
| دا یره ورکونکے دے د ویره ورکونکو مخکنو نه۔ رانزدے شو نزدے راتلونکے آفت۔ |
| لَيْسَ لَهَا مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ كَاشِفَةٌ ﴿٥٨﴾ أَفَمِنْ هٰذَا الْحَدِيْثِ |
| نشته هغې لره سوئ د الله نه هیڅوك راښکاره کونکے۔ آیا پس ددے خبر (قرآن) نه |
| تَعْجَبُوْنَ ﴿٥٩﴾ وَتَضْحَكُوْنَ وَلَا تَبْكُوْنَ ﴿٦٠﴾ وَأَنْتُمْ سَامِدُوْنَ ﴿٦١﴾ |
| تعجب کوئ تاسو۔ او خندا کوئ او ژړا نۀ کوئ۔ او تاسو غفلت کونکی یئ۔ |
| فَاسْجُدُوْا لِلّٰهِ وَاعْبُدُوْا ﴿٦٢﴾ (س). |
| نو سجده اُوکړئ الله ته او بندګي اُوکړئ (د هغۀ)۔ |

**تفسیر:** هٰذَا نَذِيْرٌ: اُوس براعة الاختتام کوی (١) او هٰذَا کښې اشاره ده رسول الله ﷺ ته، یعني محمد (ﷺ) د مخکنو رسولانو غوندې ستاسو دپاره یو رسول دے، چه دهغۀ د رالیږلو مقصد تاسو د الله د عذاب نه ویرول دي، لکه څنګه چه دے رسولانو خپل قومونه ویرولي وو۔ د ابن جریج او محمد بن کعبؒ وغیره همدا قول دے۔

(٢) او د قتادةؒ په نیز د [ نَذِيْر ] نه مراد قرآن کریم دے،

او د آیت مطلب دادے چه اے خلقو! دا قرآن تاسو د هغه عذاب نه ویروی د کوم نه چه

Scanned by CamScanner

مخکنو آسمانی کتابونو قومونه ویرولی وو۔ نو د اَلنُّذُرِ الْاُوْلٰی نه به هغه صحیفے او کتابونه مراد وی چه انبیاؤ ته ورکړے شوی وو۔

(۳) او بعض مفسرینو وئیلی دی چه هذا کښې اشاره ده مخکنو قصو ته، یعنی په مذکوره آیتونو کښې چه د مخکنو سرکشه قومونو د هلاکت کومے قصے واوروله شوے، ددے نه مقصد امتِ محمدیه ویرول دی چه که دوئ هم د الله نافرمانی وکړه نو په دوئ هم د الله عذاب راتللے شی۔

اَزِفَتِ الْاٰزِفَةُ: اُوس چه دغه رسول په کومه خبره یره ورکوی هغه بیانوی چه هغه د آخرت نه خلق یره ول دی نو اُوس د آخرت یره بیانوی۔

آزفه د قیامت د نومونو نه یو نوم دے په معنیٰ د ساعت، یعنی نزدے راتلونکے ساعت معنیٰ دا ده: (قیامت) ډیر رانزدے شو۔ وخت ئے نزدے راغے۔ یا خلقو ته رانزدے شو۔ ددے رسول په راتللو سره۔

یا آزفة صفت د آفت دے اَیِ الْاٰفَةُ الْقَرِيْبَةُ۔ رانزدے شو نزدے آفت او مصیبت۔

لَيْسَ لَهَا مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ كَاشِفَةٌ : ۱– (لرے کونکے) یعنی د الله نه سوئ دے لره څوك لرے کونکے نشته۔ د ﴿لَا مَرَدَّ لَهٗ مِنَ اللّٰهِ يَوْمَئِذٍ يَّصَّدَّعُوْنَ﴾ (روم : ۴۳) په شان دے۔

(۲) یا کشف په معنیٰ د ظهور او معلومات سره دے۔ یعنی نشته دے لره سوئ د الله نه هیڅ نفس رابښکاره کونکے او معلومونکے چه په فلانئ ورځ به راځی بلکه ددے علم صرف الله ته دے۔

اَفَمِنْ هٰذَا الْحَدِيْثِ: د قرآن نه په انکار باندے رټنه ورکوی۔

(۱) د حدیث نه مراد قرآن دے۔

تَعْجَبُوْنَ : قرآن خو تعجبی کتاب دے، نو بیا ددے نه په تعجب کولو څنګه رټنه ورکوی؟ جواب دا دے چه تعجب په دوه قسمه دے، یو تعجب (حیرانتیا) په طریقه د خوشحالئ او کمال سره دے چه د قرآن کریم په کمالاتو کښې تعجب کوی چه دا څومره عجیب کتاب دے، نو دا تعجب د مؤمن صفت دے،

او دویم تعجب دے په طریقه د انکار چه دا څنګه کیدے شی چه انسان ته دے الله خبرے نازلے کړی، آیا الله ګنے داسے خبرے کوی۔

نو دا قسم تعجب د کفارو صفت دے، او دلته همدا قسم تعجب مراد دے۔

Scanned by CamScanner

وَتَضْحَكُوْنَ: یعنی تاسو خندا کوئ په طریقه د مسخرو او سپکاوی۔
وَلَا تَبْكُوْنَ: په قرآن سره ژړا کول د نیکانو مؤمنانو صفت دے، لکه په سورة اسراء (۱۰۹) آیت کښې ذکر دے۔
(۲) یا د حدیث نه مراد خبر د اَزِفَتِ الْآزِفَةُ دے۔ یعنی د قیامت ددے خبر نه تاسو حیرانتیا ښکاره کوئ، او دے پورے خاندئ حال دا چه هغه خو داسے سخت حالات دی چه د هغے په باره کښې خو ژړا پکار ده۔
وَاَنْتُمْ سَامِدُوْنَ: د سمود ډیرے معانی دی، اعراض، غفلت، استکبار، لهو ولعب کول، او غزلے شعرونه وئیل په طریقه د سرودونو سره۔
مفسرینو ددے مصداقات دا ذکر کړیدی:
۱ – [سَاهُوْنَ لَاهُوْنَ، غَافِلُوْنَ لَاعِبُوْنَ] ۔ یعنی تاسو غفلت او ددے نه ځان غافل کونکی لوبے کونکی یئ۔
۲ – مُسْتَكْبِرُوْنَ مُعْرِضُوْنَ۔ تکبر کونکی یئ، مخ کرځونکی یئ۔
❁ او ابو عبیدهٔ وائی: سمود په لغت د حِمْیَر کښې ټنګ ټکور ته هم وائی، یعنی د قرآن نه په ټنګ ټکور باندے مشغول یئ۔
❁ په صحاح کښې دی چه سمود په طریقه د تکبر سره سر پورته کولو ته وائی۔
❁ او بعض وائی: سمود ځان پورته کونکی د قرآن نه، یعنی قرآن ته هیڅ ضرورت نهٔ محسوس کوی، او دا د بل چا کتاب ګنړئ او ځان ترے مستغنی کوئ او دے طرفته هیڅ توجه نهٔ ورکوئ۔ او دا صفتونه زمونږ په معاشره کښې د قرآن په مقابله کښې څو مره زیات موجود دی۔ په لوبو، ټنګ ټکور او ګانو بجانو او فیس بوك باندے خلك د الله تعالیٰ د کتاب او د هغهٔ د تعلق نه غافل دی، فیس بوك دپاره ورسره وخت وی، او د الله کتاب دپاره ورسره وخت نشته۔
فَاسْجُدُوْا: یعنی هر کله چه مشرکان د قرآن پورے استهزاء کوی، او ددے پورے مسخرے او خندنئ کوی، نو ستاسو کار به دا وی چه تاسو به الله تعالیٰ ته سجدے لګوئ او د هغه په بندګئ کښې به مصروف شئ۔
او دا په ټول سورت باندے تفریع ده، یعنی هر کله چه ثابته شوه چه ددے رسول دلیل وحی ده، او تاسو سره صرف ظن او اتباع د خواهش ده، نو ثابته شوه چه الله تعالیٰ په

Scanned by CamScanner

بندګانو باندې انعام کړېدې چه دا رشتینی رسول او قرآن ئې راولیږل، نو لازم ده چه تاسو ددې په بدله کښې الله ته سجده ولګوئ او تمام عبادات هغه لره خاص کړئ.

سجده ئې مخکښې راوړه:

(۱) یوه وجه دا ده چه دا په مانځه کښې ډیر اَهم او د عاجزئ والا رکن دې.

(۲) دویم دا چه د سجدې په وخت کښې الله تعالیٰ ته قربت زیات حاصلیږی.

(۳) یا دا چه دلته سجده د تلاوت مراد ده، او هغه مستقل عبادت دې.

لِلّٰهِ: کښې لام د تخصیص دپاره دې. ځکه چه مشرکانو هم الله ته سجده لګوله لیکن د الله تعالیٰ نه سوئ نورو باطلو معبودانو ته ئې هم لګوله.

او کله چه رسول الله ﷺ په مکه کښې دا سورت ولوستلو نو په مجلس کښې ناست مشرکان هم الله ته په سجده شول، سوئ د یو شیخ د قریشو نه چه امیه بن خلف وو هغه خاوره تندی پورې راخکله چه د خلقو موافقت به وکړو ګنې زما سجدې ته ضرورت نشته.

عبد الله بن مسعود ﷛ فرمائی: (فَلَقَدْ رَأَيْتُهُ بَعْدُ قُتِلَ كَافِرًا) ما روستو زمانه کښې ولیدو چه په بدر کښې کافر مردار شو. (بخاری: ۱۰۷۰)

ددې وجه نه په حبشو کښې مشهوره شوه چه تولو مشرکانو ایمان راوړې، نو د هغه ځای مهاجرین صحابه کرامؓ مکې ته راغلل، دلته په رارسیدو معلومه شوه چه ایمان ئې نهٔ دې راوړې، نو څه کسان د قریشو د عذابونو نه په تنګیدو بیرته حبشو ته واپس شول، او څه کسانو د مشرکانو نه امان اخستو سره مکه کښې پاتې شول.

او هغه واقعه غلطه ده چه مشرکانو پدې وجه سجده وکړه چه د رسول الله ﷺ د ژبې نه د هغوی د بتانو صفت ذکر شوې وو. او هغهٔ داسې لوستلی وو.

[أَفَرَأَيْتُمُ اللَّاتَ وَالْعُزَّى وَمَنَاةَ الثَّالِثَةَ الْأُخْرَى تِلْكَ الْغَرَانِيقُ الْعُلَا وَإِنَّ شَفَاعَتَهُنَّ لَتُرْتَجَى]

(یعنی دا اُوچت ډینګان دی (اُوچتې مرتبې والا دی) او د دوی د سفارش اُمید کیدې شی).

لکه ددې خبرې بیان مخکښې په سورة الانبیاء کښې ذکر شوې وو.

بلکه صحیح دا ده چه هغوی د موافقت د وجه نه سجده وکړه، او ددې سورت مضمون او سیاق او د الفاظو کشش او جاذبیت او تاثیر هغوی سجدې ته مجبوره کړل، او مشرکانو الله تعالیٰ ته سجده کول منل لیکن شریکان به ئې ورسره جوړه ول، نو پدې

Scanned by CamScanner

وجه ئے دلتـه الله تـه سجـده وکره۔ نو ددے نه هم معلومیږی چه دا سجده د تلاوت وه۔ وبالله التوفیق۔

## امتیازات د سورة النجم

۱– د رسول الله ﷺ شان په کښ ذکر دے۔

۲– د مصطلح الحدیث قواعدو بنیاد پکښ ذکر دے۔

۳– واقعه د معراج په کښ ذکر ده لکه څنګه چه سورة الاسراء کښ اسراء ذکر ده۔

٤– د جبریل علیه السلام صفات پکښ ذکر دی۔ او د رسول الله ﷺ هغهٔ لره دوه ځله لیدل۔

٥– د لات او مناة او عزیٰ خاصو بتانو نومونه او په مشرکانو باندے ردونه ذکر دی۔

٦– د شِعریٰ ستوری ذکر پدے سورت کښ راغلے دے دپاره د رد په مشرکانو۔

ختـم شو تـفسیـر د سوره النجم په فضل د رب العزت ۱۷ رجب ۱٤۳۷ هـ یوم الاحد۔ موافق (۲۳/٤/۲۰۱٦)

❀❀❀❀

Scanned by CamScanner

بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ط

| آیاتها (٥٥) | (٥٤) سورة القمر مكية (٣٧) | ركوعاتها (٣) |
|---|---|---|

سورة القمر مکی دے، په دے کښې پنځه پنځوس آیتونه او درے رکوع دی

## تفسیر سورة القمر

مشهور نوم ئے (۱) سورة القمر دے (۲) او دے ته سورتِ اِقْتَرَبَتْ هم وائی۔

(۳) دارنګه سُوْرَةُ الْمُبَيِّضَه دے۔

د نازلیدو زمانه : ددے د نازلیدو زمانه مکی دور دے، په دے کښې د [شَقُّ الْقَمَر] واقعه بیان شوے، کوم چه د محدثینو اومفسرینو په نیز د هجرت نه تقریباً پنځه کاله مخکښې راپیښه شوے وه۔

## فضیلت

رسول الله ﷺ به د اختر په مانځه کښې لوستلو ځکه چه د قیامت د ورځے حالات پکښې ذکر دی۔

## مناسبتونه

۱- هلته ئے وویل : اَزِفَتِ الْآزِفَةُ (قیامت رانزدے شو) نو دلته بیا وائی چه قیامت ځکه رانزدے شو چه د هغے نخے راښکاره شوے چه هغه شَقُّ الْقَمَر دے۔

۲- مخکښې سورت کښې شان د رسول الله ﷺ وو، نو دلته الله تعالیٰ توبیخ ورکوی معرضینو د معجزاتو ددے رسول ته۔

۳- هلته ئے د مشرکانو په عقیده او دلیل باندے رد وکړو، نو دلته هغوی ته تخویف اُخروی بیانوی۔

Scanned by CamScanner

٤- هلته ذکر شو چه مشرکان د خواهش تابعدار دی په عقیده کښې، نو دلته وائی چه د خواهش د وجه نه د معجزاتو نه انکار کوی۔

## د سورت موضوع او مقصد

١- زمونږ شیخ محترم (رستمیؒ) فرمائی: پدې سورت کښې تخویف اُخروی دې په ذکر د اِقْتِرَاب (نزدې والی) د ساعت، او سبب د تخویف تکذیب دې، او هغه سبب د عذابونو وو په پنځه قومونو مکذبینو باندې۔

٢- اَلتَّوْبِيْخُ بِالْإِعْرَاضِ عَنْ آيَاتِ اللّٰهِ الَّتِيْ هِيَ الْمُعْجِزَاتُ وَالآيَاتُ الْقُرْآنِيَّةُ وَالآيَاتُ الْمَشْهُوْدَةُ ـ د الله د آیتونو نه په اعراض کولو باندې زورنه بیانوی، برابره ده چه دغه آیتونه معجزات وی یا قرآنی آیتونه وی، یا د کائناتو دلیلونه وی۔

او دا د کافرانو صفت دې چه د داسې نخو نه اعراض کوی ﴿وَكَأَيِّنْ مِنْ آيَةٍ فِي السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ يَمُرُّوْنَ عَلَيْهَا وَهُمْ عَنْهَا مُعْرِضُوْنَ﴾ (یوسف: ١٠٥) ﴿وَهُمْ عَنْ آيٰتِهَا مُعْرِضُوْنَ﴾ (انبیاء :٣٢) سورة الم السجده (٤) آیت کښې ئې وفرمایل: ﴿فَأَعْرَضَ أَكْثَرُهُمْ فَهُمْ لَا يَسْمَعُوْنَ﴾۔

او دا موضوع د دویم آیت نه ثابته ده، او هلته ئې آیت مفرد راوړیدې اگرکه مراد ترې نه عموم دې ځکه چه یو ه معجزه ذکر ده۔

وَالتَّوْبِيْخُ بِالْعَذَابِ الدُّنْيَاوِيِّ بِالْإِعْرَاضِ ـ یعنی څوك چه اعراض کوی نو هغوی ته په دنیاوی عذابونو سره زورنه ورکوی چه داسې به مو هلاك کړی لکه دغه پنځه قومونه ئې چه ذلیله کړل۔

وَالتَّوْبِيْخُ بِالْعَذَابِ الْأُخْرَوِيِّ ـ څوك چه اعراض او تکذیب کوی نو د آخرت په عذاب به راونیولې شی ﴿إِنَّ الْمُجْرِمِيْنَ فِيْ ضَلَالٍ وَسُعُرٍ ۞ يَوْمَ يُسْحَبُوْنَ فِي النَّارِ عَلٰى وُجُوْهِهِمْ ذُوْقُوْا مَسَّ سَقَرَ﴾ آخر کښې وائی چه د ټولو انسانانو عملونه الله ته معلوم دی، او په کتابونو کښې لیکلې شویدی د هغې مطابق به دوئ ته سزاگانې او جزاگانې ملاویږی۔

دا سورت هم پوره ذهن سازی کوی په آخرت او په قرآن او په معجزاتو باندې، او چه کله د انسان ذهن صحیح برابر شی، نو ټول کمالات پکښې پیدا کیدې شی۔

او دې سورت کښې تخویفات زیات دی، او بشارت صرف په یو آیت کښې راغلې دې ﴿إِنَّ الْمُتَّقِيْنَ فِيْ جَنّٰتٍ﴾۔

Scanned by CamScanner

## شان نزول

مشرکانو وویل چه ته جادو گرئے، ته چه کومے خبرے کوے، نو دا جادو دے، مونږ به تا هله وومنو چه ته مونږ ته بره په آسمانونو کښې یوه معجزه راوښائے، دا خو ته په مونږ باندے په زمکه کښې جادو کوے، او زمونږ نظرونه بندوے، داسے بهانے ئے کتلے.

نو الله تعالیٰ خپل رسول ته وحی وکړه چه صحیح ده، دوی ته به په آسمان کښې ستا معجزه وښایو، پدے کښې د شپے سپوږمئ راوختله چه څوارلسمه پنځلسمه شپه وه، او په آسمان کښې هیڅ وریځ نه وه. نبی کریم ﷺ بهر ودریدو او مشرکان هم په دغه ځای کښې ولاړ دی، نو سپوږمئ ته ئے په ګوته اشاره وکړه، نو هغه په مینځ باندے نیمه شوه او دواړه اړخونه ئے خکته راروان شو چه د سائنس مطابق دوه لاکهه څلویښت زره میله مزل ئے وکړو، او یوه ټکړه د جبل ابی قُبَیْس نه اخوا غائبه شوه (دوی دیخوا ولاړ وو) او بله ټکړه بل طرفته غائبه شوه، بیا دواړه ټکړے یو ځای شوے، او بیرته وختلے او سپوږمئ بیرته په خپل مدار کښې روانه شوه. دا حالت مسلمانانو او مشرکانو او عامو انسانانو ولیدو نو د الله رسول وفرمایل: (اِشْهَدُوْا) زما په نبوت باندے ګواه شئ.

(مسلم: ۷۲۵۰) یعنی په کائناتو کښې ما ته الله تعالیٰ تغیرات پیدا کړل.

پدے باندے خلق سوال کوی چه بیا دا د انسانانو ترمینځ مشهور ولے نه دے؟

**جواب** دا دے چه د مسلمانانو ترمینځ دا په تواتر سره ثابت دے، او د کافرانو خبرو له اعتبار نشته.

بلکه د هندوستان تاریخ د انشقاق القمر د زمانے نه شروع شوے وو. او دا په عامه دنیا کښې هم خلقو لیدلے وه، اوسنی سائنسدانان وائی چه په سپوږمئ کښې یو چاودے داسے ښکاری لکه چه ماته شوے وی او بیرته ګنډلے شوی وی.

مونږ وایو چه که ټول سائنسدانان ووائی چه بیخی روغه ده، او هیڅ چاودے پکښې نشته نو مؤمن به یقین کوی چه دا الله ماته کړے وه او دا د الله قدرت خودل او د رسول الله ﷺ معجزه وه، او په مشرکانو باندے حجت قائمول وو.

زمونږ نبی له الله تعالیٰ دومره عزت ورکړے چه آسمانونو کښې د هغه معجزات الله راښکاره کړیدی، او سپوږمئ ئے هم ورته ماته کړے وه د مشرکانو په مطالبه. او بره

Scanned by CamScanner

آسمانونو ته ئے بوتللے دے۔ او دا د قیامت د علاماتو نه هم وه۔
او پدے معجزه کښې ډیرے فائدے دی، یو دا چه د رسول الله ﷺ رشتینوالے۔ دویم دا چه دومره لوی اَجْرَام دی او بیا هم په هغے کښې د الله په قدرت سره تغیرات پیدا کیږی، نو دغه شان به قیامت هم راځی۔ نو کوم سائنسدانان چه وائی چه نمر په داسے مدار کښې روان دے چه دا نشی کیدے چه د مغرب د طرفنه راوخیژی، نو دا خبره ئے د اسلام خلاف ده، ځکه چه دا د الله مخلوق دے، او الله ددے په تبدیلئ باندے پوره قدرت لرونکے دے۔ پدے وجه سائنس به خامخا د قرآن او حدیث تائید کوی که چرے نهٔ ئے کولو، نو هغه به غلطه نظریه وی۔ ځکه چه سائنس تجرباتی علم دے کله نه خطاء کیږی هم۔ او نزدے زمانه کښې سائنسدانانو ته ښکاره شوه چه په مریخ ستوری کښې الله تعالیٰ نمر د مغرب طرف نه راوخیژولو، (په هر لوی ستوری کښې خپل خپل نمر او سپوږمئ وی)۔
دا وجه ده چه دلته د قیامت د رانزدے والی سره دا نخه ذکر کړه۔
مگر مشرکانو ددے هر څه لیدو باوجود هم نهٔ منله بلکه دے ته ئے هم د جادو نسبت وکړو چه دا خو ډیر لوی جادوگر دے چه د زمکے نه ئے آسمان ته جادو ورسیدو۔
نو پدے طریقه ئے د خلقو ذهنونه د رسول الله ﷺ ددے معجزے نه جادو طرفته واړه ول لکه همیشه د باطل پرستو دا طریقه وی چه د اهل حقو دعوت او دلیل په بل طرف تاووی او د هغے شکل بد ښکاره کوی۔ د جادوگر تاپه ئے چه ولگوله نو خلق بیا نبی چرته منی۔ لکه اُوس چه پرے د وهابی نوم کیږدی نو که هغه قرآن او صحیح حدیث هم وائی خو خلق ئے غلط گنړی، او که دا ووائی چه الله یو دے، نو خلق وائی چه دے کښې به ئے هم څه چل وی۔ دا د خلقو جرمونه او د شیطان جالونه دی۔

| اِقْتَرَبَتِ السَّاعَةُ وَانْشَقَّ الْقَمَرُ ﴿۱﴾ وَإِنْ يَّرَوْا آيَةً |
|---|
| ډیر رانزدے شو قیامت او اُوچودله سپوږمئ۔ او که چرته اُووینی دوی یوه نخه |
| يُّعْرِضُوْا وَيَقُوْلُوْا سِحْرٌ مُّسْتَمِرٌّ ﴿۲﴾ |
| (نو) مخ اړوی او وائی دوی چه جادو دے تریخ۔(تیز) (قوی)۔ |

**تفسیر**: پدے کښې د آخرت یره ده، او د قیامت نخه ذکر ده۔ او بیا مشرکانو ته زورنه ذکر ده۔

Scanned by CamScanner

اِقْتَرَبَتِ: دا د اِقتراب نه دے په معنیٰ د ډیر نزدے کیدو سره۔ الساعة د قیامت نوم دے۔ یا ددے نه مراد ساعت د فناء کیدو د عالَم دے۔ یا ساعت د بعث بعد الموت مراد دے په شپیلئ وهلو سره۔

او قیامت ځکه ډیر نزدے شو چه د رسول الله ﷺ د نبوت نه روستو زمانه تر قیامته پورے په نسبت د تیرے شوے زمانے ډیره کمه ده۔ یا دا چه هر هغه شے چه راتلونکے وی هغه نزدے وی نو قیامت هم نزدے راروان دے۔

د قیامت د نزدے کیدو په باره کښې خو الله تعالیٰ په نورو ګڼرو آیتونو کښې هم خبر ورکړے۔ د سورتِ نحل په (۱) آیت کښې راغلی: ﴿ اَتٰۤى اَمْرُ اللّٰهِ فَلَا تَسْتَعْجِلُوْهُ ﴾ (د الله حکم راغے، نو تاسو په دے تادئ مه کوئ)۔ او د سورتِ انبیاء په (۱) آیت کښې راغلی: ﴿ اِقْتَرَبَ لِلنَّاسِ حِسَابُهُمْ وَهُمْ فِيْ غَفْلَةٍ مُّعْرِضُوْنَ ﴾ (خلقو ته د دوئ د حساب وخت نزدے راغے، او دوئ په غفلت کښې پراته د حق دین نه مخ اړونکی دی)۔

ابن جریرؒ لیکی چه په دے آیتِ کریمه کښې خلقو ته د قیامت رانزدے کیدو خبر ورکولو سره خبردارے ورکړے شوے چه دا دنیا عنقریب فناء کیدونکے ده، دے وجے نه د قیامت د سختیو نه د نجات موندلو تیاری کول پکار دی۔

امام احمدؒ او بخاریؒ د ابن عمر ﷛ نه روایت کړے چه مونږ د رسول الله ﷺ سره ناست وو، او نمر د مازیګر نه پس پریوتو ته نزدے وو۔ نبی ﷺ وفرمایل:

[اِنَّمَا بَقَاؤُكُم فِيْمَا سَلَفَ مِنْ قَبْلِكُمْ مِنَ الْاُمَمِ كَمَا بَيْنَ صَلَاةِ الْعَصْرِ اِلٰى غُرُوْبِ الشَّمْسِ]

چه کوم خلق دنیا نه تیر شول، د هغوئ د عمرونو په مقابله کښې ستاسو عمرونه دومره باقی پاتے شوی دی څومره چه اُوس د ورځے برخه باقی پاتے شوے ده۔

(بخاری: ۵۵۷ باب من ادرك ركعة من العصر قبل الغروب)

او امام بخاریؒ او مسلمؒ د سهل بن سعد ﷛ نه روایت کړے، رسول الله ﷺ وفرمایل [بُعِثْتُ اَنَا وَالسَّاعَةُ كَهَاتَيْنِ] چه زهٔ دنیا ته هغه وخت را اولیږلے شوم چه قیامت دومره رانزدے دے څومره چه زما دا دواړه ګوتے دی، او نبی ﷺ د شهادت او مینځ والا ګوتے طرفته اشاره وکړه۔ (بخاری: ۵۳۰۱) (ومسلم: ۲۰٤۲)

وَانْشَقَّ الْقَمَرُ: د [اِنْشِقَاقِ قَمَر] (سپوږمۍ چودلو) په باره کښې د جمهورو علماءِ امت رائے داده چه د نبی کریم ﷺ په مکی دور کښې د هجرت نه تقریبًا پنځه کاله مخکښې د

نبي کريم ﷺ د يوې لوى معجزې په طور سپوږمۍ دوه ټکړې شوه، او د حِراء غرهٔ دواړو طرفونو ته شوه، او په مينځ کښې غر راغلے.
قاضي عياضؒ د مفسرينو او د اهلِ سنتو اجماع په دې نقل کړې ده.
او ابن کثيرؒ ليکلي دي چه په دې مضمون باندې راغلي حديثونه متواتر دي.
ابن قتيبةؒ په (تاويل مختلف الحديث) کښې ليکلي دي چه نَظّام معتزلي په غير د دليل نه ددې احاديثو نه انکار کړے.
زمخشريؒ، بيضاويؒ او ابو السعودؒ د عطاءؒ نه هم دا شان قول نقل کړے.
نظام وئيلي دي چه سپوږمۍ به د قيامت په ورځ شليږي، ددې رائې بنياد په انکارِ سُنت باندې دے.
بخاريؒ او مسلمؒ او د حديثو نورو امامانو د انس ﷺ نه روايت کړے چه مکې والو د نبي کريم ﷺ نه د هغهٔ د نبوت نښه وغوښتله، نو نبي ﷺ سپوږمۍ دوه ټکړې کړه، تردې چه خلقو حِراء غر د دوو ټکړو ترمينځه اوليدلو.
بخاريؒ و مسلمؒ او د حديثو نورو امامانو د عبد الله بن مسعود ﷺ نه روايت کړے:
[اِنْشَقَّ الْقَمَرُ عَلٰى عَهْدِ رَسُوْلِ اللهِ ﷺ فِرْقَتَيْنِ، فِرْقَةً فَوْقَ الْجَبَلِ وَفِرْقَةً دُوْنَهٗ، فَقَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ اِشْهَدُوْا] چه دَ رسول الله ﷺ په زمانه کښې سپوږمۍ دوه ټکړې شوې وه. يوه ټکره د غرهٔ دپاسه، او دويمه د هغې نه لاندې راغلې وه. نبي ﷺ خلقو ته وفرمايل: (اوګورئ يا ګواه شئ)۔ (بخاري: ٤٨٦٤)
او مسلمؒ او ترمذيؒ د انس ﷺ نه روايت کړي دي چه د همدې معجزې رابنکاره کيدو نه پس ﴿اِقْتَرَبَتِ السَّاعَةُ وَانْشَقَّ الْقَمَرُ﴾ نازل شو۔
او امام احمدؒ، ترمذيؒ او حاکمؒ وغيره د جبير بن مطعم ﷺ نه روايت کړي:
[اِنْشَقَّ الْقَمَرُ عَلٰى عَهْدِ النَّبِيِّ ﷺ حَتّٰى صَارَ فِرْقَتَيْنِ عَلٰى هٰذَا الْجَبَلِ وَعَلٰى هٰذَا الْجَبَلِ فَقَالُوْا سَحَرَنَا مُحَمَّدٌ فَقَالَ بَعْضُهُمْ لَئِنْ سَحَرَنَا مَا يَسْتَطِيْعُ اَنْ يَّسْحَرَ النَّاسَ كُلَّهُمْ]
چه مونږ د نبي کريم ﷺ په زمانه کښې وو چه سپوږمۍ اوشليده او دوه ټکړې شوه، يوه برخه په يو غرهٔ او بله برخه په بل غرهٔ باندې، نو خلقو ووئيل چه محمد په مونږ جادو کړے۔ يو کس ووئيل چه که دهٔ په تاسو جادو کړے نو دا خو په ټولو خلقو جادو نشي کولے۔ احمد: ١٦٧٩٦) (ترمذي: ٣٢٨٩) صحيح)

Scanned by CamScanner

یعنی که تاسو نه علاوه نورو خلقو هم سپوږمئ دوه ټکړې لیدلې ده، نو ستاسو خبره به صحیح نهٔ وي چه هغهٔ په تاسو جادو کړې، بلکه دا به د هغهٔ معجزه وي۔

وَإِنْ يَّرَوْا آيَةً: اُوس دے مجرمانو منکرینو ته زورنه بیانیږي چه د دوئ حال دا دے چه کله هم دوئ یوه نخه د رسول الله ﷺ د رشتینوالی وینی نو انکار کوي، نو کله چه دوئ دا معجزه ولیده نو په ځای ددے چه ایمان راوړي، په تکبر کښې راغلل او ددے د منلو نه ئې انکار وکړو او وے وئیل چه دا خو ډیر زبردست جادو دے چه محمد په مونږ کړے دے۔

يُعْرِضُوْا: یعنی مخ اړه وي د هغے د سوچ او غور کولو نه او په هغے باندے د ایمان راوړو نه۔

سِحْرٌ مُّسْتَمِرٌّ: (۱) دا د استمرار نه دے، همیشوالی ته وائي۔ یعنی دا داسے جادو دے چه هر وخت کار کوي۔ (۲) یا د مِرَّةٌ نه دے قوت ته وائي۔ یعنی ډیر قوي جادو دے چه په آسمان کښې هم کار کوي۔

(۳) یا د مُرُور نه دے تیریدو ته وائي۔ یعنی د زمکے نه آسمان پورے رسیدونکے دے۔

(٤) یا د مُرٌّ او مَرَارَةٌ نه دے، تریخ ته وائي۔ یعنی داسے تریخ جادو دے چه په سپوږمئ هم تاثیر کوي۔

| وَكَذَّبُوْا وَاتَّبَعُوْا أَهْوَاءَ هُمْ وَكُلُّ أَمْرٍ |
| --- |
| او دروغژن گڼړي (حق لره) او تابعداري کوي د خواهشاتو خپلو او هر کار |
| مُّسْتَقِرٌّ ﴿۳﴾ وَلَقَدْ جَاءَ هُمْ |
| په وخت کیدونکے دے۔ (او هر کار قرارے نیونکے دے) او یقیناً راغلے دے دوي ته |
| مِّنَ الْأَنْبَاءِ مَا فِيْهِ مُزْدَجَرٌ ﴿٤﴾ حِكْمَةٌ |
| د خبرونو نه هغه چه په هغے کښې پوره زورنه ده (وعظ دے)۔ (دا قرآن) حکمت دے |
| بَالِغَةٌ فَمَا تُغْنِ النُّذُرُ ﴿٥﴾ |
| (پخې خبرے دي)، کامل، نو فائده نهٔ ورکوي دوي ته یره ورکول۔ (یا: نو څه فائده به ورکړي دوي ته یره ورکونکي)۔ |

Scanned by CamScanner

**تفسیر**: دا بـل رد او زجر دے منکرینو ته او هغوی ته تخویف دے۔ یعنی دویٔ د هغۀ د نبـو نـه انکار وکړو، او د خپل نفس د خواهش پیروی ئے وکړه، او د حق نه ئے مخ واړولو، لیـکن دویٔ له پیژندل پکار دی چه د الله فیصله به خپل انجام ته رسیږی، د نبی کریم ﷺ دیـن به غالبه کیږی، او الله تعالیٰ به ددهٔ ضرور مدد کوی، او ددهٔ منکرین به خامخا ذلیله او رسوا کوی۔

وَاتَّبَعُوٓا أَهْوَآءَهُمْ: دا قـانـون دے چه یا به رسول منی یا به د خواهش پسے روانیږی۔ د رسول نهٔ منل بعینه د خواهش تابعداری ده۔

وَكُلُّ أَمْرٍ مُّسْتَقِرٌّ: یعنی هر کار او هره خبره قرارے نیونکے دے په خپل وخت باندے۔ یعنی د هرے خبرے دپاره وخت شته۔ اَیْ كُلُّ أَمْرٍ مِنَ الْخَيْرِ وَالشَّرِّ مُسْتَقِرٌّ بِأَهْلِهِ فِي الْجَنَّةِ أَوِ النَّارِ۔ یعنی د هر خیر او شر وخت شته چه خپل اهل به په جنت یا اُور کښ اُووه وسوی۔

یـعـنـی د نیك عـمـل یو وخت شته چه انسان جنت ته بوځی، او د شرك او کفر او شر یو وخت شته چه انسان جهنم ته بوځی نو انتظار وکړیٔ، همداسے نشیٔ بچ کیدے۔

وَلَقَدْ جَآءَهُمْ: سـوال پیدا شو چه دویٔ به چا نهٔ وی پو هه کړی پدے وجه به انکار او تکذیب او اتباع الهویٰ کوی؟ نو الله فرمائی چه دوی ما بنه پو هه کړیدی۔

مـا د مـکـے کـافـرانـو یـا د عـامـو کافرانو دپاره په قرآن کریم کښ د مخکنو قومونو ډیر عبـرتـنـاك واقـعـات بیـان کـړی دی، چه دا د دویٔ د عبرت او نصیحت دپاره کافی دی، که چرے دویٔ غواړی نو په دے کښ دے غور او فکر وکړی، او په نبی کریم ﷺ او قرآن کریم دے ایـمـان راوړی۔ او د غفلت او لوبو تماشو ژوند دے پریدی، او د آخرت په فکر کښ دے ولګی، لیکن دویٔ ته ددے توفیق نهٔ ملاویږی۔

الله تـعالیٰ ددے پوره حکمت نه ښهٔ خبر دے چه هغه چاته غواړی هدایت کوی، او چاله چه غـواړی ګمراه کوی ئے۔ او چا دپاره چه بدبختی ولیکی، او د هغهٔ په زړهٔ باندے مهر ولګوی، هغهٔ ته څوك هدایت نشی کولے۔

مَا فِيهِ مُزْدَجَرٌ: دا د زجـر نـه دے، رټـنـے او نصیحت ته وائی۔ اَیْ مَـا فِيـهِ وَاعِظٌ لَهُمْ مِنَ الشِّرْكِ وَالتَّكْذِيبِ ۔ یـعـنـی دویٔ ته هغه څیزونه راغلی دی چه دویٔ ته په هغے کښ پوره نصیحت او منع کونکے شته چه د شرك او تکذیب نه۔

حِكْمَةٌ بَالِغَةٌ: دے کښ دوه تفسیره دی:

Scanned by CamScanner

(۱) واضح تفسیر دا دے هِدَايَةُ اللّٰهِ لِبَعْضِهِمْ وَإِضْلَالُهُ لِبَعْضٍ حِكْمَةٌ بَالِغَةٌ ـ یعنی الله چه چا ته هدایت کوی او څوك ګمراه کوی نو دے کښې د الله کامل حکمت دے۔

(۲) یا دا د انباء سره لګی او د (مَا) نه بدل دے، یعنی دغه أنباء خبرونه یو حکمتِ بالغه دے۔ یعنی الله تعالیٰ دوئ ته د دغه خبرونو او واقعاتو نه کامل حکمت راولیږلو خو دا نا اهله خلق وو دوئ ته یره ورکونکو هیڅ فائده ورنکړه۔

(۳) یا د حکمة بالغه نه مراد قرآن کریم دے۔ او دا خبر د مبتداء محذوفے دے، یعنی دا قرآن کامل حکمة دے چه انتهاء ته رسیدلے دے په فصاحت او بلاغت او په مواعظو او دلیلونو او لطائفو او احکامو کښې چه پدے کښې هیڅ نقصان او خلل نشی کیدے۔

فَمَا تُغْنِ النُّذُرُ : (۱) جمع د نَذِيْرٌ ده، پیغمبران مراد دی۔ یعنی یره ورکونکی پیغمبران دوی ته فائده نهٔ ورکوی۔ یا هغه څیزونه چه یره ورکونکی دی چه هغه حالات د مخکنو امتونو دی، او هغه عذابونه دی چه قریش هم د هغے نه خبر شویدی۔

(۲) یا نُذُر مصدر دے په معنیٰ د اِنْذَار سره، یره ورکول مراد دی۔ اول مطلب غوره دے ځکه چه تُغْنِ لفظ ئے مؤنث راوړو، که نذر مصدر وے، نو بیا (يُغْنِ) لفظ پکار وو۔

| فَتَوَلَّ عَنْهُمْ يَوْمَ يَدْعُ الدَّاعِ إِلَىٰ شَيْءٍ نُّكُرٍ ﴿٦﴾ |
|---|
| نو مخ واړوه د دوی نه په کومه ورځ چه آواز به وکړی آواز کونکے یو شی ناشنا ته۔ |
| خُشَّعًا أَبْصَارُهُمْ يَخْرُجُونَ مِنَ الْأَجْدَاثِ كَأَنَّهُمْ جَرَادٌ |
| ذلیله به وی سترګے د دوی، را اوځی به د قبرونو نه ګویا که دوی ملخان دی |
| مُّنتَشِرٌ ﴿٧﴾ مُّهْطِعِينَ إِلَى الدَّاعِ يَقُولُ الْكَافِرُونَ هَٰذَا يَوْمٌ عَسِرٌ ﴿٨﴾ |
| خوارهٔ وارهٔ۔ منډے وهونکی به وی آواز کونکی ته وائی به کافران دا ورځ سخته ده۔ |

**تفسیر** : اُوس رسول الله ﷺ ته تسلی ورکوی، او ورته فرمائی چه که د مکے کافرانو ته د لهو او لعب پریښودلو او د آخرت د فکر کولو توفیق نهٔ ورکړے کیږی، نو تهٔ دوئ په خپل حال پریده، او د دوئ د انکار او تکذیب هیڅ پرواه مهٔ کوه، او خپل بیان ورته جاری ساته، او د هغے ورځے انتظار کوه کله چه دوئ به دوی لره اسرافیل علیه السلام ناشنا حالاتو ته

Scanned by CamScanner

راوویلی چه هغه حشر، حساب کتاب، میزان او نور حالات، او دا ساعت به دوئ لپاره ډیر ګران شي، د دوئ سترګے به د ذلت او رسوایئ په وجه لاندے ښکته وي۔
او کله چه الله تعالیٰ یا ملائك دوئ را اوبلی، نو دوئ به د خپلو قبرونو نه د ملخانو پشان راوتو سره څلورو طرفونو ته خوراۀ شي، او تیزئ سره به د رابلونکی آواز طرفته منډے وهي، او کافران به خپل عملونه یادوي، او ددے ورځے حقیقتونه او ننداریے او د میدانِ محشر سختئ چه ووینی نو وائی به چه دا خو ډیره سخته ورځ ده۔
مفسرین لیکی چه ددے خبرے نسبت کافرانو طرفته کولو کښ دیته اشاره ده چه دا ورځ به مومنانو دپاره سخته نهٔ وي۔
الله تعالیٰ د سورتِ مدثر په (۹/۱۰) آیتونو کښ فرمائیلی :
﴿فَذٰلِكَ يَوْمَئِذٍ يَوْمٌ عَسِيرٌ عَلَى الْكَافِرِينَ غَيْرُ يَسِيرٍ﴾
(نو دا ورځ به ډیره سخته وي، چه په کافرانو به آسانه نهٔ وي)۔
يَوْمَ: ددے فعل پټ دے اَیْ اِنْتَظِرْ يَوْمَ۔ (انتظار وکړه د هغه ورځے)
یا وَاذْكُرْ۔ (رایاد کړه)
يَدْعُ الدَّاعِ: داعی (رابلونکے) اسرافیل علیه السلام به یو رابلل په شپیلئ وهلو سره کوی، او بل به داسے الفاظو سره چه
[اَيَّتُهَا الْعِظَامُ الْبَالِيَةُ وَاللُّحُوْمُ الْمُتَمَزِّقَةُ هَلُمُّوْا اِلٰى عَرْضِ الرَّحْمٰنِ]
اے زړو هډوکو او ذره ذره شوو غوښو د الله پیشئ ته راشئ۔ (شعب الایمان)
خُشَّعًا اَبْصَارُهُمْ: یعنی د ډیرے یرے په وجه به ددوئ زړونه عاجزئ والا وي۔
جَرَادٌ مُّنْتَشِرٌ: اول کښ به د قبرونو نه چه راوځی نو د ملخانو په شان به خوارهٔ وارهٔ وی بیا به ئے ملائك د حشر میدان ته راکاږی۔
مُهْطِعِيْنَ: ددے ډیرے معانی دی (۱) تیز تلونکی،
(۲) څټونه اُوچتونکی۔
(۳) قصد کونکی، (قتادة)
(٤) نیغ نظر کونکی۔
(٥) د آوریدو دپاره غوږونه کولاوونکی۔ (عکرمة)
(٦) مُقْبِلِيْنَ۔ (مخ اړونکی) (ضحاك)

Scanned by CamScanner

| كَذَّبَتْ قَبْلَهُمْ قَوْمُ نُوحٍ فَكَذَّبُوا |
|---|
| تکذیب کړے وو مخکښې د دوی نه قوم د نوح (علیه السلام) نو دروغژن ئے کړو |
| عَبْدَنَا وَقَالُوا مَجْنُونٌ وَّازْدُجِرَ ﴿۹﴾ |
| بنده زمونږ او وے وئیل لیونے دے او اُورټلے شو۔ (د قوم د طرف نه) (اُوزوروله شو)۔ |
| فَدَعَا رَبَّهُ أَنِّي مَغْلُوبٌ فَانْتَصِرْ ﴿۱۰﴾ |
| نو دعا اُوکړه هغهٔ د رب خپل نه چه بیشکه زهٔ کمزورے یم نو بدله واخله (زما د دوی |
| فَفَتَحْنَا أَبْوَابَ السَّمَاءِ بِمَاءٍ مُّنْهَمِرٍ ﴿۱۱﴾ |
| نه)۔ نو راکولاوے کړے مونږ دروازے د آسمان په اُوبو رابیدونکو سره۔ |
| وَفَجَّرْنَا الْأَرْضَ عُيُونًا |
| او روانه کړه مونږ زمکه چینے چینے (او روانے کړے مونږ د زمکے نه چینے) |
| فَالْتَقَى الْمَاءُ عَلَى أَمْرٍ قَدْ قُدِرَ ﴿۱۲﴾ وَحَمَلْنَاهُ |
| نو یو ځائے شوے اُوبه په هغه کار چه مقرر کړے شوے وو۔ او پورته کړو مونږ هغهٔ لره |
| عَلَى ذَاتِ أَلْوَاحٍ وَّدُسُرٍ ﴿۱۳﴾ تَجْرِي بِأَعْيُنِنَا جَزَاءً |
| په کشتئ د تختو او میخونو والا باندے۔ روانه وه په سترګو زمونږ، بدله اخستل وو |
| لِّمَنْ كَانَ كُفِرَ ﴿۱٤﴾ وَلَقَدْ |
| دپاره د هغه چا چه انکار شوے وو د هغهٔ نه۔ (ناشکری ئے کړے شویوه)۔ او یقیناً |
| تَّرَكْنَاهَا آيَةً فَهَلْ مِنْ مُّدَّكِرٍ ﴿۱۵﴾ |
| مونږ پریخوده دا (کشتئ) نخه نو آیا شته څوک نصیحت اخستونکے۔ |
| فَكَيْفَ كَانَ عَذَابِي وَنُذُرِ ﴿۱٦﴾ وَلَقَدْ يَسَّرْنَا الْقُرْآنَ |
| نو څنګه شو عذاب زما او یره ول زما۔ او یقیناً آسان کړیدے مونږ قرآن |

Scanned by CamScanner

| لِلذِّكْرِ فَهَلْ مِنْ مُّدَّكِرٍ ﴿۱۷﴾ |
|---|
| دپاره د نصیحت اخستو نو آیا شته څوك نصیحت اخستونکے. |

**تفسیر**: دا تفصیل د هغه قومونو دے چه په څلورم (٤) آیت کښې ذکر شو.
او پدے سره رسول الله ﷺ له تسلي ورکړے کیږی. د تولو نه مخکښې الله تعالیٰ د نوح ؑ ذکر کړے دے، فرمائی چه د قریشو نه مخکښې د نوح ؑ قوم د الله رسول دروغژن وګنړلو. دوئ زمونږ د بنده نوح تکذیب وکړو، هغهٔ ته ئے لیونے ووئیلو، او د ردو بدو او مختلف قِسم ضررونو رسولو په ذریعه ئے هغه د دعوت او تبلیغ نه منع کړو.
وَّازْدُجِرَ: یعنی منع کړے شو د تبلیغ نه په وهلو او کنځلو سره. یا دا هم د هغوی وینا ده یعنی دا لیونے دے او پیریانو ګډ وډ کړیدے. نو دا به د اِزْدَجَرَتْهُ الْجِنُّ نه وی، یعنی پیریانو ګډوډ کړیدے او زړهٔ ئے ورله ختم کړیدے. اول قول غوره دے.
فَدَعَا رَبَّهٗ: نوح ؑ چه کله د خپل قوم د هدایت نه بیخی نا امیده شو، او په کفر باندے چه د دوئ ټینګار او سرکشی د حد نه زیاته شوه، نو هغهٔ ورته ښیرے وکړے، او الله ته ئے ووئیل چه اے زما ربه! زما قوم د خپلے سرکشئ په ذریعه زهٔ مغلوبه او کمزورے جوړے کړے یم، او زهٔ ئے د پیغام رسولو نه سختئ سره منع کړے یم، اُوس تهٔ دوئ سره پوهه شه او په دوئ عذاب را اولیږه.
فَفَتَحْنَا اَبْوَابَ السَّمَاءِ: الله تعالیٰ د هغهٔ دعاه قبوله کړه، او د هغهٔ قوم ته ئے د سزا ورکولو دپاره د آسمان نه د شیبو شیبو باران تمامے دروازے پرانستے، او د زمکے د هر ګوټ نه داسے اُوبهٔ را اوخوټ کیدلے چه ګویا توله زمکه چینے چینے شوه، او د دوارو طرفونو اوبهٔ د قومِ نوح هلاك کولو دپاره را یو ځائے شوے.
اَبْوَابَ السَّمَاءِ: دا په حقیقت باندے حمل دے چه په هر طرف باندے د آسمان دروازے د باران دپاره راکولاوے شوے، او د آسمان دروازے شته چه بندولے او کولاوولے شی.
بعض وائی چه دا په کنایه باندے حمل دے، او دا کنایه ده د ډیرو وریځو نه. لیکن اول قول غوره دے.
مُّنْهَمِرٍ: ډیرے بهیدونکے وے.
فَالْتَقَى الْمَاءُ: یعنی د آسمان او د زمکے اُوبه یو ځای شوے.

Scanned by CamScanner

عَلٰى أَمْرٍ قَدْ قُدِرَ : اَیْ وَهُوَ هَلَاكُ هٰؤُلَاءِ الْقَوْمِ ۔ یعنی یو ځای شوے اُوبه په داسے کار باندے چه هغه د الله د طرفنه مقرر کړے شوے وو چه هغه ددے قوم هلاکت وو۔ یعنی دوئ دپاره په تقدیر کښ لیکل شوی وو چه دوئ به په دومره طوفان سره هلاکیږی۔

وَحَمَلْنَاهُ: نوح علیه السلام په هغه کشتئ کښ سور شو کومه چه هغهٔ د همدے ورځے لپاره د الله په حکم سره فراخه تختو او لوی لوی میخونو په مدد سره جوړه کړے وه۔ دا کشتئ په طوفان کښ د الله په حفظ او امان سره روانه وه۔ او دا ځهٔ چه اوشو ناشکروته د دوئ د کفر د بدلے ورکولو دپاره اوشو، ځکه چه د نوح علیه السلام رالیږل دوئ دپاره د الله یو عظیم نعمت وو، چه دوئ له ددے قدر کول پکار وو، لیکن دوئ ناشکری وکړه نو الله نوح علیه السلام او په هغهٔ باندے ایمان راوړونکی بچ کړل او باقی پوره قوم ئے د طوفان په ذریعه هلاك کړو۔

ذَاتِ أَلْوَاحٍ : یعنی داسے کشتئ چه د تختو او میخونو والا وه۔

وَدُسُرٍ: جمع د دِسَارٌ ده، دا هغه څیزونو ته وئیلے شی چه په هغے سره کشتئ کلك کیږی لکه میخونه، اُوسپنه، لرګی، رسئ ګانے وغیره۔

او دارنګه سینه د کشتئ چه په هغے سره اُوبه دفع کیږی او شلیږی ځکه چه دَسُر په لغت کښ دفع کولو ته هم وئیلے شی۔

تَجْرِیْ بِأَعْیُنِنَا: اعین جمع د عین ده۔ او دلته دا د متشابهاتو نه دے، او اشاره ده حفاظت ته د الله تعالیٰ د طرفنه۔ یا د اعین نه مراد چینے دی، یعنی زمونږ په چینو باندے کشتئ روانه وه۔ اول قول ظاهر دے۔

لِّمَنْ كَانَ كُفِرَ : ددے نه مراد الله تعالیٰ دے، یا نوح علیه السلام۔ یعنی دا بدله وه دپاره د هغه الله او نوح علیه السلام چه د هغه نه انکار شوے وو۔ او په هغه باندے ناشکری شوے وه۔

وَلَقَدْ تَّرَكْنَاهَا: الله تعالیٰ د قوم نوح د هلاکت قصه د راتلونکو نسلونو دپاره د عبرت یوه نښه جوړه کړه، چه ددے نه خلقو لره عبرت حاصلول پکار دی، او سوچ کول پکار دی چه کله قوم نوح د الله نه سرکشی وکړه نو اِلٰهی عذاب څنګه دوئ په خپل ګرفت کښ واخستل، نو همدا حال د نورو کافرانو او مشرکانو قومونو هم کیدے شی۔

تَرَكْنَاهَا: کښ ضمیر قصے ته راجع دے۔ یا کشتئ ته ضمیر راجع دے۔ او همدا ظاهر دے۔ چه څوك کشتئ وینی نو د نوح علیه السلام د قوم هلاکت ورته رایادیږی۔

Scanned by CamScanner

یا دا چه دغه کشتۍ په جودي غر باندې خلقو لیدلې وه، او روستو زمانو کښې په کوهستان اراراط کښې راښکاره شوې وه.

عَذَابِيْ وَنُذُرِ : عذاب د قوم نوح دپاره وو او نذر د روستنو خلقو دپاره دې. او نذر مصدر دې په معنیٰ د انذار سره پدې وجه مضاف دې یاء د متکلم محذوفې ته.

وَلَقَدْ يَسَّرْنَا الْقُرْآنَ : پدې آیت کښې تیزي او ترغیب ورکول دي درس د قرآن او تلاوت د هغې ته، او ددې نه عبرت اخستو ته.

بیا ددې نه نصیحت اخستل آسان دي ځکه چه دا فکر وکړه چه قوم نوح ولې هلاك شو؟ هغوی خلاف کړې وو نو ما له خلاف نۀ دې پکار نو ایمان راوړل پکار دي.

شوکانيؒ لیکي چه په دې آیتِ کریمه کښې مسلمانانو ته د قرآن کریم لوستلو، ددې د ډیر ډیر تلاوت کولو، او ددې په زده کولو کښې د تادی کولو رغبت ورکړې شوې.

او دا ګران کتاب هم دې ځکه چه ډیر علمونه او رازونه او اشارات پکښې دي، چه په ډیرو علمونو زده کولو سره معلومیږي، او په بعض خلقو باندې راکولاویږي.

او د ذکر نه مراد حفظ هم دې ځکه چه د سلفو صالحینو (سعید بن جبیرؒ) نه نقل دي چه تورات، انجیل او زبور سوئ د انبیاء علیهم السلام نه امتیانو ته ټول په یادو یاد نۀ وو، او دا د قرآن کریم خصوصیت دې چه واړه، لوی، او نارینه زنانه ئې ټول یا بعض سورتونه او آیتونه یادولې شي، لکه دا خبره په سورة عنکبوت (٤٩) آیت کښې ذکر شویده.

مُدَّكِرٍ : مدکر هغه چا ته وائي چه نصیحت واخلي او ګناهونه پریدي. ځکه ئې پدې لفظ کښې هم ادغام کړیدې. پدې وجه محمد بن کعب القرظيؒ داسې معنیٰ کوي: (مُنْزَجِرٌ عَنِ الْمَعَاصِيُ) ځان منع کونکي د ګناهونو نه څوك شته.

او دا آیت ئې د څلورو قصو سره ذکر کړیدې، اشاره ده چه هره قصه ددې قصو نه د تذکر (نصیحت اخستو) دپاره آسانه کړې شویده.نو د قرآن نه مراد هره قصه ده چه د قرآن په عبارت سره لوستلې کیږي. (احسن الکلام)

Scanned by CamScanner

| كَذَّبَتْ عَادٌ فَكَيْفَ كَانَ عَذَابِيْ وَنُذُرِ ﴿١٨﴾ إِنَّا أَرْسَلْنَا |
| --- |
| تکذیب کړے وو عادیانو نو څنګه وو عذاب زما او یره ول زما۔ یقیناً راولیږلے مونږ |
| عَلَيْهِمْ رِيْحًا صَرْصَرًا فِيْ يَوْمِ نَحْسٍ مُّسْتَمِرٍّ ﴿١٩﴾ تَنْزِعُ النَّاسَ كَأَنَّهُمْ |
| په دوی باندے هوا تیزه په ورځ سپیره همیشه کښې۔ راویستل ئے خلق ګویا که دوی |
| أَعْجَازُ نَخْلٍ مُّنْقَعِرٍ ﴿٢٠﴾ فَكَيْفَ كَانَ عَذَابِيْ وَنُذُرِ ﴿٢١﴾ |
| تنے دی د کجورو د بیخ نه راویستلے شوی۔ نو څنګه وو عذاب زما او یره ورکول زما۔ |
| وَلَقَدْ يَسَّرْنَا الْقُرْآنَ لِلذِّكْرِ فَهَلْ مِنْ مُّدَّكِرٍ ﴿٢٢﴾ |
| او یقیناً آسان کړیدے مونږ قرآن دپاره د نصیحت نو آیا شته څوك نصیحت اخستونکے۔ |

**تفسیر**: د قومِ نوح نه پس د قومِ هود ذکر کیږی، چه دیته قومِ عاد وائی، دے خلقو هم د الله رسول هود علیه السلام دروغژن وګڼړلو، او په هغهٔ باندے د ایمان راوړو نه ئے انکار وکړو او وے وئیل چه که تهٔ رشتینے ئے نو بیا د کوم عذاب چه تهٔ مونږ سره وعده کوے هغه په جلتئ سره راوړه۔ نو د الله عذاب دوی را اونیول، او دا عذاب د خلقو د تنبیه ذریعه جوړه شوه۔ او دا عذاب د تیزے او تندے هواء په شکل کښې وو، او هغه ورځ د دوئ دپاره ډیره خرابه ثابته شوه په کومه ورځ چه په دوئ باندے عذاب مسلط کړے شو۔

دا هواء هغه وخته پورے چلیدله تر څو چه د هغوئ یو یو کس هلاك شوے نهٔ وو۔ هغے به د دوئ یو یو کس په فضاء کښې پورته کولو، تردے چه هغه به د نظرونو نه غائب شو، د هغه ځائے نه به ئے پرمخے را غورزولو، نو هغه به په زمکه باندے دومره سختئ سره را اوغورزیدهٔ چه د هغهٔ سر به د تنے نه جدا شو۔ په دے طریقه دوئ او دنیا والو اولیدل چه د الله عذاب دوئ څنګه په خپل ګرفت کښې واخستل، څنګه دا بدترین عذاب د خلقو د تنبیه ذریعه جوړه شوه۔

صَرْصَرًا : تیز آواز (شغاری) ته وائی یا سخته یخه، یا دیر وخت چلیدونکے سیلئ وه۔

فِيْ يَوْمِ نَحْسٍ: دلته د ورځ نه مراد مطلق وخت دے ځکه چه دا سیلئ تر اته ورځو

Scanned by CamScanner

پورے وه۔ يا ددے نه مراد ابتداء د ورځ ده، يعنى په يوم الاربعاء (بدھ ورځ) كښې شروع شوے وه۔

مُّسْتَمِرٍّ: اَىْ دَائِمُ الشُّؤْمِ۔ تر هميشه پورے ددے سپيرهٔ والے وو۔ يا عذاب پكښې هميشه وو تردے چه دوى ئے ټول هلاك كړل او د برزخ عذاب ته ئے ورسول۔

تَنْزِعُ النَّاسَ : نزع (رابښكلو) لفظ ئے ذكر كړو ځكه چه خلق د يو شى بل شى پورے انښتى وو، نو هوا دومره سخته شوه چه دوىٔ ئے د دغه ځيزونو سره راويستل او بره ئے پورته كړل، دوىٔ چونكه ځانونه لوى ګڼړلى وو نو ځكه الله تعالىٰ په هواء سره سپك او ذليله كړل۔ او د دوىٔ دا راويستل داسے مضبوط وو لكه د كجورے ونه چه په زمكه كښې كلكه ولاړه وى، او بيا د جرړو سره د وېخ نه راوويستلے شى۔

أَعْجَازُ نَخْلٍ مُّنْقَعِرٍ: اعجاز جمع د عَجُز ده، د يو شى د بدن لاندے حصے ته وائى۔ مراد ترے نه دلته تنه ده، او په اعجاز سره ذكر كولو كښې اشاره ده چه د دوىٔ نه سرونه جدا شوى وو او د كجورو د تنو په شان پراته وو۔

او پدے كښې اشاره ده چه د دوىٔ تنے ډيرے اُوږدے وے، او د هواء ډير مقاومت ئے وكړو ليكن هغه د برداشت نه وتلے وه۔

نَخْلٍ : دا اسم جمع ده، مذكر او مؤنث دواړو دپاره استعماليږى، دے وجه نه ددے صفت كله مذكر راځى او كله مؤنث۔

مُّنْقَعِرٍ: اَىِ الْمُنْقَطِعِ الْمُنْقَلِعِ مِنْ اَصْلِهٖ ۔ يعنى پريكړے شوى، د بيخ نه راويستلے شوى۔ د انقعار نه دے، يو شے د جرړو او بيخونو نه راويستل۔

وَنُذُرِ : اَىْ اِنْذَارِىْ لَهُمْ بِالْعَذَابِ قَبْلَ نُزُوْلِهٖ۔ يره وركول زما دوىٔ لره په عذاب سره مخكښې د نازليدو د عذاب نه۔

وَلَقَدْ يَسَّرْنَا الْقُرْآنَ : د قوم هود د هلاكت او بربادىٔ قصے نه پس دوباره وئيلے كيږى چه الله تعالىٰ په قرآن كريم كښې د بيان كړو دے واقعاتو په ذريعه نصيحت حاصلول آسان كړى دى، يعنى څوك چه په دے واقعاتو كښې غور او فكر كوى، هغه د الله په توفيق سره د ګناهونو نه توبه ګار كيږى او خپل رب ته رجوع كوى۔ نو څوك دے چه ددے واقعاتو نه عبرت واخلى ؟۔

Scanned by CamScanner

كَذَّبَتْ ثَمُوْدُ بِالنُّذُرِ ﴿٢٣﴾ فَقَالُوْٓا اَبَشَرًا مِّنَّا

تکذیب کړے وو ثمودیانو د یره ورکونکو (پیغمبرانو) نو دوی اُووئیل آیا بنده زمونږ

وَاحِدًا نَّتَّبِعُهٗٓ اِنَّآ اِذًا لَّفِيْ

نه یو تن تابعداری به کوو مونږ د هغهٔ، یقیناً مونږ به په دغه وخت خامخا په

ضَلٰلٍ وَّسُعُرٍ ﴿٢٤﴾ ءَاُلْقِيَ الذِّكْرُ عَلَيْهِ

گمراهئ او په لیونتوب کښ یو۔ (په تکلیف کښ یو)۔ آیا راگوزار شوه وحی په دهٔ

مِنْۢ بَيْنِنَا بَلْ هُوَ كَذَّابٌ اَشِرٌ ﴿٢٥﴾

باندے د مینځ زمونږ نه بلکه دا دروغژن دے لوئی کونکے دے۔

سَيَعْلَمُوْنَ غَدًا مَّنِ الْكَذَّابُ الْاَشِرُ ﴿٢٦﴾

زردے چه دوی به پوهه شی صبا له چه څوك دے دیر دروغژن، لوئی کونکے۔

اِنَّا مُرْسِلُوا النَّاقَةِ فِتْنَةً لَّهُمْ فَارْتَقِبْهُمْ

یقیناً مونږ رالیږونکی یو اُوښے لره امتحان د دوی دپاره نو انتظار کوه د دوی

وَاصْطَبِرْ ﴿٢٧﴾ وَنَبِّئْهُمْ اَنَّ الْمَآءَ قِسْمَةٌۢ بَيْنَهُمْ

او صبر کوه۔ او خبر ورکړه دوی ته چه یقیناً اُوبه تقسیم دی په مینځ د دوی کښ

كُلُّ شِرْبٍ مُّحْتَضَرٌ ﴿٢٨﴾ فَنَادَوْا صَاحِبَهُمْ

هر نمبر د اُوبو ته به حاضری کیدیشی۔ نو آواز اُوکړو دوی ملگری خپل ته

فَتَعَاطٰى فَعَقَرَ ﴿٢٩﴾ فَكَيْفَ كَانَ

نو هغهٔ توره راواخسته پس زخمی ئے کړه (اُوښه) (پرے ئے کړه)۔ نو څنګه وو

عَذَابِيْ وَنُذُرِ ﴿٣٠﴾ اِنَّآ اَرْسَلْنَا عَلَيْهِمْ صَيْحَةً وَّاحِدَةً فَكَانُوْا

عذاب زما او یره ول زما۔ یقیناً مونږ راولیږله په دوی باندے چغه یوه نو شو دوی

Scanned by CamScanner

| كَهَشِيْمِ الْمُحْتَظِرِ ﴿۳۱﴾ وَلَقَدْ يَسَّرْنَا الْقُرْآنَ |
|---|
| پشان د مات راماتے گیاه د شپول جوړونکے۔او یقیناً آسان کړیدے مونږ قرآن دپاره |
| لِلذِّكْرِ فَهَلْ مِنْ مُّدَّكِرٍ ﴿۳۲﴾ |
| د نصیحت نو آیا شته څوك نصیحت اخستونکے۔ |

**تفسیر** : ثمودیانو هم رسولان دروغژن گنړلي وو، څکه صالح ﷺ ته د دروغو نسبت کول گویا که ټولو انبیاؤ ته د دروغو نسبت کول وو، یا ئے هغه نبیے دروغژنے وگنړلے د کومو په پیش کولو سره چه صالح ﷺ هغوئ ته د توحید دعوت ورکړے وو۔ نو نذر جمع د نذیر ده، یا مصدر دے په معنیٰ د اِنذاراتو سره۔

فَقَالُوْا : یعنی دا څنگه کیدے شي چه مونږ د خپل قوم یو کس نبي ومنو، او ټول جماعت پریدو او دهٔ پسے روان شو، د الله رسول خو د انسانانو نه اعلیٰ جنس یعني ملائك کیدل پکار دي۔ دے وجے نه که چرے مونږ د صالح خبره اومنله او د هغهٔ پیروی مو شروع کړه، نو د حق نه به لرے او د لیونو په صف کښې به راشو۔

وَّسُعُرٍ : (۱) اَیْ عَذَابٍ وَعَنَاءٍ وَشِدَّةٍ مِنْ طَاعَتِهٖ۔ (الفراء وغیره)

یعنی مونږ به دهٔ د تابعدارئ په وجه په عذاب او مشقت او سختئ کښې اخته شو، څکه چه د نبي خبره منے نو هغه به دریاندے کله د نفس خلاف کارونه کوي، نو مجرمانو ته هغه مشقت ښکاري او مؤمن پرے خوشحالیږي چه مونږ ته انسانیت راښائي او ادب راکوي۔

(۲) او مجاهدؒ وائي چه سُعر په معنیٰ د بُعْد عَنِ الْحَقِّ سره دے، یعنی د حق نه به لرے شو۔ (۳) او سعر کله لیونتوب ته هم وائي۔ چه دماغو کښې داسے اِلتهابات (لمبے) وي چه د هغے په وجه گډ وډ گرځي۔

(٤) سُدّيؒ وائي : (فِيْ اِحْتِرَاقٍ) یعنی په سوزش کښې به شو۔ سعر په اصل کښې گرم اُور ته وائي۔

ءَاُلْقِيَ الذِّكْرُ عَلَيْهِ : په صالح ﷺ کښې کوم شرافت او خوبي موجوده ده چه الله زمونږ لوی لوی سرداران او مالداران پریښودل، او دا ئے خپل نبي جوړ کړو۔ داسے څهٔ خبره

Scanned by CamScanner

نشته دے، بلکه دا لوی دروغژن او متکبر دے، او ددهٔ کبر او غرور دے را پورته کړے دے چه دے په مونږ باندے خپل ځان لوی ښکاره کړی، او مونږ ته د خپلے پیروئ حکم وکړی.

دا همیشه د باطل پرستو طریقه ده چه حق پرست، حق بیانونکے په غلطو نومونو او غلطو مقاصدو سره بدنام کړی، کله به وائی دے په مونږ باندے خپل ځان لوی کول غواړی، او کله به وائی مشروټ دے، او کله به وائی چه دے دروغژن دے، کله به وائی چه دے خپل شهرت په علاقه کښ غواړی.

سَيَعْلَمُونَ غَدًا : الله تعالیٰ د دوئ ددے غلطے خبرے جواب ورکړو چه په ډیره نزدے زمانه کښ به دوئ ته پته ولګی چه کله په دوی باندے په دنیا کښ عذاب نازل شی چه دروغژن او متکبر څوك دے؟، دوئ دی او که صالح ﷺ ـ نو د غدًا نه مراد صبا د راتللو د عذاب دے. یا د غد نه مراد د قیامت ورځ ده.

إِنَّا مُرْسِلُو النَّاقَةِ: اُوس د صالح ﷺ د رشتینوالی د ثابتولو دپاره معجزه ذکر کوی.

فِتْنَةً: یعنی دا اُوښه په دوئ باندے امتحان وو، او د صالح ﷺ معجزه وه، چه پته ولګی چه څوك د هغهٔ تصدیق کوی، او څوك ئے تکذیب کوی.

یا فتنه په معنیٰ د عذاب سره، یعنی ددے تکذیب به د دوئ دپاره د عذاب سبب وګرځی.

وَاصْطَبِرْ : باب افتعال کښ معنیٰ د تاکید پرته ده، نو پدے کښ په صبر کولو کښ زیات تاکید ته اشاره ده. او د انتظار نه روستو ئے په ډیر صبر باندے حکم څکه وکړو چه انتظار کول ډیره زمانه غواړی، او په ډیر وخت کښ د دشمنانو د طرفنه مصیبتونه هم ډیروی نو صبر ته ضرورت راځی.

وَنَبِّئْهُمْ: الله وفرمایل چه اے صالحه! ته دوئ ته دا ووایه چه د کوم کوهی اُوبهٔ دوئ څښکی، اوس دا د دوئ او د اُوښے ترمینځه برابر برابر تقسیمے شوے دی. یوه ورځ به اوښه څکل کوی، او بله ورځ به دا خلق څکل کوی. هر نمبر والا به صرف د خپل نمبر په ورځ راځی، او د خپلے برخے اوبهٔ به څکی.

شِرْبٌ: په زیر د شین سره نمبر د اُوبو ته وئیلے شی، د اُوښے یوه ورځ نمبر وو خو تول قوم ته به ئے پئ ورکول، او بله ورځ به د کلی والو نمبر وو، لیکن دوی تنګ شو او اصل

Scanned by CamScanner

کښې تنګ نهٔ وو خو فسادیان وو، نو یوه زنانه راپاڅیده او دا ئے وویل چه زهٔ به هغه سړے په نکاح واخلم چه دا اُوښه ئے مړه کړه، نو قُدار بن سالف په خپل قوم کښې سردار او منیع او عزتمند مالداره سړے وو، او دا په دے قوم د ثمودیانو کښې ډیر لوی خراب انسان وو، دهٔ خپل قوم ته وویل چه زهٔ اُوښه وژنم ستاسو څه رایه ده؟ هغوی ټولو ورته د وژلو مشوره ورکړه او د هغے په وژلو رضا شو۔ نو ځکه ئے دلته ټولو ته نسبت وکړو۔
چنانچه هغهٔ اولنی غشی سره د هغے پنډۍ زخمی کړه، بیا ئے په هغے باندے په توره حمله وکړه، او د هغے دواړه خپے ئے نورے زخمی کړے، بیائے هغه ذبح کړه۔
او په دے طریقه پوره قوم د الله د عذاب حقدار جوړ شو، دوی خندا شروع کړه چه څنګه مو ختمه کړه، صالح ﷺ ددے نه خبر شو ډیر خفه شو، او ورته ئے وویل چه اے قومه! تاسو خو ځان هلاك کړو، د الله عذاب ته مو دعوت ورکړو، ما درته نهٔ وو وئیلی چه دا مهٔ وژنئ، اُوس درے انتظار وکړئ د الله عذاب به راځی، او هغه تړے خپله روان شو۔
او دوئ خندا شروع کړه چه عذابونه کوم دی، دا خو لیونے دے، نو درے ورځے پس پرے داسے سخته صیحه (چغه) راغله چه د دوئ زړونه ئے وچول او په کورونو کښې پرمخے پراته وغورزیدل۔
فَتَعَاطٰى: اَیْ تَنَاوَلَ السَّیْفَ۔ یعنی توره ئے راواخسته۔
كَهَشِیْمِ الْمُحْتَظِرِ: یعنی په شان د ګیاه د شپول جوړونکی۔ هشیم: ګیاه ته وائی د هَشْم نه دے، ماتولو ته وئیلے شی۔ او محتظر صاحب الْحَظِیْرَة ته وائی، او حظیره شپول ته وائی۔ په غرونو علاقو کښې چه څوك ګډے بزے څروی، نو د هغوی طریقه دا وی چه د ورځے ګډے بزے څروی نو د شپے ئے د هغے دپاره یو ځای جوړ کړے وی چه څلور واړو طرفونو ته ئے د هغے نه لرګی تاو کړی وی، او یوه نرۍ لاره ئے ورله پریخوستی وی هغے ته ئے هم لرګے وهلے وی، او په ژمی موسم کښې د هغے لاندے ګیاه او بروزے هم اچولی وی دے دپاره چه هغه ګرمے وی، نو ګډے بزے چه کله دغه شپول ته ننوزی نو په هغے کښې ګرځی راګرځی او په هغه ګیاه متیازے هم وکړی نو دغه ګیاه بدبویه شی، او په خپو کښې ذره ذره هم شی،
نو دلته الله تعالىٰ د دوئ تشبیه د دغه ګنده بد بویه ګیاه سره ورکړه چه دوئ هم دغه شان بدبویه او ذره ذره پراته وو چه اندامونه ئے د یو بل نه جدا جدا شوی وو۔

Scanned by CamScanner

او پدے مثال باندے عرب بنه پوهيدل پدے وجه ئے دلته همدا مثال راوړو۔ او دا ناشنا تشبيه ده د كَعَصْفٍ مَأْكُولٍ په شان دے۔

او بعض وائي : ددے معنیٰ دا ده : چه دوئ په خپلو کورونو کښں داسے ډهیری جوړ شول لکه څنګه چه ګډے بزے ساتونکے په بارئ (شپول) کښں د خپلو ګډو بزو دپاره د اُوچو بوسو ډهیرے لګوی۔

| |
|---|
| كَذَّبَتْ قَوْمُ لُوطٍ بِالنُّذُرِ ﴿٣٣﴾ إِنَّا |
| تكذيب كړے وو قوم د لوط (علیه السلام) د يره وركونكو (پيغمبرانو) يقيناً مونږ |
| أَرْسَلْنَا عَلَيْهِمْ حَاصِبًا إِلَّا آلَ لُوطٍ نَجَّيْنَاهُمْ |
| راوليږلو په دوی باندے باران د کانړو سوئ د كورنئ د لوط نه، بچ كړل مونږ دوی |
| بِسَحَرٍ ﴿٣٤﴾ نِعْمَةً مِنْ عِنْدِنَا كَذَٰلِكَ نَجْزِي |
| لره په وخت د پيشمنی کښں۔ (دا) نعمت وو د طرف زمونږ نه، دغسے بدله ورکوو مونږ |
| مَنْ شَكَرَ ﴿٣٥﴾ وَلَقَدْ أَنْذَرَهُمْ بَطْشَتَنَا |
| هغه چا ته چه شكر كوى۔ او يقيناً هغهٔ ويرول دوی لره د حملے (نيولو) زمونږ نه |
| فَتَمَارَوْا بِالنُّذُرِ ﴿٣٦﴾ وَلَقَدْ رَاوَدُوهُ |
| نو هغوی شك اُوكړو په ويره ولو كښں۔ او يقيناً دوی مطالبه كړے وه د هغهٔ نه |
| عَنْ ضَيْفِهِ فَطَمَسْنَا أَعْيُنَهُمْ فَذُوقُوا عَذَابِي |
| د ميلمنو د هغهٔ نو ورانے کړے مونږ سترګے د هغوی نو اُوڅکئ عذاب زما |
| وَنُذُرِ ﴿٣٧﴾ وَلَقَدْ صَبَّحَهُمْ بُكْرَةً عَذَابٌ مُسْتَقِرٌّ ﴿٣٨﴾ |
| او يره ول زما۔ او يقيناً سهار وخت كښں راغے په دوی باندے وختی عذاب هميشه۔ |
| فَذُوقُوا عَذَابِي وَنُذُرِ ﴿٣٩﴾ وَلَقَدْ يَسَّرْنَا الْقُرْآنَ |
| نو اُوڅکئ عذاب زما او يره ول زما۔ او يقيناً آسان كړيدے مونږ قرآن |

Scanned by CamScanner

| لِلذِّكْرِ فَهَلْ مِنْ مُّدَّكِرٍ ﴿٤٠﴾ |
|---|
| دپاره د نصیحت نو آیا شته څوك نصیحت اخستونکے۔ |

**تفسیر**: څلورمه واقعه راوړي، پدے کښې هم دنیاوي يره ده چه تکذیب سبب د عذاب دے۔

بِالنُّذُرِ: دا هغه امور دي چه په هغے سره دوی لره لوط ﷺ يره ولی وو۔ یا دا جمع د نذیر ده، او مراد ددے نه رسولان دي، ځکه چه د یو رسول تکذیب داسے دے لکه د ټولو رسولانو تکذیب۔

إِنَّا أَرْسَلْنَا عَلَيْهِمْ: په تیر شوو ګنړو سورتونو کښې د قوم لوط واقعه ذکر شویده چه په سَدُوم او عموریه کلو کښې اوسیدونکو خلقو کښې هلکانو سره د بد فعلۍ کولو ګناه خوره شوے وه۔ الله تعالیٰ دوئ ددے خراب کار نه د توبه ګار کولو او په نیغه لاره باندے د روانیدلو دپاره لوط ﷺ نبی جوړ کړو، او هغوئ ته ئے وراولیږلو چه دا د ابراهیم ﷺ د وروړ هاران ځوی وو، لیکن هغوئ په خپلو ګناهونو باندے ټینګ پاتے شول، نو الله تعالیٰ دا کلی واړول، او بیائے د ملائکو یا د تیزے او تندے هواء په ذریعه په دوئ باندے د کانړو داسے باران وکړو چه هغه ټول هلاك شول، صرف لوط ﷺ، د هغهٔ دواړه لونړے او یو څو هغه کسان بچ شول چه هغوئ مسلمانان شوی وو۔

دا خلق د الله په حکم سره د شپے په آخره برخه کښې د دغه کلو نه اووتل۔

په دے مومنانو باندے الله خپل فضل او کرم وکړو چه د عذاب نازلیدو نه مخکښې ئے دوئ ته د تللو دپاره ووئیل۔ الله تعالیٰ په هره زمانه کښې خپلو نیکانو او شکر ګذارو بندګانو له د دوئ د نیکو اعمالو دغسے ښه بدله ورکړے ده۔

بِسَحَرٍ: سحر آخر د شپے ته وائي، او د عربو په نیز د شپے تور والے چه د ورځے د سپینوالی سره یو ځای شي نو په دے وخت کښې د شپے او د ورځے دواړه نخے ښکاره کیږي نو دغه وخت ته سحر وائي۔

نِعْمَةً مِّنْ عِنْدِنَا: دا منصوب دے مفعول لهٗ دے۔ یعنی د وجه د نعمت نه زمونږ د طرفنه۔ ځکه چه د ایمان والو بچ کول خالص د الله په فضل او احسان سره کیږي۔ او دا دلیل دے چه د نیك اعمالو بدله په الله تعالیٰ باندے واجب نهٔ ده لکه چه معتزله وائي۔

Scanned by CamScanner

مَنْ شَكَرَ: دلته د شکر ګذار نه مراد : اَلَّذِیْ یُؤْمِنُ بِالْمُعْجِزَاتِ وَیَعْمَلُ بِالطَّاعَاتِ۔
هغه شخص چه په معجزاتو ایمان لري، او په طاعاتو باندې عمل کوي، او شکر همیشه دپاره د نجات ذریعه ده۔ او پدې کښې اشاره ده چه لوط ﷺ او د هغه لونړه شکر ګذار وو نو ځکه ورته الله تعالیٰ نجات ورکړو۔
نو پدې آیتونو کښې دا دعوت دې چه محمد رسول الله ﷺ راتلل د الله د طرفنه یو لوی نعمت دې، او ددۀ دا معجزې لکه قرآن او سنت، دا منل پکار دي او پدې نعمت باندې شکر پکار دې، او تاسو تکذیب شروع کړو۔
وَلَقَدْ اَنْذَرَهُمْ : جواب د یو وَهم کوي، که څوك ووائي چه دوئ ته به چا بیان نۀ وو کړې او په حالت د غفلت کښې به پرې عذاب راغلے وي؟
نو فرمائي چه الله تعالیٰ دوئ ناساپه په عذاب کښې مبتلا نۀ کړل، بلکه لوط ﷺ دوئ د الله د سخت عذاب نه ډیر اُویرول، او پوره کوشش ئې وکړو چه دوئ په سمه لاره راشي، لیکن هغوئ همیشه دپاره د لوط ﷺ خبرو پورې ټوقې کولے، او ګمان ئې کولو چه د لوط ﷺ په خبرو کښې هیڅ رشتین والے نشته، او د کوم عذاب دهمکي چه ورکوي، د هغې هیڅ حقیقت نشته۔
او د دوئ د تولو نه لوی جرم دا وو چه دوئ د لوط ﷺ نه مطالبه وکړه چه هغه دوئ ته د خپلو نوو راغلو ښائسته میلمنو سره د بد فعلۍ اجازت ورکړي۔
دا میلمانۀ په اصل کښې ملائك وو چه دوئ د انسانانو په شکل کښې د مجرمانو د آزمائش دپاره رالیږلے شوي وو۔
د لوط ﷺ بوډۍ ښځه، چه د مجرمانو سره ملاؤ وه، په منډه لاړه او مجرمانو ته ئې د ښائسته مخو میلمنو راتللو خبردارے ورکړو، په لږ وخت کښې تمام مجرمان د لوط ﷺ خواته جمع شو، او وې وئیل چه مونږ ته خپل میلمانۀ حواله کړه۔
لوط ﷺ د الله واسطه ورکړه او دوئ ته ئې منت او زاري اوکړه چه دوئ د هغۀ د میلمنو سره په بد فعلۍ کولو سره هغه ذلیل او رسوا نۀ کړي، دا خبرې اترې شروع دي، لوط ﷺ هغوی لره دیکه کوي، او هغوی د ننوتو زور کوي او دا ارمان کوي چه زما په تاسو باندې قوت وې نو تاسو به داسې اراده نۀ وې کړې، لیکن هغوئ ددۀ خبره وانۀ وریده، او په زبردستۍ سره ئې د هغۀ کور ته ننوتل غوښتل نو پدې کښې جبریل ﷺ د دوی پسې

Scanned by CamScanner

راووتو او په خپل وزر سره ئې دا تول حاضرین وو هل، نو تول ړانده شول او دوئ په شان باندے وتبنتیدل، او دا چغے ئے کړے چه لوی ساحران راغلی دی، په کلی کښ لا دا خبره خوره شوے نۀ وه چه شپه تیریده نو د صبا په وخت کښ په تولو باندے عذاب راغلو۔ نو الله هغوئ ته ووئیل چه اوُس تاسو زما د عذاب خوند اوڅکئ۔

او داسے عذاب پرے راغلو چه هغه همیشه وو او هیڅ کله نۀ لرے کیدونکے وو تردے چه په دنیا کښ هم ذلیله او رسوا مرۀ شول، او په عالَم برزخ کښ هم په دوئ باندے عذاب مسلط شو تردے چه دوی ئے جهنم ته ورسول۔

فَتَمَارَوْا بِالنُّذُرِ : یعنی دوئ شك وکړو په یره ورکولو کښ۔

عَنْ ضَيْفِهِ: ضیف اسم جنس دے، په معنیٰ د جمع سره دے، او مراد ترینه ملائك دی۔

فَذُوقُوْا: دا خطاب دوئ ته په ژبه د ملائکو سره وو، یا دا امر په معنیٰ د اخبار سره دے۔ یعنی ما دوئ ته عذاب وڅکولو۔

مُّسْتَقِرٌّ: یعنی قرارے ئے پرے ونیولو او همیشه پرے پاتے شو۔

په څلورم ځل ئے ووئیل چه الله تعالیٰ قرآن کریم کښ ددے بیان کړو واقعاتو په ذریعه نصیحت حاصلول آسان کړی دی۔ نو څوك شته دے چه ددے واقعاتو نه عبرت حاصل کړی ؟ او ددے بار بار وئیلو نه مقصد په تیره شوے زمانه کښ د کافرو قومونو د هلاکت یادول، او د عبرت او نصیحت حاصلولو رغبت ورکول دی، دے دپاره چه د آخرت د فکر نه غافله نشی۔

| وَلَقَدْ جَاءَ آلَ فِرْعَوْنَ النُّذُرُ ﴿٤١﴾ كَذَّبُوْا بِآيَاتِنَا كُلِّهَا |
|---|
| او یقیناً راغلی وو فرعونیانو ته یره ورکونکی۔ دروغژن ئے وګڼل آیتونه زمونږ تول |
| فَأَخَذْنَاهُمْ أَخْذَ عَزِيْزٍ مُّقْتَدِرٍ ﴿٤٢﴾ أَكُفَّارُكُمْ |
| نو راونیول مونږ دوی په رانیولو د زورور ذات چه قدرت والا دے۔ آیا کافران ستاسو |
| خَيْرٌ مِّنْ أُولٰئِكُمْ أَمْ لَكُمْ بَرَاءَةٌ فِي الزُّبُرِ ﴿٤٣﴾ |
| غوره دی د دغه کسانو نه یا شته تاسو لره بچ والے (د عذاب نه) په کتابونو کښ۔ |

Scanned by CamScanner

| أَمْ يَقُولُونَ نَحْنُ جَمِيعٌ مُّنتَصِرٌ ﴿٤٤﴾ سَيُهْزَمُ |
|---|
| آيا وائي دوى مونږ ټول ډله يو بدله اخستونكي. زردے چه شكست به اوخورى |
| الْجَمْعُ وَيُوَلُّونَ الدُّبُرَ ﴿٤٥﴾ بَلِ السَّاعَةُ مَوْعِدُهُمْ |
| (دا) ډله او دوى به راواړوى شاګانے. بلكه قيامت وخت مقرر د دوى دے |
| وَالسَّاعَةُ أَدْهَىٰ وَأَمَرُّ ﴿٤٦﴾ |
| او قيامت ډير لوئى مصيبت دے او ډير تريخ دے. |

**تفسير** : دا پنځمه واقعه ده، او په ترتيب وجودى كښې هم دوئ د مخكنو قومونو نه روستو راغلى دى، او بل د مكے د مشركانو مشابهت د فرعونيانو سره زيات وو.

الله تعالىٰ موسىٰ او هارون عليهما السلام پيغمبران جوړ كړل، او فرعون او فرعونيانو خواته ئے اوليږل، دے دپاره چه دوئ هغوئ د آسمان او د زمكے د خالق او د يو الله بندګئ طرفته را اوبلى.

او الله دوئ له د خپل رشتين والى ثابتولو دپاره نهه نښے وركړے، چه ددے ذكر د مخكنو سورتونو په تفسير كښې څو ځله راغلے دے.

موسىٰ او هارون عليهما السلام دا نښے يوه يوه پيش كړه، ليكن فرعون د كبر او غرور په نشه كښې ددے ټولو نه انكار وكړو، او د الله د وحدانيت او د هغهٔ د بندګئ د اقرار كولو توفيق ورته حاصل نشو. آخر الله تعالىٰ هغه داسے سخت را اونيولو چه هغه د دنيا هيڅ طاقت بچ نهٔ كړو، ځكه د الله په قادرِ مطلق هستئ باندے څوك غالبه كيدے شي؟!.

**النُّذُرُ** : دا جمع د نذير ده، او كله نا كله د جمع اطلاق په تثنيه باندے كيدے شي. يا ددے نه مراد انذارات دى.

**بِآيَاتِنَا كُلِّهَا** : ددے نه مراد نهه معجزات دى كوم چه په سورة اعراف كښې ذكر شويدى.

**أَخْذَ عَزِيزٍ مُّقْتَدِرٍ** : پدے كښې اشاره ده چه فرعون ځان دپاره د عزت او اقتدار دعوه كوله ليكن هغه دعوه باطله وه ځكه چه مغلوب او تباه شو، نو معلومه شوه چه عزت والا (غالب) قدرت والا صرف الله تعالىٰ دے. او پدے كښې اشاره ده چه الله تعالىٰ د دوئ

Scanned by CamScanner

په هلاکولو کښې عزتمند وو، په دوی ئې هیڅ ظلم نهٔ دے کړے.
أَكُفَّارُكُمْ: اُوس الله تعالیٰ قریشو کافرانو او بیا دے امت ته خطاب کوی چه که څوك وائی چه پخوانی قومونه هلاك شول، او زمونږ دپاره به هلاکیدل نهٔ وی، مخکنی خلق خراب وو. نو الله فرمائی چه په تاسو عذاب نهٔ راځی نو ددے به یو د درے وجو نه وی، یو دا چه تاسو به د هغوی نه غوره یئ، او هغوی به فاسقان کافران وی، نو بیا صحیح ده الله به عذاب نهٔ راولی، مثلاً د فرعون په شان بد عمل او تکبر مهٔ کوه، نو عذاب به نهٔ راځی.
دویم دا چه الله به په پخوانو کتابونو کښې لیکلی وی چه قریشو او د محمد رسول الله ﷺ امت اګرکه کافران وی هم بچ به وی د عذاب د الله نه.
دریمه دا چه ستاسو به خپل قدرت وی او تاسو به راجمع شئ خپل طاقت به پیدا کړئ، او یو بل له به لاس ورکړئ، او د الله عذاب به لرے کړئ، او دا درے واړه خبرے ستاسو سره نشته.
نو مطلب د آیت دا دے چه آیا تاسو کافران د دوئ نه بهتر یئ چه خپل ځانونه د الله تعالیٰ د عذاب نه محفوظ او په امن کښې ګنړئ، او هغوئ به غلط خلق وو ځکه پرے عذاب راغلو، داسے خبره خو نشته ځکه چه تاسو هم د هغوی په شان ناکاره مشرکان او تکبر والا یئ، یا الله په خپل کوم آسمانی کتاب کښې ستاسو بیزاری اعلان کړے ده چه تاسو څهٔ غواړئ کوئ ستاسو نیوکه به نهٔ کیږی؟
واقعه داده چه دواړه خبرے صحیح نهٔ دی، بلکه تاسو له مهلت درکړے شوے، دے دپاره چه تاسو الله طرفته رجوع وکړئ، یا د الله عذاب په تاسو نازل شی.
بَرَاءَةٌ: د برائت نه مراد اَمن دے.
أَمْ يَقُولُونَ: دا دریمه خبره ده. یعنی که د قریشو کافران په دے باطل ګمان کښې اخته وی چه د دوئ ډله دومره ډیره او طاقتوره ده چه هیڅوك په دوئ غالبه کیدے نشی؟ لکه دوی به وئیل چه که ولید او ابوجهل ته چا څه ووئیل نو مونږ به ټول تورے راواخلو او په یو ځل به پرے حمله وکړو، او خپله بدله به واخلو، او ابوجهل به وئیل: أَنَا سَيِّدُ هٰذَا الْوَادِيْ. زهٔ ددے علاقے سردار یم، ستا د رب د عذاب نه نهٔ یریږم. (والعیاذ بالله).
جَمِيعٌ: ١ – یعنی جماعت یو.

Scanned by CamScanner

۲- جَمِيْعٌ اَمْرُنَا مُنْتَصِرٌ مِنْ اَعْدَائِنَا۔ زمونږ کار او خبره اتفاقی ده، او مونږ د خپلو دشمنانو نه بدله اخستے شو۔

سَيُهْزَمُ الْجَمْعُ : نو واورئ چه دوئ به ماتے خوری، که هغه د قریشو کافران وی، یا د عربو عام کافران، او دوئ به د میدانِ جنگ نه شا اړولو سره داسے اوتښتی چه شاته به نهٔ گوری۔

او معامله به دلته ختمیږی نهٔ، بلکه د دوئ د وعدے اصل ځای خو به د آخرت ورځ وی، چه دا به ډیر سخت ساعت وی چه ددے د عذاب نه به د بچ کیدو هیڅ صورت نهٔ وی، او دا به د دنیا د عذاب نه ډیر زیات عذاب وی۔

او دا سورت مکی دے، او الله تعالیٰ پکښ خبر ورکړو چه دوئ به د مسلمانانو په لاس وهلے شی، او د جنګ میدان نه به تښتی، او بیخی رشتینی ثابته شوه چه د بدر په میدان کښ بدترینه ماتے ئے وخوړه، او د کفر او شرك لوی لوی سرداران د مسلمانانو د تورو په ذریعه د ګازرو او مولیو پشان پریکړے شول۔

ابو جهل ارمانونه کول چه (فَلَوْ غَيْرُ اَكَّارٍ قَتَلَنِیْ) ارمان چه زمیدارو نهٔ وے وژلے۔

امام بخاریؒ د ابن عباس ﷛ نه روایت کړے چه رسول الله ﷺ د بدر د غزا په موقعه د شپے د مسلمانانو د کامیابئ دپاره دعاګانے وکړے، او سهار کښ د خپلے خیمے نه په زغره کښ راووتو او تړپونه ئے وهل، او دا آیتونه ئے لوستل (سَيُهْزَمُ الْجَمْعُ وَيُوَلُّوْنَ الدُّبُرَ) یعنی د الله دغه وعده به ما سره نن پوره کیږی، نو صحابه کرامؓ پدے سره ډیر زیات خوشحاله شو او بهادری ئے نوره هم زیاته شوه۔ (بخاری : ٤٨٧٥)

بَلِ السَّاعَةُ : یعنی عذاب به صرف په دنیا کښ نهٔ وی، هغه خو دومره سخت نهٔ دے بلکه د قیامت عذاب د دوی سره وعده شویده، او هغه قیامت خو ډیر لوی ګبراهټ والا دے۔

اَدْهٰى: یعنی ډیر لوی مصیبت دے، داهیه : اَلْاَمْرُ الْمُنْكَرُ الَّذِیْ لَا يُهْتَدٰی لِدَوَائِهٖ۔

هغه ناکاره ناشنا کار دے چه څوك ئے په دوائی او علاج نهٔ پوهیږی۔

وَاَمَرُّ: یعنی ډیر تریخ دے د عذاب د دنیا نه۔

Scanned by CamScanner

| إِنَّ الْمُجْرِمِينَ فِي ضَلَالٍ وَّسُعُرٍ ﴿٤٧﴾ يَوْمَ يُسْحَبُونَ |
|---|
| یقیناً مجرمان په گمراهئ او په اُور کښې دی۔ په هغه ورځ چه راخکلے به شی |
| فِي النَّارِ عَلٰى وُجُوهِهِمْ ذُوقُوا مَسَّ سَقَرَ ﴿٤٨﴾ |
| په اُور کښې په مخونو خپلو (ورته وئیلے به شی) اُوڅکئ عذاب د سقر (سوزیدلو)۔ |
| إِنَّا كُلَّ شَيْءٍ خَلَقْنَاهُ بِقَدَرٍ ﴿٤٩﴾ |
| یقیناً مونږ هر شے پیدا کړیدے هغه په خاص اندازه۔ |

**تفسیر:** کوم سرکشه بندګان چه په دنیا کښې جرمونه او ګناهونه کوی، دوئ په دنیا کښې د حقے لارے نه آوړیدلی دی، او په آخرت کښې به د دوئ استوګنه جهنم وی، چه ددے اُور بـه د دوئ پـه جسمونو باندے بلیږی۔ او په دے اُور کښې به دوئ پړمخے راښکلے کیږی، دوئ تـه بـه معلومه نهٔ وی چه دوئ چرته بوتللے کیږی۔ او د دوئ د ذهنی غم او خفګان زیاتولو دپاره بـه دوئ تـه وئیلے کیږی چه اُوس د جهنم سختئ او ددے سخت عذاب برداشت کوئ۔

إِنَّ الْمُجْرِمِينَ: ابن کثیرؒ لیکی چه دا هر کافر او بدعتی ته شامل دے۔

فِي ضَلَالٍ وَّسُعُرٍ: ۱- یعنی په دنیا کښې په ګمراهئ کښې دی، او په آخرت کښې به په ګرم اُور کښې وی۔ سعر جمع د سَعِیر ده۔ یا سعر لیونتوب ته وائی، او دا هم په دنیا کښې دے۔ ۲- یا دواړه د آخرت سره لګیږی، یعنی مجرمان به په آخرت کښې په ګمراهئ کښې وی ځکه چه کله به د خپل شرك اقرار کوی، او کله به انکار کوی، او ګډے وډے به وائی، لاره به ترے ورکه وی چه چرته لاړ شی۔ ﴿كَذٰلِكَ كَانُوا يُؤْفَكُونَ﴾۔

او دا معنیٰ هم ده چه د جنت لاره به ترے ورکه وی۔

يُسْحَبُونَ: دوئ به پداسے طریقه راخکلے شی چه په مرئ کښې به ئے طوق وی، او په هغے کښې بـه پړے وی، او د هغے نه به ئے په مخونو راکاږی۔ كَمَا سُحِبُوا فِي الدُّنْيَا فِي الضَّلَالِ۔ لکه څرنګ چه دوئ په دنیا کښې په ګمراهئ کښې راخکلے شول۔

مَسَّ سَقَرَ: مسّ په اصل کښې لګیدو ته وائی، دلته ترے مراد عذاب دے، او سقر په

Scanned by CamScanner

اصل کښې سوزېدو ته وائي، او دا د جهنم نوم دے۔
إِنَّا كُلَّ شَيْءٍ خَلَقْنَاهُ بِقَدَرٍ : (۱) ددے آیت په باره کښې بعض مفسرین لیکي چه دا آیت نازل شوے وو د قریشو په رد کښې چه هغوی د تقدیر نه انکار کولو، امام احمدؒ، مسلمؒ، ترمذیؒ او ابن ماجةؒ وغیره د ابو هریره ؓ نه روایت کړے دے :
[جَاءَ مُشْرِكُو قُرَيْشٍ يُخَاصِمُونَ رَسُولَ اللّٰهِ ﷺ فِي الْقَدَرِ فَنَزَلَتْ : ﴿ يَوْمَ يُسْحَبُونَ فِي النَّارِ عَلٰى وُجُوهِهِمْ ذُوقُوا مَسَّ سَقَرَ، إِنَّا كُلَّ شَيْءٍ خَلَقْنَاهُ بِقَدَرٍ ﴾]
چه د قریشو مشرکان نبی کریم ﷺ ته راغلل، او د تقدیر په باره کښې ئے بحث او مناظره شروع کړه، نو ددے سورت (۴۷/۴۸/۴۹) آیتونه نازل شول۔ (بخاري : ۶۹۲۳)
لیکن بیا به پوره مناسبت د مخکښې روستو نهٔ ښکاره کیږی، لږ مناسبت به ئے دا وی چه مشرکان هغه خلق دے چه پیغمبران هم نهٔ مني، او معجزات او قیامت هم نهٔ مني، نو دارنګه د الله تقدیر هم نهٔ مني۔
(۲) ظاهره وجه دا ده چه دا د مخکنو عذابونو سره لګیږی، سوال پیدا شو چه دوئ ته به عذابونه کله ورکړے کیږی، او قیامت به پرے کله راځي؟
نو الله فرمائي چه ما هر شے په تقدیر کښې لیکلے دے، او الله چه دا ورځ راولي نو ډیره په آسانئ سره ئے راوستے شي خو تاسو د پخوانو قومونو د عملونو نه عبرت واخلئ، د هر چا عمل لیکلے کیږی، او د هغے مطابق به ورته جزاء او سزا ورکړے کیږی، او هغه پوهیږی چه د چا عمل اُوس د عذاب مستحق دے، او د چا کال پس او د چا ډیره موده بعد۔ یعنی الله د اعمالو مطابق عذابونه رالیږی۔
**فائده :** د یو تفسیر مطابق دا آیت د تقدیر د اثبات په باره کښې نازل دے، کوم خلق چه د تقدیر منکر دی، دوئ لوی ګمراهان دی لکه پدے زمانه کښې منکرین حدیث (پرویزیان) او دهریان دی، تقدیر په اصل کښې د الله تعالیٰ هغه علم ته وائي چه الله تعالیٰ د مخکښې نه لیکلے وی،
او دا مطلب هیڅ کله نهٔ دے لکه چه بعض خلق ئے اخلي چه تقدیر معنیٰ دا ده چه الله تعالیٰ یو بنده په یو کار باندے مجبوره کړی چه د هغهٔ هیڅ واک پاتے نشي، او الله پرے فیصله وکړی چه بس جهنمي شوے یا جنتي۔
بلکه د تقدیر معنیٰ دا ده چه الله تعالیٰ د خپل مخکني علم خبر ورکوی چه بندګان به

Scanned by CamScanner

په خپله خوښه او مرضۍ سره داسې کارونه کوي، زۀ په هغې باندې د مخکښې نه خبریم، نو کله به د خیر کارونه کوي، او کله د شر کارونه.

الله تعالیٰ د هر خیر او شر پیدا کونکې دے، لیکن بیا ئې بندګانو ته اختیار ورکړیدے چه دوئ کوم کسب کوي، چا ته د خیر توفیق ورکوي، او چا ته د شر د کسب کولو.

او بیا فیصلې د کسب مطابق کیږي که انسان په خپله خوښه د خیر کارونه کوي نو جنت او نعمتونه ورکوي، او که ګناهونه او شرك کوي نو جهنم او عذابونه ورکوي. یعنی الله خالق د هر شي دے، او بنده کاسب دے، او الله تعالیٰ ددهٔ د کسب مطابق فیصله کوي.

او تقدیر الله تعالیٰ په قرآن کریم کښې په ډیرو ځایونو کښې ثابت کړیدے، او متواتر احادیث پکښې موجود دي چه ددے ښکلې ایمان جوړونکې تفصیل په «الحق الصریح شرح مشکاة المصابیح» باب القدر کښې کتلې شئ.

كُلَّ شَيْءٍ خَلَقْنَاهُ: یعنی مونږ هر شے د مخلوقاتو د پیدا کولو نه مخکښې په هغې باندې پوهه وو، او د هغې تقدیر او اندازه مو لیکلې ده، هیڅ یو شے د الله تعالیٰ د مخکنی تقدیر او علم نه بغیر په وجود کښې نۀ دے راغلے.

د هر یو شئ علم ددے د واقع کیدو نه مخکښې په لوحِ محفوظ کښې لیکل شوے دے.

په همدے الهی تقدیر کښې دا هم لیکلے شوي وو چه هغه به مجرمانو له د سزا ورکولو دپاره جهنم پیدا کوي، او نیکانو له به د دوئ د بدلے ورکولو دپاره جنت پیدا کوي.

چنانچه هغهٔ جنت او جهنم پیدا کړو، او په قرآن کریم کښې ئې د وعدے او دهمکئ په توګه ددے تذکره وکړه.

همدا حقیقت الله تعالیٰ د سورتِ فرقان په (٤) آیت کښې داسے بیان کړے:

﴿ وَخَلَقَ كُلَّ شَيْءٍ فَقَدَّرَهُ تَقْدِيرًا ﴾

(هغهٔ هر یو شے پیدا کړو او د هغې ئې یو تقدیر مقرر کړو).

كُلَّ شَيْءٍ: منصوب دے په پټ فعل (خَلَقْنَا) سره او روستو خَلَقْنَاهُ د هغې تفسیر دے، نو دا مَا اُضْمِرَ عَامِلُهُ عَلٰى شَرِيْطَةِ التَّفْسِيْرِ دے، او په كُلَّ شَيْءٍ کښې نصب غوره دے دے دپاره چه دلالت په عموم وکړي، یعنی هر شے مونږ په تقدیر سره پیدا کړیدے.

او (كُلُّ شَيْءٍ) کښې رفع هم یو قراءت کښې راغلې ده، لیکن هغه غوره نۀ ده ځکه چه بیا معنیٰ ئې په قواعدو د اهل سنتو نۀ جائز کیږي، او د معتزله ؤ استدلال ترے جوړیږي،

Scanned by CamScanner

ځکه چه معنیٰ به دا شي: هر شے چه مونږ پیدا کړیدے نو هغه په تقدیر کښې لیکلے شویدے نو ددے مفهوم دا شو چه د بعضے څیزونو خالق الله تعالیٰ نهٔ دے لکه څنګه چه قدریه او معتزله وائي۔

| وَمَا أَمۡرُنَا إِلَّا وَاحِدَةٌ كَلَمۡحِۭ بِالۡبَصَرِ ﴿٥٠﴾ وَلَقَدۡ |
|---|
| او نهٔ دے حکم زمونږ مګر یوه شپیلۍ ده پشان د رپ د سترګے۔ او یقیناً |
| أَهۡلَكۡنَا أَشۡيَاعَكُمۡ فَهَلۡ مِن مُّدَّكِرٍ ﴿٥١﴾ |
| هلاك کړیدی مونږ ستاسو پشان خلق نو آیا شته څوك نصیحت اخستونکے۔ |
| وَكُلُّ شَيۡءٍ فَعَلُوهُ فِي الزُّبُرِ ﴿٥٢﴾ وَكُلُّ صَغِيرٍ |
| او هر شے چه دوی کړیدے نو په صحیفو د ملائکو کښې دی۔ او هر وړوکے |
| وَكَبِيرٍ مُّسۡتَطَرٌ ﴿٥٣﴾ إِنَّ الۡمُتَّقِينَ فِي جَنَّاتٍ وَنَهَرٍ ﴿٥٤﴾ |
| او لوئي عمل لیکلے شویدے۔ یقیناً متقیان به په جنتونو او نهرونو کښې وی۔ |
| فِي مَقۡعَدِ صِدۡقٍ عِندَ مَلِيكٍ مُّقۡتَدِرٍ ﴿٥٥﴾ |
| په مجلس د رشتینوالی کښې په نیز د بادشاه پوره قدرت لرونکي۔ |

**تفسیر**: وَمَا أَمۡرُنَا: یعنی لکه څنګه چه د الله تقدیر د هغهٔ په بندګانو کښې نافذ کیږی، هیڅ یو شے هغه نشی بندولے، دغه شان د هغهٔ اراده هم د هغهٔ د مخلوقاتو په باره کښې نافذه کیږی، هیڅ یو شے خنډ نشی واقع کیدے۔ د یو شئ د موجودولو دپاره د هغهٔ یو حکم کافی دے، نو هغه شے به د سترګے په رَپ سره موجودیږی۔
یا د امر نه مراد د قیامت راتلل دی، یعنی الله تعالیٰ ته د قیامت قائمول داسے آسان دی لکه د سترګے د رَپ په شان۔ یا دومره په جلتئ به راځی لکه د سترګے د رَپ په شان۔ یا لکه څنګه چه د سترګے په رپولو کښې انسان ته هیڅ تکلیف نهٔ وی، نو دغه شان تول کارونه د الله تعالیٰ په نیز ډیر آسان دی۔
وَلَقَدۡ أَهۡلَكۡنَا: الله تعالیٰ د قریشو کافرانو ته وئیلی دی چه مونږ په تیره شوے زمانه

Scanned by CamScanner

کښې ستاسو پشان کافران د هغویٔ د جرمونو په وجه هلاك کړی دی.
نو آیا په تاسو کښې څوك شته چه د هغویٔ د دے عبرتناك انجام نه نصیحت واخلی، او د وخت تیریدو نه مخکښې خپل حالت بدل کړی، د گناهونو نه توبه کړی، او د خپل حقیقی معبود مخے ته د سجدے دپاره سر ښکته کړی.
أَشْيَاعَكُمْ : جمع د شِيعَة ده، مراد ترے هغه خلق دی چه ستاسو سره په کفر کښې مشابه وو. یا د اشیاع نه مراد أتباع (تابعداران) او اعوان (مددگاران) دی.
یعنی په تاسو باندے زما قدرت داسے دے لکه په هغوی باندے چه قدرت وو نو ویریږئ چه تاسو به د هغوی په شان عذاب ورسیږی.
وَكُلُّ شَيْءٍ فَعَلُوهُ فِي الزُّبُرِ: پدے کښې الله تعالیٰ هغوی او مونږ ته دا خبردارے راکوی چه هر شے چه پخوانو امتونو کړیدے که خیر وی او که شر هغه په لوح محفوظ او دارنگه په صحیفو د ملائکو کښې لیکلے شویدے، او د خلقو واړهٔ او غټ تول عملونه د ملائکو په ذریعه په عملنامو کښې لیکلے کیږی. د انسان هیڅ عمل نهٔ ورك کیږی، برابره ده وړوکے وی او که لوی، هغه خیرے وی او که عملونه وی.
د سورتِ کهف په (٤٩) آیت کښې الله تعالیٰ فرمایلی دی:
﴿ وَيَقُولُونَ يَاوَيْلَتَنَا مَالِ هٰذَا الْكِتَابِ لَا يُغَادِرُ صَغِيرَةً وَّلَا كَبِيرَةً إِلَّا أَحْصَاهَا ﴾
(په دے ورځ به مجرمان وائی : هائے زمونږ هلاکته ! دا څنگه کتاب دے چه دهٔ هیڅ غټه وړه (گناه) د راگیرولو نه بغیر نهٔ ده پریښے).
او امام ابن ماجة او دارمیؒ وغیره د عائشے رضی الله عنها نه روایت کړے،
رسول الله ﷺ به فرمایل : [يَا عَائِشَةُ! إِيَّاكِ وَمُحَقَّرَاتِ الْأَعْمَالِ فَإِنَّ لَهَا مِنَ اللهِ طَالِبًا]
اے عائشے ! د هغے گناهونو نه ځان اوساته چه هغه معمولی او سپك گنړلے کیږی، د الله له خوا ددے ریکارډ ساتونکی موجود دی.
(ابن ماجه : ٤٢٤٣) واسناده صحیح والدارمی رقم : ٢٧٢٦)
فِي الزُّبُرِ : دا متعلق دے د مَكْتُوبٌ مقدر پورے، یعنی هر شے چه خلقو کړیدے هغه لیکلے شویدے په کتابونو د ملائکو کښې. او د فَعَلُوهُ پورے نهٔ دے متعلق ځکه چه بیا معنیٰ خرابیږی. یعنی هر شے خلقو کړیدے په کتابونو د ملائکو کښې، حال دا چه د ملائکو په کتابونو کښې خلق تصرف نشی کولے.

Scanned by CamScanner

او د دوارو آیتونو غرض دا دے چه پخوانو امتونو کښ هر چا چه هر عمل کړیدے نو هغه په لوح محفوظ کښ هم لیکلے شوے وو، او د ملائکو په کتابونو کښ هم او د هغے مطابق سزا ورکړے شوه، نو دغه شان به تاسو سره هم کیږی، او په تاسو به هیڅ ظلم نهٔ کیږی،

او هغوی له الله تعالیٰ یو وخت مقرر کړے وو، نو دغه شان به تاسو لره هم یو وخت مقرریږی، او جزاء او سزا به درکړے کیږی، او د هغوی د عذاب اندازه معلومه وه (كُلَّ شَيْءٍ خَلَقْنَاهُ بِقَدَرٍ) نو ستاسو د عذاب اندازه هم معلومه ده۔ نو هر سړے دِے د خپل ځان غم وکړی۔

إِنَّ الْمُتَّقِيْنَ: اُوس د نیکانو خلقو ذِکر بیانیږی۔ چونکه مخالفین زیات وو او ضدیان وو، نو پدے وجه پدے سورت کښ یرے زیاتے بیانے شوے، او چونکه دے دپاره چه څوك نا امیده نشی، نو اُوس تقویٰ والو دپاره زیرے بیانیږی۔ چه دویٔ به په جنتونو کښ وی، چه د دویٔ خوا او شاته به نهرونه روان وی، او دویٔ به د خپل مالك الملك او قادرِ مطلق رب خواته، د هغهٔ په جوړ کړو جنتونو کښ وی چه هلته به دویٔ هیڅ لغو، بیهوده او د گناه خبره نهٔ کوی، یعنی دویٔ ته به د خپل رب نزدیکت، اعلیٰ ترین مقام او د جنت انتهائی پاکیزه ماحول ملاویږی۔

وَنَهَرٍ: ۱- دائے مفرد راوړو مراد ترے جنس دے، او د آیتونو د موافقت د وجه نه ئے مفرد راوړو۔ ددے نه مراد د جنت څلور واړه نهرونه دی، د اُوبو، د شرابو، د پیوو او د گبین۔ یعنی مختلف قسم نهرونه او قسماقسم باغونه به وی۔

۲- بعض وائی : نهر فراخیٔ او رڼا ته وائی لکه ددے نه نهار جوړ دے، او مطلب دا دے چه دویٔ باندے به شپه نهٔ راځی بلکه همیشه به په رڼا کښ وی۔ اول قول غوره دے۔ (فتح البیان)

۳- بعض وائی : نهر جمع د نَهَار ده یعنی دوی باندے به شپه نهٔ راځی۔

(رموز الکنوز فی تفسیر الکتاب العزیز ۵٤۱/۷)

فِيْ مَقْعَدِ صِدْقٍ: دا د جنت نوم دے، یعنی ځای د رشتینوالی چه انسان ته ضرر نهٔ ورکوی، (صدق کله صفت د مکان وی) نهٔ ئے هوا خرابه ده، نهٔ خاوره، نهٔ پکښ یخنی شته او نهٔ گرمی، او نهٔ پکښ د بدن کمزوری شته، او نهٔ پکښ د گناه او خفگان خبره

Scanned by CamScanner

شته.

او حاصلیږي په سبب د صدق سره نو دا اضافت د مُسَبَّب دے سبب ته.

پدے وجه جعفر صادقؒ به وئیل :

لَا يَقْعُدُ فِيهِ اِلَّا اَهْلُ الصِّدْقِ.

پدے کښې به صادقان (رشتینی خلق) وسیږي. او همدا حقه خبره ده.

عِنْدَ مَلِيْكٍ : دے کښې اشاره ده چه جنتیان ټول د الله تعالیٰ ګاونډیان دي. نو د دوی کرامت او اُوچتے مرتبے ته اشاره ده.

ملیك او مقتدر دواړه د مبالغے صیغے دي، یعنی پوره بادشاهئ او پوره تصرف او قدرت والا چه هیڅ قسم نقصان او عجز پرے نهٔ راځي او هغه ذات صرف یو الله دے. او په تنکیر کښې اشاره ده چه هیڅ شے نشته مګر هغه د الله د ملکیت او قدرت د لاندے دے او هغه په هر شي باندے پوره قدرت لرونکے دے. وبالله التوفیق.

## امتیازات د سورة القمر

۱– پدے سورت کښې (وَلَقَدْ يَسَّرْنَا الْقُرْآنَ) جمله څلور کرته ذکر شوه.

۲– انشقاق القمر (د سپوږمۍ چاودل) صرف په همدے سورت کښې ذکر شو.

۳– د تقدیر مسئله پکښې ذکر شوه.

٤– ډیر انذارات پکښې ذکر شو.

ختم شو تفسیر د سورة قمر په توفیق او رحمت د الله تعالیٰ سره.

۲٤ رجب ۱٤۳۷ هجری موافق ۳۰/٤/۲۰۱٦)

❁❁❁❁

Scanned by CamScanner

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِیْمِ ط

| آیاتها (۷۸) | (۵۵) سورة الرحمٰن مدنیة (۹۷) | رکوعاتها (۳) |
| --- | --- | --- |

سورة رحمن مدنی دے، په دے کښې اتۀ اویا آیتونه او درے رکوع دی۔

# تفسیر سورة الرحمٰن

نوم : ۱ – ددے نوم «الرحمٰن» دے۔ یعنی د مهربان ذات سورت۔ او ددے سبب صاحب د محاسن التنزیل د مهایمیؒ مفسر په حواله دا ښودلے چه په دے سورت کښې د الله تعالیٰ عظیم نعمتونه ذکر شویدی چه هغه د الله تعالیٰ د «رحمت» صفت نه راوتی دی۔

۲– دے ته عَرُوْسُ القرآن هم وائی۔ یعنی د قرآن ناوے۔ (شعب الایمان) لکه ناوے په نورو زنانو خصوصی حیثیت لری، نو دغه شان دا سورت هم په نورو سورتونو دغه شان حیثیت لری۔ انتهائی خوږ سورت دے،

مفسرین وائی چه پدے سورت کښې بلاغت هم ډیر زیات دے۔

د نازلیدو زمانه : قرطبیؒ لیکی چه دا سورت مکی دے، د حسنؒ، عروه بن زبیرؒ، عکرمةؒ، عطاءؒ او جابرؓ همدا قول دے۔

نحاسؒ د ابن عباس ؓ نه، او ابن مردویهؒ د عبد الله بن زبیر او عائشے رضی الله عنهم نه روایت کړے چه دا سورت په مکه کښې نازل شوے۔

او ابن اسحاقؒ د عروه بن زبیرؒ نه نقل کړی چه همدا هغه سورت دے چه عبد الله بن مسعود ؓ قریشو ته د قرآن اورولو دپاره د مقامِ ابراهیم مخامخ اودریدو سره لوستلے وو، او هغوئ هغه په وهلو وهلو سُور سالو کړو۔ سیوطیؒ په الاتقان کښې لیکی چه د جمهورو په نیز دا سورت مکی دے، او همدا حقه ده او بیا ئے په دلیل کښې قصه د جن

Scanned by CamScanner

ذکر کړیده (کومه چه روستو په فائده کښې راځي) او قصه د پیریانو په مکه کښې وه۔

(الاتقان فی علوم القرآن : ۱/۴۳)

خصوصیت : او د قرآن کریم دا یوائینې سورت دے چه په دے کښې الله تعالیٰ د پیریانو او انسانانو دواړو سره خبرے کړے دی، او د خپلو قدرتونو او خپلو کمالاتو او احساناتو ذکرئے کړے، او ددے د شکر کولو طرفته ئے رغبت ورکړے۔

## مناسبتونه

۱- مخکښې سورت کښې قرآن کریم ته ترغیب وو، نو دلته عامو نعمتونو ته ترغیب دے، ﴿فَبِأَيِّ آلَاءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ﴾ یعنی د الله د قرآن نه نصیحت واخلئ، او ددے نعمتونو شکریه وکړئ۔

۲- بنۀ مناسبت دا دے چه مخکښې سورت کښې یرے بیان شوے، نو دلته وائی چه د الله نه بنۀ امید ولرئ هغه ذات ډیر مهربانه دے، کله انسان په یره جوړیږی نو کله د رحمت په خبرو۔

۳- هلته ئے ویل چه جنتیان به د مَلِیكٍ مُقْتَدِر په خوا کښې وسیږی، نو سوال پیدا شو چه دغه ملیك څوك دے؟ نو دے سورت کښې فرمائی چه دغه رحمٰن ذات دے چه بندګانو سره ئے دا دا احسانات کړیدی۔

## موضوع د سورت

۱- مَعْرِفَةُ الرَّحْمٰنِ بِآلَائِهٖ وَإِنْعَامِهٖ وَإِحْسَانِهٖ فِي الدُّنْيَا وَالآخِرَةِ۔

یعنی الله وپیژنئ د هغۀ په نعمتونو او احساناتو سره په دنیا او آخرت کښې۔ یعنی د الله په دنیا او آخرت کښې دومره احسانات دی چه پدے سره الله پیژندلے شی۔ او دا لوی نعمتونه ئے دیرش ذکر کړیدی۔

۲- دے ته نزدے دویم مقصد :

بَيَانُ رَحْمَةِ اللّٰهِ عَلَى الْعِبَادِ فِي الدُّنْيَا وَالآخِرَةِ لِتَوْلِيْدِ الرَّجَاءِ۔

د امید د پیدا کولو دپاره الله تعالیٰ په خپلو بندګانو خپل دنیاوی او اُخروی رحمتونه او نعمتونه ذکر کوی۔ څکه چه څوك د چا نه اُمید ساتی نو د هغۀ خوا خوا ته کیږی، او چه امید نۀ وی نو بیا پرے پرواه نۀ ساتی۔ او څوك چه د الله د ذات نه امید ساتی، نو بیا د

Scanned by CamScanner

هغهٔ بندګي کوي۔

خلاصه : په سورت کښې درې رکوعات دي، په اوله رکوع کښې روحاني او جسماني نعمتونه ذکر شويدي۔ په دويمه رکوع کښې تخويفات اُخرويه (د آخرت عذابونه) ذکر شويدي، او په دريمه رکوع کښې تول نعمتونه ذکر دي۔

نو سوال پيدا شو چه عذابونه ذکر کول څرنګه نعمت شو؟

جواب دا دے چه يو د عذاب نازلول دي، او بل د عذاب ذکر کول دي، نو عذاب ذکر کول او په هغې باندې خبر ورکول لوی نعمت او رحمت دے، ځکه که الله دا خبر ورنکړې دا به رحمت نهٔ وو، مثلاً يو تن کوهي ته غورزيږي او تهٔ هغهٔ ته د کوهي هيبت بيان کړې چه پدې لار مهٔ څه ګنې لوی کوهي ته غورزيږې چه هلاك به شې، نو دا د هغه دپاره لوی رحمت شو، او که تا خبر ورنکړو نو بيا تهٔ د هغهٔ دپاره غضب شوې، ځکه چه هغه به پکښې هلاك شي۔

نو الله چه کوم عذابونه مونږ ته ذکر کوي، دا هم د هغهٔ خصوصي رحمت دے، دے دپاره چه بنده ويريږي نو د آخرت دپاره تيارے وکړي نو کامياب شي او د الله په رحمتونو ورواوړي۔

او ددے وجه نه اهل علم وائي :

[اَلتَّخْوِيْفُ سَوْطُ اللّٰهِ تَعَالٰى يُقَوِّمُ بِهٖ عِبَادَهٗ]۔

تخويف (يره ورکول) د الله تعالىٰ چابك دے چه پدې سره خپل بندګان جوړوي۔

او دا سورت د رحمٰن لفظ تشريح کوي چه د الله رحمتونه فلاني فلاني دي۔ نو پدے کښې مَعْرِفَةُ الرَّحْمٰنِ بِسُوْرَةِ الرَّحْمٰنِ دے۔ يعنى که د رحمٰن ذات معرفت کوے نو پدے سورت سره ئے وکړه۔

**فائده** : جابر بن عبد الله رضى الله عنهما فرمائي : رسول الله ﷺ (يوه ورځ) صحابه کرامو ته راووتو او په هغوی باندې ئے سورت رحمٰن د اول نه تر آخر پورې ولوستو نو هغوی غلي ناست وو، نو وے فرمايل :

[لَقَدْ قَرَأْتُهَا عَلَى الْجِنِّ لَيْلَةَ الْجِنِّ فَكَانُوْا اَحْسَنَ مَرْدُوْدًا مِنْكُمْ]

په کومه شپه چه زهٔ د پيريانو خوا ته ورغلے وم نو ما دا سورت په هغوی ولوستلو هغوی ستاسو نه ښهٔ جواب راکولو۔ زهٔ چه به کله (فَبِاَيِّ آلَاءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ) ته راغلم نو

Scanned by CamScanner

هغوی به وئیل :

[لَا بِشَيْءٍ مِنْ نِعَمِكَ رَبَّنَا نُكَذِّبُ فَلَكَ الْحَمْدُ]

اے الله ! مونږ ستا د هیڅ نعمت نه انکار نهٔ کوو خاص ستا دپاره د کمال صفتونه دی۔

(احمد : ١٦٦٤٦ والترمذی: ٣٢٩١ والحاکم : ٢/٥١٥ ح ٣٧٦٦) باسناد حسن- احمد شاکرؒ والالبانیؒ وابن کثیرؒ وصحح السیوطیؒ اسناده من حدیث ابن عمر) وقال الحاکم والذهبی اسناده صحیح رجاله ثقات رجال الصحیح۔

گویا که رسول الله ﷺ صحابه کرامؓ ته ترغیب ورکړو چه تاسو له پکار دی چه جواب راکړئ۔ قرآن له جوابونه ورکول د زړونو د ژوند او د محبت دلیل وی۔ او صحابه کرامؓ به ډیر ادب کولو ځکه به غلی ناست وو۔

مقرر له جواب ورکول او د هغهٔ په بیان کښ سبحان الله وئیل بهتر دی، دے دپاره چه هغهٔ ته پته ولګی چه زما بیان خلقو له خوند ورکړو۔ بعض خلق بیان ته داسے ناست وی لکه مړه وی۔ د مقرر بیان د خلقو د ناستے مطابق کیږی، که هغوی شوق کښ وی، بیان هم ډیر مزیدار کیږی، او که د هغوی شوق نهٔ وی، نو د مقرر بیان د هغوی نه تنبیږی۔ دا جواب په نفلی مونځ کښ هم ورکولے شی۔

| اَلرَّحْمٰنُ ﴿١﴾ عَلَّمَ الْقُرْآنَ ﴿٢﴾ خَلَقَ الْإِنْسَانَ ﴿٣﴾ |
|---|
| بیحده مهربان ذات۔ تعلیم ئے ورکړیدے د قرآن۔ پیدا کړے ئے دے انسان۔ |
| عَلَّمَهُ الْبَيَانَ ﴿٤﴾ |
| خودلے ئے دے دهٔ ته وضاحت د مقصد خپل۔ |

**تفسیر**: اُوس د رحمٰن ذات تعارف کوی، او ددے سورت شروع ئے د رحمٰن په نوم سره وکړه، پدے کښ د الله بے انتهاء رحمتونو او بے حده احساناتو ته اشاره ده، او دا د الله پورے خاص نوم دے ځکه چه بے حده مهربان صرف او صرف همدغه یو ذات دے۔ او د هغه نعمتونو نه اول روحانی نعمتونه ذکر کړیدی، او بیا دنیوی جسمانی۔

په دے نعمتونو کښ ډیر لوی نعمت قرآن کریم دے، چه په دے کښ الله تعالیٰ په خپلو بندګانو باندے رحم کولو دپاره پوره صراحت او وضاحت سره هغه ټولے خبرے بیان کړی

دی کومو سره چه هغه خوشحالیږی، یا کومو سره چه هغه ناراضه کیږی، دے دپاره چه انسان د خپل رب د خوشحالئ کار وکړی، او د هغه کارونو نه لرے شی چه په هغے هغه ناراضه کیږی۔

او په الرحمن نوم سره شروع کولو کښ یو مقصد د مکے په مشرکانو رد کول دی چه هغوئ به د الله تعالیٰ ددے نوم نه انکار کولو، او د دوئ دا باطل گمان رد کول هم دی چه محمد (ﷺ) ته ددے قرآن کریم ښودنه بل کوم انسان کوی۔ الله تعالیٰ وفرمایل چه دا خو د رحمٰن خبرے دی چه هغهٔ دا خپل بنده او رسول محمد ﷺ ته ښودلی دی۔

عَلَّمَ الْقُرْآنَ: ددے یو مفعول پټ دے۔ یعنی جبریل ؑ ته ئے قرآن وخودلو او بیا جبریل ؑ محمد ﷺ ته، او دارنگه خپل نبی ته ئے قرآن وخودو او بیا هغه خپل امت ته وخودو۔ یا انسان ته ئے تعلیم ورکړو او همدا خبره غوره ده۔

او دا آیت ښکاره دلیل دے چه قرآن کریم د ټولو نعمتونو سردار دے، پدے سره د دواړو جهانونو نیکبختی حاصلیږی او دا د هر قسم خیرونو چینه ده۔

او په علم القرآن کښ اشاره ده چه قرآن داسے کتاب دے چه خلق ئے زده کولے او لوستلے شی، داسے کتاب نهٔ دے چه د الله خبرے دی، او درنے دی او انسانان ئے نشی لوستلے، او نهٔ ئے یادولے شی۔

خَلَقَ الْإِنسَانَ : پدے کښ دوه نعمتونه بیانیږی، یو د انسان د پیدائش نعمت، ځکه چه ټول کارونه ددهٔ د پیدائش سره تړلے شویدی۔ یعنی الله تعالیٰ انسان د ټولو نه ښائسته شکل او صورت کښ پیدا کړو، او دویم نعمت دا چه دهٔ له ئے د خبرو طاقت ورکړو، او په دے سره ئے د تمامو حیواناتو نه جدا او ممتاز کړو۔ که چرے دهٔ له دا طاقت نهٔ وے ورکړے شوے نو په دهٔ او نورو حیواناتو کښ به هیڅ فرق پاتے شوے نهٔ وے۔ دابه هم د نورو حیواناتو پشان صرف د غوښے، پوست او وینے او څرمنے مجموعه وے، او د هغوئ پشان به په زمکه کرځے راگرځیدے او بیا به مړ کیدے۔

د انسان په بدن کښ توپونه و هونکے زړهٔ، عقل او هوش او قوتِ گویائی ده چه هغے دهٔ له د اشرف المخلوقات درجه ورکړے۔

خَلَقَ الْإِنسَانَ ئے په مخکښ باندے عطف نهٔ کړو ځکه چه دا کلام مستأنف دے، او جواب د سوال دے چه د قرآن اهل څوك دی؟ نو جواب وشو چه جنس انسان۔

Scanned by CamScanner

عَلَّمَهُ الْبَيَانَ: بیان نه مراد د نطق (خبرو) طاقت دے، یعنی دهٔ په ژبه او شوندو او مرئ کښ ئے داسے طاقت کیخودو چه پدے سره خپل مقصد ډیره په آسانه طریقه ښکاره کولے شی، او قرآن هم لوستلے شی، که خبرے نهٔ وے، نو ډیر زیات مشکلات به وے، د هر مقصد دپاره اشاره هم نهٔ کافی کیږی، او که لیکل وے نو څو مره کاغذونه به په ژوند کښ ډک کیدے۔

او پدے کښ اشاره ده چه الله ستا ژبه گویا کړیده نو دا کتاب پرے ولوله، او دا پرے اُوچلوه۔ او پدے ژبه د قرآن کریم بیان وکړه۔

او بیان د هر قسم لغت ته هم وائی چه په هغے سره خبرے کوی۔

| |
|---|
| اَلشَّمْسُ وَالْقَمَرُ بِحُسْبَانٍ ﴿٥﴾ وَالنَّجْمُ وَالشَّجَرُ يَسْجُدَانِ ﴿٦﴾ |
| او نمر او سپوږمئ په حساب سره (روان) دی۔ او بوټی (او ستورے) او ونے سجدے |
| وَالسَّمَاءَ رَفَعَهَا وَوَضَعَ الْمِيزَانَ ﴿٧﴾ أَلَّا تَطْغَوْا |
| کوی۔ او آسمان الله پورته کړیدے او ایخے ئے ده تله۔ (ولیلی ئے دی) چه زیاتے مهٔ کوئ |
| فِي الْمِيزَانِ ﴿٨﴾ وَأَقِيمُوا الْوَزْنَ بِالْقِسْطِ وَلَا تُخْسِرُوا الْمِيزَانَ ﴿٩﴾ |
| په تول کښ۔ او برابر کړئ تول په انصاف سره او کمے مهٔ کوئ په تول کولو کښ۔ |

**تفسیر**: اُوس نور نعمتونه بیانیږی، یعنی بعض د نعمتونو د الله تعالیٰ نه نمر او سپوږمئ دی، هغهٔ دا د انسانانو د فائدے لپاره د یو خاص حساب او نظام پابند جوړ کړی دی، او ددے د رفتار دپاره ئے منزلونه مقرر کړی دی۔ دواړه د الله د مقرر کړی حساب او نظام مطابق په خپلو منازلو کښ گرځی، او په هیڅ حال کښ ددے نه تجاوز نهٔ کوی۔ او د دوئ ددے مقرر او محدود رفتار د وجے نه په اوقاتو او موسمونو کښ تبدیلی راځی، او خلق د گینتو، ورځو، هفتو، میاشتو او کلونو حساب معلوموی۔ دا شمسی او قمری نظام هم په خپلو بندگانو باندے د الله تعالیٰ رحمت دے۔

بِحُسْبَانٍ: ۱ – دا مصدر دے، یعنی په مقرر حساب سره روان دی۔

۲ – ضحاكؒ وائی: اَیْ بِقَدَرٍ۔ یعنی په اندازه مقرر دی۔

اخفشؒ وائی: حسبان جمع د حساب ده لکه شُهُبٌ او شُهْبَانٌ په شان۔ او په سورة

Scanned by CamScanner

الکهف کښې ددے معنیٰ په عذاب سره ذکر شویده، هغه دلته نهٔ ده مراده۔ دلته ئے دغه دوه معانی مراد دی۔

او پدے کښې رد دے په هغه مشرکانو چه هغوی د نمر یا سپوږمیٔ عبادت کوی۔

وَالنَّجْمُ وَالشَّجَرُ : بل نعمت د الله تعالیٰ د آسمان ستوری دی۔ او د خپل رب په حضور کښې د دویٔ سجده، د دویٔ راختل دی، او شجر ونے دی، او د وُنو سجده داده چه دا د الله د مرضیٔ مطابق میوه ورکوی، چه د الله بندګان ئے استعمالوی۔ او د هر شی خپله خپله سجده وی۔ (قاله الحسنؒ ومجاهدؒ)

یا د نجم نه مراد کیاه ګانے او بوټی دی، او د شجر نه مراد ونے دی، یعنی چه پونډیٔ لری، دا ټول د الله په مشیت او د هغهٔ د ارادے په کُلِّیْ طور سره تابع دی، او لکه څنګه چه مومن انسان د خپل رب په حضور کښې سجده کوی، دغه شان دا بوټی او وُنے د خپل خالق د مشیت او ارادے تابع وسیږی، نو دا داسے دی لکه ګویا که هر وخت د هغهٔ په حضور کښې سر بسجود دی۔

مفسرین لیکی چه نمر او سپوږمیٔ سماوی اَجرام (آسمانی جُثّے) دی، او وُنے او بوټی په زمکه وی۔ دے وجے نه نمر او سپوږمیٔ نه پس د وُنو بوټو ذکر کول بطورِ تقابل مناسب دی، چه دے ټولو د خپل خالق د مشیت او ارادے مخے ته سر ښکته کړے دے۔

وَالسَّمَاءَ رَفَعَهَا : الله تعالیٰ په زمکه کښې د موجودو مخلوقاتو دپاره آسمان چت جوړ کړو، او هغه ئے اُوچت کړو، چه دا د الله د مرضیٔ تابع دے، او د مخلوقاتو په سرونو باندے نهٔ راغورزیږی۔ او که دا ئے نهٔ وے پورته کړے، او ددے ترمینځ ئے هواء نهٔ وے روانه کړے نو انسانان به د غم نه مرهٔ وے۔

وَوَضَعَ الْمِيْزَانَ : یعنی الله تعالیٰ د خلقو ترمینځ تله مقرر کړیده دے دپاره چه دویٔ خپل مینځ کښې انصاف وکړی، که تله نهٔ وے نو نظام به څومره خراب وے، عام نظام په تله روان دے۔ دا بل نعمت دے، ددے حاصل معنیٰ د عدل او انصاف ده۔

یعنی الله تعالیٰ د خپلو بندګانو ترمینځه په تمامو اقوالو او افعالو کښې عدل او انصاف لازم ګرځولے دے۔

او دلته د [ مِيْزَان] نه صرف تله مراد نهٔ ده، بلکه هر هغه پیمانه ده چه هغے سره د یو شیٔ، زمکے، مقدار او په دنیا کښې د موجودو نورو مادی او معنوی شیانو او حقائقو

Scanned by CamScanner

پیمائش کیږي، او د کومو په ذریعه چه انسانان خپلو کښې عدل او انصاف قائموي، او په دے کښې په زیاتی کمی کولو سره عدل او انصاف پائیمال کوي.

حسن بن فضل وائی چه د میزان نه مراد عقل دے.

او بعض وائی چه ددے نه مراد قرآن کریم دے. دا بعید تفسیرونه دي، او ددے ځای مناسب نهٔ دي.

اَلَّا تَطْغَوْا: اَیْ اَمَرَکُمْ. یا/ لِاَجْلِ اَنْ لَّا تَطْغَوْا. یعنی الله تعالیٰ دا حکم کړیدے او تله ئے دے دپاره نازله کړیده چه خلق په حقوقو او معاملاتو کښې د حد نه تجاوز ونهٔ کړي، ګنے د فساد دروازے به پرانستے شي، ځکه د کومے معاشرے نه چه عدل او انصاف ختم شي، نو هر طرفته افراتفري او ګډوډي خوریږي، او د ژوند په هر اړخ کښې فتنه او فساد عام کیږي. نو مطلب د آیت دا شو چه تله د الله نعمت دے نو دا به غلطه نهٔ استعمالوے.

وَاَقِیْمُوا الْوَزْنَ: مخکښې ئے ووئیل چه تله ددے مقصد دپاره راغلے ده چه د چا حقوق ونهٔ وهئ نو دلته پرے حکم کوي چه وزن (تول) د څیزونو په انصاف سره کوئ. یعنی مقصد ئے د تلے د رالیږلو حکمت بیان کړو نو دلته په هغے باندے امر کوي.

بعض وائی: ددے مطلب دا دے چه (لَاتَدَعُوا التَّعَامُلَ بِالْوَزْنِ بِالْعَدْلِ) یعنی تاسو خپل مینځ کښې په انصاف سره وزن کول مهٔ پریدئ بلکه دا مضبوط راونیسئ.

وَلَا تُخْسِرُوا الْمِیْزَانَ: یعنی په تول کښې د چا مالونه مهٔ کموئ. او ظلم په خلقو مهٔ کوئ. او دا حکمونه ئے بار بار وکړل دپاره د زیات تاکید.

امام شوکانیؒ لیکی چه الله تعالیٰ اول د تلے د برابر ساتلو حکم وکړو، بیا ئے د زیاتی تللو او د تلے بنکته کولو او د حد نه د تجاوز کولو نه منع وکړه، او بیائے د کم او نیمګړی وزن کولو نه منع وکړه، ګویا که په هر حال کښې په عدل او انصاف باندے د قائم پاتے کیدو حکم ئے وفرمایلو.

او میزان ئے درے کرته په اسم صریح سره ذکر کړو، یو د زیات تاکید دپاره، دویم د آیتونو د فواصلو برابرولو دپاره، او دریم دا چه د اول میزان نه آله د تللو (یعنی تله) مراد ده.

او د دویم نه معنیٰ مصدري مراد ده یعنی تول کول. او دریم په معنیٰ د مفعول دے یعنی موزون. یعنی کوم شے تللے شي.

او بیا د قرآن او د میزان مناسبت وګوره چه په قرآن کښې علم دے، او په میزان کښې عدل

Scanned by CamScanner

دی، او کله چه علم او عدل راجمع شی، نو کمال پیدا کیږی، نو الله تعالیٰ بندګانو ته د کمال طریقه ورخودلے ده چه قرآن زده کړئ او انصاف کوئ نو کمال ته به ورسیږئ۔
دویم دا چه لکه څرنګ چه په تله باندے انصاف کیږی، او پردے او خپل حق پرے معلومیږی، نو دغه شان په قرآن کریم باندے هم خپل ځان او نور خلق وتلئ او معلوم ئے کړه، عقیدے او نظریئے د خلقو پرے معلومے کړه۔

| وَالْأَرْضَ وَضَعَهَا لِلْأَنَامِ ﴿١٠﴾ فِيهَا فَاكِهَةٌ وَّالنَّخْلُ ذَاتُ الْأَكْمَامِ ﴿١١﴾ |
|---|
| او زمکه الله ایخے ده دپاره د خلقو۔ پدے کښ میوے دی او کجورے کسوړو والا۔ |
| وَالْحَبُّ ذُو الْعَصْفِ وَالرَّيْحَانُ ﴿١٢﴾ فَبِأَيِّ آلَاءِ رَبِّكُمَا |
| او دانے دی بوسو والا او خوشبوئی دی۔ نو دکوم یو د احساناتو د رب خپل نه |
| تُكَذِّبَانِ ﴿١٣﴾ |
| انکار کوئ تاسو۔ |

**تفسیر**: په اوم (۷) آیت کښ ئے د آسمان پورته والے نعمت ذکر کړو، نو دلته اُوس د زمکے خوریدلو نعمت بیانوی یعنی هغهٔ زمکه په اوبو باندے خوره کړے ده، او په دے باندے ئے د غرونو میخونه اووهل او هغه ئے مضبوطه جوړه کړه دے دپاره چه د هغهٔ قِسما قِسم مخلوقات په دے باندے ژوند تیر کړے شی۔
لِلْأَنَامِ: انام مخلوقاتو ته وائی۔ چه انسانان او پیریان دواړه پکښ داخل دی۔
مجاهدؒ او قتادهؒ وائی: اَنام نه مراد هر ذی روح دے۔ او بعضو ئے وجه دا بیان کړیده چه دوی ته اَنام ځکه وائی چه په دوئ باندے نَوم یعنی خوب راځی۔
فِيهَا فَاكِهَةٌ: یعنی هغهٔ په زمکه کښ مختلف قِسم میوے پیدا کړیدی، او خصوصًا کهجورے، چه هغه په غلافونو کښ رانغښتی وی، او مختلف قِسم دانے پیدا کیږی، چه هغه په پاڼړو او غونچکونو کښ انغښتی وی۔ دانے د انسانانو خوراك جوړیږی، او بُهوس د دوئ څناور خوری۔ نو د فاکهے نه مراد جنس میوه جات دی۔ او کجوره ئے پکښ د زیاتو فائدو د وجه نه خصوصی ذکر کړه۔ او د عربو په زمکه کښ زیاته وه۔
ذَاتُ الْأَكْمَامِ: جمع د كِمّ ده، کسوړے ته وئیلے شی۔

Scanned by CamScanner

وَالْحَبُّ ذُو الْعَصْفِ وَالرَّيْحَانُ: حب دانے دی او العصف: هغه پاڼې د فصلونو چه وچې شی او څاروی ئې خوری۔ دا هم نعمت دے۔ دارنګه د ونو او فصلونو پاڼې چه د میوے د پخلی نه مخکښې ئې خلق شوکوی، او فائدے ترے اخلی۔

رَيْحَان: کشمالو ته وائی، مراد ترے هر قسم خوشبویانے دی، یعنی الله په زمکه کښې قسماقسم خوشبویانے پیدا کړیدی چه انسان د هغے نه مزے حاصلوی۔ دارنګه ریحان رزق ته هم وائی۔

فَبِأَيِّ آلَاءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ: مخکښې ئې د پیریانو او انسانانو دپاره رنګا رنګ نعمتونه ذکر کړل، نو اُوس دوئ سره خبرے کوی، او فرمائی چه تاسو د خپل رب کوم کوم نعمتونه دروغژن ګنړئ۔ دا بے شماره نعمتونه تاسو نه غواړی چه په زړۀ سره د هغۀ د احساناتو اقرار وکړئ، او په ژبه او عمل سره ددے شکر اداء کونکی اُوسئ۔ او دا جمله پدے سورت کښې (۳۱) کرته ذکر ده۔

امام شوکانیؒ د قُتیبیؒ قول نقل کړے دے چه الله تعالیٰ په دے سورت کښې د خپلو نعمتونو په ذکر کولو سره انسانانو او پیریانو ته ددے یادونه کړے ده، او د هر دوو نعمتونو ذکر کولو ترمینځه ئې د ﴿فَبِأَيِّ آلَاءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ﴾ آیت، یعنی (اے پیریانو او انسانانو! تاسو د خپل رب کوم کوم نعمتونه دروغژن ګنړئ) په ذریعه بار بار د خپلو نعمتونو یادونه وکړه، او دوئ ته ئې تنبیه ورکړه، لکه څنګه چه یو انسان په چا باندے بار بار احسان کوی، او هغه کس بار بار احسان هیروی، نو دا انسان هغۀ ته وائی چه آیا تاته یاد نۀ دی چه تۀ محتاج او فقیر وے، نو ما تاله پیسے درکړے او مالداره مے کړے، آیا تۀ ددے نه انکار کولے شے؟ آیا تاته یاد دی چه تا سره سورلئ نۀ وه نو ما تاله سورلی درکړه، آیا تۀ ددے نه انکار کولے شے؟ او په داسے مقام کښې تکرار بهتر وی۔

حسین بن فضلؒ فرمائی چه ددے آیت د تکرار نه مقصد بندګانو له تنبیه ورکول او د دوئ غفلت لرے کول دی، دے دپاره چه دوئ خپل رب ته رجوع وکړی، او په هر حال کښې د هغۀ شکر اداء کړی۔ (فتح البیان)

امام بغویؒ لیکلی دی چه دا آیت یو دیرش ځله ذکر شوے دے، او ددے تکرار نه مقصد د بندګانو په ذهن کښې دا خبره کینول دی چه دا نعمتونه الله ورکړی دی، او هغه ددے په مقابله کښې د دوئ له اړخه د ذکر او شکر حقدار دے۔

Scanned by CamScanner

او پدے کښې دے ته هم اشاره ده چه اے انسانانو او پیریانو ! تاسو داسے نعمت وښایئ چه هغه الله نهٔ وی پیدا کړے، او ستاسو باطلو معبودانو پیدا کړے وی، او د هغے د وجه نه تاسو هغوی لره شریکان جوړوئ او د هغوی عبادتونه کوئ۔

تُكَذِّبَانِ: تکذیب په ډیرو طریقو کیږی، یو دا چه هغه نعمت نعمت نهٔ ګنړی لکه د قرآن کریم نزول۔ دویم دا چه نعمت د الله تعالیٰ د طرفنه نهٔ ګنړی۔

دریم دا چه په هغه نعمت پیدا کولو کښې د الله تعالیٰ سره شریك ګنړی لکه ظاهری دنیوی نعمتونه۔

نو تکذبان معنیٰ په تَجْحَدَانِ سره هم کیږی۔ یعنی تاسو انکار کوئ۔

| خَلَقَ الْإِنْسَانَ مِنْ صَلْصَالٍ كَالْفَخَّارِ ﴿١٤﴾ وَخَلَقَ |
|---|
| پیدا کړے ئے دے انسان د کړنګار کونکے خټے نه پشان د ټھکری۔ او پیدا کړے ئے دے |
| الْجَانَّ مِنْ مَّارِجٍ مِّنْ نَّارٍ ﴿١٥﴾ فَبِأَيِّ آلَاءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ ﴿١٦﴾ |
| جان (د پیریانو پلار) د ګډوډ اُور نه۔ نو د کوم یو د احساناتو د رب خپل نه انکار کوئ تاسو۔ |

**تفسير:** پدے کښې ذکر د خاص نعمت دے روستو د عام نه، یعنی په (۳) آیت کښې عام انسان مراد وو، او پدے آیت کښې خاص آدم ؑ مراد دے،

او دا اَنْفُسِی نعمت دے روستو د آفاقی نعمتونو نه۔

او په آدم ؑ باندے د پیدائش نعمت دا په نورو انسانانو باندے هم دے، او دغه شان د پیریانو پلار د پیدائش نعمت په ټولو پیریانو دے، نو پدے کښې تمهید دے زجر او توبیخ ته په شکر نهٔ ادا کولو۔

یعنی الله تعالیٰ پیریان او انسانان پیدا کړل، او په دوئ کښې ئے قِسما قِسم صلاحیتونه کیښودل، په دے سره ئے په دوئ باندے ډیر احسانات کړی دی، چه ددے غوښتنه دا ده چه دا دواړه د خپل خالق شکر ګذار بندګان جوړ شوی وے، لیکن دوئ ناشکری وکړه۔

الله تعالیٰ آدم ؑ د داسے خاورے نه پیدا کړو چه هغه اول عامه خاوره وه، بیا خټه شوه، بیا وخت تیریدو سره ټیکرکے جوړ شو۔ دے وجے نه قرآن کریم کله وائی چه انسان د مَنِی نه پیدا دے، کله وائی چه ددهٔ پیدائش د ټنګار کونکے خاورے نه دے، او کله وائی چه ددهٔ

Scanned by CamScanner

پیدائش د تیکرکی نه دے۔
او د تهولو نه اولنے پیرے الله تعالیٰ د اُور د لمبے نه پیدا کړے دے۔ الله تعالیٰ دواړه مخاطب کړي او ورته فرمائیلي ئے دي چه تاسو د خپل رب کوم کوم نعمتونه دروغژن گنړئ۔
صَلۡصَالٍ: هغه خټه چه اُوچه شي کړنګ کوي۔
كَالۡفَخَّارِ: هغه اُوچه خټه چه په اُور کښې سرۀ شي هغے ته تیکرے او کودنړے وائي۔ او کالفخارئے ویل اشاره ده چه دغه خټے ته اُور نۀ وو رسیدلے۔
د انسان پیدائش ترتیب داسے دے چه اول کښې ئے خاوره راجمع کړه، بیا ئے په هغے کښې اُوبه واچولے، او ډیر وخت ئے وساتله نو د هغے نه ئے ښلیښناکه خټه جوړه کړه، بیا پړے ډیر وخت تیر شو نو حمأ مسنون ترے جوړ شو یعني توره بد بویه خټه، بیا چه کله وچه شوه نو صلصال کالفخار جوړ شو۔
خطیبؒ وائي: دلته ئے د پیدائش آخر ذکر کړو ځکه چه دا د رحمانیت سره ډیر مناسب دے، او په نورو ځایونو کښې کله ابتداء ذکر کوي او کله مینځ۔ نو زمکه ئے مور ده، او اُوبه ئے پلار دے چه دواړه د هواء سره یو ځای شول چه هغے کښې گرمائش وو او هغه د جهنم براس وو، نو د خاورے نه ئے جسد او نفس جوړ کړو، او د اُوبو نه ئے روح او عقل او د اُور نه ئے ددۀ تیزي او ددۀ د گمراهئ ځایونه طلب کول دي، او د هواء نه ددۀ حرکت جوړ دے نو ددۀ په نیکو او بدو صفتونو کښې اوړیدل راوړیدل دي۔
خو غالب ددۀ په پیدائش کښې خاوره وه نو ځکه هغه ته منسوب شو اګرکه ددۀ پیدائش د څلورو عناصرو نه شوید ے۔ (یعني خاوره، اُور، اُوبه، هواء) لکه څنګه چه جان هم د څلورو عناصرو نه پیدا دے لیکن غالب ددۀ په پیدائش کښې اُور دے نو هغے ته منسوب شو۔ (فتح البیان)
مِنۡ مَّارِجٍ مِّنۡ نَّارٍ: یعني د مختلط (ګډوډ) اُور نه پیدا شوید ے۔ او مارج د اُور هغه لمبه ده چه درے رنګونه پکښې ښکاره کیږي سور، زیړ او شین او ددے سره لوګے ګډوډ نۀ وي، او دا ډیر تیز اُور وي لکه په سورة الحجر (۲۷) آیت کښې ئے مِنۡ نَّارِ السَّمُوۡمِ ویلے دے۔
پدے وجه د پیریانو په فطرت کښې دغه شان حرکت او ډیر ګرزیدل او اختلاط دے۔
او په دوئ باندے د اُور نه پیدا کول نعمت دے ځکه چه اُور کښې پورته والے او الوتل دي او پیریان هم په هواء باندے الوزي، په لږ وخت کښې ډیر مزلونه کولے شي۔

Scanned by CamScanner

او مارج : خالص اُور ته / او د اُور نه راجدا شوے صفا لمبے او شعلے ته هم وائی۔
جو هریؒ وائی : ﴿مَارِجٍ مِنْ نَارٍ﴾ هغه اُور دے چه د هغے لوگے نهٔ وی۔

| رَبُّ الْمَشْرِقَيْنِ وَرَبُّ الْمَغْرِبَيْنِ ﴿۱۷﴾ فَبِأَيِّ آلَاءِ رَبِّكُمَا |
| --- |
| رب د دوه مشرقونو او رب د دوو مغربونو دے۔نو د کوم یو د احساناتو د رب خپل نه |
| تُكَذِّبَانِ ﴿۱۸﴾ مَرَجَ الْبَحْرَيْنِ يَلْتَقِيَانِ ﴿۱۹﴾ |
| انکار کوئ تاسو۔ شریك ئے روان کړیدی دوه دریابونه چه یو بل سره یو ځائے چلیږی |
| بَيْنَهُمَا بَرْزَخٌ لَا يَبْغِيَانِ ﴿۲۰﴾ فَبِأَيِّ آلَاءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ ﴿۲۱﴾ يَخْرُجُ |
| په مینځ د دواړو کښې یوه پرده ده چه یو بل باندے زیاتے نهٔ کوی۔ را اُوځی |
| مِنْهُمَا اللُّؤْلُؤُ وَالْمَرْجَانُ ﴿۲۲﴾ فَبِأَيِّ آلَاءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ ﴿۲۳﴾ |
| د دواړو نه ملغرلے او مرجان۔ نودکوم یو د احساناتو د رب خپل نه انکار کوئ تاسو۔ |

**تفسیر**: الله تعالیٰ د هر هغه شئ رب دے چه په هغے باندے نمر او سپوږمۍ، او نور روښانه ستوری راخیژی او ډوبیږی۔
او ددے په ختلو او ډوبیدلو کښې د پیریانو او انسانانو دپاره بے شماره فائدے دی، لکه د موسمونو بدلیدل، او په هر موسم کښې موندلی شوی نعمتونه۔ او د هواء برابریدل، نو اے پیریانو او انسانانو ! تاسو د خپل رب د کومو کومو نعمتونو نه انکار کوئ ؟!۔
مَشْرِق: ځای د راختلو د نمر ته وائی۔ او مغرب د نمر د پریوتو ځای۔
او دا یو دے خو تشنیه ئے راوړه ځکه چه د اُوړی او ژمی مشرقونه جدا جدا وی، او دغه شان مغربونه هم۔
یا یو مشرق د فجر دے (یعنی د صبا د راختلو) او بل مشرق د شفق دے (د ماښام سرخی راختل) او یو مغرب د نمر دے او بل مغرب د شفق دے۔ (ابن عباسؓ)
مَرَجَ الْبَحْرَيْنِ : مرج : اَلتَّخْلِيَةُ وَالْإِرْسَال ته وائی۔ یعنی آزاد پریخودل او خوشے کول دی۔ یعنی الله تعالیٰ د خوږو او ترخو اُوبو دوه سمندرونه یو ځائے روان کړی دی، دواړه په یو ځائے بهیږی او هیڅ مجال نشته چه دواړه په یو بل باندے زیاتے وکړی، او د یو بل

Scanned by CamScanner

خاصیت او خوبي ختمه کړي. دیو اوبهٔ خوږې وي چه هغه انسان څکي، او په هغې سره خپلې وُنې او پټي خړوبه کوي.

او د بل اوبهٔ ترخې وي چه د هغې په وجه هواء خوشگواره (مزیداره) وي، او ماهیان، ملغلرې او مرجان پیدا کیږي، او ملغلرې او مرجان اگرکه د تریخ سمندر نه را اوځي، لیکن چونکه د دواړو سمندرونو گډون او په خپلو کښې د دوئ دواړو د ملاویدو دخل دے، دے وجے نه وئیلے شوي دي چه ملغلرے او مرجان د دواړو سمندرونو نه راوځي. نو اے پیریانو او انسانانو! تاسو د خپل رب د کومو کومو نعمتونو نه انکار کوئ؟!

**اَلْبَحْرَيْنِ**: ددے نه مراد عام دریابونه د دنیا دي لکه چه مخکښې تیر شو، خوږے اُوبه غالباً د آسمان نه راوریږي، او د زمکے دریابونو سره یو ځاي کیږي، او د زمکے اُوبهٔ ترخے وي.

بعضو وئیلي دي چه ددے نه مراد د فارس او روم دوه دریابونه دي.

او بعض وائي چه د مشرق او مغرب دوه دریابونه دي.

او بعض وائي: یو دریاب د آسمان، او بل دریاب د زمکے دے. اول قول غوره دے.

**مِنْهُمَا**: ملغلرے او مرجان په دواړو دریابونو کښې شته لیکن کوم ځاي چه د دواړو دریابونو اختلاط او گډون وي نو هلته دا څیزونه زیات ملاویږي.

او بعض وائي چه دا دوه دریابونه دي چه د یو نه ملغلرے او د بل نه مرجان پیدا کیږي. لیکن ظاهر دا ده چه د دواړو نه پیدا کیږي لکه (مِنْهُمَا) لفظ پرے دلیل دے.

**اَللُّؤْلُؤُ وَالْمَرْجَانُ**: لولؤ عامے ملغلرے دي، او مرجان هغه سرے کونجکے دي.

(ابن مسعود ﷺ)

او فراءٔ او ابن عباسؓ وائي چه لؤلؤ غټے ملغلرے دي او مرجان وړے.

| وَلَهُ الْجَوَارِ الْمُنْشَآتُ فِي الْبَحْرِ |
|---|
| او خاص د الله په اختیار کښې دي روانے کشتۍ چه ډکے کړے شویدي په دریاب کښې |
| كَالْأَعْلَامِ ﴿٢٤﴾ فَبِأَيِّ آلَاءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ ﴿٢٥﴾ كُلُّ مَنْ |
| پشان د غرونو. نو د کوم یو د احسانانو د رب خپل نه انکار کوئ تاسو. هر هغه څوک |

Scanned by CamScanner

| عَلَيْهَا فَانٍ ﴿٢٦﴾ وَيَبْقٰى وَجْهُ رَبِّكَ |
|---|
| چه په زمكه باندې دي فنا كيدونكي دي۔ او باقي به پاتې وي مخ د رب ستا |
| ذُو الْجَلَالِ وَالْإِكْرَامِ ﴿٢٧﴾ فَبِأَيِّ آلَاءِ رَبِّكُمَا |
| چه د لوئي شان او د عزت والا دي۔ نو دكوم يو د احساناتو د رب خپل نه انكار كوئ |
| تُكَذِّبَانِ ﴿٢٨﴾ يَسْأَلُهُ مَنْ فِي السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ كُلَّ يَوْمٍ |
| تاسو۔ سوال كوي د الله نه هغه څوك چه په آسمانونو او زمكه كښې دي، هره ورځ |
| هُوَ فِي شَأْنٍ ﴿٢٩﴾ فَبِأَيِّ آلَاءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ ﴿٣٠﴾ |
| الله په يو كار (جدا جدا) كښې دي۔ نو دكوم يو د احساناتو د رب خپل نه انكار كوئ تاسو۔ |

**تفسير** : يعني الله تعالىٰ د خپلو بندګانو دپاره سمندرونه په دې طريقه مسخر كړي دي چه د انسانانو جوړې كړې اُوچتې او د غرونو غونته غټې كشتئ ددې سمندرونو سينه څيرې كوي، او د يو ښار نه بل ښاره پورې، او د يو ملك نه بل ملك پورې ځي راځي، او په خپله خيټه باندې انسانان او د هغوئ د ژوند ضرورتونه راوړي او رسوي ئې۔ لكه اُوس زمانه كښې پدې كښې څومره فراخي كړې شويده، لوى آبدوزونه، ټينكرې، او بحري جهازونه، بيړئ روانې دي۔ او دا د قرآن كريم اعجاز دې چه دا لا پيدا نهٔ وو او مخكښې نه ئې خبر وركړو۔

نو اې پيريانو او انسانانو ! تاسو د خپل رب د كومو كومو نعمتونو نه انكار كوئ ؟!۔

**اَلْجَوَارِ**: كشتئ دي،

**اَلْمُنْشَآتُ**: اَيِ الْمَرْفُوْعَاتُ ۔ يعني پورته كړې شوې۔ دا د نَشُوْءُ نه دې، په معنىٰ د ارتفاع (پورته والي) سره۔ يعني غاړې ئې پورته كړې شويدي لكه د غرونو۔

**اَلْمُنْشَآتُ**: قتادة وائي : (اَلْمَخْلُوْقَاتُ لِلْجَرْيِ) چه پيدا كړې شويدي دپاره د روانيدو په درياب كښې۔ نو دا د اِنْشَاءُ نه دې پيدا كولو ته وئيلې شي۔

**كَالْاَعْلَامِ**: جمع د عَلَم ده، اُوږد غر ته وئيلې شي۔ او بحر لفظ ئې مفرد راوړو، او اعلام ئې جمع راوړه پديكښې اشاره ده د درياب لوى والي ته۔

Scanned by CamScanner

كُلُّ مَنْ عَلَيْهَا : یعنې په ځمکه باندې حرکت کونکي څومره حیوانات چه دي، هغه ټول به فناء شي، د مخلوقاتو نه به هیڅ یو هم باقي پاتې نشي، صرف د الله تعالیٰ ذات به باقي وي چه هغه ډیر لوی عظمت او بلندئ او ډیر لوی کبریاء والا دے، چه د هغهٔ فضل او مهرباني د اُوچے او سمندر اوسیدونکو تمامو مخلوقاتو ته شامله ده۔

د فناء نه مراد دلته تغیر دے، او دا مطلب نهٔ دے چه عدم محض ترے جوړ شي۔ بلکه مطلب دادے چه تمام مخلوقات به مرهٔ شي او شکل به ئے بدل شي، نو ددے نه پس به قیامت راځي، او ټول به دوباره ژوندي کیږي، او د محشر میدان ته به راغونډیږي، د حق او ناحق فیصله به کیږي، او نیکانو ته به الله تعالیٰ جنت ورکوي، او ګنهګارانو ته به سزا ورکوي۔ او د الله دا فیصله به یقیناً لوی نعمت وي چه هغه به د خپل عدل او انصاف د تقاضے مطابق ظالمانو ته د خپلو کړو بدله ورکوي، او خپلو نیکانو بندګانو له به جنت او د هغے نعمتونه ورکوي۔ دے وجے نه الله تعالیٰ وفرمایل چه اے پیریانو او انسانانو ! تاسو د خپل رب کوم کوم نعمتونه دروغژن ګنړئ۔

**فوائد** : الله چه مونږ ته دا خبر راکړے چه د دنیا هر شے فاني کیدونکے دے، نو پدے کښې ډیر فوائد دي :

۱ - هر کله چه د ژوند ورځے شپے محدود دي، نو دا د الله په عبادت کښې تیرول پکار دي۔

۲ - د دنیا هر یو نعمت زوال قبلونکے دے، دے وجے نه الله سره تعلق جوړولو کښې هره بنیګړه ده۔ او په نعمت تکبر مهٔ کوه بلکه دا سوچ وکړه چه دا ختمیدونکے دے۔

۳ - په تکلیف او مصیبت کښې صبر کول پکار دي، ځکه چه ددے ځای غم او خوشحالي دواړه عارضي دي۔

٤ - الله پریښودل او نور څوك معبودان جوړول، دا به نهٔ کوي، ځکه چه زائله کیدونکے او ختمیدونکے معبود نشي کیدے۔ اَلْفَانِیُ لَا یَصْلُحُ لِاَنْ یُّعْبَدَ۔

(فاني شے ددے قابل نهٔ دے چه د هغهٔ بندګي وشي)۔

٥- آخرت نهٔ هیرول او هغه همیشه یاد ساتل او د هغے هیبتونه مخے ته کول۔

٦- د انس بن مالك ﷺ نه روایت دے چه رسول الله ﷺ وفرمایل :

[اَلِظُّوْا بِيَا ذَا الْجَلَالِ وَالْاِكْرَام]

(ترمذي في الدعوات باب ۹۱ واحمد (٤/ ۱۷۷)

Scanned by CamScanner

تاسو همیش والے او ډیر والے وکړئ په یا ذا الجلال والاکرام لفظ سره۔ یعنی ذا الجلال والاکرام ډیر وایئ۔

۷- فَنَاءُ نَا سَبَبٌ لِبَقَاءِ نَا فِي الْجَنَّةِ۔

دنیا نه زمونږ فانی کیدل سبب دے د داخلیدو د جنت ته، ځکه چه کله دنیا کښې همیشوالے وی، نو بیا به جنت او د هغے نعمتونو ته څنګه ورشی۔

وَجْهُ رَبِّكَ: وجه مخ ته وائی۔ دلته ترے مراد ذات او وجود د هغهٔ دے، لکه دا خبره قرطبیؒ د ابن عباس ﷺ نه نقل کړیده۔ او شیخ الاسلام ابن تیمیهؒ وئیلی دی چه وَجْه لفظ مشترك دے په ډیرو معانو کښې، کله په یوه معنیٰ وی، او کله په بله معنیٰ سره، او ټولے معانی حقیقی دی، نو وَجْه په معنیٰ د ذات او وجود سره اخستل تاویل د متشابه نهٔ دے۔ لکه ددے تحقیق مخکښې په سورة العنکبوت او سورة البقره کښې ذکر شویدے۔

او د رب اضافت ئے کاف ضمیر مخاطب ته وکړو، پدے کښې د الله تعالیٰ لطف ته اشاره ده، او رب لفظ ذکر کولو کښې د هغه قهر او غلبے ته اشاره ده۔

**سوال**: په سورت کښې نور خطابات په تثنیه سره دی (رَبِّكُمَا) او دلته خطاب مفرد (رَبِّكَ) ذکر شو؟ **جواب**: پدے کښې هر یو کس ته خطاب دے دپاره ددے چه هر یو شخص په خپله فناء او د خپل رب په بقاء باندے عقیده وساتی۔

الْجَلَالِ: عظمت او لوئی والی ته وائی۔

او إِكْرَامِ: ۱- معنیٰ ده: يُكَرَّمُ عَنْ كُلِّ شَيْءٍ لَا يَلِيْقُ بِهٖ۔ د هر هغه شی نه عزتمن دے چه د هغه سره لائق نهٔ وی۔

۲- یا ذُو الْإِكْرَامِ لِأَوْلِيَائِهٖ۔ یعنی د خپلو دوستانو اکرام کونکے دے۔

يَسْأَلُهُ مَنْ فِي السَّمَاوَاتِ: یعنی په آسمانونو او زمکه کښې چه د الله تعالیٰ څومره مخلوقات دی، ټول هغهٔ ته محتاج دی، او هغه ذات یواځے، غنی او بے نیازه دے، ټول د هغهٔ د رحمت امید لرونکی دی، هم هغه رابللی، هم د هغهٔ مخے ته د سوال لاس غزوی، او هم هغه د ټولو لمنے د مرادونو نه ډکوی۔

يَسْأَلُهُ: سوال دوه قسمه دے، یو په (قَال) سره یعنی په ژبه سره سوال کول او دعا او زاری کول۔ او دویم په حال سره یعنی احتیاج۔ یعنی د ټولو مخلوقاتو حال د احتیاج دے الله ته۔

Scanned by CamScanner

كُلَّ يَوْمٍ هُوَ فِيْ شَأْن : يعنى الله د خپل مشيت او ارادے مطابق تصرف كوى، ژوندى كول او مړهٔ كول كوى، روزى وركوى، او فقير جوړوى، عزت او ذلت وركوى، بيمارى او شفاء وركوى، چاله وركړه كوى، او چاله ئے نهٔ وركوى، څوك معاف كوى، او چاله سزا وركوى. دغسے نور څيزونه هم واخله. په دے آسمان او زمكه كښې صرف د هغهٔ بادشاهى ده، او صرف د هغهٔ حكم چليږى. هم هغه د خپلو بندګانو تمام ضرورتونه پوره كوى. دے وجے نه الله تعالىٰ وفرمايل چه اے پيريانو او انسانانو ! تاسو د خپل رب كوم كوم نعمتونه دروغژن ګڼرئ ؟!

يعنى الله تعالىٰ هره ورځ او هر وخت په يو كار كښې وى خو اسے كار چه هغه پدے سره د نور مخلوق نه نهٔ مشغوله كيږى، په خلاف د انسان نه چه كله په يو كار كښې وى نو بيا د بل كار او د نور مخلوق نه مشغول او غافله وى.

او معلومه شوه چه الله تعالىٰ مُعَطَّل (بيكاره) نهٔ دے چه بس صرف كائنات ئے پيدا كړل او نور هيڅ نهٔ كوى. او د ارسطو نظريه وه چه الله تعالىٰ صرف په خپل ځان كښې فكر كوى نور هيڅ نهٔ كوى. دا تول كفرى خبرے دى.

او پدے آيت كښې دعوت دے چه هر كله الله تعالىٰ ستا دعاء قبلوى، او ستا ضرورتونه پوره كوى، نو بيا تاسو ولے د هغهٔ بندګى نهٔ كوئ.

| سَنَفْرُغُ لَكُمْ أَيُّهَا الثَّقَلَانِ ﴿٣١﴾ فَبِأَيِّ آلَاءِ رَبِّكُمَا |
| --- |
| زر دے چه اُوزګار به شم تاسو ته اے دوه درنو. نو د كوم يو د احساناتو د رب خپل نه |
| تُكَذِّبَانِ ﴿٣٢﴾ يَا مَعْشَرَ الْجِنِّ وَالْإِنسِ إِنِ اسْتَطَعْتُمْ أَن تَنفُذُوا مِنْ |
| انكار كوئ تاسو. اے ډلے د پيريانو او انسانانو كه تاسو طاقت لرئ چه اُوځئ د |
| أَقْطَارِ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ فَانفُذُوا لَا تَنفُذُونَ إِلَّا بِسُلْطَانٍ ﴿٣٣﴾ |
| طرفونو د آسمانونو او د زمكے نه نو اُوځئ، نشئ وتلے مګر په طاقت. (او طاقت خو |
| فَبِأَيِّ آلَاءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ ﴿٣٤﴾ يُرْسَلُ |
| مو نشته). نو د كوم يو د احساناتو د رب خپل نه انكار كوئ تاسو. رالېږلے به شى |

Scanned by CamScanner

| عَلَيْكُمَا شُوَاظٌ مِّنْ نَّارٍ وَنُحَاسٌ فَلَا تَنْتَصِرَانِ ﴿٣٥﴾ |
| --- |
| په تاسو دواړو باندے لمبے د اُور او تانبه ویلی کړے شوے۔ (نور لوګے) نو بدله به نشئ |
| فَبِأَيِّ آلَاءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ ﴿٣٦﴾ |
| اخستے تاسو دواړه د یو بل۔ نودکوم یو د احساناتو د رب خپل نه انکار کوئ تاسو۔ |

**تفسیر**: ربط : د الله تعالیٰ شأن (کارونه د بندګانو سره) به همیشه نۀ وی بلکه قیامت به راولی، او دلته ئے مشاکلةً فراغ لفظ استعمال کړیدے ورنه الله تعالیٰ کارونه کوی او مشغوله نۀ دے ځکه چه د شان په مقابله کښ فراغ ذکر کیږی،

نوره ددے معنیٰ د حساب ده، ١ - امام بخاریؒ معنیٰ کوی : (سَنُحَاسِبُكُمْ) زر دے چه زۀ به تاسو سره حساب وکړم اے انسانانو او پیریانو۔ (بخاری تفسیر سورة الرحمٰن)

٢ - نَفْرُغُ مِنْ أَمْرِكُمْ بِالْجَزَاءِ وَالْعَذَابِ۔ زۀ به ستاسو د کارونو نه فارغ شم په جزاء او عذاب سره چا ته به جنت ورکړم او چا ته جهنم۔ اوله معنیٰ غوره ده۔

یعنی زۀ به د دنیا کارونه ختم کړم او تاسو سره به حساب وکړم ځکه چه اُوس په دنیا کښ الله تعالیٰ کارونه کوی، حساب نشته، او صبا به حساب وی او عملونه د بندګانو به نۀ وی۔

واحدیؒ د مفسرینو په حواله لیکلی دی (چه د هغوی نه ابن عباسؓ هم دے) چه په دے آیتِ کریمه کښ پیریانو اوانساناتو دپاره زبردسته دهمکی ده۔

او قاسمیؒ د شهابؒ په واسطه لیکلی دی چه په دے آیتِ کریمه کښ یواځے دهمکی نۀ ده، بلکه د الله تعالیٰ د نیکانو بندګانو دپاره د ثواب وعده هم ده۔ ځکه چه د ﴿ سَنَفْرُغُ لَكُمْ ﴾ معنیٰ داده چه اے پیریانو او انسانانو ! د قیامت په ورځ به مونږ تاسو سره حساب کوو، او په تاسو کښ چه څوك ښۀ وی هغوئ له به د هغوئ د اعمالو ښه بدله ورکوو، او څوك چه بد وی هغوئ له به سزا ورکوو، او مخکښ تیر شو چه دا هم د الله نعمت دے چه هغه د خپل عدل او انصاف د تقاضا مطابق ظالمانو له سزا ورکوی، او نیکانو له جنت او د هغے نعمتونه ورکوی۔ دے وجے نه الله تعالیٰ وفرمایل چه اے پیریانو او انسانانو ! تاسو د خپل رب کوم کوم نعمتونه دروغژن ګنړئ ؟!

Scanned by CamScanner

اَلثَّقَلَانِ: پیریانو او انسانانو ته ئې دوه درانهٔ وویل ځکه چه دویٔ په زمکه باندے بوج دے، مړهٔ وی او که ژوندی. (۲) جعفر صادقؒ وائی: لِاَنَّهُمَا مُثْقَلَانِ بِالذُّنُوْبِ. ځکه چه دوی په ګناهونو سره درانهٔ شویدی او د هغے بوج به پورته کوی.

(۳) یا په دوی باندے احکام مقرر شویدی چه د هغے په وجه درانهٔ شویدی. (فتح البیان)

یَا مَعْشَرَ الْجِنِّ: (۱) د راجح قول مطابق دا خطاب به په آخرت کښې وی اَیْ یَقُوْلُ اللّٰهُ یَوْمَ الْقِیَامَةِ. یعنی الله به د قیامت په ورځ پیریانو او انسانانو ته داسے وائی لکه دا خبره قاسمیؒ، ابن کثیرؒ وغیره غوره کړیده چه کله الله تعالیٰ د قیامت په ورځ مجرمانو له د دوئ د بدو اعمالو سزا ورکول وغواړی، نو هغوئ ته به وائی چه که ستاسو وس رسیږی نو لاړ شئ د آسمانونو او د زمکے د اطرافو او د فراخئ نه ووځئ لیکن په غیر د قوت او غلبے او قهر او لویئ نه دا کار ممکن نهٔ دے چه څوك د آسمانونو او د زمکے د فراخیو نه اووځی او بل چرته لاړ شی، او الله تعالیٰ عاجزه جوړ کړی، او دا قوت او زور په دنیا او آخرت کښې د الله نه سویٰ بل هیچا ته حاصل نهٔ دے، دے وجے نه د هغهٔ د قدرت نه نهٔ په دنیا کښې څوك وتلے شی او نهٔ په آخرت کښې.

اِلَّا بِسُلْطَانٍ: دے سره دا مراد دے: وَلَا سُلْطَانَ لَکُمْ. یعنی ستاسو قوت او قدرت نشته.

(۲) او دے کښې دا هم جائز ده چه په دنیا کښې دوی ته خطاب وی، یعنی که ستاسو وس وی نو دنیا کښې د آسمانونو او د زمکے نه بهر شئ، نو هرکله چه ستاسو دا وس نشته، او د الله تعالیٰ په ملك کښې راګیر یئ نو بیا ولے د هغهٔ مخالفت کوئ، او ولے مو د هغه مخالفتونه کول. معلومه شوه چه د الله د قهر او غلبے نه هیڅوك نشی وتلے اګرکه هر څومره قوی وی.

او دا ویره او دهمکی یقیناً د الله یو نعمت دے، چه د الله فرمانبرداره بنده په طاعت او بندګئ کښې نور هم کوشش کونکے شی، او نافرمان د خپلے نافرمانئ نه منع شی، حالانکه که هغه غوښتلے نو په نافرمانو به ئې ناڅاپه عذاب نازل کړے وے، او د توبے مهلت به ئې نهٔ ورکولے. دے وجے نه الله تعالیٰ وفرمایل چه اے پیریانو او انسانانو! تاسو د خپل رب د کوم کوم نعمتونو نه انکار کوئ؟!

یُرْسَلُ عَلَیْکُمَا: حافظ ابن کثیرؒ لیکی چه دا خطاب به د قیامت په ورځ کافرانو او

Scanned by CamScanner

مشرکانو ته کیږي۔ یعني د حشر په میدان کښې به ملائك تمام انسانان او پیریان د څلور وارو طرفونو نه راګیر کړي، هیڅوك به د دغه ځای نه تښتیدلے نشي، او کفار چه کله جهنم اُوویني نو تښتیدل به وغواړي، نو ملائك به دوئ په لمبو ویشتلو سره واپس کړي، او په دوئ به بهیدونکے تانبه واړوي، او دوئ ته به وائي چه اُوس تاسو چرته تښتیدلے شئ، او هیڅوك ستاسو مدد نشي کولے۔

امام ابن القیم رحمه الله په خپل کتاب (طریق الهجرتین) کښې ددے آیتونو په تفسیر کښې دا خبره لیکلے ده، او د ضحاكؒ هم دا قول دے چه کله کافران د جهنم د غړمباری آواز واوري، نو د ډیرے ویرے نه به اوتښتي، لیکن چرته چه ځي نو د ملائکو صفونه به ترلې بیامومي، نو خپل اولني ځائے ته به را واپس شي۔

او دا ویرول او دهمکي ورکول یقینًا یو نعمت دے چه انسان په دے کښې غور او فکر کولو سره خپل رب ته رجوع کولے شي۔

دارنګه دا هم د الله نعمت دے چه هغه به د قیامت په ورځ کافرانو نه بدله اخلي، او خپلو فرمانبردارو بندګانو له به د جنت غونتنه نعمت ورکوی۔ دے وجے نه الله تعالیٰ وفرمایل چه اے پیریانو اوانسانانو ! تاسو د خپل رب کوم کوم نعمتونو نه دروغژن ګڼرې ؟!

شُوَاظٌ: (۱) هغه شنے لمبے د اُور ته وئیلے شي چه لوګے ورسره نۀ وي۔ (مجاهدؒ)

(۲) ضحاكؒ وائي چه دا هغه لوګي ته وائي چه د لمبے نه راوځي۔ دا به د لرګو لوګے نۀ وي۔

(۳) اخفشؒ او ابوعمروؒ وائي چه دا اُور او لوګي دواړو ته وئیلے شي۔

(٤) او سرو لمبو ته هم وئیلے شي۔

وَنُحَاسٌ: (۱) تانبه ویلي کړے شوے۔ (۲) دُرْدِيُّ الزَّيْتِ الْمُغْلٰى۔ (ضحاكؒ) د خوټ کیدلو تیلو کچ (تیلچټ)۔

(۳) دا هغه اُور ته وائي چه د هغے ډیره سخته بد بوئي وي۔ (الکسائيؒ)

(٤) د اُور تور لوګے۔ او دا دواړه به په یو ځای پرے رالیږلے کیږي، یا به کله به یو وي او کله بل۔

فَلَا تَنْتَصِرَانِ: یعني تاسو د الله تعالیٰ د عذاب نه په ځان منع کولو قادر نۀ یئ۔ او د الله نه بدله نشئ اخستے چه د هغۀ نه وتښتئ۔

Scanned by CamScanner

| فَإِذَا انشَقَّتِ السَّمَاءُ فَكَانَتْ وَرْدَةً كَالدِّهَانِ ﴿۳۷﴾ |
| --- |
| نو کله چه اُوچوی آسمان نو شي به پشان د سور ګلاب (سور) پشان د تیلو (پشان د |
| فَبِأَيِّ آلَاءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ ﴿۳۸﴾ |
| څرمنې رنګ کړے شوے)۔ نو دکوم یو د احساناتو د رب خپل نه انکار کوئ تاسو۔ |
| فَيَوْمَئِذٍ لَّا يُسْأَلُ عَن ذَنبِهِ إِنسٌ وَلَا |
| نو په دغه ورځ به تپوس نشي کیدے په باره د ګناه د مجرم کښې د بل انسان او نۀ د |
| جَانٌّ ﴿۳۹﴾ فَبِأَيِّ آلَاءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ ﴿۴۰﴾ يُعْرَفُ |
| پیری نه۔ نو دکوم یو د احساناتو د رب خپل نه انکار کوئ تاسو۔ پیژندلے به شي |
| الْمُجْرِمُونَ بِسِيمَاهُمْ فَيُؤْخَذُ بِالنَّوَاصِي وَالْأَقْدَامِ ﴿۴۱﴾ فَبِأَيِّ آلَاءِ |
| مجرمان په نخو د دوی نو نیولے به شي د تندو نه او د خپو نه۔ نو د کوم یو د احساناتو |
| رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ ﴿۴۲﴾ هَٰذِهِ جَهَنَّمُ الَّتِي يُكَذِّبُ بِهَا |
| د رب خپل نه انکار کوئ تاسو۔ دا جهنم هغه دے چه دروغژن ګنړی دے لره |
| الْمُجْرِمُونَ ﴿۴۳﴾ يَطُوفُونَ بَيْنَهَا وَبَيْنَ حَمِيمٍ آنٍ ﴿۴۴﴾ |
| مجرمان۔ دوی به ګرځي په مینځ ددے او په مینځ د ګرمو اُوبو سختو ګرمو کښې۔ |
| فَبِأَيِّ آلَاءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ ﴿۴۵﴾ |
| نودکوم یو د احساناتو د رب خپل نه انکار کوئ تاسو۔ |

**تفسیر:** اُوس د قیامت هیبت بیانیږی، یعنی کله چه قیامت راشی، نو آسمان به وچوی، ددے نظام به درے ورے شی، دا به ټکړے ټکړے شی، او ویلی به شی، او د تیلو پشان به بهیږی، او ددے رنګ به د ویلی شوے قلعی او تانبے پشان سور وی چه خړ والی ته به مائل وی۔ لکه د سورت معارج په (۸) آیت کښې راغلی دی:

﴿يَوْمَ تَكُونُ السَّمَاءُ كَالْمُهْلِ﴾ (په کومه ورځ چه آسمان د تیلچټ پشان شی)۔

Scanned by CamScanner

آسمان چه کله ماتیږي نو په اول کښې به تلك سور شي، او د تیلو په شان به رابهیږي۔ دومره قوي مخلوق دے لیکن د الله په حکم سره به دومره کمزورے شي۔

كَالدِّهَانِ: اَیْ كَالدُّهْنِ الْمُذَابِ ۔ دهان بهیدونکي تیلو ته وئیلے شي۔ او تیل چه کله راتویږي نو په هغے کښې ډیر رنګونه ښکاره کیږي۔

قتادة او زجاج وائي: آسمان خو نن شین دے خو د قیامت په ورځ به ددے رنګ سور شي۔

او دلته د (فَإِذَا انْشَقَّتْ) دپاره جزاء پټه ده۔ اَیْ رَأَیْتَ اَمْرًا مُهَوَّلًا ۔ یعني ته به ډیر هیبتناك (یره ونکے) حالت وینے۔

فَيَوْمَئِذٍ: (۱) یعني کله چه آسمان وچوي نو د هیڅ انسان او پیري نه به د هغهٔ د ګناه تپوس نهٔ کیږي چه آیا تا دا ګناه کړیده او که نهٔ؟ او ددے وجه روستو ذکر ده (يُعْرَفُ الْمُجْرِمُوْنَ) یعني پدے وجه به تپوس نهٔ کیږي چه هر یو به په تندو سره پیژندلے کیږي، ګناهونه به پرے دپاسه پراتهٔ وي۔ او دا ترکیب په اصل کښې داسے دے:

فَيَوْمَئِذٍ لَا يُسْئَلُ اِنْسٌ وَّلَا جَآنٌّ عَنْ ذَنْۢبِهٖ ۔ او (ه) ضمیر هر یو ته راجع دے، یعني د هر یو نه به د هغهٔ د ګناه په باره کښې تپوس نهٔ کیږي۔ او همدا راجح تفسیر دے۔

(۲) بعضو وئیلي دي چه دا ابتدائي حالت دے چه کله د قبرونو نه راپورته کیږي، نو د دویٔ نه به تپوس نهٔ وي، او روستو به ترے تپوس کیږي، حساب کتاب ته به رابنکلے شي۔

(۳) بعض وائي: د اِستعلام (ځان پو هه کولو) تپوس نشته بلکه د زورنے دپاره به ترے تپوسونه کوي۔

(٤) حافظ ابن قیمؒ لیکي چه د ګناه د کولو تپوس به نهٔ وي چه تا دا ګناه کړیده او که نهٔ (ځکه چه هغه به ئے په ځټ باندے پرته وي) بلکه د هغے د وجے او علت او د کیفیت د عمل تپوس به کیږي۔ او همدا خبره د ابن عباس ﷺ نه نقل ده۔ (فتح البیان)

(٥) او ابو العالیة وئیلي دي چه د یو مجرم د ګناهونو تپوس به د بل مجرم نه نشي کیدے۔ نو ذَنْۢبِهٖ کښې ضمیر مجرم ته راجع دے، او انس او جان بل څوك دي۔ یعني د یو مجرم د ګناه په باره کښې به د بل انسان او پیري نه تپوس نهٔ کیږي۔

هر سړي نه به خپل خپل تپوس وي۔ دا توجیهات دے مفسرینو ځکه کړیدي چه د

Scanned by CamScanner

سورة اعراف (٦) آیت ﴿ فَلَنَسْئَلَنَّ الَّذِيْنَ اُرْسِلَ اِلَيْهِمْ ﴾ او ﴿ وَسَوْفَ تُسْئَلُوْنَ ﴾ (زخرف: ٤٤) او ﴿ لَتُسْأَلُنَّ يَوْمَئِذٍ عَنِ النَّعِيْمِ ﴾ سره ئے تعارض رانشی۔

آلَاءِ: دلته نعمتونه دا دی چه تپوس د مجرم پورے خاص دے، او د غیر مجرم تپوس صرف عَرُض دے (یعنی پیش کول دی) او بیا معاف کول دی، او په تپوس کولو کښې مقصد تمییز د مجرم او د غیر مجرم دے، او پدے تپوس کښې مقصد په مجرم باندے الزام دے او د الله د عدل اظهار دے۔

يُعْرَفُ الْمُجْرِمُوْنَ: یعنی په دے ورځ به مجرمان د خپلو خاصو نښو په ذریعه پیژندلے شی، لکه مخونه به ئے تور وی او دپاسه به پرے خړ والے راغلے وی، او سترگے به ئے شنے شوی وی، او غمونه او دردونه به پرے دپاسه راغلی وی، او د کناتو سره به ئے جنډے لگیدلی وی، او ملائك به د دوئ خپے د دوئ د تندو سره یو ځائے اُوتړی، او په رابنکلو سره به جهنم ته گذار کړے شی۔

فَبِاَیِّ آلَاءِ: دلته نعمتونه دا دی چه د مجرمانو نښے ئے د غیر مجرمانو نه جدا کړیدی، او د مجرمانو د عذاب طریقه ئے سخته کړیده، او د نښو د امتیاز د وجه نه به ملائك غیر مجرم لره نهٔ نیسی۔

فَيُؤْخَذُ بِالنَّوَاصِيْ: دا جمع د نَاصِيَةٌ ده، هغه ویښته چه په تندی باندے زوړند وی۔ یعنی ملائك به ورله سر او خپے یو ځای کړی۔ یا کله به ئے اُوړ ته پدے طریقه راکاږی چه تندونه به ئے نیولی وی، او مخونه به ئے په زمکه رابنکلے شی او کله به ئے د خپو نه نیولی وی او په سرونو به ئے رابنکاږی۔

هٰذِهٖ: مخکښې د مجرمانو د سر او خپو نه نیول ذکر شو اُوس ځای د گوزارولو بیانوی چه هغه جهنم دے۔

یعنی الله به د مجرمانو د خړ کولو دپاره وائی چه تاسو خو به په دنیا کښې د الله وعده او دهمکی دروغژنه گنړله، او وئیل به مو چه د جنت او جهنم هیڅ حقیقت نشته، نو دا هغه جهنم دے چه کفر او شرك کونکو مجرمانو به دا دروغژن گنړلو، نو نن ددے خوند اُوڅکئ، او د جهنم په مختلفو طبقو کښې گرځئ، ددے په لمبو کښې سوزئ، او په انتهائی گرمو اُوبو کښې غوپے وهئ۔

قتادَه وائی چه جهنمیان به کله په گرمو اُوبو کښې غوپے لگوی، او کله به په جهنم کښې

Scanned by CamScanner

سوزی. لکه دا خبره په سورة صافات (٦٨) کښې ذکر ده ﴿ ثُمَّ اِنَّ مَرْجِعَهُمْ لَاِلَى الْجَحِيْمِ ﴾ .
(بیا واپسی د دوئ جهنم ته ده).
يُكَذِّبُ بِهَا: دا حکایت د حال ماضیه دے، او په مضارع راوړو کښې اشاره ده چه که دوئ له بیا مهلت ورکړے شی نو آینده کښې به هم تکذیب کوی.
آنٍ: اَیْ شَدِيْدِ الْحَرَارَةِ. هغه اُوبه چه ډیرے سختے گرمے وی.
❁ یا هغه اُوبه چه په اُور باندے پخے شوی وی.
❁ او بعض وائی چه[آن] د جهنم یوه داسے کنده ده چه په دے کښې به د جهنمیانو وینه او نَوُ جمع شوے وی، جهنمی به په دے کنده کښې غوپه وهی چه ددے په وجه به د دوئ جوړونه د یو بل نه جدا شی.
❁ بعض وائی: آن: حاضر ته وئیلے شی یعنی دا اُوبه به جهنمیانو ته هر وخت حاضرے وی.
فَبِاَيِّ آلَاءِ: پدے خبر ورکولو کښې نعمتونه دا دی چه پدے سره خوك نصیحت واخلی نو د کفر او شرك او گناهونو نه ځان بچ کوی. او په طاعاتو کښې رغبت کوی،
او پدے کښې ایمان بالغیب دے،
او پدے کښې د مجرم او غیر مجرم ترمینځ تمییز دے، او دا د الله تعالىٰ عدل دے،
او اشاره ده چه په دنیا کښې اُور او اُوبه لوی نعمتونه دی، لیکن د ناشکرئ په وجه دغه نعمتونه په جهنم کښې د عذاب په شکل کښې بدلولے شی. (احسن الکلام)

| وَلِمَنْ خَافَ مَقَامَ رَبِّهٖ جَنَّتَانِ ﴿٤٦﴾ |
|---|
| او دپاره د هغه چا چه یریږی د پیش کیدو د رب خپل نه دوه قسمه باغونه دی. |
| فَبِاَيِّ آلَاءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ ﴿٤٧﴾ ذَوَاتَا اَفْنَانٍ ﴿٤٨﴾ |
| نو دکوم یو د احساناتو د رب خپل نه انکار کوئ تاسو. خاوندان د ښاخگو دی. |
| فَبِاَيِّ آلَاءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ ﴿٤٩﴾ فِيْهِمَا عَيْنَانِ |
| نو دکوم یو د احساناتو د رب خپل نه انکار کوئ تاسو. پدے دواړو کښې دوه چینے دی |

Scanned by CamScanner

تَجْرِيَانِ ﴿٥٠﴾ فَبِأَيِّ آلَاءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ ﴿٥١﴾ فِيهِمَا

چه بهیږی به۔ نودکوم یو د احساناتو د رب خپل نه انکار کوئ تاسو۔ پدے دواړو

مِنْ كُلِّ فَاكِهَةٍ زَوْجَانِ ﴿٥٢﴾ فَبِأَيِّ آلَاءِ رَبِّكُمَا

کښں د هر قسم میوے نه دوه جوړۍ دی۔ نودکوم یو د احساناتو د رب خپل نه انکار

تُكَذِّبَانِ ﴿٥٣﴾ مُتَّكِئِينَ عَلَىٰ فُرُشٍ بَطَائِنُهَا مِنْ

کوئ تاسو۔ تکیه وهونکے به وی په بسترو باندے چه استرونه (لاندے طرفونه) د

إِسْتَبْرَقٍ وَجَنَى الْجَنَّتَيْنِ دَانٍ ﴿٥٤﴾ فَبِأَيِّ

هغے به د غټو وریښمو نه وی او راشوکول د میوو د جنت به نزدے وی۔ نو د کوم یو د

آلَاءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ ﴿٥٥﴾ فِيهِنَّ قَاصِرَاتُ

احساناتو د رب خپل نه انکار کوئ تاسو۔ پدے باغونو کښں به (زنانه) خکته کونکی

الطَّرْفِ لَمْ يَطْمِثْهُنَّ إِنْسٌ قَبْلَهُمْ وَلَا

نظر والا وی، نۀ به وی رسیدلے دوی ته هیڅ انسان مخکښں د دوی نه او نۀ

جَانٌّ ﴿٥٦﴾ فَبِأَيِّ آلَاءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ ﴿٥٧﴾ كَأَنَّهُنَّ الْيَاقُوتُ

پیرے۔ نو د کوم یو د احساناتو د رب خپل نه انکار کوئ تاسو۔ گویا که دوئ یاقوت

وَالْمَرْجَانُ ﴿٥٨﴾ فَبِأَيِّ آلَاءِ

دی (په رنګ کښں) او مرجان دی (په صفایئ کښں)۔ نو د کوم یو د احساناتو د رب

رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ ﴿٥٩﴾ هَلْ جَزَاءُ

خپل نه انکار کوئ تاسو۔ نۀ ده بدله د توحید (اخلاص) مګر جنت دے۔ نۀ ده بدله د

الْإِحْسَانِ إِلَّا الْإِحْسَانُ ﴿٦٠﴾ فَبِأَيِّ آلَاءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ ﴿٦١﴾

نیکئ مګر احسان دے۔ نودکوم یو د احساناتو د رب خپل نه انکار کوئ تاسو۔

Scanned by CamScanner

**تفسیر:** ربط:

مخکنو آیتونو کښې الله تعالیٰ انسانانو او پیریانو ته خپل ډیر زیات دیني او دنیوي نعمتونه ورياد کړل، نو اوس په دے راتلونکو آیتونو کښې خپل ځینې هغه نعمتونه ذکر کوي چه الله تعالیٰ به ئے په آخرت کښې خپلو جنتیانو بندګانو ته ورکوي.

دارنګه مخکښې د مجرمینو انجام بیان شو، نو اوس د هغه تقویٰ والو انجام ذکر کیږي، چه هغوئ په دنیا کښې خپل ژوند د الله تعالیٰ نه په ویره کښې تیروي.

بیا مؤمنان دوه قسمه دي، ابرار او دے ته سابقین هم وائي. او دویم اصحاب الیمین او اَلْمُقْتَصِدِيْن دي، دوي په عملونو کښې د مخکنو نه لاندے دي، نو د دوئ جنت هم د مخکنو د جنت نه لږ لاندے دے، او ابرار او سابقین چونکه همیشه د الله په بندګئ کښې لګیا دي نو د هغوي جنت هم ډیر اعلیٰ دے نو تر (٦٠) آیت پورے دا اعلیٰ جنت ذکر کیږي، او دا په لسو وجوسره د اصحاب الیمین د جنت نه غوره دے.

وَلِمَنْ خَافَ مَقَامَ رَبِّهٖ: د مقام دوه معاني دي (١) یو پیشئ ته وائي. یعني کوم کس چه د حساب په ورځ، د خپل رب په مخ کښې د اودریدو نه یریږي، په دے وجه د فرائضو پابندي کوي، او د ګناهونو نه بچ کیږي، هغهٔ له به ددهٔ رب دوه جنتونه ورکوي، یو د ګناهونو پریښودلو په بدله کښې، او بل د نیك عمل کولو په بدله کښې. وئیلے کیږي چه د یو نوم جنتِ عدن دے، او د دویم نوم جنتِ نعیم دے.

(٢) دویم مقام په معنیٰ د (عِلْمُ اللّٰهِ بِهٖ) سره دے. یعني څوك چه ددے خبرے نه یریږي چه ددهٔ رب ددهٔ د هر حال نه خبر دے، او ددهٔ په اقوالو او افعالو باندے خبر دے، دهٔ له به په آخرت کښې دوه جنتونه ملاویږي. او دا دواړه تفسیرونه په یو بل کښې داخل دي. ځکه چه څوك د پیشئ د رب نه یریږي نو هغه دا عقیده لري چه الله زما د احوالو نه خبر دے، او څوك چه د الله په علم باندے علم راولي نو هغه به د الله د پیشئ نه ضرور یریږي.

مَقَام: په زورر د میم سره مصدر میمي او ظرف دواړه راځي. چه مصدر میمي شي نو بیا به فاعل ته مضاف وي یا مفعول ته. که ربه ئے فاعل شي نو تقدیر به داسے وي اَیْ قِیَامُ اللّٰهِ بِهٖ. یعني د الله علم او قدرت دے په دهٔ باندے او تدبیر د هغه دے دهٔ لره.

او که مفعول شي، نو بیا به عِنْدَ یا بَيْنَ يَدَیْ لفظ پټ راوستلے شي. اَیْ قِیَامُهٗ عِنْدَ رَبِّهٖ یا بَيْنَ يَدَیْ رَبِّهٖ. یعني د ودریدو دهٔ د خپل رب سره، یا د خپل رب مخے ته.

Scanned by CamScanner

او که مقام ظرف شی نو دا اضافت به په تقدیر د لام سره وی۔ اَیْ مَقَامَهٗ لِرَبِّهٖ ۔ یعنی د ځای د ودریدو د بنده چه د رب دپاره دے او هغه پورے خاص دے۔
مجاهدؒ او نخعیؒ وائی : هُوَ الرَّجُلُ الَّذِیْ یَهُمُّ بِالْمَعْصِیَةِ فَیَذْکُرُ اللّٰهَ فَیَدَعُهَا مِنْ خَوْفِهٖ۔
دا آیت د هغه چا په باره کښې دے چه یو تن د گناه اراده وکړی خو بیا الله رایاد کړی، نو د هغهٔ د یرے نه گناه پریدی۔
نو پدے کښې اشاره ده چه دا انسان چه د جنتونو مستحق گرځیدلے نو دا په تشه یره نهٔ بلکه په هغه یره سره چه د هغې په وجه د گناهونو نه منع شی۔
جَنَّتٰنِ: جنتونه په اصل کښې څلور دی لکه حدیث کښې دی : امام بخاریؒ د عبد الله بن قیس رضی الله عنه نه روایت کړے چه رسول الله ﷺ وفرمایل :
[جَنَّتَانِ مِنْ فِضَّةٍ آنِیَتُهُمَا وَمَا فِیْهِمَا وَجَنَّتَانِ مِنْ ذَهَبٍ آنِیَتُهُمَا وَمَا فِیْهِمَا، وَمَا بَیْنَ الْقَوْمِ وَبَیْنَ اَنْ یَنْظُرُوْا رَبَّهُمْ اِلَّا رِدَاءُ الْکِبْرِیَاءِ عَلٰی وَجْهِهٖ فِیْ جَنَّةِ عَدْنٍ]۔
(دوه باغونه به داسے وی چه د هغے لوښی او تمام اسباب به د چاندیٔ نه وی، او دوه باغونه به داسے وی چه د هغے لوښی او تمام اسباب به د سرو زرو نه وی۔ او د جنتیانو او د الله د لیدلو ترمینځه به په جنتِ عدن کښې د هغهٔ په مخ باندے د کبریائی د څادر پرده وی)۔ (بخاری فی التوحید والتفسیر رقم: ٤٧٤٤ ومسلم فی الایمان حدیث: ٢٩٦ )
لیکن دائے جنسونه دی، او بیا په هر جنت کښې دننه ډیر جنتونه دی۔ لکه حدیث کښې دی : [اِنَّهَا جِنَانٌ کَثِیْرَةٌ] دا ډیر جنتونه دی۔ (بخاری)
نو کوم مفسرین چه دا وائی چه ددے نه مراد یو جنت دے، او تثنیه ئے د آیتونو د موافقت دپاره راوړیده، نو دا خبره کمزورے ده۔ او دارنگه څوك چه وائی چه د تثنیه نه مراد کثرت دے، یعنی ډیر جنتونه دی۔ نو دا خبره هم ضعیفه ده ځکه چه الله تعالیٰ ورته (فِیْهِمَا) د تثنیه ضمیرونه راجع کړیدی۔
د عطاءؒ نه نقل دی چه دا آیت اول کښې د ابوبکر صدیق رضی الله عنه په باره کښې نازل وو۔
ابن مسعود رضی الله عنه فرمائی: دا یره په دنیا کښې مراد ده۔
فَبِاَیِّ آلَاءِ: پدے جنتونو کښې دننه بے شماره نعمتونه دی، نو ځکه ئے آلاء جمع لفظ راوړو۔ ذَوَاتَا اَفْنَانٍ : افنان جمع د فَنٌّ ده، ځانگے ته وئیلے شی۔ او ځانگے ئے ذکر کړے ځکه چه دغسے ونے پانړے نیسی او میوے ورکوی، او د هغے نه سوری راخوریږی۔

Scanned by CamScanner

یا جمع د فَنٌّ ده رنګ او نوع او قِسم او صنف ته وئیلے شي، یعنی قسماقسم نعمتونه پکښې دي۔ (حادي الارواح لابن القیّم) او عطاءٌ د دواړو قولونو جمع داسے کړیده چه په هره ځانګه کښې به قسماقسم میوه جات وي۔

عَيْنَانِ تَجْرِيَانِ : او په دے دواړو جنتونو کښې به د سلسبیل او تسنیم نومے دوه نهرونه بهیږي۔ عطیّة وائي چه په یوهٔ کښې به صفا شفافے اوبهٔ روانے وي چه هیڅ کله به نهٔ خرابیږي، او په دویم کښې به شراب بهیږي چه انتهائي مزیدار به وي۔

تَجْرِيَانِ: یعنی همیشه به روانے وي۔

په دے هر نعمت کښې دننه ډیر نعمتونه دي نو ځکه ئے آلاء لفظ جمع راوړو۔

فِيهِمَا مِنْ كُلِّ فَاكِهَةٍ: او په دے دواړو کښې به د هرے میوے دوه قِسمونه وي، او د هر یو خوند به جدا جدا وي۔ بعضِ مفسرینو لیکلي دي چه یو قِسم به تازه وي، او بل به اُوچ، او هر یو به د بل نه په خوند او مزه کښې زیات وي۔ او په هر یو کښې بیا دننه ډیر اقسام دي۔ مثلًا په لمدو میوو کښې به د یو قسم نه ډیر قسمونه وي۔ لکه انګورو کښې به ډیر اقسام وي او په وچو میوو کښې هم دغه شان واخله۔

او دا نعمتونه چه څوك آوري نو د آوریدونکو نیك عمل ته شوق پیدا کیږي، او د بدئ نه منع کیږي نو ځکه دا د الله تعالیٰ لوی نعمت شو۔

مُتَّكِئِينَ عَلٰى فُرُشٍ : ابو هریره ﷺ او ابن مسعود ﷺ فرمائي : هرکله چه د جنتیانو د بسترو هغه برخه چه هغه زمکے سره لګیدلے وي د قیمتي او نازك ترینو ریښمو نه جوړه شوے وي، نو بیا د هغے د ظاهري برخے حالت به څهٔ وي۔

د سعید بن جبیرؒ نه پوښتنه اوشوه چه کله د جنتیانو د بسترو لاندینئ برخه د اعلیٰ ترین دیبا او ریښمو نه جوړه وي، نو بیا د هغے ظاهري برخه به څنګه وي؟ نو هغهٔ ووئیل چه د سورتِ سجدے په (۱۷) آیت : ﴿ فَلَا تَعْلَمُ نَفْسٌ مَّآ أُخْفِيَ لَهُمْ مِّنْ قُرَّةِ أَعْيُنٍ ﴾

(هیڅ یو نفس نهٔ پیژني چه ددهٔ د سترګو د یخوالي لپاره څهٔ شے پټ ساتلے شوے دے) کښې الله تعالیٰ دے طرفته اشاره کړے ده۔ (فتح البیان ورموز الکنوز)

مُتَّكِئِينَ: د اِتِّكاءُ نه دے، تکیه او پرلت وهلو ته وئیلے شي، صاحب د فتح البیان لیکي چه اتکاء ئے ذکر کړه ځکه چه دا د روغ رمتِ، او بے غمه شخص حالت وي چه دغه طریقے سره خوراك کوي۔

Scanned by CamScanner

وَجَنَى الْجَنَّتَيْنِ: یعنی ددے دواړو جنتونو میوے به هر جنتی ته بیخی نزدے وی۔
وئیلے کیږی چه جنتی کله څهٔ میوه راشلول غواړی، نو هغه وُنه به هغهٔ ته نزدے راشی۔ امام رازیؔ لیکی : د آخرت جنت (باغ) د دنیا د باغ نه په درے وجو مخالف دے :
(۱) یو دا چه په دنیا کښې میوے د ونو په سرونو کښې وی نو د تکیه وهونکی انسان نه ډیر لرے وی۔ او په جنت کښې به ئے تکیه وهلی وی او میوه به ورته مخے ته زوړنده وی۔
(۲) دویم دا چه په دنیا کښې انسان میوه پسے منډه وهی او هغے طرفته حرکت کوی، او په آخرت کښې به میوه دهٔ ته رانزدے کیږی او ددهٔ نه به تاوېږی۔
(۳) دریم : په دنیا کښې انسان چه کله د یوے ونے میوے ته نزدے شی نو د بلے ونے نه وراندے شی او د جنت میوه جات به په یو وخت او یو ځای کښې دهٔ ته نزدے راځی۔
جَنًا : مصدر دے راشوکول د میوو۔ یا مبنی للمفعول دے، یعنی میوے راټولے کړے شوے / راشوکولے شوے۔
فِيهِنَّ: او په دواړو کښې به داسے حورے وی چه د هغے نظرونه به د هغوئ د خاوندانو نه هیڅ کله نهٔ اخوا کیږی، یعنی د دوئ خاوندان به انتهائی ښائسته وی، چه د هغوئ سره د ډیر زیات محبت د وجے نه به د هغوئ په زړونو کښې بل چاته د کتلو هډو خیال هم نهٔ پیدا کیږی۔ او همدا حال به د دوئ د خاوندانو هم وی، یعنی دا ښځے به دومره ښائسته وی چه د دوئ خاوندان به دوئ سره انتهائی محبت کوی، او نورو ښځو ته د کتلو خیال به هم د دوئ په زړونو کښې نهٔ راځی۔
قَاصِرَاتُ الطَّرْفِ: ددے موصوف پټ دے (اَیْ نِسَاءٌ یا حُوْرٌ) یعنی ښځے یا حورے خکته کونکی د نظر۔ ددے یو مطلب دا دے چه قَاصِرَاتٌ طَرْفَهُنَّ عَلٰى اَزْوَاجِهِنَّ۔
دوی به خکته کونکی وی نظرونه خپل صرف په خپلو خاوندانو باندے، یعنی بل چا ته به ئے توجه نهٔ پیدا کیږی۔ یا دومره به ښائسته وی چه د خاوندانو نظرونه به په خپل ځان باندے خکته کوی۔
لَمْ يَطْمِثْهُنَّ : او د دوئ ښځو یو صفت به دا هم وی چه تولے به پیغلے وی، ددے جنتی خاوندانو نه مخکښې به هیڅ یو انسان یا پیری دوئ سره کوروالے نهٔ وی کړے۔
طُمِثُ: بکارت زائله کولو ته وئیلے شی مراد ترے نه نزدیکت دے۔
بعضِ مفسرینو لیکلی دی چه په ﴿ لَمْ يَطْمِثْهُنَّ إِنْسٌ قَبْلَهُمْ وَلَا جَانٌّ ﴾ کښې دے طرفته

Scanned by CamScanner

اشاره ده چه دا ښځې به د کور والی نه پس هر ځل باکره (پیغلې) جوړیږی۔

شوکانیؒ لیکی چه دا آیت او ددې سورت ګنړ آیتونه دلیل دے چه کوم پیریان په الله ایمان راوړی، د فرائضو پابندی اوکړی، او د ګناهونو نه ډډه اوکړی هغوئ به جنت ته داخلیږی۔ زجاجؒ وائی : دا آیت دلیل دے چه جنی هم هغه شی ته راتګ کولے شی کوم ته چه انسان کوی۔ (یعنی جنی هم زنانو سره نزدیکت کولے شی)۔

او د ضمرة بن حبیبؒ نه تپوس وشو :

[اَیَدْخُلُ الْجِنُّ الْجَنَّةَ ؟ قَالَ نَعَمْ، وَتَصْدِیْقُ ذٰلِكَ فِیْ کِتَابِ اللّٰهِ : ﴿لَمْ یَطْمِثْهُنَّ اِنْسٌ قَبْلَهُمْ وَلَا جَانٌّ﴾] (الطبری۲۷/۱۵۱) وابو الشیخ فی العظمة (۱۱۵۱۷۱/۱۶۹۶)

چه آیا جنات به جنت ته ځی؟ نو هغه وفرمایل : آؤ، بیا ئے دا آیت ولوستو او وے فرمایل چه د جناتو دپاره د جناتو د جنس نه ښځے دی، او د انسانانو دپاره د انسانانو د جنس نه۔

كَاَنَّهُنَّ الْيَاقُوْتُ وَالْمَرْجَانُ : یعنی دا ښځے به په حُسن او جمال کښې د یاقوت او مرجان پشان وی، یعنی د دوئ رنګ به انتهائی سور سپین وی۔ په یاقوت کښې سپینوالے او په مرجان کښې سور والے دے۔

حسنؒ وائی : په صفائی کښې به د یاقوتو په شان وی (ځکه چه دا داسے شفاف کانړے دے لکه د بلور په شان اخوا ترے ځیز ښکاری) او په سپین والی کښې به د مرجان په شان وی۔ او که د مرجان نه وړے ملغلرے واخستے شی نو بیائے دا پدے وجه ذکر کړو چه ددے صفائی او سپینوالے د لوی ملغلرو نه زیات وی۔

رسول الله ﷺ فرمائی : [عَلٰی کُلِّ زَوْجَةٍ سَبْعُوْنَ حُلَّةً، یُبْدُوْ مُخُّ سَاقِهَا مِنْ وَرَائِهَا]۔

په هره ښځه باندے به اویا جوړے وی، چه د هغے نه اخوا به د هغے د پنډئ مغز ښکاره کیږی۔ (ترمذی : ۲۵۲۲ واسناده صحیح)

په روایت د ابن مسعود ﷺ کښې دی : [کَمَا یُرَی الشَّرَابُ الْاَحْمَرُ فِی الزُّجَاجَةِ الْبَیْضَاءِ] لکه سرۀ شراب چه په شیشه کښې ښکاره کیږی۔ (الطبرانی فی الکبیر : ۸۸۶٤)

هَلْ جَزَاءُ الْاِحْسَانِ اِلَّا الْاِحْسَانُ : یعنی کوم خلق چه په دنیا کښې نیک عمل کوی، د عدل او انصاف همدا تقاضا ده چه دوئ له ښه بدله ورکړے شی۔ یعنی په تیرو شوو آیتونو کښې د جنتیانو دپاره چه کوم نعمتونه ذکر شو نو د دوئ سره د عدل او انصاف همدا تقاضا وه چه د دوئ د نیکو عملونو دوئ ته همدومره ښه بدله ورکړے شی۔

Scanned by CamScanner

ابن عباس ﷺ ددے معنیٰ کړیده : [هَلْ جَزَاءُ مَنْ قَالَ لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ فِي الدُّنْيَا وَعَمِلَ بِمَا جَاءَ بِهِ النَّبِيُّ ﷺ اِلَّا الْجَنَّةُ فِي الْآخِرَةِ] یعنی نشته بدله د هغه چا چه په دنیا کښې ئے لا اله الا الله وئیلی وی، او د رسول الله ﷺ په سنت ئے عمل کړے وی مګر په آخرت کښې جنت دے۔ (معالم التنزیل للبغوی)۔

(۲) او په یو مرفوع روایت د ابن عمر ﷺ کښې دی:
[مَا جَزَاءُ مَنْ اَنْعَمْتُ عَلَيْهِ بِالتَّوْحِيْدِ اِلَّا الْجَنَّةَ] نشته بدله د هغه چا چه ما په هغه باندے د توحید نعمت کړیدے مګر جنت دے۔ (ابن ابی حاتم وابن مردویة والبیهقی)

او پدے آیت کښې دویم سبب د جنت بیان شو، یو خو خوف وو، او دویم دوی کښې احسان وو۔ فَبِاَيِّ آلَاءِ: یعنی هرکله چه الله تعالیٰ تاسو سره احسان کوی په دنیا او په آخرت کښې او په لږ عمل رزق درکوی، او توفیق د نورو نیکو عملونو درکوی، نو بیا د الله تعالیٰ د کومو نعمتونو نه تاسو انکار کوئ؟!۔

| وَمِنْ دُوْنِهِمَا جَنَّتَانِ ﴿٦٢﴾ فَبِاَيِّ آلَاءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ ﴿٦٣﴾ |
|---|
| او ماسویٰ ددے نه دوه جنتونه دی۔ نو دکوم یو د احساناتو د رب خپل نه انکار کوئ |
| مُدْهَامَّتَانِ ﴿٦٤﴾ فَبِاَيِّ آلَاءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ ﴿٦٥﴾ |
| تاسو۔ تک شنهٔ به وی۔نو دکوم یو د احساناتو د رب خپل نه انکار کوئ تاسو۔ |
| فِيْهِمَا عَيْنٰنِ نَضَّاخَتٰنِ ﴿٦٦﴾ فَبِاَيِّ آلَاءِ |
| پدے کښې دوه چینے دی فوارے۔ (خوټ کیدونکے پورته)۔نو د کوم یو د احساناتو د |
| رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ ﴿٦٧﴾ فِيْهِمَا فَاكِهَةٌ وَّنَخْلٌ وَّ رُمَّانٌ ﴿٦٨﴾ |
| رب خپل نه انکار کوئ تاسو۔ پدے کښې به میوے او کجورے او انار وی۔ |
| فَبِاَيِّ آلَاءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ ﴿٦٩﴾ |
| نو د کوم یو د احساناتو د رب خپل نه انکار کوئ تاسو۔ |

**تفسیر**: اُوس زیرے ورکوی په دویم قسم جنتونو چه دا د دویم قسم مؤمنانو دپاره دی،

Scanned by CamScanner

يعنې اصحاب اليمين دپاره۔
وَمِنْ دُوْنِهِمَا: دا عطف دے په ماقبل باندے، تقدير د عبارت داسے دے :
لِمَنْ خَافَ مَقَامَ رَبِّهٖ مِنْ دُوْنِهِمَا جَنَّتَانِ۔
څوك چه د رب نه يريږي نو د هغوی دپاره د مخكنو جنتونو نه خكته دوه قسمه جنتونه دي، او ددے خلقو په اعمالو كښ د مخكنو مؤمنانو د اعمالو نه خكته والے دے، نو د دوئ جنتونه هم د هغوی نه په فضيلت او درجو كښ خكته شو۔ او دُوْن لفظ په خكته والي باندے دلالت كوي، او دا خبره ابن كثيرؒ د ابن عباس ﷺ نه نقل كړيده۔
او حكيم ترمذيؒ او بعض علماؤ وئيلي دي چه دون په معنیٰ د نزدے سره دے عرش د الله تعالیٰ ته۔ او دا جنتونه د مخكنو نه افضل او غوره دي، ليكن دا قول د قرآن كريم د ظاهر خلاف دے، او دا جنتونه په لسو وجو سره خكته دي۔ لكه چه روستو فائده كښ ذكر كيږي۔
او دا هم د الله تعالیٰ لوی نعمت دے چه كه الله وئيلي وے چه اُوچت جنت دے، اُوچت عمل ورله پكار دے، او لاندے جنتونه ئے نۀ وے پيدا كړي نو بيا به ډيره گرانه وے، په مونږ كښ به صرف پيغمبران او صحابه كرامؓ او خاص اولياء جنت ته تللے، او عام مؤمنان به محروم وے، نو الله دا احسان وكړو چه كه د توحيد او سنت د عقيدے نه روستو عمل كمزورے هم وي، نو الله ورسره احسان كوي او جنت ته ئے داخلوي، اگر كه اعلیٰ جنت ته به لاړ نشي۔
مُدْهَآمَّتَانِ: اَیْ مُسْوَدَّتَانِ لِشِدَّةِ خُضْرَتِهِمَا ۔ يعنې تك تور دي د وجه د ډير شينوالي نه۔ او كله چه ونے او بوټي او چمنونه ډير شنۀ او تازه وي نو تور ښكاره كيږي دے دپاره په عربئ كښ اِدْهِيْمَام لفظ استعماليږي۔
مخكنو جنتونو سره ئے ذواتا افنان ووئيل چه قسماقسم ميوه جات او شينكيانے پكښ شته، او دلته ئے صرف د ونو او بوټو شينوالے ذكر كړو۔
نَضَّاخَتَانِ: نضخ ډيرو اُوبو شيندلو ته وئيلے شي، يعنې چه په پورته باندے په تيزئ سره فوارے بهيږي۔
او نضح (په حاء سره) صرف شيندل او ترمكيا كولو ته وئيلے شي۔
نو دا چينے به ډيرے اُوبه او مُشك، او خوشبوئي او خير او بركت په جنتيانو باندے

Scanned by CamScanner

راولی، او دا هم ډیر نعمتونه دی نو ځکه ئے الاء جمع راوړه.

فِيهِمَا فَاكِهَةٌ: پدے کښې نور درے انعامات ذکر دی. او دلته ئے مِنْ كُلِّ فَاكِهَةٍ ونهٔ وئیل. او نخل او رمان اګرکه په فاکهه کښې داخل دی لیکن دائے جدا ذکر کړل ځکه چه ددے حسن او فائدے زیاتے دی. یا پدے وجه چه دا د عربو په زمکه کښې ډیر وو. کجورے به د غذا او انار به د میوے دپاره استعمالیدل.

دارنګه دا دواړه په اوړی او ژمی کښې موجود وی.

دارنګه په کجوره کښې د تفکه سره غذائیت هم دے، او په انار کښې د تفکه سره دوائی هم ده، او پدے تولو کښې بے شماره نعمتونه دی نو ځکه ئے تعبیر په آلاء سره وکړو.

وَنَخْلٌ وَرُمَّانٌ: امام ابوحنیفه رحمه الله وئیلی دی چه دا ـ واړه فواکه نهٔ دی ځکه چه دا عطف شویدی په (فَاكِهَةٌ) باندے او عطف مغایرت غواړی، نو که یو تن قسم وکړی چه زهٔ به فاکهه نهٔ خورم او انار وخوری نو نهٔ حانثیږی.

ددهٔ نه ددهٔ صاحبین (ابویوسفؒ او محمدؒ) هم مخالف دی.

او دارنګه د امت عام علماء او محدثین، او د امام ابوحنیفهؒ دا قول د اهل لغتو هم خلاف دے، او په آیت کښې ورله هیڅ دلیل نشته ځکه چه دا عطف د خاص دے په عام باندے او ددے عطف دپاره دغه مخکښې وجے دی.

| فِيهِنَّ خَيْرَاتٌ حِسَانٌ ﴿٧٠﴾ فَبِأَيِّ آلَاءِ |
|---|
| پدے جنتونو کښې به غوره ښیبیانے ښائسته مخونو والا وی. نو د کوم یو د احساناتو |
| رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ ﴿٧١﴾ حُورٌ مَّقْصُورَاتٌ فِي الْخِيَامِ ﴿٧٢﴾ |
| د رب خپل نه انکار کوئ تاسو. دا حوری دی بندے ساتلے شوے په خیمو (د |
| فَبِأَيِّ آلَاءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ ﴿٧٣﴾ |
| ملغلرو) کښې. نو د کوم یو د احساناتو د رب خپل نه انکار کوئ تاسو. |
| لَمْ يَطْمِثْهُنَّ إِنسٌ قَبْلَهُمْ وَلَا جَانٌّ ﴿٧٤﴾ فَبِأَيِّ |
| نهٔ به وی رسیدلے دوی ته هیڅ انسان مخکښې د دوی نه او نهٔ هیڅ پیری. نو د کوم یو |

Scanned by CamScanner

| آَلَاءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ ﴿٧٥﴾ مُتَّكِئِينَ عَلٰى رَفْرَفٍ |
|---|
| د احساناتو د رب خپل نه انکار کوئ تاسو۔ تکیه وهونکی به وی په څادرونو |
| خُضْرٍ وَعَبْقَرِيٍّ حِسَانٍ ﴿٧٦﴾ فَبِأَيِّ آَلَاءِ |
| (بالختونو) شنو او قیمتی بسترو (قالینونو) ښائسته باندې۔ نود کوم یو د احساناتو |
| رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ ﴿٧٧﴾ تَبَارَكَ اسْمُ رَبِّكَ |
| د رب خپل نه انکار کوئ تاسو۔ برکت ورکونکے دے نوم د رب ستاسو |
| ذِي الْجَلَالِ وَالْإِكْرَامِ ﴿٧٨﴾ |
| چه د لوئی شان او عزت والا دے۔ |

**تفسیر** : یعنی په دے دواړو جنتونو کښې به نیك چلنه او ښائسته شکل والا حُورے وی چه هغوئ به د ملغلرو نه جوړو محلونو کښې هر وخت د خپلو خاوندانو لپاره تیارے وی، چه دوئ سره به نهٔ مخکښې کوم انسان کور والے کړے وی او نهٔ کوم پیری۔

**خَيْرَاتٌ**: اَیْ خَیْرَاتُ الْاَخْلَاقِ حِسَانُ الْوُجُوْهِ۔ غوره او بهترینو اخلاقو والا او ښائسته مخونو والا به وی۔ پدے صورت کښې به خیرات جمع د خَيْرَةٌ وی، بیا پکښې تخفیف شویدے، او معنیٰ ئے د غوره والی ده۔ یا خیرات جمع د خَيْرَةٌ ده، ذَوَاتُ الْخَيْرَاتِ ته وائی یعنی د خیرونو او فائدو والا۔ دا وجه ده چه آلاء ئے جمع راوړه۔

دا صفتونه د هغه حورو دی چه په جنت کښې الله تعالیٰ پیدا کړیدی، او د دنیا زنانه چه جنت ته لاړه شی نو دوی نه هم دغه شان خیرات او حسان جوړیږی، اخلاق ئے مزیدار شی او مخونه او شکلونه ئے زړه راښکونکی شی۔

**حُوْرٌ**: یعنی دغه زنانه به حورے وی۔ حور جمع د حَوْرَاء ده، ښه سپین رنګ ته وئیلے شی چه د سترګو تورئے ښه تور وی او سپین والے ښهٔ سپین وی۔

**مَقْصُوْرَاتٌ**: یعنی په خیمو کښې بندے ساتلے شویدی، او دا بند ساتل د حفاظت او د اکرام دپاره دی، او مدح د زنانو په ستر او پردے سره کیږی، او چه پخپل کور کښې اُوسی او بے ضرورته په لارو کوڅو کښې نهٔ ګرځی۔

Scanned by CamScanner

مجاهدؒ د مقصورات معنیٰ کوي: قُصِرَ طَرْفُهُنَّ وَاَنْفُسُهُنَّ عَلٰی اَزْوَاجِهِنَّ۔ (بخاري باب ۳۰۹) يعنی د دوی نظرونه او نفسونه به په خپلو خاوندانو باندے بند کړے شوی وی۔

فِي الْخِيَامِ: دا خیمے به کورونه او محلونه وی او رسول الله ﷺ فرمائیلی دی:

[اَلْخَيْمَةُ دُرَّةٌ مُجَوَّفَةٌ طُوْلُهَا فِي السَّمَاءِ سِتُّوْنَ مِيْلًا، فِيْ كُلِّ زَاوِيَةٍ مِنْهَا لِلْمُؤْمِنِ اَهْلٌ لَا يَرَاهُمُ الْآخَرُوْنَ يَطُوْفُ عَلَيْهِمُ الْمُؤْمِنُ] (بخاري بدء الخلق باب ۸، ومسلم فی الجنة حدیث: ۲۵)

د مؤمن دپاره په جنت کښں خیمه ده، د یوے ډډے ملغلرے نه چه اُوږدوالے د هغے شپیته میله دے، او په هر کوټ د هغے کښں به د مؤمن دپاره اهل وی چه نور به ئے نهٔ وینی، او مؤمن به په هغوی باندے ګرځی۔ او ددے حدیث نه دا هم معلومه شوه چه د جنتی مؤمن به ډیرے حوری وی۔ او په یو ضعیف روایت کښں دوه اویا ذکر دی۔

(ترمذی: ۲۵٦۲ و فیه رشدین بن سعد ودراج)

او یو بل روایت د احمد کښں دوه اویا ذکر دی مګر په هغے کښں شهر بن حوشبؒ راوی دے۔ او علامه عراقیؒ په طرح التثریب او مبارکفوریؒ په تحفة الاحوذی کښں لیکی: چه ادنیٰ جنتی ته به د دنیا د ښځونه دوه وی او د حورو نه اویا ورکوی او دا خبره د مجموعه روایاتو نه معلومیږی۔ او دے ته حافظ په فتح الباری کښں میلان کړیدے۔

او ابن عباس ﷺ فرمائی: فِيْ بُيُوْتِ اللُّؤْلُؤِ۔ یعنی د ملغلرو په کوټو کښں به وی۔

الخيام جمع د خیمة دے، خیمه دے ته وائی چه څلور لرګی ودرولے شی او په هغے باندے دپاسه څه څانګے او بوټی یا کپړے واچولے شی چه سورے کوی، نو دا د خباء نه یخه وی۔ او خباء دیته وائی چه د وړیٔ او پشم وغیره نه جوړه شی۔ لیکن د جنت خیمے جدا دی۔

(خطیب شربینی وفتح البیان)

عَلٰی رَفْرَفٍ خُضْرٍ۔ رَفْرَفٍ: په اصل کښں د رف نه دے په معنیٰ د اُوچت والی او حرکت کولو سره دے، او په معنیٰ د تازګیٔ سره هم راځی، نو ددے نه مراد بالختونه او تکیه ګانے دی، یا هغه اُوچتے کپړے دی چه په بسترو باندے خوره ولے شی۔

یا چمنونه او زیاتی مجالس د جنت دی۔

ابن عباس ﷺ فرمائی: رفرف زیاتی مجالس او بسترے او قالینی دی۔

سعید بن جبیرؒ وائی: رفرف رِيَاضُ الْجَنَّةِ ته وئیلے شی یعنی د جنت باغیچے چه شنے او تازه دی۔ او حسن بصریؒ وائی: اَلْوَسَائِدُ (بالختونه) دی۔ (فتح البیان ورموز الکنوز)

Scanned by CamScanner

وَعَبْقَرِيٍّ حِسَانٍ : (او قیمتی بسترے چه ښائسته دی) عبقری منسوب دے عَبْقَر ته او دا په یمن کښې یو ښار وو چه په هغے کښې به د کپړو گلونه کیدل۔ نو د هر جید (کره) او مزیدار شی نسبت به هغے ته کیدو۔

ابن الانباریؒ وئیلی دی چه عبقر یو ځای دے چه په هغے کښې به ډیر پیریان راښکاره کیدل او ناشنا خبرے او کارونه به ئے کول، نو هغه ځای ناشنا گنړلے کیدو، نو بیا به دوئ د هر عجیبه او ناشنا څیز عبقر ته نسبت کولو۔

لکه د عمر ﷺ په باره کښې رسول الله ﷺ خوب کښې ولیدل : [فَلَمْ أَرَ عَبْقَرِيًّا يَفْرِيْ فَرِيَّهٗ] یعنی عمر ﷺ ناشنا کار وکړو چه د هغه په لاس باندے الله تعالیٰ ډیره فتح وکړه۔

او دا محاوره په هغه زمانه کښې وه، او زمونږ په اصطلاح کښې خلق د ناشنا څیزونو نسبت کافرانو ته کوی، ځکه چه دنیا کښې هم دوی ناشنا څیزونو پسے لگیدلی دی، وزگار دی، نو خلق وائی : فلانے کافر شے دے، او د کافر ځوی دے۔

زجاجؒ وئیلی دی چه عبقری په لغت کښې صفت دے د هر هغه شی چه د هغے په صفت کښې مبالغه شوی وی۔ خلیل بن احمدؒ نه نقل دی :

[كُلُّ جَلِيْلٍ نَفِيْسٍ فَاضِلٍ فَاخِرٍ مِنَ الرِّجَالِ وَغَيْرِهِمْ عِنْدَ الْعَرَبِ عَبْقَرِيٌّ]

د عربو په نیز هر کامل او نفیس او غوره او عمده څیز ته عبقری وائی که هغه د سړو نه وی او که د ښځو نه او که د کپړو وغیره نه وی۔

نو د عبقری نه مراد قیمتی بسترے دی۔ یا گلدار څادرونه او بسترے چه ناشنا وی۔

او مجاهدؒ وائی : دا دیباج (وریښمو) ته وئیلے شی۔

قتیبیؒ وائی : هره ښائسته کړے شوے جامے ته عرب عبقری وائی۔(ابن کثیرؒ)

یعنی د دوئ ژوند به انتهائی پرق پروق او شان او شوکت والا وی۔

د دین او دنیا او د آخرت د کومو نعمتونو ذکر چه پورته اوشو، په دے کښې هر یو داسے عظیم نعمت دے، چه ددے اهمیت په الفاظو کښې بیانیدلے نشی۔ دے وجے نه الله تعالیٰ وفرمایل چه اے انسانانو او پیریانو ! تاسو د خپل رب کوم کوم نعمتونه دروغژن گنړئ ؟!

تَبَارَكَ اسْمُ رَبِّكَ : اُوس د اول د سورت سره خبره یو ځای کوی، فرمائی چه ستا د رب نوم چه رحمٰن دے هغهٔ ددے لائق دے چه د هغهٔ تعظیم وکړے شی، او د هغهٔ تعظیم ددے تقاضا کوی چه په هیڅ حال کښې هم د هغهٔ نافرمانی ونهٔ کړے شی، او د هغهٔ عزت

Scanned by CamScanner

وکړے شي، او د هغهٔ عزت کول ددے غوښتنه کوي چه صرف د هغهٔ عبادت وکړے شي، او د هغهٔ شکر اداء کړے شي، او د شکر ګذارئ کمال دادے چه په هیڅ حال کښې هم د هغهٔ ناشکري ونهٔ کړے شي، او هغه هر وخت یاد کړے شي، او د هغهٔ په یاد کښې پوره اخلاص دادے چه هغه هیڅ کله هم هیر نهٔ کړے شي۔ (ابن کثیرؒ)

او هرکله چه د الله نوم خیرونو او برکت والا دے نو د هغهٔ ذات به څومره برکاتو والا وي۔ بعض د برکت معنیٰ په دوام سره کوي۔ یعني همیشه دے نوم د رب ستا۔

یا دَامَ الْخَیْرُ عِنْدَهٗ۔ یعني د هغهٔ سره خیرونه همیشه موجود دي۔ (فتح البیان)

او مطلب دا دے چه الله تعالیٰ تاسو پیدا کړئ او تاسو له ئې زمکه او آسمان پیدا کړو او بیا ئې ستاسو تدبیر او تربیت وکړو نو دا ټول کارونه د هغهٔ د رحمت نه راوتي دي نو ځکه ئې د خپل نوم صفت وکړو چه دغه رب په خپل ذات کښې اُوچت شان والا دے، او په خپلو کارونو کښې عزتمند دے۔ (قرطبیؒ)

او د الله برکات دا دي چه هغه داسے ذات دے چه انسان ئې د نطفې نه پیدا کړو، داسے ذات دے چه عظیم کتاب ئې راولیږلو، دریابونه ئې روان کړل، په لږ عمل باندے عظیم جنتونه ورکوي، د اُویو نه ئې جنتونه پیدا کړل، څومره غټ کائنات ئې ترے جوړ کړل، نو دغه ذات په خپلو بندګانو باندے څومره مهربان دے، او مخلوق بیا هم د هغهٔ نه انکار کوي، او د هغهٔ سره شریکان جوړوي، د هغه بے ادبي کوي او کله پرے اعتراضونه کوي۔

**فائده** : د ذکر شوو نعمتونو د تقابل نه په ډیرو وجو سره معلومیږي چه روستني جنتونه د مخکنو دوه جنتونو نه په درجه کښې کم دي۔

اوله وجه دا ده چه د مخکنو دپاره (ذواتا افنان) ذکر وو چه دلالت کوي په ډیرو ونو باندے او روستنو کښې (مدهامتان) چه صرف شین والي ته اشاره ده۔

دویمه وجه دا ده چه په مخکنو کښې تجریان ذکر کړے شوے وو او د روستنو دپاره نضاختان ذکر وو او جاري کیدل غوره دي په نسبت د فوّارے وهلو په یو ځای باندے۔

دریمه وجه هلته (من کل فاکهة زوجان) ذکر وو او دلته (فاکهة ونخل ورمان) ذکر دے، لفظ د کل، او دارنګه زوجیت د میوو دلالت کوي په ډیر والي د اقسامو، او فاکهه نکره دلالت کوي په کم والي باندے۔

څلورمه وجه : هلته د حورو په صفت کښې قاصرات الطرف ذکر دے، یعني په خپل

Scanned by CamScanner

اختیار به ئے نظرونه په خاوندانو خکته کړی وی، نو هغه افضل صفت دے په نسبت د مقصورات بانديے، چه د بل چا په وجه بند کړیے شوی وی.
پنځمه وجه: هلته د هغوی د حسن او جمال او صفائی تشبیه ئے د یاقوت او مرجان سره ورکړه او دلته صرف خیرات حسان ذکر دے.
شپږمه وجه: هلته ئے (وجنی الجنتین دان) ذکر کړو چه د جنت میوے به نزدے وی او په روستنو کښې ئے دا ذکر نکړل. ❁ اومه وجه: د اول سره ئے (هل جزاء الاحسان الا الاحسان) ذکر کړو اشاره ده چه ددے خاوندان د کامل احسان والا وو ځکه ورته کامله بدله ورکړے شوه. او د روستنو سره دا ذکر نشو. ❁ اتمه وجه: هلته د تکیه دپاره فرش او د هغے د بطائنو صفت ئے ذکر کړو او دلته صرف رفرف (څادرے یا بالختونه) ذکر کړل.
نهمه وجه: هلته ئے د (لمن خاف مقام ربه) سره (جنتان) قریب ذکر کړل، اشاره ده چه دا اعلیٰ بدله د خائف ده نو جزاء ئے په خوف باندے مرتب کړه لکه مسبب چه په سبب مرتب وی. او خائفین دوه قسمه دی، مقربین او بل اصحاب الیمین نو اول ئے ؛ مقربینو جزاء ذکر کړه.
❁ لسمه وجه: روستنو سره ئے (ومن دونهما) لفظ ووئیلو، او دون نقیض د فوق دے. لکه چه جو هرتی وئیلی دی. نو دا دلیل دے چه روستنی جنتونه کمے درجے والا دی د مخکنو نه. (حادی الارواح ۷۲/۱ والقرطبی ۱۸٤/۱۷) واحسن الکلام.
لیکن دا ټول په اعتبار د ظاهر سره ترجیحات دی، پدے کښې داسے احتمالات هم شته چه په هغے سره د روستنو ترجیح ثابتیږی (والله اعلم)

## امتیازات

۱- د الله تعالیٰ د رحمانیت تشریح.
۲- یو دیرش کرته (فبأی آلاء ربکما تکذبان).
۳- دا خبره ښکاره شوه چه پیریانو دپاره هم جنت او جهنم شته.
٤- څلور قسمه جنتونه پکښې ذکر کړے شول، د دوه قسمه مؤمنانو دپاره.
٥- تفصیلی بشارت او تخویفات ذکر شول.
ختم شو تفسیر د سورة رحمٰن په لیلة الثلاثاء ۲۰۱٦/٥/۲) رجب ۲۷/۱٤۳۷ هـ

Scanned by CamScanner

بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ط

| آیاتها (۹٦) | (٥٦) سورة الواقعة مكية (٤٦) | رکوعاتها (۳) |
| --- | --- | --- |

سورة الواقعه مكي دے، په دے كښې شپږ نوي آيتونه او درے ركوع دي۔

## تفسير سورة الواقعة

نوم: دے ته سورت واقعه وائي، او دا د قيامت د ورځے نوم دے۔ قاسمیؒ د مُهايميؒ نه نقل كړيدي چه چونكه دا سورت په قيامت كښې د رابنكاره كيدونكو واقعاتو بيانونو نه ډك دے، پدے وجه ددے نوم [اَلْوَاقِعَة] يعنی د قيامت ورځ كيښودے شو۔

د نازليدو زمانه: د حَسَنؒ، عكرمهؒ، جابر او عطاءؒ وغيره په نيز دا سورت مكي دے۔

ابن مردويهؒ او بيهقيؒ په (دلائلو) كښې د ابن عباس رضی الله عنه نه روايت كړے چه سورتِ واقعه په مكه كښې نازل شوے۔

ترمذيؒ د ابن عباس رضی الله عنه نه روايت كړے، ابو بكر رضی الله عنه ووئيل: [يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ شِبْتَ، قَالَ: شَيَّبَتْنِىْ هُوْدٌ وَالْوَاقِعَةُ وَالْمُرْسَلَاتُ وَعَمَّ يَتَسَاءَلُوْنَ وَإِذَا الشَّمْسُ كُوِّرَتْ] (ترمذی: ۳۲۹٦)

اے د الله رسوله! ته بوډا شوے۔ نو نبی ﷺ وفرمايل: (زهٔ هود، الواقعه، المرسلات، عم يتسائلون او اذا الشمس كورت (سورتونو) بوډا كړے يم)۔

ترمذيؒ ديته حسن غريب وئيلے دے۔ او شيخ البانيؒ په صحيح الجامع رقم (۳۷۲۳) كښې صحيح كړيدے۔

او امام احمدؒ د جابر بن سمره رضی الله عنه نه روايت كړے [كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ يُصَلِّى الصَّلَوَاتِ كَنَحْوٍ مِنْ صَلَاتِكُمُ الَّتِىْ تُصَلُّوْنَ الْيَوْمَ وَلٰكِنَّهٗ كَانَ يُخَفِّفُ، كَانَتْ صَلَاتُهٗ أَخَفَّ مِنْ صَلَاتِكُمْ وَكَانَ يَقْرَأُ فِى الْفَجْرِ الْوَاقِعَةَ وَنَحْوَهَا مِنَ السُّوَرِ] چه رسول الله ﷺ ستاسو پشان مونځ

Scanned by CamScanner

کولو، لیکن د نبی ﷺ مونځ به ستاسو د مانځه نه مختصر وو، او نبی ﷺ به د سهار په مانځه کښې (الواقعه) او ددې پشان سورتونه لوستل. (احمد : ۲۱۰۳۳) صحیح لغیره)

## فضیلت :

ددې سورت په فضیلت کښې د عبد الله بن مسعود ﷺ دا روایت نقل کیږي چه رسول الله ﷺ وفرمایل : (کوم کس چه هره شپه د سورت الواقعه تلاوت کوي، هغهٔ ته به هیڅ کله محتاجي اونهٔ رسي). دا ابو یعلیٰ او بیهقیؒ په خپل کتاب «شعب الایمان» کښې روایت کړے، او محدث البانی رحمه الله دیته ضعیف وئیلی دی.

او پدے معنیٰ نور روایتونه هم شته، لیکن ټول د کلام نه خالی نهٔ دی، لهذا دا سنت گنړل نهٔ دی پکار، او که څوک ئے سنت نهٔ گنړي او وائي او الله دغه نعمت ورکړو نو په هغے کښې هیڅ اشکال نشته. او کیدے شي دا یوه تجربه وي چه رزق ورسره فراخه کیږي، لیکن دے نه به عبادت نهٔ جوړوي.

## مناسبت

۱- مخکښې سورت کښې ئے دوه جنتونه بیان کړل، نو دلته د هغے اهل بیانوي چه دوه ډلے دي چه هغه سابقون او اصحاب الیمین دي.

۲- مخکښې ئے مجرمان ذکر کړل، نو دلته ورله نوم ږدي په اصحاب الْمَشْئَمَه سره.

۳- د هغه سورت په ابتداء کښې ئے د قرآن نعمت ذکر کړے وو، نو دلته په آخر د سورت کښې عظمت د قرآن ذکر کوي.

٤- په هغه سورت باندے رحمت غالب وو، او پدے سورت باندے غضب او خوف غالب دے.

## د سورت موضوع او مقصد

اَلتَّخْوِيْفُ بِالسَّاعَتَيْنِ الصُّغْرٰى وَالْكُبْرٰى . بندگان په دوه قیامتونو باندے یره ول چه یو وړوکے قیامت دے چه هغه مرگ دے، او دویم لوی قیامت دے. او په آخری رکوع کښې به ورسره د قرآن خبره ملگرے کوي د یوے فائدے دپاره.

او د انسانانو درے ډلو ته تقسیمیدل او د هغوی سزاگانے او جزاء گانے به بیانوي. او په مینځ کښې د قیامت د اثبات دپاره دلائل ذکر کوي، د انسان د پیدائش، د وریځو، نباتاتو،

Scanned by CamScanner

او د اوُر۔ او په آخری رکوع کښې ترغیب قرآن ته دے، او د قیامتِ صغریٰ تشریح ده چه په هغے کښې هم درے ډلے دی، او په آخر کښې به د عذاب د نجات سبب ذکر کړی (فَسَبِّحْ بِاسْمِ رَبِّكَ الْعَظِيمِ)۔

| |
|---|
| إِذَا وَقَعَتِ الْوَاقِعَةُ ﴿١﴾ لَيْسَ لِوَقْعَتِهَا كَاذِبَةٌ ﴿٢﴾ |
| کله چه واقع شی واقع کیدونکے (ورځ)۔ نشته د واقع کیدو د هغے دپاره دروغ۔ |
| خَافِضَةٌ رَّافِعَةٌ ﴿٣﴾ إِذَا |
| خکته کونکے ده (بعض بندګانو لره) پورته کونکے ده (بعضو لره)۔ کله چه |
| رُجَّتِ الْأَرْضُ رَجًّا ﴿٤﴾ وَبُسَّتِ الْجِبَالُ بَسًّا ﴿٥﴾ |
| اُوجړقولے شی زمکه په جړقولو سره۔ او ذره ذره شی غرونه په ذره ذره کیدو سره۔ |
| فَكَانَتْ هَبَاءً مُّنبَثًّا ﴿٦﴾ |
| نو شی به دوړه خوره وره۔ (الوزولے شوے)۔ |

**تفسیر** :إِذَا: پدے کښې دوه احتماله دی، یو دا چه اذا ظرفیه ده، نو بیا پدے کښې دوه ترکیبه دی (١) یو دا چه إِذَا د اُذْكُرْ مقدر دپاره مفعول فِيهِ دے۔ نو پدے وخت کښې به دا جزاء نهٔ غواړی، یعنی رایاد کړه هغه وخت کښې چه داسے کارونه به کیږی۔ او همدا قول راجح دے۔ (٢) یا ما بعد د إِذَا په تاویل د مصدر سره مبتداء ده، او روستو إِذَا سره د مابعد نه په تاویل د مصدر سره خبر دے، اَىْ وَقْتُ وُقُوعِ الْوَاقِعَةِ وَقْتُ رَجِّ الْاَرْضِ وَبَسِّ الْجِبَالِ۔ یعنی وخت د واقع کیدو د واقعے چه موصوف ده په روستو صفتونو سره دغه وخت د جړقیدو د زمکے او د الوتلو د غرونو دے۔

او که اذا شرطیه شی، نو ددے جزاء به پټه وی (فَكَانَ كَيْتَ وَكَيْتَ) یعنی کله چه واقع شی واقع کیدونکے ورځ، نو داسے حالات به راپیښیږی چه تاسو نه به درے ډلے جوړیږی۔

❁ یا روستو إِذَا د اول إِذَا نه بدل دے او فَاَصْحَابُ الْمَيْمَنَةِ د هغے جزاء ده۔

❁ یا جزاء دا ده : (لَتُجَازُنَّ حَسْبَ حَالَاتِكُمْ) تاسو ته به ستاسو د حالاتو مطابق بدله

Scanned by CamScanner

درکولے شی۔

[الواقعة] د قیامت د ورځے نوم دے، یعنی واقع کیدونکے ورځ، نو پدے کښې اشاره ده چه ددے ورځے په راتک کښې هیڅ شك نشته۔ او د عربی قاعدے په لحاظ سره (اذا) کلمه په مضارع داخلیږی لیکن کله چه د یو شی راتلل یقینی وی نو بیا د هغے نه روستو ماضی صیغه ذکر کیږی، لکه دلته (وَقَعَتْ) لفظ راغلے دے۔ دا دلالت کوی چه د قیامت د ورځے په راتک کښې د ذرے هومره شك نشته۔

لَيْسَ لِوَقْعَتِهَا كَاذِبَةٌ : (۱) یعنی کله چه د مرګ نه پس د ژوند لپاره اسرافیل علیه السلام آخری شپیلۍ پوك وهی، نو بیا به ددے نه پس قیامت دروغژن ګنړل ناممکن شی۔

كَاذِبَةٌ مصدر دے لکه د عَاقِبَةٌ په شان، اَیْ لَيْسَ لِوُقُوْعِهَا كِذْبٌ۔

یعنی ددے په راتللو او رابنکاره کیدو کښې هیڅ دروغ نشته۔

یا کاذبه صفت د نفس دے، یعنی هیڅ نفس به نهٔ وی چه په الله باندے دروغ ووائی چه قیامت به نهٔ راځی۔ هر نفس به په دغه وخت کښې تصدیق وکړی، او هرڅه به په خپلو سترګو وینی۔

(۲) حسنؒ، قتاده او زجاج د ﴿لَيْسَ لِوَقْعَتِهَا كَاذِبَةٌ﴾ معنیٰ دا بیان کړے چه کله قیامت راشی نو هیڅوك به دا منع کولے نشی۔

خَافِضَةٌ رَّافِعَةٌ : ۱ – خَافِضَةٌ لِلْكَافِرِيْنَ وَالْمُجْرِمِيْنَ رَافِعَةٌ لِلْمُؤْمِنِيْنَ ۔ کافرانو او مجرمانو لره خکته کونکے ده، او مؤمنانو لره پورته کونکے ده۔ یو غریب سړے به وی په ډیرو خلقو به اُوچت شی، او دنیا کښې به مالداره او بادشاه وی او هلته به ذلیله شی۔

۲ – د الله دشمن به اُور ته ورخکته کوی، او د الله اولیاء به جنت ته پورته کوی۔

(عمر بن الخطاب رضی الله عنه) (فتح البیان)

او دے ورځے ته ئے د خکته والی پورته والی نسبت وکړو ځکه چه پدے ورځ به د خلقو خکته والے پورته والے بنکاره کیږی۔ او عرب خکته والے او پورته والے د ذلت او عزت دپاره استعمالوی۔

إِذَا رُجَّتِ الْأَرْضُ رَجًّا : اَیْ حُرِّكَتْ حَرَكَةً شَدِيْدَةً ۔ یعنی وخوزولے شی په خوزولو سختو سره۔ یعنی داسے به وخوزولے شی چه په زمکه څه څیزونه وی هغه به ونړیږی او د غرونو وغیره څیزونو نه به هر شے مات رامات شی۔

Scanned by CamScanner

وَبُسَّتِ الْجِبَالُ: ١- بس ذره ذره کیدو، ٢- او مات رامات کیدو ته ونیلے شي.
٣- قُلِعَتْ مِنْ اَصْلِهَا. د بیخ نه به ویستلے شي. (حسن)
٤- بُسَّتْ كَمَا يُبَسُّ الدَّقِيْقُ بِالسَّمْنِ اَوْ بِالزَّيْتِ. اَیْ خُلِطَتْ. یعنی غرونه به یو بل کښې گډوډ شي او داسے به وګرځي لکه وړه چه په غوړو یا تیلو سره گډوډ شي. (مجاهدؒ)
(٥) ابوزیدؒ وائي: اَلْبَسُّ السَّوْقُ. بس معنیٰ ده روانیدل. یعنی روان به شي.
هَبَاءً مُّنْبَثًّا: اَیْ غُبَارًا مُتَفَرِّقًا مُنْتَشِرًا. یعنی شي به غبار (دوړه) خوره وره.
هَبَاءً: هغه دوړه ده چه د اسونو د خپو نه په وخت د تیز رفتاریٔ کښې راپورته شي، او بیا خوره او ورکه شي. ❁ دارنګه هغه شعاع د نمر چه په یو سوري کښې داخل شي نو ذرات پکښې ښکاري. ❁ یا هغه بځري د اُور چه اُوچت شي او بیا ورك شي. (فتح البیان)

| وَكُنْتُمْ أَزْوَاجًا ثَلَاثَةً ﴿٧﴾ فَأَصْحَابُ الْمَيْمَنَةِ مَا أَصْحَابُ الْمَيْمَنَةِ ﴿٨﴾ |
|---|
| او شئ به تاسو قسمونه درے. نو ښي لاس والا، څه دي خاوندان د ښي لاس. (څه |
| وَأَصْحَابُ الْمَشْأَمَةِ مَا أَصْحَابُ الْمَشْأَمَةِ ﴿٩﴾ |
| لوئي شان دے د ښي لاس والو). او خاوندان د گس لاس، څه دي خاوندان د گس |
| وَالسَّابِقُوْنَ السَّابِقُوْنَ ﴿١٠﴾ |
| لاس. او مخکښې کیدونکي (هرے نیکیٔ ته) مخکښې داخلیدونکي به وي |
| أُولٰئِكَ الْمُقَرَّبُوْنَ ﴿١١﴾ فِيْ جَنّٰتِ النَّعِيْمِ ﴿١٢﴾ |
| (جنت ته). دا کسان نزدے کړے شویدي. په جنتونو د نعمتونو کښې به وي. |

**تفسیر** : یعنی د قیامت په ورځ به خلق د خپلو عملونو په لحاظ سره درے ډلو کښې تقسیم شي. حافظ ابن کثیرؒ لیکي چه یوه ډله به د عرش ښي اړخ ته وي، او د دوئ عملنامے به دوئ له په ښي لاس کښې ورکړے شي.
د سُدّيؒ قول دے چه دا به عام جنتیان خلق وي. او دویمه ډله به د عرش گس اړخ ته وي، او د دوئ عملنامے به د دوئ په گس لاس کښې ورکړے شي، او دا به جهنمیان خلق وي. او دریمه ډله به د الله د رضا د کارونو طرفته د یو بل نه د مخکښې کیدونکو خلقو

Scanned by CamScanner

وو، او دابه انبیاء او رسولان علیهم السلام او صدیقین او شهیدان وی، او د دوئ شماره به د ښی اړخ والا ډلې نه کمه وی.

اَزْوَاجًا: ازواج اصنافو (اقسامو) ته وئیلې شی. او دا د الله تعالیٰ ډیر رحم دے چه په مؤمنانو کښې ئے دوه ډلے جوړے کړے، او کافران یوه ډله. که د جنت دپاره ئے صرف سابقیت او مقربیت شرط کړے وے چه څان نه به سابقین جوړوئ نو ډیره به سخته شوے وے.

فَأَصْحَابُ الْمَيْمَنَةِ: ❁ دا د یمین نه دے، یعنی ښے طرف. یعنی په ښی لاس کښې به ورته عملنامے ورکړے شی،

❁ یا دا چه ښی طرفته به روان کړے شی چه هغه د جنت طرف دے.

❁ یا په عالم الذّر او په شپه د معراج کښې د آدم ؑ ښی طرفته وو.

❁ یا د یُمن نه جوړ دے، یعنی خیر او برکت والا دی، او نیك بخت دی.

مَا اَصْحَابُ: ما استفهامیه ده، او پدے تپوس کښې مقصد د هغوی د حالت تعظیم او هیبت دے. یعنی ته خبر ئے چه ښی اړخ والا کوم اُوچت خلق دی؟!. دوئ خو به په انتهائی راحت او سعادت او خوشحالئ او تازګئ کښې وی، او ګس لاس والا به په ډیر زیات تکلیف، درد او غم او خفګان کښې وی.

او مَا اَصْحَابُ دا خبر د اَصْحَابُ الْمَيْمَنَةِ دے.

اصحاب المیمنه ئے مخکښې ذکر کړل دا ددے دپاره چه د بندګانو امید پیدا شی، او بله دا چه دا قسم خلق په مؤمنانو کښې زیات دی.

وَأَصْحَابُ الْمَشْأَمَةِ: دا د شُؤْمْ نه دے، بد بختو ته وئیلے شی. ❁ یا مَشْئَمَه شمال (یعنی ګس) طرفته وئیلے کیږی. یعنی دوی له به په ګس لاس عملنامه ورکړے شی.

❁ یا به دوئ په میدان محشر کښې ګس طرفته روان کړے شی چه هغه طرفته جهنم دے، ❁ یا په عالم الذر او د معراج په شپه کښې دوی د آدم ؑ په ګس طرف کښې وو.

حسن بصریؒ فرمائی: هُمُ الْمَشَائِيمُ عَلَى اَنْفُسِهِمْ بِالْاَعْمَالِ الْقَبِيحَةِ. دا هغه خلق دی چه څانونه ئے سپیره کړیدی په بدو اعمالو سره.

مبرّدؒ وائی: اصحاب المیمنه اصحاب التَّقَدُّم دی، یعنی چه نیك اعمالو ته مخکښې کیدونکی وی، او اصحاب المشئمه اصحاب التَّأَخُّر دی، یعنی روستو کیدونکی، او

Scanned by CamScanner

عرب ښي طرف د مخکښوالي او کس طرف د روستو والي دپاره استعمالوي۔
او ددے نه د ښي لاس د لحاظ اهميت ته هم اشاره ذکر ده۔
وَالسَّابِقُوْنَ السَّابِقُوْنَ: ١- يو ترکيب دا دے چه دا دواړه مبتداء او خبر دی۔ اَيِ السَّابِقُوْنَ فِي الدُّنْيَا اِلَى الْحَسَنَاتِ السَّابِقُوْنَ اِلَى الْجَنَّةِ ۔ کوم خلق چه په دنيا کښې نيکيانو ته مخکښې کيدونکي وي نو هغوی به په قيامت کښې جنت ته مخکښې تلونکي وي۔
٢- ترکيب : السَّابِقُوْنَ السَّابِقُوْنَ بدل او مبدل مِنْهُ دی۔ يا مؤکد او تاکيد دی، او دا مبتداء ده او اُولٰئِكَ الْمُقَرَّبُوْنَ ئے خبر دے۔ يعنی کوم خلق چه سابقين سابقين دی يعنی چه هغوی په سبقيت باندے مشهور شويدی، او د هغوی نيکيانے او ښکلے صفات معلوم دی نو دغه کسان نزدے کړے شويدی الله ته/ او عرش عظيم ته د هغوی درجات/ او اعلیٰ جنتونو ته۔ او تکرار کښې مقصد تفخيم او تعظيم دے لکه د مخکښې دواړو قسمونو په شان۔ اول قول غوره دے ځکه چه دوه جملے به جوړے شی او په تکرار کښې به تفخيم او تعظيم ته هم اشاره شی۔

## سابقين څوك دی؟

ددے بعض تفصيل په تفسير د سورة سباء کښې ذکر شويدے۔
(١) بعض وائی : دا انبياء عليهم السلام دی۔ (٢) په هر امت کښې د انبياء عليهم السلام اصحاب کرامؓ دی۔ (٣) زمونږ د امت صحابه کرامؓ۔
(٤) هغه صحابه کرامؓ چه قبلتين (دوه قبلو) ته ئے مونځونه کړی دی۔
(٥) اَلسَّابِقُوْنَ اِلَى الصَّلَوَاتِ الْخَمْسِ۔ (پنځه مونځونو ته مخکښې کيدونکی)۔
(٦) هغه خلق چه د اول د ځوانئ نه په صحيح دين کښې تر مرګه پورے لګيدلے وی۔
(٧) هر قسم نيکئ ته مخکښې کيدونکی او منډه وهونکی۔ جزاء من جنس العمل وی، څوك چه درس ته مخکښې راځی، جهاد ته مخکښې ځی، صف اول ته مخکښې راځی، د مور او پلار خدمت ته مخکښې راځی۔
انس بن مالك ﷺ فرمائی چه سابقون کښې تکبير اولیٰ والا هم داخل دی چه دے ته څوك مخکښې راځی نو هغه به جنت ته مخکښې روان وی۔
حافظ ابن کثيرؒ ليکی چه دا ټول اقوال صحيح دی، يعنی دا لفظ دے ټولو ته شامل

Scanned by CamScanner

دي۔
اُولٰٓئِكَ الْمُقَرَّبُوْنَ : ۱– أَيِ الْمُقَرَّبُوْنَ إِلٰى جَزِيْلِ ثَوَابِ اللّٰهِ وَعَظِيْمِ كَرَامَتِهٖ ۔ دا هغه خلق دي چه د الله زياتو ثوابونو او د هغه لوی کرامت ته نزدے کړے شویدی۔
۲– اَلَّذِيْنَ قُرِّبَتْ إِلَى الْعَرْشِ الْعَظِيْمِ دَرَجَاتُهُمْ وَأُعْلِيَتْ مَرَاتِبُهُمْ۔
یا هغه خلق چه د دوی درجات عرش ته نزدے شویدی، او د دوئ مرتبے پورته کړے شویدی۔ او دوئ به د عرش د سوری د لاندے وی په قیامت کښ۔

| ثُلَّةٌ مِّنَ الْاَوَّلِيْنَ ﴿۱۳﴾ وَقَلِيْلٌ مِّنَ الْاٰخِرِيْنَ ﴿۱۴﴾ عَلٰى سُرُرٍ |
|---|
| ډلے دی د اولنو نه۔ او لږ دی د روستنو خلقو نه۔ په کټونو باندے به وی |
| مَّوْضُوْنَةٍ ﴿۱۵﴾ مُّتَّكِـِٕيْنَ عَلَيْهَا |
| چه اُودلے شوی به وی د تارونو د سرو زرو نه، تکیه وهونکی به وی په هغے باندے |
| مُتَقَابِلِيْنَ ﴿۱۶﴾ يَطُوْفُ عَلَيْهِمْ وِلْدَانٌ مُّخَلَّدُوْنَ ﴿۱۷﴾ |
| یو بل ته به مخامخ وی۔ ګرځی به په دوی باندے هلکان چه همیشه به هلکان وی۔ |
| بِاَكْوَابٍ وَّاَبَارِيْقَ وَكَاْسٍ مِّنْ مَّعِيْنٍ ﴿۱۸﴾ لَا يُصَدَّعُوْنَ |
| په ګلاسونو او جګونو سره او پیالے ډکے د شرابو خالصو نه۔ نهٔ به ئے په سر درد کیږی |
| عَنْهَا وَلَا يُنْزِفُوْنَ ﴿۱۹﴾ وَفَاكِهَةٍ مِّمَّا يَتَخَيَّرُوْنَ ﴿۲۰﴾ |
| د هغے نه او نهٔ به قے (اَلتهیٔ) کوی۔ او میوے د هغے نه چه دوی ئے غوره کوی۔ |
| وَلَحْمِ طَيْرٍ مِّمَّا يَشْتَهُوْنَ ﴿۲۱﴾ |
| او غوښے د مارغانو د هغے نه چه دوی ئے خوښوی۔ |

**تفسیر** :ثُلَّةٌ مِّنَ الْاَوَّلِيْنَ: ثـلـه جماعت ته وائی۔ (۱) د اولین نه مراد صحابه کرامؓ دی، او د آخرین نه مراد روستو زمانے دی تر قیامته پورے۔ لکه رسول الله ﷺ فرمایلی دی :
[فِيْ كُلِّ قَرْنٍ مِنْ اُمَّتِيْ سَابِقُوْنَ] زما د اُمت په هره پیړئ او قوم کښ سابقین شته۔
(حلية ابى نعيم ۱ /۸) والصحيحة (۲۰۰۱) صحيح الجامع (٤۲٦۷) باسناد حسن)

Scanned by CamScanner

او دا قـول ابـن كثيرؒ غـوره كـريـدے، او ددے اُمت پـه فـضيلت كښې ئے ډير احاديث ذكر كړيدي.

(۲) يا د اولين نه مراد پخواني قومونه دي، او آخرين نه مراد دا امت دے، او دا په نسبت د پـخوانو كم دي، ځكه چه پخواني انبياء عليهم السلام زيات وو نو تابعدار ئے هم زيات دي.

شـوكـانيؒ لـيكـي چه دا قول په صحيح مسلم كښې د عبد الله بن مسعود ﷺ نـه د نقل شوي حديث مخالف نۀ دے چه په هغے كښې نبي كريم ﷺ فرمايلي دي :

[اِنِّىْ لَاَرْجُوْا اَنْ تَكُوْنُوْا رُبُعَ اَهْلِ الْجَنَّةِ] (بخاري : ۳۳٤۸، مسلم : ۵۵۱)

((زما قوي اميد دے چه ستاسو شماره به د جنتيانو څلورمه برخه وي. بيائے وفرمايل : دريمه برخه به وي. بيائے وفرمايل : ستاسو شماره به د جنتيانو نيمائي وي)).

ځـكـه چه پـه آيت كښې د الله تعالىٰ د مقرب ترينو بندګانو ذكر راغلے دے، او په حديث كښې د عـامـو جنتيـانـو ذكـر دے، چه دوئ ته قرآن ﴿ أَصْحَابُ الْيَمِينِ ﴾ (ښي لاس والا) وئيلي دي، يعني د امتِ محمديه د اصحاب اليمين او د مقربينو مجموعي شماره به د جنتيانو نيمائي شماره وي.

عَلٰى سُرُرٍ : د الله تـعالىٰ دا مقرّب بندګان به په داسے تختونو ناست وي چه په هغے كښې بـه سـرۀ زر، مـلـغـلـرے او جـواهـر چراؤ شوي وي، او تول به يو بل ته مخامخ وي، د تولو مرتبے به برابرے وي، او د دوئ ترمينځه به هيڅ پرده ركاوټ نۀ وي.

سُرُرٍ : جـمـع د سـريـر ده، كټـونـه او كرسئ او هغه اُوچت ځايونه د ناستے چه د راحت او كرامت دپاره مقرر كړے شوي وي.

مَّوْضُوْنَةٍ : يـعـنـي اُودلے شوي د سروزرو نـه او د مـلـغلرو او ياقوتو نه. او وضن هغه دوچنده اُودلو ته وئيلے شي چه په يو بل باندے دپاسه شي.

او ابن عباس ﷺ د موضونة معنىٰ په مَصْفُوْفَةٌ سره كړيده. يعني صفونه صفونه كړے شوي وي به وي.

مُتَّكِئِيْنَ عَلَيْهَا : كـلبيّ وائـي : د هـر كټ او تخت اُوږدوالے به درے سوه ګزه وي، نو كله چه يـو بـنـده اراده وكړي چـه پـه هغے باندے كيني نو هغه به عاجزي وكړي، او دۀ ته به راخكته شي خو كله چه دے پرے كيني نو هغه به پورته شي.

Scanned by CamScanner

مُتَقَابِلِيْنَ: یعنی دوئ به بنائسته ژوند او ښکلي اخلاقو او خالصي مينې والا وي۔

وِلْدَانٌ مُّخَلَّدُوْنَ : يعنى د دوئ د خدمت لپاره به هر وخت دوئ نه گير چاپيره داسي هلكان موجود وى چه هغوئ به نهٔ بوډاگان كيږى، اونهٔ به د هغوئ شكلونه بدليږى، او نهٔ به هغه مرهٔ كيږى۔ مُخَلَّدُوْنَ لفظ دے تولو ته شامل دے۔

بعضِ وائى چه دا به د مسلمانانو وارهٔ بچے وى چه د نيك عمل كولو نه مخكښې مرهٔ شوى وى۔

د بعضو خيال دے چه دا به د مشركانو بچى وى۔

او دريم قول دا دے چه دا به الله تعالىٰ د جنتيانو د خدمت دپاره په جنت كښې پيدا كوى۔ والله اعلم۔

دا هلكان به د الله مقربو بندگانو ته په قِسما قِسم پيالو كښې رنگا رنگ مشروبات او شراب ډكوى او پيش كوى به ئے چه دے سره به دوئ انتهائى خوندونه حاصلوى، او ددے د څكلو په وجه به دوئ ته هيڅ تكليف نهٔ وى، نهٔ به نشه كيږى، او نهٔ به د دوئ په عقلونو څهٔ اثر كيږى۔ او دا هلكان به دوئ ته د دوئ د خوښے ميوے پيش كوى۔

حافظ ابن كثيرؒ ليكى : دا آيت دليل دے چه په يو لوښى كښې موجوده ميوه جاتو نه خانله ميوے چونړ كول او خوړل جائز دى،

او ددے تائيد د عكراش ﷺ د حديث نه كيږى چه د نبى كريم ﷺ خواته ثريد راغے، نو عكراش د لوښى د هر اړخ نه خوراك شروع كړو۔ نبى ﷺ د هغهٔ لاس اونيولو، وئيلے : عكراشه ! د يو ځائے نه خوراك كوه۔ نبى ﷺ ته كهجورے راوړے شوے نو عكراش د خپلے مخے نه خوراك شروع كړو، او رسول الله ﷺ د پليټ نه چونړ كولو سره راخستلے۔ نبى ﷺ وفرمايل : اے عكراش ! د كوم ځائے نه چه غواړے خوراك كوه، ځكه چه ټولے كهجورے يو شان نهٔ دى۔

دا حديث ترمذئ روايت كړے او ديته ئے غريب وئيلى۔ ليكن سند ئے ضعيف دے۔

(فى اسناده العلاء بن الفضل وعبيد الله بن عكراش منكر الحديث)۔

او دا هلكان به د دوئ د رغبت او خواهش مطابق د قِسما قِسم مرغو د وريت كړو او پخ كړو غوښو نه پليټونه ډكوى او هغوئ ته به ئے پيش كوى۔

Scanned by CamScanner

## فوائد الالفاظ :

اکواب جمع د کوب ده، هغه گول پیاله (گلاس) چه هغه خوله او کړئ نۀ لري.
وَّأَبَارِيْقَ: جمع د اِبْرِيْقٌ ده، د کړئ او خرتم والا وي او ابريق ورته ځکه وائي چه دا د برق نه دے پرق ته وائي، نو ددے رنګ به د صفائي په وجه پرقيږي، او ددے دننه طرف به هم ښکاره کيږي لکه چه ظاهر طرف ئے ښکاري.
وَ كَاسٍ: د شرابو ډکے کاسے او گلاس ته وئيلے شي.
مَّعِيْنٍ: ۱– اَیْ خَمْرٍ جَارِيَةٍ. د روانو شرابو نه. ۲– يا د خالصو شرابو نه.
۳– يا مِنْ مَاءٍ جَارٍ. د روانو اُوبو نه.
لَا يُصَدَّعُوْنَ: دا د صُدَاع نه دے، د سر درد ته وائي.
وَلَا يُنْزِفُوْنَ: ۱– اَیْ لَا يَقِيْئُوْنَ. د هغے نه به التيئ نۀ ورځي.
۲– لَايَسْكَرُوْنَ فَتَذْهَبُ عُقُوْلُهُمْ. داسے به نۀ نشه کيږي چه د هغے په وجه ئے عقلونه ختم شي.
د ضحاکؒ نه نقل دي چه د دنيا په شرابو کښې څلور ناکاره صفات دي، د سر درد، قے کول، نشه کيدل، بَول راتلل او شراب د جنت ددے تولو قبائحو نه پاك دي.
مِمَّا يَتَخَيَّرُوْنَ: اَیْ يَخْتَارُوْنَهٗ. د هغے نه چه دوي ئے غوره کوي.
پدے کښې اشاره ده چه د ميوو ډير قسمونه به وي نو هر څوك به د خپلے خوښے مطابق د هغے نه خوري.
مِمَّا يَشْتَهُوْنَ: د فاکهے سره ئے د تخيَر لفظ ذکر کړو او د غوښے سره اِشتهاء؟
پدے کښې ډير بلاغت دے ځکه چه د وږي انسان اشتهاء (شوق) کيږي، او د موړ انسان اشتهاء نۀ وي بلکه هغه په خپله خوښه د مزاج مطابق ميوه ځانله راخلي.
(او چونکه جنتيان خوراك د لوږے د وجه نه نۀ کوي بلکه د تفکه (مزے اخستو) د وجے نه ئے کوي) او همدا وجه ده چه فاکهه ئے په لحم باندے مقدم کړه. (فتح البيان)

Scanned by CamScanner

| وَحُورٌ عِينٌ ﴿٢٢﴾ كَأَمْثَالِ اللُّؤْلُؤِ الْمَكْنُونِ ﴿٢٣﴾ |
|---|
| او (دوی لره به وی) حورے غټے سترګو والا۔ پشان د ملغلرو پټو ساتلے شوو۔ |
| جَزَاءً بِمَا كَانُوا يَعْمَلُونَ ﴿٢٤﴾ لَا يَسْمَعُونَ فِيهَا |
| بدله ورکولے شی په سبب د هغے عملونو چه دوی به کول۔ نهٔ به آوری په هغے کښې |
| لَغْوًا وَلَا تَأْثِيمًا ﴿٢٥﴾ إِلَّا قِيلًا سَلَامًا سَلَامًا ﴿٢٦﴾ وَأَصْحَابُ الْيَمِينِ |
| بے ځایه خبره او نهٔ د ګناه خبره۔ مګر وینا به وی سلام سلام۔ او ښی لاس والا خلق، |
| مَا أَصْحَابُ الْيَمِينِ ﴿٢٧﴾ فِي سِدْرٍ مَخْضُودٍ ﴿٢٨﴾ |
| څه لوئی شان دے د ښی لاس والو۔ (دوی به) په بیرو کښې وی چه بے ازغو به وی، |
| وَطَلْحٍ مَنْضُودٍ ﴿٢٩﴾ وَظِلٍّ مَمْدُودٍ ﴿٣٠﴾ |
| او په کیلو کښې به وی چه لاندے باندے جوختے وی۔ او سوری اُوږده کړے شوی۔ |
| وَمَاءٍ مَسْكُوبٍ ﴿٣١﴾ وَفَاكِهَةٍ كَثِيرَةٍ ﴿٣٢﴾ لَا |
| او په اُوبو روانو کړے شوو (په مخ د زمکه باندے)، او په میوو ډیرو کښې چه نهٔ به |
| مَقْطُوعَةٍ وَلَا مَمْنُوعَةٍ ﴿٣٣﴾ وَفُرُشٍ مَرْفُوعَةٍ ﴿٣٤﴾ |
| ختمیږی او نهٔ به ترینه منع کیدے شی۔او په بسترو اُوچتو درجو والا کښې به وی۔ |

**تفسیر** :وَحُورٌ: دا عطف دے په وِلْدَانٌ باندے، یا خبر د مبتداء محذوفے دے (لَهُمْ حُورٌ) یعنی د دوئ دپاره به حورے وی غټو، فراخه او ښائسته سترګو والا، چه هغه به په سیپئ کښې د بندو ملغلرو غونته بے داغه او سپینے وی، او دا حورے به دوئ ته د دوئ د نیکو عملونو په سبب ملاویږی کوم چه دوئ په دنیا کښې د الله د رضا له خاطره کول۔

او په دے جنتونو کښې به دوئ هیڅ بے فائدے خبرے او بکواس نهٔ آوری، هلته به صرف ښه او کره خبره آوری، او یو بل ته به زیرے ورکوی چه اُوس ستاسو دپاره همیشه د هر یو غم او درد او خفګان نه سلامتیا ده۔

Scanned by CamScanner

مفسرین لیکی: دا آیت دلیل دے چه جنت والا به خپل مینځ کښې ډیرے پاکیزه خبرے اترے کوی، چه دے سره به خپلو کښې برخور کیږی او د هیڅا زړهٔ به نهٔ آزاریږی۔ د ذو الجلال والاکرام رب نه دعاء ده چه هغه په مونږ باندے هم مهربانی وکړی او جنت ته مو په خپل رحمت سره داخل کړی۔

اِلَّا قِيْلًا سَلٰمًا: دا اِستثناء متصل ده د جنس بعید نه۔ ځکه چه لغو هم کلام دے، او سلام هم کلام دے۔او استثناء کله د جنس قریب نه وی او کله د جنس بعید نه۔ او همدا خبره غوره ده، اگرکه بعض مفسرینو بعیده گڼلے ده۔

او بعض علماء وائی چه سلام خو د لغو د جنس نه نهٔ دے نو پدے وجه هغوی دا استثناء منقطع گرځوی، اَیْ لٰکِنْ یَسْمَعُوْنَ قِیْلًا سَلٰمًا ۔ او قیل په معنیٰ د قول سره دے، یعنی لیکن دوی به آوری وینا سلامتیا والا۔

یا معنیٰ دا ده چه دوی به آوری د یو بل نه سلامونه سلامونه۔ یعنی یو بل ته به ډالیٔ د سلام ورکوی۔ او قیل کښې اشاره ده چه دا سلامونه به د ملائکو د طرف نه هم وی، او د الله د طرفنه به هم وی او د یو بل د طرفنه هم۔

وَاَصْحٰبُ الْيَمِيْنِ: اُوس د جنتیانو دویمه ډله ذکر کیږی، او د هغوی هم کامل بشارت ذکر کوی۔

مَا اَصْحٰبُ الْيَمِيْنِ: یعنی ددے ښی اړخ والو تپوس څهٔ له کوے، دا خو به ډیر اُوچت خلق وی، او د دویٔ سعادت او نیك بختی به د آسمان ستورو ته رسیدلی وی۔

فِيْ سِدْرٍ مَّخْضُوْدٍ: دویٔ له به داسے بیرے وی چه هغه به د ازغو او نقصان ده ښاخونو او پاڼړو نه بیخی پاکے وی۔

مَّخْضُوْدٍ: (۱) اَلَّذِیْ خُضِدَ شَوْکُهٗ ۔ هغه چه ازغی ئے پریکړے شوی وی، نو هیڅ ازغی به پکښې نهٔ وی۔

(۲) ضحاكؒ، مجاهدؒ، مقاتل بن حیانؒ وائی: سدر مخضود هغه ده چه د بار نه ډکه وی۔
بعض وائی: ددے بیرو میوے به د منګو نه غټے وی۔

وَطَلْحٍ مَّنْضُوْدٍ: او کیلے به وی چه هغه به پورته نه لاندے پورے د میوو نه ډکے وی۔
سُدیؒ وئیلی دی چه د جنت کیلے به د دنیا د کیلو سره مشابه وی، لیکن هغه به د شاتو نه هم ډیرے خوږے وی۔

Scanned by CamScanner

وَطَلْحٍ: طلح جمع د طَلْحَةٌ ده، د کیلو ونے ته وائی

او زجاجؒ وئیلی دی چه دا بله ونه ده چه عربو به ورته اُمِّ غَیْلَان وئیله، او ددے مزیدار خوشبویه گلان دی، او عربو ته به دا ډیره محبوبه وه نو د هغوی د محبت مطابق ونه ذکر شوه اګرکه هغه به د دنیا د ونو نه ډیره زیاته غوره وی۔

مَّنضُودٍ: [اَیِ الْمُتَرَاکِبِ الَّذِیْ قَدْ نُضِدَ اَوَّلُهٗ وَآخِرُهٗ وَاَسْفَلُهٗ وَاَعْلَاهُ بِالْحَمْلِ لَیْسَ لَهٗ سُوْقٌ بَارِزَةٌ] یعنی د هغے میوه به د یو بل سره داسے انختے وی چه تنه به ئے توله پټه وی۔

وَظِلٍّ مَّمْدُودٍ: او د نظر لګیدو پورے به سوری خوارۀ شوی وی چه هیڅ کله به هغه نۀ ختمیږی۔ او عرب هر هغه اوږد شی ته چه نۀ منقطع کیږی ممدود وائی۔

د ربیع بن انسؒ وینا ده چه دا به د عرش سورے وی۔

او په حدیث د بخاریؒ او مسلمؒ کښی د ابو هریره ﷺ نه مرفوعاً نقل دی چه (په جنت کښی یوه ونه ده چه د هغے په سوری کښی سُور انسان سل کاله مزل وکړی هغه به قطع نکړی، (بیا ئے وفرمایل) ولولئ که غواړئ (وَظِلٍّ مَّمْدُودٍ))

(بخاری بدء الخلق باب۸، وتفسیر سورة ۵٦، باب۱ ومسلم فی الجنة حدیث ۸۰۷۰٦) وغیره۔

وَمَاءٍ مَّسْكُوبٍ: یعنی هر طرفته به بهیدونکی نهرونه اوچینے وی، چه د هغے اوبۀ به هیڅ کله نۀ اُوچیږی، او نۀ به خپله تازګی د لاسه ورکوی۔ یعنی دا به داسے روانے وی چه هیڅ حد (پوله) او کنده به نۀ لری، لکه په روایت د انس کښی دی: (فِیْ غَیْرِ اُخْدُوْدٍ) یعنی لښتی به نۀ غواړی۔

وَفَاكِهَةٍ كَثِيرَةٍ: او قِسما قِسم تولے میوے به ملاویږی چه هغه به هیڅ کله هم نۀ ختمیږی، او کله چه غواړی د دوئ مخے ته به موجود وی، په خِلاف د دنیوی میوو نه، چه هغه که د یخنئ په زمانه کښی ملاویږی نو د ګرمئ په زمانه کښی نۀ ملاویږی، او که ګرمئ کښی ملاویږی نو په یخنئ کښی نۀ ملاویږی، او کله داسے وی چه موسم راشی او تیر شی او په ونو کښی میوے ونۀ لګی۔

لَّا مَقْطُوعَةٍ: یعنی په هیڅ وخت کښی به نۀ قطع کیږی بلکه همیشه به ملاویږی۔

وَلَا مَمْنُوعَةٍ: یعنی په هیڅ وخت کښی به د چا نه نۀ منع کیږی، ددے نه به هیڅ مانع نۀ واقع کیږی، نۀ پیسے، او نۀ دیوال او نۀ دروازه، او نۀ پوړئ، او نۀ لرے والے او نۀ بیماری۔ دنیا کښی بعض نعمتونه مقطوع او بعض ممنوع وی۔

Scanned by CamScanner

ابن قتیبة وائی : یعنی إِنَّهَا غَیْرُ مَحْظُوْرَةٍ عَلَیْهَا کَمَا یُحظَرُ عَلَی الْبَسَاتِیْنِ فِی الدُّنْیَا۔
یعنی په دے میوو باندے به شپول نهٔ وی وهلے شوے لکه څنګه چه په دنیا کښې باغونو ته د ازغو شپول وهلے شوے وی۔ (فتح البیان)
وَفُرُشٍ مَّرْفُوْعَةٍ: ۱– اَیْ بُسُطٍ مَرْفُوْعٍ بَعْضُهَا فَوْقَ بَعْضٍ ۔ (بسترے به وی چه بعض به په بعضو باندے پورته کړے شوی وی)۔
۲– اَوْ مَرْفُوْعَةٍ عَلَی الْاَسِرَّةِ۔ په کټونو به پورته کړے شوی وی۔
۳– بعض وائی : فرش کنایه ده د جنتی زنانو نه۔ او د پورته والی نه مراد دا چه د جنتیانو د خوند اخستلو دپاره به په عالیشان بسترو باندے ناستے وی۔
یا مُرْتَفِعَاتُ الْاَقْدَارِ فِی الْحُسْنِ وَالْکَمَالِ ۔یعنی هغه به په حُسن او جمال کښې بے مثاله وی۔ او د دوئ مرتبے به ډیرے اُوچتے وی۔

| |
|---|
| إِنَّا أَنْشَأْنَاهُنَّ إِنْشَاءً ﴿۳۵﴾ فَجَعَلْنَاهُنَّ أَبْكَارًا ﴿۳۶﴾ عُرُبًا |
| یقیناً مونږ به پیدا کړو زنانو لره په ناشنا پیدا کولو سره۔ عاشقے به وی په خاوندانو، |
| أَتْرَابًا ﴿۳۷﴾ لِأَصْحَابِ الْيَمِينِ ﴿۳۸﴾ ثُلَّةٌ مِّنَ الْأَوَّلِينَ ﴿۳۹﴾ |
| همزولے به وی۔ دپاره د ښی لاس والو۔ دوی ډلے دی د مخکنو امتونو نه۔ |
| وَثُلَّةٌ مِّنَ الْآخِرِينَ ﴿۴۰﴾ |
| او ډلے دی د روستنو نه۔ |

**تفسیر : أَنْشَأْنَاهُنَّ:** ضمیر حور عین ته راجع دے۔ (۱) اَیْ اَبْدَعْنَاهُنَّ اِبْدَاعًا۔
یعنی مونږ به دغه حورے په غیر د ولادت نه نوی راپیدا کړو په جنت کښې چه دا به د آدم عليه السلام د نسل نه نهٔ وی بلکه نوے ایجاد به وی۔ (قاله ابوعبیدةؒ وغیره)
(۲) یا ددے نه مراد د دنیا زنانه دی چه دوئ به په جنت کښې په نوی پیدائش سره پیدا شی، او ځوانے جینکۍ به ترې جوړے شی۔ لکه یوے بو ډئ ته رسول الله ﷺ په طریقه د مزاح وفرمایل چه [یَا اُمَّ فُلَانٍ اِنَّ الْجَنَّةَ لَا یَدْخُلُهَا عَجُوْزٌ]
بو ډئ ګانے زنانه به جنت ته نهٔ ځی، نو هغه خفه شوه بیا ورته رسول الله ﷺ وفرمایل :

Scanned by CamScanner

[اَخْبِرُوْهَا اَنَّهَا لَا تَدْخُلُهَا وَهِيَ عَجُوْزٌ] ورشئ خبر ورکړئ چه تا په قرآن کښې نۀ دی لوستلی چه (اِنَّا اَنْشَاْنٰهُنَّ اِنْشَاءً) مونږ به دا زنانه په دوباره پیدائش سره پیدا کړو او پیغلې به ترې جوړې کړو. یعنی د بوډئ والی په صفت به نۀ داخلیږی.

(شمائل الترمذی ٢/٣٩ بشرحه والبغوی فی تفسیره ١٤/٨) وصححه الالبانی فی الصحیحة (٢٩٨٧)

او همیشه دپاره به خوانې جوړې شي. لکه د حورو په شان.

او پدې صورت کښې به دا ضمیر فُرُشٍ مَّرْفُوْعَةٍ ته راجع وی ځکه چه د هغې نه په یو تفسیر سره زنانه مراد وې.

لکه د سورهٔ یٰسٓ په (٥٦) آیت کښې راغلی دی: ﴿هُمْ وَاَزْوَاجُهُمْ فِيْ ظِلٰلٍ عَلَى الْاَرَآئِكِ مُتَّكِــُٔوْنَ﴾ (دوئ او د دوئ ښځې به په سورو کښې په پالنګونو باندې تکیه وهلی ناست وی).

اَبْكَارًا: ١- پیغلې او باکرې به ترې جوړې کړو.

٢- یا دا چه سړی ورته هرکله راتلل کوی نو هغه به پیغلې مونده کوی. (قاله مسیب بن شریکؒ) (قرطبیؒ)

عُرُبًا اَتْرَابًا: یعنی دا زنانه به د خپل حُسن او جمال، د خبرو د طرز، چال چلن، د بدن او د آواز د خوږ والی په وجه هر وخت خپل خاوندان داسې خوشحاله او تازه ساتی چه د هغې تعبیر په انسانی الفاظو کښې نشی کیدې. او دا ټولې ښځې به همزولې وی.

سدیؒ وئیلی دی چه دا ټولې به په شریفو اخلاقو کښې یو شان وی، خپلو کښې به یو بل سره مینه محبت کوی، او د بغض او حسد نه به ډیرې لرې وی.

عُرُبًا: جمع د عَرُوْبٌ ده د اَعْرَبَ نه اخستې شویدې، په معنیٰ د ښکاره کولو سره، نو دا به هم هغه زنانه وی چه په خپل شکل او ناز او ښائسته خبرو سره به خپلو خاوندانو ته محبت ښکاره کوی. دلته ئې معنیٰ ده:

١- [اَلْمُتَحَبِّبَةُ اِلٰى اَزْوَاجِهَا] خپلو خاوندانو ته خپل محبت ورکوی او د هغوی محبت به خپل ځان ته راکاږی.

٢- اَلْحَسَنَةُ التَّبَعُّلِ. ښائسته کور والې به کوی.

٣- عَوَاشِقُ لِاَزْوَاجِهِنَّ وَاَزْوَاجُهُنَّ لَهُنَّ عَاشِقُوْنَ. (ابن عباس رضی الله عنه ومجاهدؒ)

په خپلو خاوندانو باندې به عاشقې وی، او خاوندان به په دوئ باندې عاشقان وی.

Scanned by CamScanner

٤– ابن زیدٌ وائی : اَلْغَنِجَةُ ۔ یعنی ناز او نخرو والا به وی (یعنی رومانسی (رومینټك) به وی/نازکې خبرې به کوی) چه خاوندانو له به ډیر خوند ورکوی۔
٥– اَلْحَسَنَةُ الْكَلَامِ ۔ (زید بن اسلمؒ) ښائسته خوږو خبرو والا به وی۔

**اَتْرَابًا**: همزولی به وی۔

١– سُدّیٌ وائی : اَتْرَابًا فِی الْاَخْلَاقِ لَاتَبَاغُضَ بَیْنَهُنَّ وَلَا تَحَاسُدَ۔

په اخلاقو کښې به یو شان وی چه د هغوی ترمینځ به هیڅ بغض او حسد نهٔ وی۔

٢– اَتْرَابًا: په عُمر کښې به د یو بل سره یو شان وی، او د خاوندانو سره به هم همزولی وی، او په حدیث کښې دی : چه د درې دیرشو کالو په عمر به وی۔ او همزولتیا په محبت کښې ډیر مضبوطیا راولی۔

په زنانو کښې همزولو ته اتراب وئیلې شی، او په سړو کښې ورته اقران وائی۔ (فتح البیان)

امام ترمذیؒ د معاذ بن جبل رضی الله عنه نه روایت راوړیدې چه رسول الله ﷺ وفرمایل :

[یَدْخُلُ اَهْلُ الْجَنَّةِ الْجَنَّةَ جُرْدًا مُرْدًا مُكَحَّلِیْنَ اَبْنَاءَ ثَلَاثِیْنَ اَوْ ثَلَاثٍ وَّثَلَاثِیْنَ سَنَةً]

جنتیان به جنت ته د ویښتو نه صفا مخونو سره داخلیږی چه رنجینې سترګې به ئې وی او د دیرشو یا درې دیرشو کالو په عمر به وی۔

(ترمذی : ٢٥٤٥) واحمد (٧٩٢٠) واسناده حسن– البانی وشعیب)

**لِاَصْحَابِ الْیَمِیْنِ**: دا ښځې به د الله له خوا هغه جنتیانو ته ملاویږی چه هغوئ ته به د قیامت په ورځ د عرش ښی اړخ ته ځای ملاویږی، یا عملنامې به په ښی لاس ورکولې شی۔

دا متعلق دې په (اَنْشَاْنٰهُنَّ) پورې، یا د اَتْرَابًا پورې۔

**ثُلَّةٌ مِّنَ الْاَوَّلِیْنَ** : ١– د اولین نه مراد پخوانی امتونه دی، او د آخرین نه دا امت مراد دې۔ او اصحاب الیمین په پخوانو او دې امت کښې هم زیات دی۔

(٢) د ابو العالیةؒ، مجاهدؒ، عطاءؒ او ضحاکؒ وغیره خیال دادې چه د ﴿ثُلَّةٌ مِّنَ الْاَوَّلِیْنَ﴾ نه مراد د امتِ محمدیه د اولنئ زمانې خلق دی،

او د ﴿وَثُلَّةٌ مِّنَ الْاٰخِرِیْنَ﴾ نه مراد هغه نیکان خلق دی چه هغوئ د اولنئ زمانې نه روستو راغلی دی، او د امتِ محمدیه هغه تمام نیکان په دې کښې شامل دی چه قیامته پورې پیدا کیږی۔

Scanned by CamScanner

| |
|---|
| وَأَصْحَابُ الشِّمَالِ مَا أَصْحَابُ الشِّمَالِ ﴿٤١﴾ فِي سَمُومٍ |
| او کس لاس والا څه (بد حال والا) دي کس لاس والا۔ په کرمو هواګانو کښې |
| وَحَمِيمٍ ﴿٤٢﴾ وَظِلٍّ مِنْ يَحْمُومٍ ﴿٤٣﴾ لَا بَارِدٍ |
| او خوټ کیدلو اوبو کښې به وي۔ او په سوري کښې د لوګي نه۔ نۀ به یخ وي |
| وَلَا كَرِيمٍ ﴿٤٤﴾ إِنَّهُمْ كَانُوا قَبْلَ ذَٰلِكَ مُتْرَفِينَ ﴿٤٥﴾ |
| او نۀ به فائده مند وي۔ یقیناً دوي وو مخکښې ددے نه ډیر مست (په مالونو د دنیا)۔ |
| وَكَانُوا يُصِرُّونَ عَلَى الْحِنْثِ الْعَظِيمِ ﴿٤٦﴾ وَكَانُوا يَقُولُونَ |
| او وو دوي چه همیشوالے به ئې کولو په ګناه لویه باندے۔ او وو دوي چه وئیل به ئې |
| أَئِذَا مِتْنَا وَكُنَّا تُرَابًا وَعِظَامًا أَئِنَّا |
| آیا کله چه مړۀ شو مونږ او شو خاورے او هډوکي آیا مونږ به |
| لَمَبْعُوثُونَ ﴿٤٧﴾ أَوَآبَاؤُنَا الْأَوَّلُونَ ﴿٤٨﴾ |
| دوباره پورته کیدے شو۔ آیا او پلاران زمونږ مخکني۔ |

**تفسیر:** اُوس د کس اړخ والو جهنمیانو حال ذکر کیږي چه دوئ ته ئې په (۹) آیت کښې ﴿أَصْحَابُ الْمَشْأَمَةِ﴾ وئیلي دي، او په دے آیت کښې ئې دوئ ته ﴿أَصْحَابُ الشِّمَالِ﴾ وئیلي دي، یعنې هغه شریان او بدبخته خلق چه هغوئ ته به د عرش کس اړخ ته ځاي ملاویږي، او د کومو عملنامے چه په کس لاس کښې دوئ ته ورکړے کیږي، دا به ډیر بد قسمته خلق وي، ځکه د دوئ استوګنه به جهنم وي، چه د هغے براس، او یشیدلے اوبۀ به د دوئ بدنونه په هر وخت کښې بے آرامه او پریشان ساتي، او د دوئ په سرونو به د اُور او د تور لوګي سورے وي، چه په هغے کښې به نۀ یخوالے وي، او نۀ بله کومه ښیګړه، ولے چه دا به د جهنم د اُور لوګے وي چه هغه به بیحده وحشتناك او دردناك وي۔

سَمُوْمٍ: ۱ – ګرم لوړې ته وائي چه د انسان د بدن په مساماتو (سوړو) کښې ننوزي۔

۲ – یا سموم ګرم اُور ته وائي۔ او حمیم ګرمے او خوټ کیدلے اُوبۀ دي۔

Scanned by CamScanner

يَحْمُوْمٍ: ١ - د جهنم تور لوړی ته وائي. (ابن عباس ﷺ)

٢ - بعض وائي : دا په جهنم کښې يوه کنده ده. يحموم د اَحَمّ يا د حَمِيْمٌ نه دے، تك تور ته وائي. او معنیٰ دا ده چه دوئ به د جهنم نه سوری ته پناهی ویسی نو هغه به داسے سورے وموسی چه د جهنم لوړے به وی او تك تور به وی.

٣ - بعض وائي : دا د حُمَمٌ نه دے، سکارو او ایرو ته وئیلے شی. یعنی دا سورے به د سکارو او ایرو نه ډك وی. یعنی دوئ ته خو به اول کښې سورے ښکاری خو چه ورشی نو تور لوگے او سکارهٔ او ایرے به وی.

او پدے ترتیب کښې د دوئ سخت او همیشه عذاب ته اشاره ده ځکه چه دوئ د اُور د گرمیٔ نه تنگ شی، نو هوا به وغواړی نو هغه به سموم وی، بیا به اُوبهٔ وغواړی نو هغه به حمیم وی، بیا به سورے غواړی نو هغه به هم گرم او تور لوگے او بے فائدے وی.

لَّا بَارِدٍ وَّلَا كَرِيْمٍ: یعنی دا سورے به د نورو سورو په شان يخ نهٔ وی بلکه گرم به وی، او نهٔ به ددے منظر (کتنه) ښائسته وی. او هیڅ خیر به پکښې نهٔ وی.

په سوری کښې همدا دوه فائدے وی چه يخوالے او عزت ځکه چه څوك گرمیٔ کښې وی نو ظاهري لږ شان بے عزته وی.

اِنَّهُمْ كَانُوْا قَبْلَ ذٰلِكَ : د دوئ به دا بد انجام ځکه وی چه دوئ د دنيا په ژوند کښې په بدنی خوندونو او شهوتونو کښې ډوب شوی وو، او کبر او غرور او شرك او گناهونه د دوئ چلن وو، دے خلقو به غټ غټ گناهونه کول، او په دے به نهٔ خپیمانه کیدل چه د الله په حضور کښې ئے ددے نه توبه کړے وے.

١ - حسنؒ، ضحاكؒ او ابن زیدؒ وغیره د ﴿ الْحِنْثِ الْعَظِيْمِ ﴾ (غټے گناه) نه مراد شرك او کفر اخستے دے، یعنی دے خلقو به شرك کولو، او ددے نه به ئے توبه نهٔ اوخکله. او حنث قسم ماتولو ته وئیلے شی، او شرك هم د الله وعده او عهد ماتول دی.

٢ - امام شعبیؒ وائي : هُوَ الْيَمِيْنُ الْغَمُوْسُ . حنث عظیم په دروغو قسم کول دی. او مشرکانو به هم دا قسم کولو چه دوی به دوباره نهٔ راپورته کیږی. نو الله پدے خبره کښې دروغژن کړل.

مُتْرَفِيْنَ: د اِتْرَافٌ نه دے، د دنيا په نعمتونو او مزو او شهواتو سره ډیر مشغوله کیدو ته وئیلے شی تردے چه د دین نه بیخی ناخبره شی، او د توحید او سنت نه تکبر شروع کړی.

Scanned by CamScanner

یعنې داسې مست او مالداره خلق چه د هغې په وجه په تکبر کښې راغلي وو۔
وَكَانُوا يَقُولُونَ: یعنې دې خلقو به د مرګ نه پس ژوند د عقل نه لرې ګنړلو، وئیلې به ئې: دا نشي کیدې چه مونږ کله مړهٔ شو او خاورې شو او زمونږ صرف هډوکي پاتې شي نو مونږ به دوباره ژوندي کیږو۔ لکه څنګه چه د سورتِ نحل په (۳۸) آیت کښې راغلي دي: ﴿ وَأَقْسَمُوا بِاللّٰهِ جَهْدَ أَيْمَانِهِمْ لَا يَبْعَثُ اللّٰهُ مَنْ يَمُوتُ ﴾ (دوئ به د الله په نوم لوی لوی قسمونه کول چه کوم انسانان مړهٔ شي الله به هغوئ دوباره نهٔ ژوندي کوي)۔
او دې خلقو به د خپلو ځانونو نه زیات د خپلو هغه پلاران نیکونو ژوندي کیدل د عقل نه لرې ګڼړل چه د هغوئ په مرینې باندې یوه زمانه تیره شوې ده۔
أَئِذَا: دا استفهام د انکار او استبعاد (لرې ګنړلو) دپاره دې۔

| قُلْ إِنَّ الْأَوَّلِينَ وَالْآخِرِينَ ﴿٤٩﴾ لَمَجْمُوعُونَ إِلَىٰ مِيقَاتِ |
| --- |
| ته اُووایه یقیناً مخکني خلق او روستني خلق ضرور به راجمع کړې شي مقرر وخت |
| يَوْمٍ مَّعْلُومٍ ﴿٥٠﴾ ثُمَّ إِنَّكُمْ أَيُّهَا الضَّالُّونَ الْمُكَذِّبُونَ ﴿٥١﴾ |
| د ورځې معلومې ته۔ بیا یقیناً تاسو به اې ګمراهانو دروغژن ګنړونکو (الله او آخرت |
| لَآكِلُونَ مِن شَجَرٍ مِّن زَقُّومٍ ﴿٥٢﴾ فَمَالِئُونَ مِنْهَا الْبُطُونَ ﴿٥٣﴾ |
| لره)۔ خامخا خورئ به تاسو د ونې د زقوم نه۔ نو ډکونکي به یئ د هغې نه خیټو لره۔ |
| فَشَارِبُونَ عَلَيْهِ مِنَ الْحَمِيمِ ﴿٥٤﴾ فَشَارِبُونَ شُرْبَ |
| نو څکونکي به یئ دپاسه د هغې د ګرمو اُوبو نه۔ نو څکونکي به یئ پشان د څکلو |
| الْهِيمِ ﴿٥٥﴾ هَٰذَا نُزُلُهُمْ يَوْمَ الدِّينِ ﴿٥٦﴾ |
| د تږي اُوښانو۔دا میلمستیا د دوی ده په ورځ د جزا۔ |

**تفسیر**: یعنې ته دوی ته جواب ورکړه چه د آدم تمام اولاد چه هغوئ په تیرو شوو زمانو کښې تیر شویدي، او کوم چه اُوس موجود دي، چه په هغې کښې تاسو هم یئ، او هغه تمام خلق چه راتلونکې دنیا پورې پیدا کیږي، تول په تولـه به د محشر په میدان کښې جمع کولې شي، هیڅ یو انسان به هم هیچرته لاړ نشي۔

Scanned by CamScanner

الله تعالی د سورتِ هود په (۱۰۳) آیت کښې فرمایلي دي: ﴿ ذٰلِكَ يَوْمٌ مَّجْمُوْعٌ لَّهُ النَّاسُ وَذٰلِكَ يَوْمٌ مَّشْهُوْدٌ ﴾ (دا به داسې ورځ وي چه په دې کښې به خلق راجمع کولې شي، او دا به داسې ورځ وي چه په هغې کښې به ټول خلق حاضر کړې شي).

اَيُّهَا الضَّآلُّوْنَ: پدې آیتونو کښې د جهنمیانو د عذاب اسباب ذکر شول چه هغه حنث عظیم (شرك)، د قیامت نه انکار، ضلالت او تکذیب د حق دې.

فَمَالِئُوْنَ مِنْهَا الْبُطُوْنَ: یعنې د لوږې د سختۍ د لاسه به تاسو دا خورئ، تردې چه خپلې خیټې به ډکوئ. بیا به تاسو سخت تږي شئ، چه ددې تندې مړ کولو دپاره به تاسو ته نهایتې ګرمې جوشیدلې اوبۀ ملاوېږي، چه دا به تاسو د هغه بیمار اُوښ غونته څکئ چه هغه هیڅ کله خړوبه کیږي نۀ.

الْهِيْمِ: جمع د اَهْيَم او د هَائِم ده. ۱- یعنې تږي / خارښتي اُوښ)

دا هغه اُوښ ته وائي چه د هغه په معده باندې خارښ ولګي نو بیا خپل ځټ کوږ وړي، بدن کښې چه کله ګرمي پیدا شي نو خارښ ولګي، او بیا د ګرمۍ نه انسان تږې کیږي هم زیات، نو د ګرمۍ د وجه نه به دغه اُوښ چه کله اُوبو ته راغلو نو په اُوبو به ورغورزیدو، نو دوئ به هم دغه شان تږي وي چه په اُوبو به ځان وغورزوي نو چه ویڅکي لاندې به ترې کولمې وباسي.

(۲) ضحاكٌ، ابن عیینةٌ، اخفشٌ او ابن کیسانٌ وائي چه [هِيْم] شګلنې زمکې ته وائي، چه هغه اوبۀ راکاږي، او دپاسه په هغې باندې هیڅ اثر باقي نۀ پاتې کیږي. جهنمیان به هم د سختې تندې د لاسه جوشیدلې اُوبۀ څکي، او تنده به ئې ماتیږي نۀ.

هٰذَا نُزُلُهُمْ: په عربۍ ژبه کښې [نُزُل] هغه مختصر شان خوراکې ته وائي چه د میلمه د راتلو نه فوراً روسته پیش کولې شي، بیا د هغې نه پس نهایتې اهتمام سره د تکلف نه ډك خوراك پیش کولې شي.

ګویا په دې تعبیر کښې دې طرفته اشاره ده چه هر کله د جهنمیانو دپاره ابتدائي عذاب دا وي چه د هغې بیان پورته وشو، نو د هغه عذاب د سختۍ به څۀ حال وي چه هغه دوئ ته همیشه لپاره په جهنم کښې ورکړې کیږي.

اې الله! په مونږ باندې د جهنم اُور حرام کړه، آمین.

Scanned by CamScanner

| نَحْنُ خَلَقْنَاكُمْ فَلَوْلَا تُصَدِّقُوْنَ ﴿٥٧﴾ أَفَرَأَيْتُم |
|---|
| مونږ پیدا کړي يئ تاسو نو ولې تصدیق (یقین) نهٔ کوئ۔ آیا تاسو سوچ کړیدے |
| مَّا تُمْنُوْنَ ﴿٥٨﴾ أَأَنتُمْ تَخْلُقُوْنَهُ |
| په هغه نطفه چه تاسو ئې اړوئ (په رَحِم کښې)۔ آیا تاسو شکل جوړوئ د هغې نه |
| أَمْ نَحْنُ الْخَالِقُوْنَ ﴿٥٩﴾ |
| او که مونږ شکل جوړونکي يو۔ (آیا تاسو ددے نه پیدائش کوئ او که مونږ پیدا |
| نَحْنُ قَدَّرْنَا بَيْنَكُمُ الْمَوْتَ وَمَا نَحْنُ |
| کونکي يو)۔ مونږ مقرر کړیدے په مینځ ستاسو کښې مرګ لره او نهٔ يو مونږ |
| بِمَسْبُوْقِيْنَ ﴿٦٠﴾ عَلٰى أَنْ نُّبَدِّلَ أَمْثَالَكُمْ |
| عاجز کړے شوی۔ پدے خبره چه بدل کښې راولو ستاسو پشان خلق (چه بدل کړو |
| وَنُنْشِئَكُمْ فِيْ مَا لَا تَعْلَمُوْنَ ﴿٦١﴾ |
| شکلونه ستاسو) او پیدا کړو تاسو په هغه شکلونو کښې چه تاسو پرے نهٔ پو هیږئ۔ |

**تفسیر**: ددے ځای نه روستو د قیامت د اثبات دپاره دلیلونه ذکر کیږي۔

قریشو کافرانو به د مرګ نه پس دوباره ژوند دروغژن ګنړلو، او وئیل به ئې: دا نشي کیدے چه کله مونږ مړهٔ شو او خاورے شو، او ز مونږ صرف هډوکي پاتے شي، نو دوباره دے ژوندي کړے شو۔ الله تعالیٰ د دوئ ددے ملحدانه شبهے رد کوي، او دوئ سره خبرے کوي فرمائي چه مونږ تاسو هغه وخت پیدا کړئ چه تاسو هیڅ هم نهٔ وئ، نو کوم ذات چه اول ځل ستاسو په پیدا کولو باندے قادر وو، آیا هغه به تاسو دوباره پیدا نهٔ کړے شي؟ دوباره پیدا کول خو زیات آسان وي۔ ستاسو په عقلونو کښې دا خبره ولے نهٔ راځي؟

**أَفَرَأَيْتُم**: بل دلیل دا دے چه تاسو چه کله د خپلو بیبیانو سره کوروالے وکړئ نو د مَنی څاڅکے رحم ته څوك رسوي، نهه میاشتو او څو ورځو کښې د پیدائش د پړاوونو نه تیرولو سره څوك دا ژوندے انسان جوړوي، او د مور د خیټے نه ئې بهر را اوباسي؟

Scanned by CamScanner

یقینًا هغه د الله ذات دے چه هغهٔ په ښځه او خاوند کښې شهوت پیدا کړو، د دوئ په زړونو کښې ئے یو بل دپاره کشش واچولو، او مجامعت اوکور والی طرفته ئے د دوئ رهنمائی وکړه، او د مور په رحم کښې ئے د مَنِي د څاڅکي پرورش وکړو، هغهٔ له ئے غوښه، پوستکے او د هډوکو ډانچه ورکړه، هغهٔ له ئے ډقیدونکے زړهٔ ورکړو، هغهٔ له ئے غوږونه، سترګے، او پوزه جوړه کړه، او هلته چه ددهٔ غتیدل پوره شو نو د مور رحِم ته ئے حکم وکړو چه دهٔ له دیکه ورکړه او بهر ئے را اوباسه. نو کوم الله تعالیٰ چه په دے قادر دے، هغه یقینًا د همدے انسان په دوباره پیدا کولو قادر دے.

تُمْنُوْنَ: اَیْ تَقْذِفُوْنَ وَتَصُبُّوْنَ الْمَنِیَّ فِیْ اَرْحَامِ النِّسَاءِ. یعنی تاسو غورزوئ او اړوئ منی په رَحِمونو د زنانو کښې.

بعض معاصرینو اهل علمو ددے نه استدلال کړیدے چه په پیدائش د ماشوم کښې- نارینه وی که زنانه- د سړی منی لره اعتبار دے، او پیدائش هم ددے نه کیږی، او همدا خبره د جدید سائنس د تحقیقاتو سره هم مطابق ده. د سړی په منی کښې دوه قسمه سپرم وی، نارینه او زنانه، نارینه د Y په شکل او زنانه د X په شکل سره، هر یو چه بیضے ته مخکښې لاړ شی د هغے مطابق بچے پیدا کیږی، او د زنانه په ماده کښې صرف (X) وی، ددے وجه نه په طب کښې ددے علاجونه هم موجود دی چه د نارینه ماده بیضے ته مخکښې بوځی او د الله په حکم سره نارینه اولاد پیدا شی.

نَحْنُ قَدَّرْنَا : مخکښې د پیدائش نعمت ذکر شو نو اُوس د هغے زوال ذکر کوی په دوباره ژوندی کولو سره. نو پدے کښې الله تعالیٰ د مرګ نه پس د ژوند حقیقت په یو بل انداز کښې بیان کړے. فرمائی چه مونږ په تاسو کښې هر یو دپاره مرګ لازمی ګرځولے، چه ددے خبرے خبر ورکوی چه تاسو زمونږ د قبضے نه بهر نهٔ یئ، او نهٔ تاسو بیکاره پیدا شوی یئ، او نهٔ دا خبره صحیح ده چه تاسو مړهٔ شئ او خاورے شئ او دوباره به پورته کولے نشئ، بلکه تاسو به دوباره ژوندی کولے شئ، او تاسو سره به ستاسو د اعمالو حساب کیږی.

الله تعالیٰ ددے خبرے نه عاجزه نهٔ دے چه هغه تاسو هلاک کړی او ستاسو په ځای ستاسو پشان نور خلق راولی، او تاسو په نورو شکلونو او صورتونو کښې پیدا کړی.

حسنؒ وائی چه هغه تاسو د شادوګانو او خنزیرانو په شکل کښې پیدا کړی. نو کوم ذات

Scanned by CamScanner

چه په دے ټولو خبرو قادر دے، هغه به په آخرت کښې ستاسو د دوباره ژوندی کولو نه څنګه عاجزه او مانده کیږی ؟!

بِمَسْبُوْقِيْنَ: مسبوق دے ته وائی چه بل څوك ترے مخکښې شی، او دے روستو عاجز پاتے شی۔ یعنی تاسو زمونږ نه نشئ مخکښې کیدے چه مونږ مغلوب او عاجز کړئ۔

اَنْ نُّبَدِّلَ اَمْثَالَكُمْ: ۱- یو معنیٰ دا ده چه بدل کښې راوړو ستاسو مشابه خلق۔

۲- یا امثال اشخاصو ته وائی۔ یعنی چه بدل کړو ستاسو شخصونه۔

وَنُنْشِئَكُمْ فِيْ مَا لَا تَعْلَمُوْنَ: ۱- تاسو راپیدا کړو په هغه صورتونو او هیئتونو کښې چه تاسو ته نهٔ دی معلوم۔ یعنی شادوګان او خنزیران او سپی درنه جوړ کړو۔ یا په هغه شکل چه صرف الله ته معلوم دے، یعنی بله بلا درنه جوړه کړو بیا به څه کوئ۔

۲- یا پس د مرګ نه مو په هغه شکلونو پیدا کړو چه تاسو په هغے باندے په دنیا کښې نهٔ وئ۔ یعنی څوك سپین مخونو والا او څوك تور مخی۔

۳- بعض مفسرین وائی : د مرګ نه روستو بعض انسانانو لره درندګان وخوری نو د هغوی په بدن کښې مخلوط او بدل شی، او بعض انسانان خاورے شی او د هغه خاورو نه بوټی او ونے پیدا شی،

او بعض انسانان په معدنیاتو کښې خلط شی، نو د هغوی نه هغه معدنیات جوړ شی، نو دا امثال او اشکال مختلفه دی چه انسانانو ته د هغے علم نشته۔ لکه دے ته اشاره شویده چه سورة اسراء آیت (۵۰) کښې۔ (قاله الخطیب الشربینیؒ)

| وَلَقَدْ عَلِمْتُمُ النَّشْاَةَ الْاُوْلٰى فَلَوْلَا تَذَكَّرُوْنَ ﴿۶۲﴾ |
|---|
| او یقیناً تاسو ته معلوم دے پیدائش اولنے نو ولے نصیحت نهٔ اخلئ۔ |
| اَفَرَءَيْتُمْ مَّا تَحْرُثُوْنَ ﴿۶۳﴾ ءَاَنْتُمْ تَزْرَعُوْنَهٗ |
| آیا سوچ کړیدے تاسو په هغه څه کښې چه تاسو ئے کرئ۔ آیا تاسو زرغونه وئ دے |
| اَمْ نَحْنُ الزّٰرِعُوْنَ ﴿۶۴﴾ لَوْ نَشَآءُ لَجَعَلْنٰهُ |
| لره او که مونږ زرغونه ونکی یو۔ که چرته اُوغواړو مونږ خامخا وُبه ګرځوو دا ګیاه |

Scanned by CamScanner

| حُطَامًا فَظَلْتُمْ تَفَكَّهُونَ ﴿٦٥﴾ |
|---|
| ذره ذره نو وبه کړئ؛ تاسو چه خفګان به کوئ (فضول خبرے به کوئ)۔ |
| إِنَّا لَمُغْرَمُونَ ﴿٦٦﴾ بَلْ نَحْنُ مَحْرُومُونَ ﴿٦٧﴾ |
| یقیناً مونږ تاوانیان شو۔ بلکه مونږ محرومه شو۔ |

**تفسیر**: اُوس د اثبات د دوباره ژوند دپاره دلیل ذکر کوی په طریقه د قیاس کولو په اول ژوند باندے۔

وَلَقَدْ عَلِمْتُمُ النَّشْأَةَ الْأُولَىٰ: یعنی اے قریشو! یا اے منکرینو! تاسو خپل اولنئ پیدائش ولے هیروئ، الله تعالیٰ اول د منی یو څاڅکے د مور رحِم ته اورسولو، بیائے هغه جَم شوے وینه جوړه کړه، بیائے د غوښے بوټئ جوړه کړه، او بیائے یو مکمل انسان جوړ کړو، او د مور د رحِم نه ئے بهر را اوخکلو، نو تاسو خپل دویم پیدائش په اولنی پیدائش باندے ولے نهٔ قیاس کوئ، ځکه ستاسو په عقل کښې دا خبره نهٔ راځی چه کوم قادرِ مطلق ذات چه ستاسو په اول ځل د یو سپک څاڅکی نه پیدا کولو باندے قادر وو، هغه تاسو په دوباره آسانئ سره پیدا کولے شی۔ په دے کښې د حیرانتیا او تعجب کولو هیڅ ګنجائش نشته۔

النَّشْأَةَ: خِلقت او پیدائش ته وائی چه په دمه دمه سره وی، نو اول ژوند هم په مختلفو اَطوارو سره وو۔

فَلَوْلَا تَذَكَّرُونَ: یعنی تاسو ولے نهٔ رایادوئ دوباره ژوند چه دغسے به تاسو دوباره هم ژوندی کوی۔

أَفَرَأَيْتُم: دا دویم دلیل دے، مخکښې د پیدائش ذکر وو، دلته د تربیت ذکر دے۔

دلته الله تعالیٰ خپلو بندګانو ته د خپل احساناتو یادونه کوی، او دوئ له د خپل وحدانیت د اقرار، او د خپلے بندګئ دعوت ورکوی، دارنګه مرګ نه پس ژوند باندے استدلال کوی۔

تَحْرُثُونَ: حرث: زمکه شلول او د هغے اړول او په هغے کښې تخم شیندلو ته وئیلے شی، دا کارونه انسانان کوی لیکن د هغے رازرغونه ول، د دانے وګے راویستل صرف د الله تعالیٰ کار دے، مَا نه مراد تخم او دانے دی۔

Scanned by CamScanner

نو پدے کښې اثبات د توحید دے چه دا کار د هیڅ ولی او نبی او غیر نبی په اختیار کښې نشته۔ نو آیا تاسو دا سوچ نۀ کوئ چه کوم ذات د دانے نه وګے راویستو باندے قادر دے آیا هغه انسان لره د خاورے نه بیرته نشی راویستلے؟!

اَفَرَاَیْتُمْ: پدے کښې مقصد ترغیب دے فکر او سوچ کولو ته په تخم باندے۔

اَمْ نَحْنُ الزّٰرِعُوْنَ: دے نه معلومیږی چه اصلی زارع (زرغونونکے الله تعالیٰ دے) او بنده ته زارع په معنیٰ د حارث (کرونده کونکی) سره دے۔

او په صحیح حدیث د ابن حبان کښې راغلی دی: [لَا یَقُوْلَنَّ اَحَدُکُمْ زَرَعْتُ، وَلٰکِنْ لِیَقُلْ: حَرَثْتُ] (صحیح ابن حبان (۵۷۲۳) واسناده صحیح - شعیب)

هیڅوك دِے داسے نۀ وائی چه زَرَعْتُ (ما زرغونه وکړه) بلکه داسے به وائی (حَرَثْتُ) ما کرونده وکړه۔ او کوم حدیث کښې چه دا راغلی دی /

(مَا مِنْ مُسْلِمٍ یَغْرِسُ غَرْسًا اَوْ یَزْرَعُ زَرْعًا) یا آیت کښې دی: ﴿یُعْجِبُ الزُّرَّاعَ﴾

یعنی د زرع نسبت ئے مؤمن او انسان ته کړیدے، نو ددے دواړو حدیثونو او آیت تطبیق دا دے چه په طریقه د اخبار باندے یو تن ته نسبت کول جائز دی، لیکن بنده به ځان ته د زرع نسبت نۀ کوی۔

دویم دا چه د زرع نسبت ځان ته کولو له په حرث لفظ باندے غلبه ورکول صحیح نۀ دی؛ او کله نا کله د زرع نسبت جائز دے۔ لکه انګورو ته کرم وئیلو نه منع راغلے ده، او بیا رسول الله ﷺ ورته کرم وئیلی دی۔

[اَلْخَمْرُ مِنْ هَاتَیْنِ الشَّجَرَتَیْنِ الْکَرْمَةِ وَالنَّخْلَةِ] (مسلم: ۸۹/۶)۔

دریم دا چه حدیث د منع مقدم دے په حدیث د جواز باندے۔ والله اعلم، وبعض ذلك فی فتح الباری (۳۸۵/٤) والصحیحة للالبانی (۷۱۵/۶) رقم (۲۸۰۱)

ابن کثیرؒ ذکر کړیدی چه ددے نه روستو (بَلْ اَنْتَ یَا رَبِّ) وئیل د بعض سلفو عمل دے۔ (یعنی بلکه صرف هم تۀ زرغونونکے ئے اے ربه!)۔

**فائده**: دلته امام قرطبیؒ یو تجربه ذکر کړیده چه څوك په پټی کښې دانے وغورزوی او د هغے نه روستو اعوذ بالله ووائی، او بیا دا کلمات ووائی: ﴿اَفَرَاَیْتُمْ مَا تَحْرُثُوْنَ﴾ پوره آیت، او بیا ووائی: [بَلِ اللّٰهُ الزَّارِعُ وَالْمُنْبِتُ وَالْمُبَلِّغُ، اَللّٰهُمَّ صَلِّ عَلٰی مُحَمَّدٍ وَارْزُقْنَا ثَمَرَهٗ، وَجَنِّبْنَا ضَرَرَهٗ وَاجْعَلْنَا لِاَنْعُمِكَ مِنَ الشَّاکِرِیْنَ وَلِآلَائِكَ مِنَ الذَّاکِرِیْنَ، وَبَارِكْ لَنَا فِیْهِ یَا رَبَّ

Scanned by CamScanner

الْعَالَمِيْنَ] نـو پـدے کـلـمـاتـو سـره به ددهٔ فصل د تولو آفاتو نه محفوظ شي، چينجي او ملخان وغيره، پدے خبره تجربه شويده او همدغه شان شويدي،آه۔

دا يوه دعاء ده او دا به دين او سنت نهٔ گنړي، هسے لوستل ئے جائز دي۔

حُطَامًا: يعني ذره ذره/ مات رامات۔ يعني داسے اُوچه گياه چه دانے پکښې نهٔ وي۔

تَفَكَّهُوْنَ : تَـفَكُّهُ لـفـظ د اضـدادو نـه دے، خـوشـحـالـي او تعجب کولو ته هم وائي، او خـفـگان ته هم۔ ١ - اَیْ فَـصِرْتُمْ تَعْجَبُوْنَ ۔ تـاسـو بـه وکـرځـئ تعجب به کوئ، چه دا څه وشو۔ (ابن عباس رضي الله عنه)

٢ - تَحْزَنُوْنَ وَتَلَهَّفُوْنَ۔ يعني تاسو به غمژن او خفه يئ۔ (ک سائيّ)

٣ - او تفکه کله بے فائدے خبرو کولو ته هم وائي۔

او دا آيت د ﴿لَظَلُّوْا مِنْ بَعْدِهٖ يَكْفُرُوْنَ﴾ (الروم: ٥١) په شان دے۔

إِنَّـا لَمُغْرَمُوْنَ: ددے جـمـلے ١ - يـو مـطـلب دا دے چه تاسو به وايئ چه مونږ له صرف تاوان راکړے شو بلکه محرومه شو (وَلَسْنَا بِمُعَذَّبِيْنَ)۔

او مـونـږ تـه عـذاب نـهٔ دے راکـړے شـوے، يـعـنـي دا کار بـه عذاب نـهٔ گنړئ، د زړونو د سختـوالي د وجـه نـه به مو دا وئيلے چه دا د دنيا يو چال دے چه مصيبت راغلو او مونږ خو څه گناهگار نهٔ يو چه عذاب راکړے شي۔ مشرك ځان گناهگار نهٔ گنړي۔

٢ - دويـم مـطـلـب غوره دا دے چه تاسو به توله پړه په الله ور اچوئ او خپلے گناه ته به نهٔ گـورئ، يـعـنـي تاسو به داسے وايئ چه مونږ خو تاوانيان شو او تول مال او فصل مو ختم شو، الله رانـه واخسـتـو، يـعـني بيا به د الله نه مرور يئ، او د هغهٔ نه به گيلے شکوے کوئ لـکـه دا د مجرمانو طريقه ده چه مصيبت پرے راشي نو د الله تعالىٰ نه نا اميده شي او په الله باندے پړه وراچوي او خپلے گناه ته نهٔ گوري۔

يـعـنـي تاسو به د خپلے بے وسئ ښکاره کولو نه سوئ هيڅ هم نشو کولے، ليکن الله په خپـلـو بـنـدگـانـو ډير زيات مهربان دے چه هغه ددے دانو پرورش کوي، تردے چه پخيدو سره د غـذاء قـابل جوړ شي، او انسان دا خپل کور ته راوړي، او د خپل ځان او خپلو بچو دپاره ئے ذخيـره کـوي۔ د هـغـهٔ دا مهرباني د بندگانو نه دا غواړي چه د هغهٔ د وحدانيت اقرار وکړي، او صرف د هغهٔ بندگي وکړي۔

Scanned by CamScanner

| أَفَرَأَيْتُمُ الْمَاءَ الَّذِي تَشْرَبُونَ ﴿٦٨﴾ أَأَنتُمْ أَنزَلْتُمُوهُ |
| --- |
| آیا تاسو سوچ کړیدے په هغه اُوبو کښې چه څکئ ئے تاسو۔ آیا تاسو رالیږلی دی دیے لره |
| مِنَ الْمُزْنِ أَمْ نَحْنُ الْمُنزِلُونَ ﴿٦٩﴾ لَوْ نَشَاءُ جَعَلْنَاهُ أُجَاجًا |
| د وریځو نه او که مونږ رالیږونکی یو۔ که چرته اُوغواړو مونږ وُبه گرځوو دا ترخے، |
| فَلَوْلَا تَشْكُرُونَ ﴿٧٠﴾ أَفَرَأَيْتُمُ النَّارَ الَّتِي تُورُونَ ﴿٧١﴾ |
| نو ولے شکر نهٔ کوئ۔ آیا تاسو سوچ کړیدے په اُور کښې هغه چه تاسو ئے بلوئ۔ |
| أَأَنتُمْ أَنشَأْتُمْ شَجَرَتَهَا أَمْ نَحْنُ الْمُنشِئُونَ ﴿٧٢﴾ نَحْنُ جَعَلْنَاهَا |
| آیا تاسو پیدا کړیده ونه د اُور او که مونږ پیدا کونکی یو۔ مونږ گرځولے ده دا |
| تَذْكِرَةً وَمَتَاعًا لِّلْمُقْوِينَ ﴿٧٣﴾ فَسَبِّحْ |
| یاداشت (د اُور د جهنم) او فائده دپاره د مسافرو۔ (د لوږے والو) پس تسبیح وایه |
| بِاسْمِ رَبِّكَ الْعَظِيمِ ﴿٧٤﴾ |
| په نوم د رب خپل چه لوئی شان والا دے۔ |

**تفسیر** :أَفَرَأَيْتُمُ الْمَاءَ: دا بـل دلیل دے، او د تربیت دویمه ماده ده، یعنی تاسو په هغه خوږو اُوبو کـله سوچ کړے چه تاسو ئے څکئ او خپله تنده پرے ماتوئ، دا د وریځے نه د باران په شکل کښې په زمکه باندے تاسو را وروئ اوکه مونږه ؟

جـواب ظا هر دے چه دا مـونږ را وروو۔ هـر کـلـه چه تاسو ددے اقرار کوئ، نو بیا د الله تـعالیٰ د وحدانیت اقرار ولے نهٔ کوئ، او دا خبره ولے نهٔ منئ چه هغه قادرِ مطلق د قیامت په ورځ ستاسو په دوباره ژوندی کولو باندے قادر دے۔

تَشْرَبُونَ: دلتـه ئے صـرف شُرب (څـکـل) ذکر کړل سره ددے نه چه په اُوبو کښې نورے زیاتے فائدے دی ځکه چه دا ئے ډیره لویه فائده ده چه انسان پرے د مرگ نه بچ کیږی۔

الْمُزْنِ: جمع د مُزْنَةٌ ده، مـطـلـق وریځے ته یا سپینے وریځے ته وئیلے شی، ځکه چه باران اکثـر د سپینو وریځو نه کیږی، دا دلیل دے چه تمام مخلوق (انبیاء علیهم السلام وی او

Scanned by CamScanner

که اولیاء وغیره) هغوی د باران د وروِلو قدرت نهٔ لري، نو افسوس د هغه جاهلانو په حال باندې چه کله سوکړه شي نو دوی بعض قبرونو ته ځي، او په جاهلانه طریقه د قبرونو والو نه باران غواړي، یا د قبرونو په برکت سره ئې غواړي.
یا په قبرونو باندې اُوبه اچوي، دا ټول بدعي او شرکي اعمال او طریقې دي.
لَوْ نَشَاءُ جَعَلْنَاهُ: یعنی که مونږ غوښتلې نو د اُوبو غوندې لوی نعمت به مو تاسو نه اغستې وې، هغه به مو دومره ترخې جوړې کړې وې چه تاسو به ددې یو ګوټ هم د حلق نه لاندې کوز کړې نهٔ وې، او نهٔ به مو ددې په ذریعه خپلې زمکې او پټي خړوبه کولې شوې. لیکن هغهٔ داسې ونهٔ کړل، ځکه چه هغه حق ذات په خپلو بندګانو ډیر زیات مهربانه دې. او د هغهٔ دا مهربانی بندګانو نه غوښتنه کوي چه دوئ هر وخت د هغهٔ شکر وکړي. اُوبهٔ ډیر لوی نعمت دې پدې وجه ددې نعمت دپاره د شکر مطالبه وکړې شوه. ددې وجه نه د شکر د ادا کولو دپاره د خوراك څکاك نه روستو الحمد لله وئیل په سنت کښې مقرر شویدي. او د مخکښې نشأة اولیٰ نعمت نه روستو ئې (فَلَوْلَا تَذَكَّرُوْنَ) تذکر ذکر کړو ځکه چه هلته مقصد دوباره ژوند په اول ژوند باندې قیاس کول دي، او قیاس او عبرت ته تذکر وئیلې شي.
**فائده** : د طعام نعمت په زوال کښې ئې لام تاکید داخل کړو (لَجَعَلْنَاهُ حُطَامًا) او د اُوبو نعمت په زوال کښې ئې لام رانهٔ وړو (جَعَلْنَاهُ أُجَاجًا) ددې حکمت علامه قاسمیؒ د حافظ ابن اثیرؒ نه دا نقل کړیدې چه د اُوبو خوند بدلیدل په عرف او عادت کښې ډیر او آسان دي، او دارنګه مالګینې اُوبه په دنیا کښې د خوړو اُوبو نه ډیرې دي، نو په دې کښې لام تاکید راوړو ته ضرورت نشته، او د طعام نه حطام جوړول کله کله وي په اسباب غیر عادیه و سره، لکه په طوفان، ګلئ وغیره سره، او دارنګه هغه د الله تعالیٰ د غضب اثر وي، نو د هغې په ذکر کښې زیات تاکید ته ضرورت دې دپاره د پوره تذکیر او تحقیق. (القاسمیؒ)
أَفَرَأَيْتُمُ النَّارَ الَّتِي : دا څلورم دلیل دې د اثبات د توحید او د دوباره ژوند، او د تربیت دریمه ماده ده.
تُوْرُوْنَ: وَرْیُ، اُور راویستو او بلولو ته وئیلې شي.
شَجَرَتَهَا: د بعض ونو د پاڼو او څانګو نه په مږلو سره اُور راوځي لکه عربو کښې مرخ

Scanned by CamScanner

او عـفار ونے داسے وے لـکـه د بعض کتبو په رګړ کولو سره اُور پیدا کیږي. او په هره ونه کښې اُور شته لکه دا خبره په تفسیر د سورة یس کښې تفصیلًا ذکر شویده.
او دارنګه په ډبې باندے تیلی رابنکلو سره اُور پیدا کیدل هم پدے کښې داخل دی. ځکه چه هغه هم د ونے ډکے دے.
اَلْمُنْشِؤُوْنَ: یعنی مونږه ئے پیدا کوو نو د اِنْشَاء نه مراد خَلْق (پیدائش) دے، او تعبیر ئے ترے په اِنْشَاء سره وکړو ځکه چه پدے کښې ناشنا کاریګري او د الله عجیب قدرت دے.
نَحْنُ جَعَلْنَاهَا: پدے کښې د اُور دوه فائدے ذکر کوي.
تَذْكِرَةً: یعنی پدے اُور لیدلو سره د جهنم اُور یادیږي، نو د هغے نه پناهي غوختلے کیږي، او ویره ترینه کیدے شي. او دارنګه د ونو نه په اُور راویستو سره بعث بعد الموت هم معلومیږي. او دا د توحید دپاره هم یاداشت دے چه پدے کار باندے د الله تعالىٰ نه سوئ هیڅوك قادر نهٔ دے.

## د اُور هیبت او د بعض خائفینو ذکر

ابو هريره ﷺ د رسول الله ﷺ نه ارشاد نقل کوي: «ستاسو دا اُور چه تاسو ئے بلوئ د جهنم د اُور نه اویایمه برخه ده، صحابه کرامو عرض وکړو اے د الله رسوله! (وَاللّٰهِ اِنْ كَانَتْ لَكَافِيَةً) قسم په الله یقیناً چه دا هم کافي وو. وے فرمایل: د جهنم اُور پدے باندے په نهه شپیته برخو زیات دے چه تولے برخے د هغے د ګرمائش په شان دی.
(بخاري بدء الخلق باب ۱۰، ومسلم في الجنة حديث: ۳۰)
سلفو به د اُور نه ډیر نصیحت اخستو. ابن رجبؒ په خپل کتاب «اَلتَّخْوِيْفُ مِنَ النَّار» کښې ډیر واقعات ذکر کړیدي.
سعد بن الاخرمؒ وائي: زهٔ د عبد الله بن مسعود ﷺ سره روان وم نو هغه په آهنګرانو ورتیر شو چه هغوی یوه وسپنه د اُور نه راویستلے وه، نو هغه ودریدو او هغے ته ئے کتل او ژړل ئے. او په بله موقعه په آهنګرانو ورتیر شو چه هغوی په بټئ کښې اُور پو کلو نو ابن مسعود ﷺ راپریوتو.
عطاء الخراسانيؒ وائي: اُویس قرنيؒ به د آهنګرانو په ځای کښې ودریدو نو هغوی ته به ئے کتل چه څنګه بټئ پو کي، نو د اُور آواز به ئے واوریدو او چغه به ئے کړه، بیا به راپرے

وتو۔
ابن ابی الذبابؒ وائی : طلحه بن عبید الله ﷺ او زید ﷺ دواړه د آهنګر په بټئ ورتیر شو نو دواړه ودریدل کتل ئے نو په ژړا شول۔
حماد بن سلمهؒ د ثابتؒ نه نقل کوی چه بشیر بن کعبؒ او د بصریے قاریان به آهنګرانو خوا ته راتلل، او د اُور آوازونه به ئے آوریدل، نو په الله پورے به ئے د اُور نه پناهی غوښته۔
علاء بن محمدؒ وائی : زهٔ په عطاء السُّلمیؒ ورننوتل نو ما ولیدو چه بے هوشه پروت وو، ما د هغهٔ د ښځے نه تپوس وکړو چه دا ولے ؟هغے وویل چه زمونږ ګاونډئ تنور لمبه کړو کله چه دهٔ هغے ته وکتل نو بے هوشی پرے راغله۔
داسے ډیر تفصیلی واقعات په دغه کتاب کښ کتلے شئ۔
وَمَتَاعًا لِّلْمُقْوِينَ: مقوی : مسافر ته وئیلے شی۔ د قِوَاءُ نه دے شاړے زمکے ته وائی۔
یعنی پدے اُور کښ فائده ده د هغه خلقو دپاره چه په شاړه کښ نازلیږی لکه مسافر خلق او بانډو او صحراوونو والا، او دوی ئے خاص ذکر کړل ځکه چه دوئ اُور ته ډیر ضرورت لری د مُقیمینو نه۔ ځکه چه هغوی ئے د شپے ددے دپاره بلوی چه درنده ګان وتښتی، او لاره ورک کړے سړے لاره وموی، وغیره۔
۲– مقوین : فائده اخستونکو ته هم وئیلے شی۔ (مجاهدؒ)
۳– او مقوین : جائعینو (وږو) خلقو ته هم وائی چه طعام پرے تیار کړی۔ (ابن زیدؒ)
٤– قُطربؒ وائی : قِوَی د اضدادو نه دے، کله په معنیٰ د فقر سره وی، او کله په معنیٰ د غِنیٰ (مالدارئ) سره وی۔ نو په اُور کښ د مالدارو دپاره هم فائدے شته۔

## د اُور فائدے

د اُور مجموعی فائدے ډیرے دی لکه طعام پخول، ګرمول، په یخنئ کښ ځان ګرمول، رڼرا حاصلول، اُوسپنے او سرهٔ زر او سپین وغیره ویلی کول او د هغے نه څیزونه جوړول۔ که چرے اُور نهٔ وے نو انسان به کچه څیزونه خوړلے، او د هغه صنعتونو او ایجاداتو دروازے به نهٔ پرانستل کیدے په کومو کښ چه خامے مادے په اُور ویلی کولو سره مشینونه، وسلے، او عقل حیرانوونکی آلات جوړیږی۔
فَسَبِّحْ: دا تفریع ده په تیر شوی دلیلونو او نعمتونو په مسئله د توحید سره۔ او پدے

Scanned by CamScanner

كښې رد دے په مشركانو او د هغوی په تكذيب باندے چه هغوی ددے دليلونو او نعمتونو نه انكار كوی، او د الله سره شريكان جوړوی، نو ته د الله پاكی بيان كړه د هر عيب او نقصان نه. او ددے ربط دا دے چه هركله چه قيامت راځی نو يو خو شكر وكړئ او بل د الله پاكی ووايئ. دا آيت چه كله نازل شو رسول الله ﷺ وفرمايل :

[اِجْعَلُوْهَا فِيْ رُكُوْعِكُمْ] دا په خپلو ركوع كښې ووايئ. يعنی سُبْحَانَ رَبِّيَ الْعَظِيْمِ.

(ابوداود : ۸٦۹) ابن ماجه (۸۸۷) احمد (۱۷٤٥۰)

بِاسْمِ رَبِّكَ: سَبِّحِ لفظ كله خپله متعدی وی، او كله په حرف جر سره نو باء زياتی ده، او دلته پاكی د نوم ذكر شوه، پدے كښې اشاره ده چه لكه څنګه چه د الله تعالىٰ ذات د هر قسم عيب او نقصان نه پاك ګڼړل، او هغه لره پاكی وئيل واجب دی، نو دغه شان د هغهٔ نومونه هم پاك ګڼړل واجب دی. بعض وائی: اسم په معنىٰ د ذات سره دے.

الْعَظِيْمِ : دا صفت د اِسم هم دے، او د رب هم، رب عظيم شان والا، او نومونه ئے هم لوی شان والا دی.

او دا هغه ذكر دے چه دومره طاقت پكښې دے چه د انسان نه اُور هم دفع كوی، او د ټولو عذابونو نه ئے بچ كوی، كله چه د بنده په الله ايمان وی نو څوك چه د هغه پاكی بيانوی نو دا مشرك نهٔ وی، په الله ئے نيك ګمان وی، د الله ذاكر وی، او دا تسبيحات مشتمل دی د الله توحيد لره او د هغه تعظيم لره او د هغه ذكر لره او د غفلت زائل كولو لره.

| فَلَآ أُقْسِمُ بِمَوٰقِعِ النُّجُوْمِ ﴿۷٥﴾ وَإِنَّهٗ لَقَسَمٌ |
|---|
| داسے نهٔ ده، زهٔ قسم كوم په ځايونو د ستورو باندے. او يقيناً دا قسم |
| لَّوْ تَعْلَمُوْنَ عَظِيْمٌ ﴿۷٦﴾ إِنَّهٗ لَقُرْاٰنٌ كَرِيْمٌ ﴿۷۷﴾ |
| كه چرته تاسو پو هيږئ لوئی دے. يقيناً دا قرآن دے عزتمند. |
| فِيْ كِتٰبٍ مَّكْنُوْنٍ ﴿۷۸﴾ |
| په كتاب محفوظ ساتلے شوی كښې دے. |

**تفسير:** مخكښې د اثبات د توحيد او د قيامت دپاره دليلونه ذكر شو نو اُوس قرآن ته

Scanned by CamScanner

ترغیب ورکوی چه دا وحیي دلیل دے، او د قرآن کریم عادت دا دے چه کله د قیامت تذکره وکړی نو بیا د قرآن تذکره کوی، ځکه چه څوك د آخرت نه یریږی نو هغه به د قرآن نه فائده اخلي، او که څوك قرآن والا وی نو هغه به ضرور آخرت مني، او د هغې دپاره به تیاری کوی، او د هغې نه به یره کوی. لکه دا جمع ئے په سورة القیامه، سورة الحاقه، سورة التکویر کښې هم کړیده.

نو پدے آیتونو کښې الله تعالیٰ د ستورو په منزلونو او د هغې د راوتو او ډوبیدو په ځایونو باندے قَسَم خوړلے او ددے خبرے یقین ئے ورکړیدے چه دا قرآن ډیر زیات قابلِ احترام کتاب دے، چه په لوحِ محفوظ کښې د هر تغیر او تبدیلۍ نه محفوظ دے، او دا صرف پاك خلق مسه کوی.

فَلَآ اُقْسِمُ: پدے (لَا) کښې ډیر اقوال دی، غوره پکښې دوه دی.

(۱) یو قول دا دے چه دا لَا زیاتی دے، او د عربو په عادت بناء دے چه هغوی به د تاکید د اِثبات دپاره لَا په صورت د قسم کښې زیاتی ذکر کولو، او معنیٰ ئے د اثبات ده.

(۲) دویم قول دا چه لا نافیه دے، او پدے کښې نفی د پتے خبرے د منکرینو ده چه هغه معلومیږی د مخکنو آیتونو نه. [فَلَوْلَا تُصَدِّقُوْنَ، فَلَوْلَا تَذَكَّرُوْنَ، فَلَوْلَا تَشْكُرُوْنَ]

یعني تصدیق نهٔ کول او عبرت نهٔ اخستل او شکر نهٔ کول نهٔ دی مناسب.

یا معنیٰ دا ده لَيْسَ الْاَمْرُ كَمَا يَزْعُمُوْنَ. یعنی خبره داسے نهٔ ده څنګه چه کفار ګمان کوی چه قیامت به نهٔ راځی او دا قرآن د الله کلام نهٔ دے. او همدا قول ډیر غوره دے.

(۳) بعضو وئیلی دی چه دا لَا په اصل کښې لام تاکیدیه دے، او بیا جدا شویدے، او الف اِشباعی پکښې زیاتی شویدے. او په اصل کښې (فَلَاُقْسِمُ) وو. یعنی خامخا زهٔ قسم کوم.

بِمَوَاقِعِ النُّجُوْمِ: (۱) دے کښې مرجوح تفسیر دا دے چه د نجوم نه مراد نجوم القرآن دی، او نجم قِسط (حصے) ته وائی، یعنی قرآن نَجْمًا نَجْمًا (لږ لږ په قسطونو) نازل شویدے. نو مراد د مواقع نه آیتونه او سورتونه دی.

(۲) راجح دا ده چه دلته د نجوم نه مراد ستوری دی، یعنی په ځایونو د بنکاره کیدو او د پریوتو او ډوبیدو د ستورو قسم شویدے. (قتادهؒ او مجاهدؒ)

او ستوری د الله د قدرت ناشنا نښه ده، او مناسبت ئے دا ده چه په ستورو باندے شیطانان ویشتلے کیږی، نو که قرآن د شیطان د طرفنه راغلے وے، نو په ستورو به ویشتلے شوے

Scanned by CamScanner

وي۔ دویم مناسبت دا دے چه په آسمان کښې ډیر ستوري دي، او روښانه دي، نو دغه شان په قرآن کریم کښې ډیر آیتونه او احکام دي چه ډیر روښانه دي، د هر ستوري خپله فائده ده، نو دغه شان د هر آیت خپله خپله فائده ده۔

یا لکه څنګه چه ستوري اول ښکاره شي بیا غائب شي نو دغه شان د الله تعالیٰ مُنَزل کتابونه هم د ستورو په شان رنړا کونکي وو، پخواني کتابونه د ښکاره کیدو نه روستو غائب شول او دا قرآن کریم چه د نمر په شان رنړا ئے ده راښکاره شو۔

یا په ستورو باندے آسمان ټینګ ـ ے نو دغه شان په قرآن کریم باندے د مؤمن ایمان مضبو طیږي۔

(۳) عطاء بن ابی رباحؒ وائي چه د مواقعو نه مراد منازل (منزلونه) د ستوري دي۔

(٤) حسنؒ وائي : د مواقعو د ستورو نه مراد د قیامت په ورځ ددے خړ کیدل او دوریدل دي۔

او په مواقعو د ستوروئے قسم وکړو ځکه چه دا د ملائکو د خاص عباداتو وخت دے، یا دا وخت د قیام اللیل د تهجد کونکو دے، او پدے وخت کښې رحمتونه او د الله رضا دوی ته حاصلیږي۔ (فتح البیان)

وَإِنَّهُ لَقَسَمٌ: دا جمله معترضه ده، او ددے په مینځ کښې (لَوْ تَعْلَمُوْنَ) بله جمله معترضه ده، او دا ددے دپاره راوړل شویده چه د قسم عظمت ښکاره کړي۔ یعني د ستورو په مواقعو باندے قسم کول ډیر لوی قسم دے، کاش چه تاسو ددے په عظمت او هیبت باندے پوهه شوي وے۔ او دا قسَم ځکه لوی دے چه الله تعالیٰ صرف د خپل کامل قدرت په ذریعه آسمان کښې موجود نمر او سپوږمۍ او بے شماره ستوري د یو مضبوط او محکم او نهایتے دقیق نظام پابند ساتلي دي، چه ددے مطابق نمر او سپوږمۍ او نور ټول ستوري په خپل مدار کښې ګرځي راګرځي، او په هیڅ حال کښې هم د خپلو منزلونو نه تجاوز نۀ کوي۔

او دا قسم د شهادت (ګواهي) دپاره دے۔

لَوْ تَعْلَمُوْنَ: نـه معلومه شوه چه څوک جاهل وي دا قسم به سپك ګڼړي، او كه تا سره د ستورو علم موجود وو نو تا ته به ددے عظمت ښکاره شي۔

Scanned by CamScanner

## قرآن کریم ولے کریم دے ؟

إِنَّهُ لَقُرْآنٌ كَرِيمٌ: شوکانیؒ لیکلی دی چه قرآن د الله هغه معزز او مُکرم کتاب دے چه دهٔ ته په تمامو آسمانی کتابونو باندے برتری حاصله ده۔ ددے شان ددے نه پورته دے چه دا دے جادو، کهانت یا د چا دروغ ترل وی۔

واحدیؒ لیکلی چه دا عزتمن ځکه دے چه په دے کښې په بیان کړو دلائلو کښې د غور او فکر کولو په وجه انسان ډیرے ښیګړے حاصلوی۔

ازهریؒ لیکلی چه [كَرِيمٌ] دیته وئیلے کیږی چه دهغے تعریف وکړے شی۔ نو قرآن ځکه د تعریف لائق دے چه دا د رُشد او هدایت او عِلم او حکمت خزانه ده۔

او قرآن کریم پدے وجه هم عزتمن دے چه مخلوق نهٔ دے، بلکه د الله صفت دے، د عظیم الله خبرے دی، د ډیرو فائدو او علمونو نه ډک دے، مُعجز دے، څوك ئے مقابله نشی کولے، په ډیرو کریمو اخلاقو او احکامو مشتمل دے، او ددے لوستونکے د الله په نیز باندے مکرم او عزتمن دے۔ (فتح البیان)

د ﴿ كِتَابٍ مَّكْنُونٍ ﴾ نه مراد د یوے ډلے په نیز لوحِ محفوظ دے۔

عکرمهؒ ددے نه مراد (تورات او انجیل) اخستی دی، ځکه په دے دواړو کتابونو کښې د قرآن او صاحبِ قرآن (نبی کریم ﷺ) ښائسته ذکر موجود دے۔

مجاهدؒ او قتادهؒ ددے نه هغه مصحف اخستے دے کوم چه په دنیا کښې موجود دے۔ اول قول غوره دے۔

او مکنون ورته ځکه وائی چه لوح محفوظ د تغییر او تبدیلۍ نه پټ دے، او ساتلے شویدے۔ ❁ یا د باطل نه محفوظ دے، ټولے پکښې حقے خبرے دی۔

❁ یا دا داسے کتاب دے چه د ملائکه مقربین نه سوئ نورو ملائکو نه محفوظ دے، نور پرے نهٔ خبریږی۔

او پدے کښې جواب د سوال دے چه څوك به دا ووائی چه تیك ده د لوح محفوظ نه به راغلے وی لیکن شیطان به پکښې زیادت او نقصان کړے وی نو الله وفرمایل چه هغے له صرف خاص ملائك ورځی د شیطان واك پکښې نهٔ چلیږی۔

Scanned by CamScanner

| لَا يَمَسُّهُۥٓ إِلَّا ٱلْمُطَهَّرُونَ ﴿٧٩﴾ تَنزِيلٌ مِّن رَّبِّ ٱلْعَٰلَمِينَ ﴿٨٠﴾ |
|---|
| لاس نهٔ لګوی ددے سره مګر پاك خلق۔ نازل شویدے د طرف د رب العالمین نه۔ |
| أَفَبِهَٰذَا ٱلْحَدِيثِ أَنتُم مُّدْهِنُونَ ﴿٨١﴾ وَتَجْعَلُونَ رِزْقَكُمْ |
| آیا پدے خبره تاسو سستی کونکی یئ۔ او ګرځوئ تاسو حصه خپله |
| أَنَّكُمْ تُكَذِّبُونَ ﴿٨٢﴾ |
| دا چه تاسو دروغژن ګنړئ (دا)۔ |

**تفسیر**: ددے آیتِ کریمه په معنیٰ او مفهوم کښ د علماؤ ګڼړ اقوال دی، چه د هغے خلاصه داده چه د [مَسّ] نه مراد لاس لګول دی، یا په دے باندے خبریدل دی، یا ددے نه فائده اخستل دی۔ او د [مُطَهَّرُوْنَ] نه مراد ملائك دی، یا اهلِ تقویٰ، یا د نجاست او حدثِ اکبر او حدثِ اصغر نه پاکیدل دی۔

(۱) د اکثرو مفسرینو رائے داده چه د [مُطَهَّرُوْنَ] نه مراد ملائك دی چه د هر قسم ګناهونو او ظاهری او باطنی ګندونو نه پاك کړے شویدی، او د [مَسّ] نه مراد لاس لګول دی، یا پدے باندے خبریدل دی، یعنی لاس نشی لګولے د لوح محفوظ سره مګر صرف ملائك۔ یا نهٔ خبریږی په هغے باندے مګر ملائك۔

ابن زیدؒ وائی چه د قریشو کافرانو به وئیلے چه دا قرآن شیطانانو نازل کړے، نو الله په دوئ باندے رد وکړو او وے وئیل: ﴿لَا يَمَسُّهُۥٓ إِلَّا ٱلْمُطَهَّرُونَ﴾ چه (په دے باندے صرف ملائك خبریدے شی)، شیطانانو باندے ددے هواء هم نشی لګیدلے۔ لکه څنګه چه الله تعالیٰ د سورتِ شعراء په (۲۱۰/۲۱۱/۲۱۲) آیتونو کښ فرمائیلی دی:

﴿وَمَا تَنَزَّلَتْ بِهِ ٱلشَّيَٰطِينُ وَمَا يَنۢبَغِى لَهُمْ وَمَا يَسْتَطِيعُونَ إِنَّهُمْ عَنِ ٱلسَّمْعِ لَمَعْزُولُونَ﴾

(دا قرآن شیطانانو نهٔ دے نازل کړے، هغوئ خو ددے کار د سره لائق نهٔ دی، نهٔ هغوئ ددے طاقت لری، بیشکه شیطانان د آوریدو نه بیخی محرومه کړے شوی دی)۔

ابن کثیرؒ وائی چه دا قول ډیر غوره دے۔

ددے نه علاوه تفسیرونه انتزاعی دی، په طریقه د اشارے سره دی۔ او هغه دا دی:

(۲) فراءؒ ددے دا معنیٰ بیان کړے ده [لَا يَجِدُ طَعْمَهُ وَلَا نَفْعَهُ إِلَّا مَنْ آمَنَ بِهِ] چه د قرآن

Scanned by CamScanner

خوند نهٔ مونده کوی او ددے نه فائده نهٔ اخلی مګر هغه څوك چه پدے باندے ایمان راوړی۔
د محمد بن الفضلؒ هم دا وینا ده [لَا يَقْرَؤُهُ إِلَّا الْمُوَحِّدُوْنَ]۔ دا قرآن نهٔ لولی مګر موحدین ئے لولی۔ نو د طهارت نه مراد زړهٔ د شرك او بد اخلاقو د ګندونو نه پاکول دی۔
بعض (حسین الفضلؒ) وائی : [لَايَنَالُ فَهْمَ مَعَانِيْهِ إِلَّا الْقُلُوْبُ الطَّاهِرَةُ] یعنی صرف پاك زړونه د قرآن کریم په معانیو او مقاصدو باندے پوهیږی۔
(۳) بعض علماء وائی : د مطهرون نه مراد هغه کسان دی چه د جنابت، حیض، نفاس او وړے او لوئی بے اودسئ نه پاك وی او (هٗ) ضمیر قرآن ته راجع دے، او جمله خبریه په معنیٰ د اِنشاء ده، یعنی نفی په معنیٰ د نهی ده۔ او مطلب دا اخلی چه قرآن ته دِے لاس نهٔ وروړی مګر هغه کسان چه پاك وی د دغه ظاهری ګندونو نه۔
دا تفسیر ظاهر د قرآن نهٔ دے۔
علامه شوکانیؒ وئیلی دی چه آیت کښ دا خبره نهٔ ده ذکر بلکه دلته د ملائکو حال ذکر دے، البته پدے باندے اجماع ده چه حدثِ اکبر والا انسان دپاره قرآن مسه کول جائز نهٔ دی۔
او کومو علماؤ چه وئیلی دی چه د [مُطَهَّرُوْن] نه مراد د جنابت او بے اودسئ نه پاك خلق دی، او مقصد مصحف له په دے حالتونو کښ د ګوتو وروړلو ممانعت دے۔ او دوی د محمد بن عمرو بن حزمؒ روایت [لَا يَمَسُّ الْقُرْآنَ إِلَّا طَاهِرٌ ] (قرآن دے صرف پاك انسان مسه کوی) نه استدلال کړے۔ کوم چه امام مالكؒ روایت کړے۔
دارنګه د دارقطنیؒ ددے حدیث نه ئے هم استدلال کړے په کوم کښ چه د عمر ﷺ د اسلام راوړلو واقعه بیان شوے، او د هغهٔ خور هغهٔ ته وئیلی وو چه دا ناپاك دے، او قرآن صرف پاك خلق مسه کوی۔ د علی ﷺ، ابن مسعود ﷺ، عطاءؒ، زهریؒ، نخعیؒ، مالكؒ، شافعیؒ او حنابلو وغیره همدا رائے ده۔
لیکن دا دواړه حدیثونه د سند په لحاظ کمزوری دی۔
حافظ ابن حجرؒ په ((التلخیص الحبیر)) کښ، حافظ ابن کثیرؒ په خپل تفسیر کښ، او شوکانیؒ په (نیل الاوطار) کښ د دواړو د کمزوری کیدو اسباب او وجوهات واضح کړی دی، ددے وجے نه دا دواړه حدیثونه د استدلال لائق نهٔ دی۔

Scanned by CamScanner

البتـه په دے بانـدے د امت اجماع ده چه حدثِ اکبر والا انسان دپاره قرآن کریم له لاس وروړل جائز نهٔ دی.
او هر چه هغه کس دے چه د اوداسهٔ په حالت کښې نهٔ وی، نو ددے په باره کښې امام ابن حزمؒ په خپـل کتـاب (المحلی) کښې، امام ابن القیمؒ په (البیان فی اقسام القرآن) کښې او امام شوکانیؒ په (نیل الاوطار) کښې همدا غوره ګڼړلے چه دا مصحف مسه کولے شی. ځکه ددے په منع کښې هیڅ صحیح او صریح دلیل نهٔ موندلے کیږی.
د ابن عباس، سلمان فارسی رضی الله عنهم، شعبیؒ او ابوحنیفهؒ وغیره همدا رائے ده.
البتـه دا بـه د قـرآن اشاره وی چـه مؤمـن له پکار دی چه ځان د دغه پاکو ملائکو سره مشابه کړی، او قرآن له په پاکئ باندے ورشی. او پدے کښې احتیاط دے چه قرآن د مسه کولو دپاره اُودس وکړی او که وے نکړو نو هم منع نشته.
تَنْزِيْلٌ مِّنْ رَّبِّ الْعَالَمِيْنَ : یعنی دا خو د رب العالمین د طرفنه نازل شویدے چه د انسانانو تربیت پدے سره کوی لکه څنګه چه د بدن تربیت په غذا سره کوی، نو دغه شان د روح تربیت په قرآن سره کوی. نو دا رد دے په هغه چا چه قرآن ته سحر او کهانت او افتراء وائی.
او دا آیت د (۷۷) آیت سره متعلق دے، هلته د قرآن کریم یو صفت دا بیان شو چه دا معزز او مکرم کتاب دے، دلته وائی چه دا رب العالمین نازل کړیدے.
اَفَبِهٰذَا الْحَدِيْثِ: مخکښې د قرآن کریم صدق او رشتینوالے بیان شو، اُوس ددے کتاب منکرینو ته زجر او رټنه ورکوی.
یعنی اے خلقو ! آیا تاسو داسے معزز او مکرم کتاب او د رب العالمین خبره دروغژنه ګڼړئ، او ددے تصدیق نهٔ کوئ. د حدیث نه مراد قرآن کریم دے چه دا د الله خبرے دی.
مُدْهِنُوْنَ: د اِدْهان نه دے، سستی کولو ته وئیلے شی، مجرد ئے دهن دے، تیلو ته وئیلے شی، لکـه چـه تیـل څنګـه نرم وی. [مُدْهِنُوْنَ اَیْ مُتَهَاوِنُوْنَ فِیْ اِیْمَانِهٖ وَالْعَمَلِ بِهٖ وَدَعْوَتِهٖ] .یعنی تاسو ددے قرآن نه سستی کوئ، یعنی پدے باندے په ایمان راوړو او پدے بانـدے عمـل کـولـو او ددے پـه دعـوت کولو کښې سستی کوئ، دا درته معمولی ښکاری، داسے عظیم کتاب خو په جلتئ راخستل پکار دی. (کشاف)
او ددے حاصـل تـرجمے دا هم دی: (۲) عوفیؒ د ابن عباس ﷺ نـه د [مُدْهِنُوْنَ] تفسیر

Scanned by CamScanner

[مُكَذِّبُوْنَ غَيْرُ مُصَدِّقِيْنَ] نقل کړے.(يعني تكذيب کوئ او تصديق نهٔ کوئ) او د [إدْهَان] معنیٰ دروغژن گنړل، کفر او نفاق بیان شوے دہ۔
نو د آیت معنیٰ به دا وی چه اے خلقو ! آیا تاسو د منافقانو په خبرو کښ راځئ او د الله کلام دروغژن گنړئ، او ددے نه انکار کوئ ؟! حالانکه دا لوی کتاب تاسو نه غوښتنه کوی چه تاسو په دے ایمان راوړئ او ددے تعلیمات په خپل ژوند کښ جاری او نافذ کړئ. (ابن کثیرؒ والبغویؒ)
(۳) ابن کیسانؒ وائی : اَلْمُدْهِنُ الَّذِیْ لَا یَعْقِلُ حَقَّ اللّٰهِ عَلَیْهِ وَیَدْفَعُهٗ بِالْعِلَلِ۔
مدهن هغه شخص دے چه د الله حق په خپل ځان نهٔ منی، او هغه په چلونو سره د ځان نه اړوی. یعنی د قرآن نه تاسو بهانے کوئ، کله وایئ چه دا جادو دے، او کله وایئ چه دا دروغ دی او کله وایئ چه مونږ خپل رزق گټو دے ته وزگار نهٔ یو.
(٤) قرطبیؒ وئیلی دی : چه مدهن هغه څوك دے چه ظاهر ئے د باطن نه خلاف وی، او د مؤرخ نه ئے نقل کړیدی چه مُدهن منافق او کافر دے چه خپل جانب نرم کړی دے دپاره چه خپل کفر پټ ساتی.
نو مدهن او مُداهن په مسلمانانو کښ هغه څوك دے چه د باطل پرستو سره موافقت کوی، او حق ورته نهٔ ښکاره کوی، او په کافرانو کښ هغه دے چه د مسلمانانو نه خپل کفر پټوی پدے وجه مُدهنون لفظ تکذیب کونکو، اعراض کونکو، د کافرانو سره موافقت کونکو او په باره د حق کښ بهانے کونکو ټولو ته شامل دے.
او ابوبکر بقاعیؒ وئیلی دی چه پدے آیت کښ رد دے په هغه چا چه د قرآن په باره کښ د چا نه نا مناسبے خبرے واوری (توقے یا تحریف معنوی کول وغیره) او بیا هم د هغهٔ سره ښکاره دشمنی نهٔ کوی او نرمی ورسره کوی. معلومه شوه چه د قرآن مخالفت کونکو سره هیڅ قسم نرمی پکار نهٔ دہ. (احسن الکلام)
وَتَجْعَلُوْنَ رِزْقَكُمْ اَنَّكُمْ تُكَذِّبُوْنَ : (۱) رزق : باران ته وائی، یعنی تاسو خپل باران داسے گرځوئ چه په هغے باندے تکذیب کوئ، او داسے وایئ چه (مُطِرْنَا بِنَوْءِ كَذَا) مونږ باندے د فلانی ستوری په پریوتو سره باران وشو. لکه حدیث کښ هم دی :
[أَصْبَحَ مِنْ عِبَادِیْ مُؤْمِنٌ بِیْ وَكَافِرٌ، فَأَمَّا مَنْ قَالَ مُطِرْنَا بِفَضْلِ اللّٰهِ وَرَحْمَتِهٖ فَذٰلِكَ مُؤْمِنٌ بِیْ وَكَافِرٌ بِالْكَوْكَبِ وَأَمَّا مَنْ قَالَ بِنَوْءِ كَذَا وَكَذَا فَذٰلِكَ كَافِرٌ بِیْ وَمُؤْمِنٌ بِالْكَوْكَبِ]

Scanned by CamScanner

چه کله باران وشي نو بعض بندګان مؤمنان شي او بعض کافران، څوك چه وائي، مونږ باندے باران د الله په فضل او رحمت سره وشو نو دا مؤمن دے، او څوك چه ووائی چه د فلانی ستوری د پریوتو په وجه شو نو دا کافر شو. بخاری: (٨٤٦) و مسلم: ٢٤٠).

یعنی قرآن هم نهٔ منئ او د الله باران هم نهٔ منئ.

(٢) غوره دا ده چه دا د قرآن سره لګی، او رزق نه مراد برخه ده، [اَیْ تَجْعَلُوْنَ نَصِیْبَکُمْ مِنْ هٰذَا الْکِتَابِ اَنَّکُمْ تُکَذِّبُوْنَ] - یعنی تاسو خپله برخه ددے قرآن نه دا حاصلوئ چه تاسو ددے تکذیب کوئ نو د قرآن نه اُوچته برخه حاصله کړه، خلق پرے جنت ته ورسیدل، او تا پرے تکذیب وکړو ځان دِے هلاك کړو.

د قرآن نه د ایمان، د اعمالو، د ښکلے اخلاقو برخه واخله. په قرآن باندے چا دنیا غوره کړه، او چا خرڅ کړو او چا ترے صرف د تلاوت برخه راواخسته او چا پرے ځان د الله تعالیٰ تعلق او جنت ته ورسولو او دا غټه برخه ده، نو د قرآن نه لویه برخه حاصلول پکار دی.

(٣) دے کښ دا مطلب هم صحیح کیږی (واحدیؒ د بعض مفسرینو نه نقل کړیدے) چه دلته بدل لفظ پټ دے [اَیْ تَجْعَلُوْنَ بَدَلَ رِزْقِکُمْ /یا شُکْرَ رِزْقِکُمُ التَّکْذِیْبَ].

یعنی تاسو ته الله تعالیٰ قسماقسم نعمتونه درکړیدی او روزی درکوی، ددے تقاضا دا وه چه تاسو د هغهٔ شکر اداء کولے، لیکن تاسو ددے د شکر په بدل کښ ناشکری وکړه، ددے نعمتونو نسبت مو د هغهٔ نه سوئ بل چاته وکړو، او د احسان او انعام بدله مو د کفر او شرك په ذریعه ورکړه. ددے نه لویه نمك حرامی بله کومه کیدے شی چه څوك احسان وکړی هغهٔ سره د بد چلنئ او تکلیف ورکولو سلوك وکړے شی.

او هیثمؒ وائی چه د اَزْدِ شَنُوْءَه (قبیلے) په نیز رزق کلمه په معنیٰ د شکر سره استعمالیږی. نو بیا به مضاف پټ نهٔ وی. (فتح البیان وابن کثیر)

| فَلَوْلَآ اِذَا بَلَغَتِ الْحُلْقُوْمَ ﴿٨٣﴾ وَاَنْتُمْ حِیْنَئِذٍ تَنْظُرُوْنَ ﴿٨٤﴾ |
|---|
| نو ولے نهٔ ده چه کله اُورسی روح مرئ ته. او تاسو په دغه وخت کښ ګورئ. |
| وَنَحْنُ اَقْرَبُ اِلَیْهِ مِنْکُمْ وَلٰکِنْ لَّا تُبْصِرُوْنَ ﴿٨٥﴾ فَلَوْلَآ اِنْ |
| او مونږ ډیر نزدے یو دهٔ ته ستاسو نه لیکن تاسو نهٔ وینئ. نو ولے نهٔ ده کچرته تاسو |

Scanned by CamScanner

كُنْتُمْ غَيْرَ مَدِيْنِيْنَ ﴿٨٦﴾ تَرْجِعُوْنَهَا إِنْ كُنْتُمْ صَادِقِيْنَ ﴿٨٧﴾

نهٔ یئ کمزوری (مغلوبه)۔ چه واپس راوګرځوئ دا روح که چرته تاسو رشتینی یئ۔

**تفسیر** : اُوس په مرګ سره تخویف ورکوی، او په لاندینو درے آیتونو کښې الله تعالیٰ د انسان بے وسی بیان کړے ده، او ښودلی ئے دی چه دا د خپل خالق د مرضئ او منشاء مخے ته بیخی مجبور او مغلوب دے۔

او ددے دلیل ددهٔ د ساه وتلو وخت دے چه کله ملائك راشی او ددهٔ ساه وباسی، او ددهٔ روح حلق ته را اُورسی، او وتونکے وی، دے وخت کښې دے او ددهٔ ټول خپل خپلوان او ملګری کوم چه ددهٔ نه ګیر چاپیره ناست وی، څومره مجبوره وی چه ددهٔ روح اوځی، او هغه په خپلو غټو غټو سترګو سره ټولو ته ګوری۔ او ددهٔ نه ګیر چاپیره ټول خلق ددهٔ په حال رحم کوی، لیکن هیڅوك ددهٔ مدد نشی کولے چه ددهٔ روح ددهٔ بدن ته واپس کړی۔

په دے وخت کښې د الله ملائك مړ کیدونکی ته ددهٔ د رشته دارانو په نسبت زیات نزدے وی۔ لیکن خلق دا ملائك نهٔ وینی، یا مړ کیدونکے چه په دے وخت کښې څهٔ زغمی ددے پټ راز نه خلق بیخی ناخبره وی۔

فَلَوْلَا : دا په تَرْجِعُوْنَهَا باندے داخل دے۔ یعنی ولے نهٔ شئ راواپس کولے دغه روح کله چه مړی ته ورسیږی۔

تَنْظُرُوْنَ : یعنی تاسو مړی ته او د هغهٔ حالت د نزع ته ګورئ، یا دا په معنیٰ د انتظار د مرګ دے۔

وَنَحْنُ أَقْرَبُ : د نَحْنُ نه مراد ملائك د مرګ دی، چه په هغه وخت کښې حاضر وی۔ یا ددے نه مراد قرب د الله تعالیٰ دے په اعتبار د علم او قدرت سره۔

وَلٰكِنْ لَّا تُبْصِرُوْنَ : مفعول پټ دے۔ یعنی ملائکو لره نهٔ وینئ۔ او مړی ته ښکاره کیږی، حاضرین خلق ئے نهٔ وینی۔ دلته بعض مفسرین وائی چه نظر په محسوساتو کښې استعمال دے، او بصر په غائبو څیزونو او معقولاتو کښې اکثر استعمالیږی ددے وجه نه اول ئے نظر ثابت کړو په تَنْظُرُوْنَ سره، او بیا ئے بصر نفی کړو په لَا تُبْصِرُوْنَ سره۔

فَلَوْلَا : دا اعاده د بُعْدِ عهد ده۔

غَيْرَ مَدِيْنِيْنَ : (۱) مَدِيْن په معنیٰ د مغلوب سره دے، یعنی که تاسو مغلوبه او عاجز

Scanned by CamScanner

نهٔ یئ۔ نو بیا درنه ولے دا روح خلاص شو۔

(۲) اَیْ مُحَاسَبِیْنَ۔ یعنی که تاسو سره حساب کتاب نهٔ کیږی (ابن عباس﷜)

(۳) یا که تاسو لره بدله نهٔ شی درکولے او جزاء سزا نشی درکړے کیدے۔ نو بیا ځئ دا روح راواپس کړئ بلکه الله تعالیٰ دا روح د جزاء او سزا دپاره علیین یا سجین ته بوځی۔ ددے ځای پورے څلور حالات ذکر شول۔

| |
|---|
| فَأَمَّا إِنْ كَانَ مِنَ الْمُقَرَّبِيْنَ ﴿٨٨﴾ فَرَوْحٌ وَّرَيْحَانٌ |
| پس که چرته وی دا د ډیر نزدے خلقو نه۔ نو دهٔ لره راحت (رحمت) دے او خوږ رزق |
| وَّجَنَّةُ نَعِيْمٍ ﴿٨٩﴾ وَأَمَّا إِنْ كَانَ مِنْ أَصْحَابِ الْيَمِيْنِ ﴿٩٠﴾ |
| (او خوشبوئی) او جنتونه د نعمتونو دی۔ او که چرته وی دا د ښی لاس والو نه۔ |
| فَسَلَامٌ لَّكَ مِنْ أَصْحَابِ الْيَمِيْنِ ﴿٩١﴾ |
| نو (وئیلے به شی) سلام دے په تا باندے تهٔ د ښی لاس والو نه ئے۔ (سلام دے په تا |
| وَأَمَّا إِنْ كَانَ مِنَ الْمُكَذِّبِيْنَ الضَّالِّيْنَ ﴿٩٢﴾ |
| باندے د طرف د ښی لاس والو نه)۔ او که چرته وی دا د دروغژن ګڼړونکو ګمراهانو |
| فَنُزُلٌ مِّنْ حَمِيْمٍ ﴿٩٣﴾ وَتَصْلِيَةُ جَحِيْمٍ ﴿٩٤﴾ |
| نه۔ نو دهٔ لره میلمستیا ده د ګرمو اُوبو نه۔ او سوځیدل دی په جهنم کښې۔ (او |
| إِنَّ هٰذَا لَهُوَ حَقُّ الْيَقِيْنِ ﴿٩٥﴾ فَسَبِّحْ |
| داخلول دی ګرم اُور ته) یقیناً دا خامخا پوره یقینی خبرے دی۔ نو پاکی وایه |
| بِاسْمِ رَبِّكَ الْعَظِيْمِ ﴿٩٦﴾ |
| د نوم د رب ستا چه لوئی شان والا دے۔ |

**تفسیر**: مخکښې بیان شو چه د اعمالو په اعتبار سره انسانان په درے قسمه دی، سابقین اولین، اصحاب الیمین او اصحاب الشمال۔ اوس پدے آیتونو کښې ددے درے

Scanned by CamScanner

واړو ډلو انجام هم بیان شوے۔ د همدے درے ډلو همدغه ذکر شوے انجام الله تعالیٰ دلته د زیاتی تاکید او ترغیب او ترهیب په توګه بیان کړے۔ او دا د دغه خلقو د زنکدن حال دے چه مرګ پرے راغے او مړهٔ شول۔

او د سورت په ابتداء کښې هم دا خلق ذکر شو، هغه د دوئ په آخرت کښې په جنت یا جهنم کښې حالت وو، او دلته د دوئ د زنکدن د وخت حالات دی لکه امام قرطبیؒ د ربیع بن خیثمؒ او د ابو الجوزاءؒ او ابو العالیهؒ نه نقل کړیدی۔

یعنی که چرے مړ کیدونکے انسان د الله د مقربو بندګانو نه وی، نو الله تعالیٰ به دهٔ له د دنیا د تکلیفونو او مصیبتونو نه همیشه دپاره آرام ورکړی، په دهٔ به خپل رحمتونه نازل کړی، او ددهٔ زړهٔ او روح ته به سکون او راحت اُورسوی، او په جنت کښې به ورته انتهائی خوندوره روزی ورنصیب کړی، او هغه جنتِ نعیم ته به ئے داخل کړی چه هغه نهٔ کومے سترګے لیدلے، نهٔ کوم غوږ آوریدلے، او نهٔ د کوم انسان زړهٔ د هغے تصور کړے۔

فَرَوْحٌ وَّرَيْحَانٌ: دلته (لَهٗ) لفظ پټ دے۔ یعنی ددهٔ دپاره رَوح او ریحان دی۔

حافظ ابن کثیرؒ وغیره لیکلی دی چه د مرګ په وخت کښې به دوئ ته ملائک دا زیرے ورکوی۔

۱ – رَوح په معنیٰ د راحت او خوشحالئ، او رحمت، او د الله تعالیٰ دیدن سره دے، او دا ټولے معانی صحیح دی۔

رَيْحَانٌ: ښائسته رزق، خوشبویانے، د کشمالو ګل، رحمت، او د الله په خبرو سره لذت او خوند حاصلول دی۔ دا خپل مینځ کښې ملاؤ کړه، نو ډیرے معانی به جوړے شی۔

یعنی ددهٔ دپاره به راحت او رحمت وی، / یا به ددهٔ دپاره خوشحالی او خوشبویانے وی۔/ یا به ددهٔ دپاره رحمت او ښکلے رزق وی۔

وَّجَنَّةُ نَعِيْمٍ: یعنی د مزو او د نعمتونو جنت به وی۔

وَاَمَّاۤ اِنْ كَانَ: دا دویمه ډله ده، یعنی عام مؤمنان۔ او که چرے هغه د اصحاب الیمین نه وی، نو ملائک به ورته سلام کوی، او زیرے به ورکوی چه دا د هغه خلقو نه دے چه هغوئ ته به د قیامت په ورځ د عرش ښی اړخ ته ځای ملاویږی، او آخر به ددهٔ مقام جنت وی۔

فَسَلٰمٌ لَّكَ: دلته (يُقَالُ لَهٗ) پټ دے۔ یعنی دهٔ ته به داسے وئیلے کیږی۔ یعنی ملائک به

Scanned by CamScanner

ورته خپل طرف نه، یا د الله تعالیٰ د طرفنه سلام پیش کوی، او ورته به وائی چه (اَنْتَ مِنْ اَصْحَابِ الْيَمِيْنِ) ته د ښی اړخ والو نه ئے. یا تقدیر داسے دے :
[يَا مَنْ هُوَ مِنْ اَصْحَابِ الْيَمِيْنِ!] اے هغه شخصه ! چه ته د ښی اړخ والو نه ئے.
(۲) یا تقدیر داسے دے : [مِنْ جَانِبِ اَصْحَابِكَ اَصْحَابِ الْيَمِيْنِ]،
یعنی په تا باندے سلام دے د طرف د ملګرو ستا نه چه اصحاب الیمین دی. چه هغه هم هلته موجود دی، هلته ته هم راځه.
لیکن حافظ ابن قیمؒ فرمائی چه اوله معنیٰ غوره ده ځکه چه د هغے تائید په سورة النحل آیت کښې ذکر شویدے. چه ملائك به پرے سلامونه اچوی.
او قرطبیؒ وئیلی دی چه دا سلامونه به په درے وختونو کښې وی، په وخت د زنکدن کښې، دویم په وخت د راتللو د نکیر منکر کښې، او دریم په وخت د بعث بعد الموت کښې.
وَاَمَّا: دا دریمه ډله د جهنمیانو ده، یعنی که چرے هغه د اصحاب الشمال نه وی، یعنی د هغه خلقو نه چه هغوئ به په دنیا کښې د قیامت ورځ دروغژن ګنړله، او د نیغے لارے نه آوړیدلے وو، نو ددهٔ میلمستیا به (د زقوم نه د خیټے ډکولو نه پس) په جوشیدلو اوبو سره وی چه هغه به ددهٔ د خیټے هر شے ویلی کړی، او بهر به ئے را اویاسی، او دے به د جهنم په اُور کښې اوسوزولے شی.
او دا دریمه ډله ئے په اصحاب الشمال سره ذکر نکړه بلکه د دوئ کارونه ئے ذکر کړل چه هغه تکذیب او ضلال دے، پدے کښې د دوئ د کارونو نه زجر ورکول مقصد دے، او بل پدے کښې سبب د عذاب ذکر دے.
بله دا چه دا حالت په وخت د نزع او د قبر کښې دے، او دوئ په دے وخت کښې متصف په اصحاب الشمال سره نهٔ دی، یعنی عملنامه په ګس لاس کښې ورکول یا جهنم ته بوتلل خو د قیامت په ورځ کښې دی. بیا هرکله چه تکذیب سبب د ضلال دے نو ددے وجه نه ئے مکذبین په ضالین مقدم ذکر کړو.
فَنُزُلٌ مِّنْ حَمِيْمٍ: دلته هم (لَهُمْ) لفظ پټ دے.
نُزُلٌ: هغه خوراك دے چه میلمه دپاره په جلتئ سره تیار راوړے شی. او دلته په طریقه د تَهَكُّم (سپکاوی) سره استعمال شویدے.
وَتَصْلِيَةُ: داخلول دپاره د سوزولو، یا معنیٰ ده سوزول د جهنم او دا اضافت د مصدر دے

Scanned by CamScanner

مفعول ته.

## فوائد او معارف :

(۱) پدے آیتونو کښ اشاره ده چه کفر تول یو ملت دے، او کبیره گناهونو والا به په اصحاب الیمین کښ داخل وی ځکه چه دوی مکذبین نهٔ دی. هغوی هم د خطرے سره مخامخ دی.

(۲) قاسمیؒ فرمائی چه سیوطیؒ په «اکلیل» کښ لیکلی دی چه دا آیتونه دلالت کوی چه کله اَرواح د بدنونو نه جدا شی، نو یا به په خوشحالو کښ وی، یا به په عذاب کښ، او د مؤمنانو ارواح به په جنت کښ وی، او د کافرانو ارواح به په جهنم کښ وی.

(۳) ربیع بن خیثمؒ فرمائی چه دا به ورته د مرګ په وخت وائی چه روستو ستا دپاره میلمستیا د ګرمو اُوبو او د جهنم د سوزیدو ده. نو دا به څومره هیبت کښ شی او روح به ئے په بدن کښ وتښتی.

(٤) دا آیتونه دلیل دے چه کبیره گناهونو والا به په اصحاب الیمین کښ داخل وی ځکه چه دوی مکذبین نهٔ دی.

(٥) د جهنمیانو ډله ئے د ټولو نه روستو ذکر کړه، یو د ترهیب (یره ولو) دپاره. دویم ددے ډلے افراد زیات دی، دا قسم انسانان به ډیر زیات وی.

إِنَّ هَٰذَا لَهُوَ حَقُّ الْيَقِينِ : ۱- یعنی پدے سورت کښ چه څه ذکر شو د اول نه تر آخر پورے. ۲- یا نزدے د زنکدن والو احوال، او د هغوی قصے تیرے شوے نو دا خالص یقینی کارونه دی.

۳- یا اشاره ده بعث بعد الموت ته.

او اضافت د حق یقین ته اضافت د شی دے خپل نفس ته. او دا د کوفینو په نیز جائز دے ځکه چه پدے کښ اضافت د موصوف دے صفت ته د وجه د اختلاف د لفظ نه.

او پدے کښ تاکید مقصد دے، یعنی دا خبره حقه ده او یقینی ده. لکه خلق وائی حتمی ضروری ده. بعض وائی : حق په معنیٰ د خبر دے، یعنی خبر الیقین دے. یعنی یقینی خبر دے.

او حق الیقین دیته وائی چه د سترګو د لیدو او د هغے د ځکلو نه روستو په یو شی

Scanned by CamScanner

باندے علم حاصل شی۔
**فَسَبِّحْ بِاسْمِ رَبِّكَ الْعَظِيمِ:** دا ئے دوباره راوړو، فرق دا دے چه مخکښ ئے د عقلي دليلونو نه روستو دا امر راوړے وو، يعنى عقل دلالت کوى چه الله ډيے پاك وګڼلے شى د هر قسم شرك او عيب او نقصان نه۔ او دلته ئے د قرآن د رشتينوالى او د هغے سره د متعلق درے ډلو د حالاتو د بيان نه روستو راوړو۔ يعنى قرآن هم دليل دے چه الله دپاره پاکي بيانول ضرورى دى۔
**بِاسْمِ رَبِّكَ:** باء زياتى ده، يا داخل ده په پټ مضاف باندے، اَىْ بِذِكْرِ اسْمِ رَبِّكَ ۔ يعنى پاکى وايه په يادولو د نوم د رب ستا۔
**فائده** : پدے کښ باء داخله کړيده، او په ﴿سَبِّحِ اسْمَ رَبِّكَ الْاَعْلٰى﴾ کښ ئے باء نهٔ ده راوړے، وجه دا ده چه عظيم صفت د ذات او د اسم دواړو دپاره استعماليږى، نو اشاره ده چه د تسبيح د ذات سره تسبيح د نومونو او د صفتونو د الله تعالىٰ ملګرے کړه، او اعلىٰ صرف صفت د ذات دپاره استعماليږى، نو هلته کښ مقصود تسبيح د ذات ده فقط بغير د ملګرے کولو د تسبيح د نومونو او صفتونو نه، او باء دلالت کوى په مصاحبت (ملګرتيا) باندے۔ والله اعلم۔ (احسن الکلام)

## امتيازات او خصوصيات د سورة الواقعه

١- پدے سورت کښ درے ډلے د انسانانو ذکر دى۔ او هغوى له ئے نومونه ايخودى دى۔
٢- د قيامتِ صغرىٰ او کبرىٰ تذکره پکښ ده۔
٣- او د جنتيانو د بيبيانو صفات چه د دنيا ښځے دى او الله تعالىٰ ترے عيبونه او ګندونه لرے کړيدى۔

ختم شو تفسير د سورة واقعه په حمد او تسبيح د رب العالمين سره ٢٩/رجب ١٤٣٧ هـ موافق : ٦/٥/٢٠١٦ ليلة السبت۔

❁❁❁❁

Scanned by CamScanner

بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ط

| رکوعاتها (٤) | (٥٧) سورة الحديد مدنية (٩٤) | آیاتها (٢٩) |
|---|---|---|

سورة الحدید مدني دے، په دے کښې نهیشت آیتونه او څلور رکوع دي.

## تفسیر سورة الحدید

ددے سورت نه تر سورتِ مُلك پورے مدني مضامین دي چه هغه جهاد او انفاق في سبیل الله او په منافقت باندے زجرونه او نور اصلاحي کارونه ذکر دي.

نوم: (١) سورة الحدید: په (٢٥) آیت ﴿ وَاَنْزَلْنَا الْحَدِيْدَ فِيْهِ بَأْسٌ شَدِيْدٌ وَّمَنَافِعُ لِلنَّاسِ ﴾ کښې راغلے. د همدے نه ددے سورت نوم اخستے شوے.

(٢) او دے ته اُمُّ الْمُسَبِّحَات هم وائي. یعني په راتلونکو سَبَّحَ او يُسَبِّحُ باندے شروع کیدونکو سورتونو کښې دا ډیر ناشنا او غوره او علمي سورت دے.

د نازلیدو زمانه: قرطبيؒ لیکلي دي چه دا سورت د ټولو په نیز مدني دے. د نقاشؒ وینا هم داده.

امام احمدؒ، ترمذيؒ، نسائيؒ او بیهقيؒ په شُعَبُ الایمان کښې د عِرباض بن ساریه ﷜ نه روایت کړے چه [اِنَّ النَّبِيَّ ﷺ كَانَ يَقْرَأُ الْمُسَبِّحَاتِ قَبْلَ اَنْ يَّرْقُدَ وَيَقُوْلُ: اِنَّ فِيْهِنَّ آيَةً خَيْرٌ مِّنْ اَلْفِ آيَةٍ] رسول الله ﷺ به د اوده کیدو نه مخکښې مُسبحات (حدید، حشر، صف، جُمعه او تغابن) لوستل. نبي کریم ﷺ فرمائي په دے کښې یو آیت دے چه هغه د زرو آیتونو نه غوره دے. محدث الباني رحمه الله دا په صحیح الترمذي رقم (٣٤٠٦) کښې ذکر کړے او دے ته ئے حسن وئیلے دے. وحسنه الحافظ ابن حجر کما قال في نتائج الافکار (٦٣/٣).

حافظ ابن کثیرؒ لیکلی دی چه هغه (۳) آیت دے ﴿هُوَ الْاَوَّلُ وَالآخِرُ وَالظَّاهِرُ وَالْبَاطِنُ وَهُوَ بِكُلِّ شَیْءٍ عَلِیْمٌ﴾ دے۔ والله اعلم۔

## مناسبت

۱– مخکښې سورت کښې د توحید مسئله دوه کرته (فَسَبِّحْ) سره ذکر شوه، نو دلته انفاق فی سبیل الله او د وسپنې استعمال ته ترغیب ورکوی دپاره د اشاعت ددے مسئلے۔

۲– مخکښې سورت کښې په تسبیح باندے امر وو، نو ددے سورت په ابتداء کښې په طریقه د اخبار سره د الله تسبیح ذکر کوی۔ یعنی د مخلوقاتو تسبیحات وئیل گویا که دا علت دے دپاره د امر بالتسبیح۔

۳– مخکښې ئے وویل چه د الله د نوم او صفتونو پاکی بیان کړه، نو دلته د الله بعض صفتونه او نومونه ذکر کوی۔

٤– مخکښې د قیامت او د مرگ تذکره وشوه، نو اُوس وائی چه په دغه ورځ باندے کامل ایمان فائده ورکوی نو دا جوړ کړئ۔

## موضوع د سورت

ددے سورت ډیره ښکلے موضوع ده، چه د هغې یو تعبیر دے (تَحْقِیْقُ حَقَائِقِ الْاِیْمَان) یعنی د ایمان د حقیقتونو ثابتول او موجودول، که یو تن پدے تعبیر پوره نهٔ پو هیږی، نو دویم تعبیر دا دے: (تَجْدِیْدُ حَقَائِقِ الْاِیْمَان) یعنی د ایمان حقیقتونه بیرته راتازه کول، تا ایمان راوړو، نو دا خړیږی، دا به وخت په وخت بیرته راتازه کوے۔

لکه رسول الله ﷺ فرمائی: [اِنَّ الْاِیْمَانَ لَیَخْلَقُ فِیْ جَوْفِ اَحَدِكُمْ كَمَا یَخْلَقُ الثَّوْبُ الْخَلِقُ فَاسْأَلُوا اللّٰهَ اَنْ یُّجَدِّدَ الْاِیْمَانَ فِیْ قُلُوْبِكُمْ]

ایمان ستاسو د یو تن په زړه کښې زړیږی لکه جامه چه زړیږی۔ نو د الله نه وغواړئ چه هغه ستاسو په زړونو کښې ایمان راتازه کړی۔

نو دا سورت وائی چه دغه ایمان راتازه او نوے کړئ۔

وَآثَارُهُ الْعَجِیْبَةُ مِنَ التَّضْحِیَةِ بِالْمَالِ وَالْبَدَنِ وَالْخُشُوْعِ وَالْجِهَادِ وَاِطَاعَةِ اللّٰهِ وَالرَّسُوْلِ وَالزُّهْدِ فِی الدُّنْیَا وَالرَّهْبَةُ مِنَ اللّٰهِ وَالرَّغْبَةِ فِی الآخِرَةِ وَنَحْوِ ذٰلِكَ۔

او د ایمان ناشنا آثار دی او هغه دا چه بنده به قربانی په مال او بدن ورکوی، خشوع او

Scanned by CamScanner

جهاد وغیره به کوی. او د الله او د رسول طاعت به کوی، په دنیا کښې به زهد کوی، او د الله نه به یره کوی او د آخرت سره به مینه لری.

## شان نزول

عبد الله بن مسعود رضی الله عنه فرمائی : [مَا كَانَ بَيْنَ إِسْلَامِنَا وَبَيْنَ أَنْ عَاتَبَنَا اللَّهُ بِهَذِهِ الآيَةِ (أَلَمْ يَأْنِ لِلَّذِينَ آمَنُوا) إِلَّا أَرْبَعُ سِنِينَ] کله چه مدینے ته هجرت وکړے شو، او څلور کاله تیر شو نو د بعض مسلمانانو په ایمانونو کښې معمولی شان کمزوری راغله خاصکر د هغه کسانو چه نوی مسلمانان وو، نو الله تعالیٰ وریسے دا آیتونه راولیږل دے دپاره چه د هغوی ایمانونه تازه وساتی. (مسلم فی التفسیر حدیث : ٢٤)

صاحب د فتح البیان لیکی چه په بعض مسلمانانو کښې خوش طبعی او خندا او آزادی پیدا شوه.

مصنف بن ابی شیبه کښې د عبد العزیز بن ابی رَوّاد وینا ده چه (ظَهَرَ فِيهِمُ الْمِزَاحُ وَالضَّحِكُ) (ابن ابی شیبه : ٣٦٨٦٥) (او دا کار د امن په حالت کښې کیږی)

نو الله دا سورت نازل کړو چه خپل ایمان تازه وساتئ او د الله تعالیٰ په کتاب او د هغهٔ په ذکر سره زړونه روښانه او تازه کړئ، او الله دا نهٔ غوښتل چه د صحابه کرامو په شان اُوچتو خلقو په ایمان کښې خړ والے پیدا شی څکه چه دوئ خو د الله تعالیٰ پاك او صفا اولیاء دی، نو وے فرمایل چه د ایمان تازه والے وکړئ.

او دلته الله تعالیٰ د ایمان حقیقت ته د رسیدو طریقے خودلی دی، اول دا چه الله تعالیٰ په شپږو آیتونو کښې خپل تعارف کړیدے، کله چه بنده الله تعالیٰ لره وپیژنی، نو د ایمان حقیقت ته به ورسیږی، بیا ئے تر رکوع پورے دوه خبرے ذکر کړیدی، یو ایمان او بل انفاق. یعنی په دغه الله چه تا وپیژندو اُوس ایمان راوړه، او د هغهٔ په لاره کښې انفاق وکړه، او د هر یو دپاره ئے درے درے علتونه ذکر کړیدی. ایمان ولے راوړه؟ د درے وجو نه. چه روستو راځی.

د رکوع نه روستو ترغیب دے انفاق او ایمان ته، او بیا ترغیب دے دواړو ته. او د منافق په شان مهٔ جوړیږه چه هغه خپل ایمان نهٔ تازه کوی، قیامت کښې به خړے سترگے ولاړ وی. بیا د (١٥) آیت نه روستو ترغیب ورکوی خشوع ته، او دا هم د ایمان تازه کول دی،

Scanned by CamScanner

چه د اهل كتابو په شان مهٔ جوړيږه چه زړونه ئے سخت شول او ايمان نهٔ تازه كوي.
بيا به د هغے دپاره مثال راوړي چه يو تن ډيے مړ وي بيا ډيے ژوندے شي، بيا به ترغيب انفاق ته وركړي، بيا ايمان ته، او ايمان او انفاق يو ځاى ذكر كوي ځكه چه د الله په لاره كښ انفاق كول د ايمان د تازه كولو ډيره ښكلے لاره ده.
په مينځنۍ ركوع كښ به د دنيا زهد او د آخرت رغبت بيانوي، او د هغے متعلق به د تقدير خبره وكړي، بيا به جهاد او دعوت ته ترغيب وركړي چه پدے سره اسلام غالبه كيږي، په روستنۍ ركوع كښ به وائي چه انبياء عليهم السلام د همدے كارونو دپاره راغلي وو، او آخر كښ به د بني اسرائيلو خبره وكړي چه دوئ د رهبانيت التزام وكړو او بيا ئے د هغے رعايت ونهٔ ساتو (وَرَهْبَانِيَّةَ بِ ابْتَدَعُوْهَا) د دوئ په شان مهٔ جوړيږئ.
او پدے كښ به اشاره وي چه رهبانيت چه يو بدعت دے د هغے التزام ځوك وكړي، او بيا د هغے رعايت نهٔ كوي نو دا مذموم او ناكاره انسان دے، نو د هغه انسان به څه حال وي چه د اسلام دعوه ئے كړيده، او بيا د اسلام هيڅ رعايت نهٔ كوي، نهٔ ورسره د مانځه غم شته، او نهٔ د الله د ذكر او نهٔ د مال لګولو او نهٔ د ايمان د جوړولو، نو دا څنګه مسلمان دے؟! نو په دغه آيتونو كښ ډير ښكلے دعوت دے.

[اَىْ مُرَاعَاةُ الْبِدْعَةِ وَاجِبٌ فَكَيْفَ بِالْاِيْمَانِ]

يعني د بدعت مراعات واجب دے نو د ايمان خو به خامخا واجب وي. لكه روستو ئے تفصيل راځي.
او په آخر كښ د رسول الله ﷺ اتباع ته دعوت وركوي چه ددهٔ صحيح تابعداري شروع كړئ.
او پدے سورت كښ به د رسول لفظ هم زيات استعماليږي ځكه چه د ايمان حقيقت دا دے چه د رسول الله ﷺ پوره تابعداري به كوي،
او په آخره كښ ئے فرمايلي دي چه د اهل كتابو سره ضد وكړئ او د دوئ د ضد نه خپل ايمان برابر كړئ، چه الله درباندے رحم وكړي، هغوي وائي چه صرف مونږه غوره يوه،
نو الله فرمائي چه اے مسلمانانو! تاسو ځان جوړ كړئ نو په تاسو باندے به خپل فضل او رحم وكرم نو هغوي به خړ شي.

Scanned by CamScanner

| سَبَّحَ لِلّٰهِ مَا فِي السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ وَهُوَ الْعَزِيْزُ |
|---|
| پاکي بیانوي الله لره هغه څه چه په آسمانونو او زمکه کښې دي او هغه زورور |
| الْحَكِيْمُ ﴿۱﴾ لَهٗ مُلْكُ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ يُحْيِ |
| حکمتونو والا دے۔ خاص هغهٔ لره بادشاهي د آسمانونو او د زمکے ده، ژوندی کول |
| وَيُمِيْتُ وَهُوَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ ﴿۲﴾ هُوَ الْأَوَّلُ |
| کوي او مړهٔ کول کوي او هغه په هر شي باندے قدرت لرونکے دے۔ هغه اول دے، |
| وَالْآخِرُ وَالظَّاهِرُ وَالْبَاطِنُ وَهُوَ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيْمٌ ﴿۳﴾ |
| او روستو دے، او ښکاره او پټ دے او هغه په هر شي باندے پوهه دے۔ |

**تفسیر** : په آسمانونو او زمکه کښې چه څومره حیوانات، نباتات او جمادات دي دا ټول د الله پاکي او لوئي بیانوي، او دډے خبرے اظهار کوي چه دا حق ذات د هر قِسم برخه دار او اولادو نه پاك دے، او هغه یواځے دے، او د هر قِسم عبادت یواځے حقدار دے۔ په ربوبیت، الوهیت، علم، قدرت او د مخلوقاتو په تدبیر کښې د هغهٔ هیڅوك برخه دار نشته۔

د آسمانونو او زمکے تمام مخلوقات د خپل حال مطابق د خپل رب پاکي بیانوي۔ او دا تسبیح په دوه قسمه ده، تسبیح قولي او بله تسبیح حالي۔

یعنی څوك په خپلے ژبے سره تسبیح وائي، لکه ملائك او پیریان او انسانان، او د چا د حالت نه ښکاره کیږي چه ددهٔ خالق د تمامو عیبونو او نقصانونو نه پاك دے، لکه آسمان او زمکه، وُنے، نباتات او غرونه وغیره۔

زجاج وائي چه نباتات او جمادات هم د وینا په ژبه تسبیح لولي، لیکن مونږ پرے نهٔ پو هیږو، لکه الله تعالیٰ د سورتِ اسراء په (٤٤) آیت کښې فرمائیلي دي :

﴿وَإِنْ مِّنْ شَيْءٍ إِلَّا يُسَبِّحُ بِحَمْدِهٖ وَلٰكِنْ لَّا تَفْقَهُوْنَ تَسْبِيْحَهُمْ﴾

(هر یو شے د خپل خالق تسبیح بیانوي، خو تاسو د دوئ په تسبیح نهٔ پو هیږئ)۔

او د سورتِ انبیاء په (۷۹) آیت کښې فرمائي : ﴿وَسَخَّرْنَا مَعَ دَاوُدَ الْجِبَالَ يُسَبِّحْنَ﴾

Scanned by CamScanner

(مونږ د داود دپاره غرونه تابع کړي وو، چه هغوئ به د هغهٔ سره تسبيح وئيله)۔
زجاجؒ وائي : که چرے غرونو د خپلو ژبو په ذريعه تسبيح نهٔ وئيلے، بلکه مقصود دا وے چه د دوئ پيدائش په دے خبره دلالت کوي چه د دوئ خالق د تمامو عيبونو او نقصانونو نه پاك دے، نو ددے په ذکر کولو کښې به د داؤد عليه السلام دپاره هيڅ خصوصيت نهٔ وے۔
دے وجے نه معلومه شوه چه غرونو به په خپلے وينا سره د داؤد عليه السلام سره تسبيح لوستله چه دا به هغهٔ پيژندله۔
سَبَّحَ لِلّٰهِ: تسبيح کله متعدي بنفسه وي لکه (وَسَبِّحُوْهُ) کښې راغلے دے۔ او کله په لام سره متعدي وي لکه دلته شو۔
اصل خو دا ده چه دا دِے بالذات متعدي شي۔ خو کله چه دا په لام سره استعمال شوے وي نو هلته به لام د تاکيد دپاره زياتي ګڼړلے شي لکه په شَكَرْتُهٗ او شَكَرْتُ لَهٗ کښې دغه شان خبره ده۔ يا به دا لام د تعليل دپاره وي۔
او مطلب به دا وي چه تسبيح وائي د الله د وجه نه او خاص د الله دپاره هغه څه چه په آسمانونو او زمکه کښې دي الخ۔
الْعَزِيْزُ الْحَكِيْمُ : دا دوه صفتونه ئے د مخکښې سَبَّحَ دپاره د دليلونو په حيثيت سره راوړيدي۔ العزيز کښې اشاره ده چه ټول مخلوق د الله په مقابله کښې عاجز او مغلوب دے ددے وجه نه څوك طَوْعًا (په خوشحالئ سره) تسبيح وائي، او څوك كَرْهًا (په زوره سره) نو دا د قولي تسبيح دپاره دليل شو۔
او الْحَكِيْمُ: کښې اشاره ده چه الله تعالىٰ ټول عالَم د خپل معلوم حکمت مطابق منظم او مرتب پيدا کړيدے چه د هغهٔ نه په هيڅ شان سره انحراف نشي کولے، نو دا بنائسته ترتيب د الله په تسبيح باندے دلالت کوي، نو دا د حالي تسبيح دپاره دليل شو۔
لَهٗ مُلْكُ السَّمَاوَاتِ وَالْاَرْضِ : آسمانونو او زمکه کښې چه څومره څيزونه موندلے کيږي، ددے ټولو مالك الله دے، هغه چه څنګه غواړي په دے کښې تصرف کوي، د هغهٔ نه سوئ د بل هيچا خوښه نهٔ چليږي۔
په دے آيتِ کريمه کښې د صوفياؤ په دے دروغژنه عقيده باندے رد دے چه الله تعالىٰ د زمکے او آسمانونو بادشاهي د دوئ فرضي غوثانو او قطبانو کښې تقسيم کړے ده، اوس صرف هغه په دے کائناتو کښې تصرف کوي۔ او الله تعالىٰ (العياذ بالله) بيکاره شوے دے،

Scanned by CamScanner

الله تعالیٰ وفرمایل چه هم هغه چه چاله غواړی ژوند ورکوی، او چاله چه غواړی وژنی ئے او چاله چه غواړی د خپلے خوښے مطابق چه څهٔ غواړی ورکوی ئے، هغه په هر یو شیٔ مکمل قدرت لری. دا د نهٔ کیدو خبره ده چه هغه دِے یو شے اوغواړی او هغه دِے په وجود کښ رانشی. هغه دِے څوك وژل اوغواړی او هغه دِے مړ نشی، یا دِے څوك ژوندے ساتل وغواړی او هغه دِے څوك مړ کړی.

په یُحْیٖ وَیُمِیْتُ کښ اشاره ده حیاتِ قلبی او موتِ قلبی ته هم . په انسان کښ دوه صفتونه د کمال دی، یو حیات او بل نور. نو زړهٔ ژوندے کړه او رنړا پکښ واچوه، او دا د الله په معرفت او د هغهٔ په عبادت باندے کیږی. نو الله ژوندی کول او مړهٔ کول کوی، نو د الله نه وغواړه چه هغه درله زړهٔ ژوندے کړی.

هُوَ الْاَوَّلُ: هغه د آسمانونو او د زمکے د هر موجود نه مخکښ وو، هم هغهٔ هر یو شے پیدا کړے، او کله چه هر یو شے فناء شی نو صرف د هغهٔ ذات به باقی پاتے وی، او هغه د هر یو شیٔ دپاسه دے، هیڅ یو شے د هغهٔ دپاسه نهٔ دے، او د هغهٔ وجود د دلائلو په ذریعه بیخی ظاهر دے، او د هغهٔ ذات او حقیقت د انسانانو د سترګو او عقلونو نه پټ دے، هیڅوك د هغهٔ د ذات راز نشی موندلے، او هغه د هر یو شیٔ د راز نه خبردار دے.

(۲) دویم تفسیر او هغه غوره دے دا دے :

امام احمدؒ، مسلمؒ، ترمذیؒ، ابن ابی شیبهؒ او بیهقیؒ د ابو هریره رضی الله عنه نه روایت کړے چه فاطمه رضی الله عنها رسول الله ﷺ ته د یو خادمے ته د ضرورت ذکر وکړو، نو رسول الله ﷺ هغے ته نصیحت وکړو چه هغه دے دا راتلونکے دعاء لولی :

[ اَللّٰهُمَّ رَبَّ السَّمَاوَاتِ السَّبْعِ وَرَبَّ الْعَرْشِ الْعَظِيْمِ وَرَبَّنَا وَرَبَّ كُلِّ شَيْءٍ، مُنْزِلَ التَّوْرَاةِ وَالْإِنْجِيْلِ وَالْفُرْقَانِ، فَالِقَ الْحَبِّ وَالنَّوٰى، أَعُوْذُ بِكَ مِنْ شَرِّ كُلِّ شَيْءٍ أَنْتَ آخِذٌ بِنَاصِيَتِهِ. أَنْتَ الْأَوَّلُ فَلَيْسَ قَبْلَكَ شَيْءٌ، وَأَنْتَ الْآخِرُ فَلَيْسَ بَعْدَكَ شَيْءٌ، وَأَنْتَ الظَّاهِرُ فَلَيْسَ فَوْقَكَ شَيْءٌ، وَأَنْتَ الْبَاطِنُ فَلَيْسَ دُوْنَكَ شَيْءٌ، اِقْضِ عَنَّا الدَّيْنَ وَأَغْنِنَا مِنَ الْفَقْرِ ]

په دے مبارکه دعاء کښ نبی کریم ﷺ ددے آیت ډیر عُمده تفسیر کړے، چه تهٔ داسے اول ئے چه تانه مخکښ هیڅ شے نشته، او تهٔ داسے آخر ئے چه هیڅوك تانه روستو نشته، او تهٔ داسے ښکاره ئے چه هیڅوك تانه پورته نشته، او تهٔ داسے باطن (پټ) ئے چه هیڅوك تانه زیات پټ نشته. (مسلم : ۷۰٦٤)

Scanned by CamScanner

وَالْآخِرُ : يعني داسے ذات ئے چه د هر شي وجود به په تا باندے ختميږي، ستا نه روستو به هيڅوك پاتے نۀ وي، صرف همدا ته به د هر شي نه روستو پاتے ئے.

او د الظاهر معنیٰ ده، ښکاره او اُوچت، او دا قانون دے چه يو شے څومره پورته کيږي نو هغه ښکاره کيږي لکه آسمان، او چه څومره ښکته ځي نو پټيږي لکه کوهے واخله. نو د الله دپاسه څوك نشته.

وَالْبَاطِنُ: ١- باطن هغه (پټ ذات) دے چه د هغه مخے ته بل شے حائل (پرده) او مانع نۀ واقع کيږي، چه الله تعالیٰ يو شی لره د دغه پردے په وجه ونۀ وينی، داسے نشی کيدے.

٢- يا باطن هغه ذات دے چه په باطن د هر شي باندے پوهه دے.

٣- يا باطن دا هم دے چه د زمکو لاندے هم د هغه قدرت او علم دے لکه په يو ضعيف روايت کښ (لَهَبَطَ عَلَى اللّٰهِ) لفظ ذکر دے. يعني که يوه رسئ د آسمان نه اُومے زمکے ته کوزه شي، نو دا به په الله ورکوزه شي، يعني د الله په علم او قدرت باندے. الله به ترے هلته هم خبردار وي. (ترمذی : ٣٢٩٨) واحمد، ولم يسمع الحسنؒ عن ابی هريرة ﷺ)

امام ترمذیؒ فرمائی : د الله علم په هر ځای کښ دے، او خپله په اعتبار د ذات سره په عرش باندے مُستوی دے لکه چه الله تعالی په خپل کتاب کښ د خپل ځان همدا صفت ذکر کړیدے.

(سنن الترمذی سورة الحديد باب ٥٧، ج٥/٤٠٣ بتحقيق احمد شاکرؒ)

| هُوَ الَّذِیْ خَلَقَ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضَ فِیْ سِتَّةِ |
| --- |
| خاص الله هغه ذات دے چه پيدا کړی ئے دی آسمانونه او زمکه په اندازه د شپږو |
| أَيَّامٍ ثُمَّ اسْتَوٰی عَلَى الْعَرْشِ يَعْلَمُ مَا يَلِجُ فِي الْأَرْضِ |
| ورځو کښ بيا برابر شو په عرش باندے، پوهيږی په هغه څه چه ننوځي په زمکه |
| وَمَا يَخْرُجُ مِنْهَا وَمَا يَنْزِلُ مِنَ السَّمَاءِ وَمَا يَعْرُجُ |
| کښ او هغه چه را اُوځي ددے نه او هغه چه نازليږی د آسمان نه او هغه چه خيژي |

Scanned by CamScanner

| فِيهَا وَهُوَ مَعَكُمْ أَيْنَ مَا كُنتُمْ وَاللَّهُ بِمَا |
|---|
| په آسمان کښې او هغه ستاسو سره دے هر ځائے چه یئ تاسو او الله په هغه عملونو |
| تَعْمَلُونَ بَصِيرٌ ﴿٤﴾ لَهُ مُلْكُ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ |
| چه تاسو ئے کوئ لیدونکے دے. خاص هغهٔ لره بادشاهی د آسمانونو او د زمکے ده |
| وَإِلَى اللَّهِ تُرْجَعُ الْأُمُورُ ﴿٥﴾ يُولِجُ اللَّيْلَ فِي النَّهَارِ وَيُولِجُ |
| او خاص هغهٔ ته ورګرځولے شي ټول کارونه. ننباسی شپه په ورځ کښې او ننباسی |
| النَّهَارَ فِي اللَّيْلِ وَهُوَ عَلِيمٌ بِذَاتِ الصُّدُورِ ﴿٦﴾ |
| ورځ په شپه کښې او هغه پوهه دے په هغه خبرو چه سینو کښې دی. |

**تفسیر** : هُوَ الَّذِیْ خَلَقَ: دا آیت هم د الله تعالیٰ د فوقیت دلیل دے.

اسْتَوٰی عَلَی الْعَرْشِ : دا آخری خل دے چه دا صفت پکښې راغلو، او دا په مقام د تعارف کښې ذکر کیږی، نو دا دلیل دے چه څوك د الله تعالیٰ په عرش باندے استواء (برابریدل) نهٔ منی، نو هغه یقیناً الله تعالیٰ نهٔ پیژنی.

یَعْلَمُ: یعنی الله تعالیٰ لکه څنګه چه قادر دے، نو دغه شان په هر شی باندے عالِم هم دے.

مَا یَلِجُ فِی الْأَرْضِ : زمکه کښې مړی، دانے، بوټی، د باران څاڅکی، حیوانات، د مړو بدنونه او نور تمام څیزونه داخلیږی.

وَمَا یَخْرُجُ مِنْهَا: دانے، فصلونه، ګلان، میوه جات، خزانے او جواهرات وغیره.

وَهُوَ مَعَکُمْ: په نیز د سلفو صالحینو دلته معیت په اعتبار د قدرت او علم سره مراد دے. نهٔ په اعتبار د ذات سره. بعض خلق وائی چه دا آیت هم د متشابهاتو نه دے چه الله تعالیٰ په عرش هم دے، او د بندګانو سره هم دے. نو دا عقیده نهٔ په قرآن کښې شته، او نهٔ په حدیث کښې، او نهٔ د سلفو صالحینو عقیده وه.

او حدیث کښې دی ...... درے کسانو د ایمان خوند وڅکلو.......... آخری شخص ئے دا ذکر کړیدے چه [وَزَکّٰی نَفْسَهٗ]خپل نفس پاك کړی، یو تن تپوس وکړو:

Scanned by CamScanner

[وَمَا تَزْكِيَةُ النَّفْسِ؟] چه بنده خپل ځان څنګه پاکوي؟ وې فرمایل:
[يَعْلَمُ اَنَّ اللّٰهَ مَعَهُ حَيْثُ كَانَ] پدې خبره پوهه شي چه الله تعالیٰ ددهٔ سره دے چرته چه دے وي. (یعني په اعتبار د علم سره الله تعالیٰ ددهٔ سره هر ځای کښې دے).
(المعجم الصغير ص (١١٥) ومسند الشاميين للطبراني ١٨٧٠ وهو عند ابي داود باسناد منقطع والحديث اسناده صحيح قاله حمدي عبد المجيد السلفي والالباني وهو في السلسلة الصحيحة (٣٨/٣) رقم (١٠٤٦)
او د معیت باقي تشریح به په سورة المجادله کښې راشي ان شاء الله تعالیٰ.
شیخ الاسلام ابن تیمیه رحمه الله په خپل کتاب (شرح حدیث النزول) کښې لیکلي دي چه په سورة الحدید او سورة المجادله کښې د راغلي «معیت» تفسیر د سلفو علماؤ په نیز دادے چه (الله د خپلو بندګانو سره د خپل علم په ذریعه دے)،
امام ابن عبد البرؒ او نورو امامانو د صحابهٔ کرامو او تابعینو اجماع په دے نقل کړے ده.
ابن عباس ، ضحاکؒ، مقاتل بن حیانؒ، سفیان ثوريؒ، او احمد بن حنبلؒ وغیره نه هم دا تفسیر نقل دے.
ابن ابي حاتمؒ د ابن عباس نه ددے آیت په تفسیر کښې روایت کړې دي چه الله په عرش باندې دے، او د هغهٔ علم د دوئ سره دے.
**لَهُ مُلْكُ السَّمَاوَاتِ** : دا بل دلیل دے. په دویم آیت کښې اشاره وه د دنیا ملك ته، او پدے کښې د آخرت ملك ته اشاره ده لکه دلته ئې آخرت په (وَاِلَى اللّٰهِ تُرْجَعُ الْاُمُوْرُ) سره ذکر کړیدے.
**يُوْلِجُ الَّيْلَ** : دا بل عقلي دلیل دے او پدے کښې د الله تعالیٰ تصرف په زمانه کښې ذکر دے. او د شپې او د ورځې په یو بل کښې داخلول دا دي چه رڼا لاړه شي او تیاره راشي، او ددے برعکس. او کله شپه اُوږده وي او کله ورځ. یعني د یو بے څه ګینټې په بله کښې ننباسي. د زیاتي تفصیل لپاره د سورهٔ آل عمران (٢٧) آیت، د سورهٔ الحج (٦١) آیت، د سورهٔ لقمان (٢٩) آیت، او د سورهٔ فاطر (١٣) آیت تفسیر وګوره.
تر دے ځای پورې دا خبره ثابته شوه چه صرف الله تعالیٰ په هر شي عالم دے، او په هر شي کښې تصرف کونکے دے، او پدے کښې د هغهٔ هیڅوك هم شریك نشته، نو دا په تسبیح باندې دلیل شو.

Scanned by CamScanner

آمِنُوا بِاللّٰهِ وَرَسُولِهِ وَأَنْفِقُوا مِمَّا

ایمان راوړئ په الله باندې او په رسول د هغهٔ باندې او خرچ کوئ د هغې مال نه

جَعَلَكُمْ مُسْتَخْلَفِينَ فِيهِ فَالَّذِينَ

چه کړخولي ئې يئ تاسو واکداران (نائبان، جانشين) په هغې کښې نو هغه کسان

آمَنُوا مِنْكُمْ وَأَنْفَقُوا لَهُمْ أَجْرٌ كَبِيرٌ ﴿٧﴾ وَمَا لَكُمْ

چه ايمان ئې راوړيدې ستاسو نه او خرچ ئې کړيدې، دوی لره اجر لوئي دې. او څه وجه

لَا تُؤْمِنُونَ بِاللّٰهِ وَالرَّسُولُ يَدْعُوكُمْ

ده چه تاسو به ايمان نهٔ راوړئ په الله او حال دا چه رسول (ﷺ) دعوت درکوی تاسو

لِتُؤْمِنُوا بِرَبِّكُمْ وَقَدْ أَخَذَ

ته دې دپاره چه تاسو ايمان راوړئ په رب خپل باندې او الله اخستې ده

مِيثَاقَكُمْ إِنْ كُنْتُمْ مُؤْمِنِينَ ﴿٨﴾ هُوَ الَّذِي

مضبوطه وعده ستاسو نه (په دلائلو سره) که چرته تاسو مؤمنان يئ۔ الله هغه ذات

يُنَزِّلُ عَلَىٰ عَبْدِهِ آيَاتٍ بَيِّنَاتٍ لِيُخْرِجَكُمْ مِنَ الظُّلُمَاتِ

دې چه راليږی په بنده خپل باندې آيتونه ښکاره دې دپاره چه راوُباسی تاسو د تيارو

إِلَى النُّورِ وَإِنَّ اللّٰهَ بِكُمْ لَرَءُوفٌ رَحِيمٌ ﴿٩﴾

نه رڼا ته او يقيناً الله تعالیٰ په تاسو باندې ضرور شفقت کونکې رحم کونکې دې۔

**تفسير** : اُوس دوه دعوتونه ورکړې کيږی، يو ايمان بالله ته، او بل دعوت انفاق فی سبيل الله ته۔ د ايمان بالله درې وجې بيانوی۔

نو په دې آيتِ کريمه کښې بندګانو ته په الله او د هغهٔ په رسول باندې د داسې يقينی ايمان راوړو حکم شوې چه د هغې اثر د دوئ په عملونو کښې راښکاره شی، او د الله د ورکړې مال او دولت نه د هغهٔ په لاره کښې خرچ کول په نفس باندې ګران جوړ نشی۔

Scanned by CamScanner

**تنبیه** : آمنوا بالله خطاب مؤمنانو ته دے او کافرانو ته نهٔ دے، ځوك چه وائی چه دا خطاب یهود او نصاراؤ ته دے، نو دا خبره بے دلیله ده، بلکه دا مؤمنانو ته خطاب دے چه خپل ایمانونه تازه کړئ، او د ایمان تقاضا پوره کړئ او د ایمان حقیقت ته ځانونه ورسوئ۔

مُسْتَخْلَفِیْنَ: یعنی تاسو ئے په هغے کښ جانشین کړی یئ۔ ددے دوه مطلبه دی :

(۱) یو دا چه د انسان چه کوم مال وی، نو دا په حقیقت کښ د الله تعالیٰ مال دے، لیکن په دے کښ د جائز تصرف کولو دپاره دے د الله له خوا خلیفه او نائب وی، او دے ئے عارضی مالك جوړ کړیدے، او بیرته به الله ته پاتے کیږی، نو دا د هغهٔ د حکم مطابق خرچ کړئ۔

(۲) حسن بصریؒ فرمائی : تاسو ئے د خپلو مشرانو د مالونو وارثان جوړ کړئ، یعنی تاسو ته د هغوی نه میراث پاتے شو، نو پدے کښ اشاره ده چه دا مالونه لکه چه ستاسو د مشرانو نه په میراث کښ پاتے شول، نو دغه شان به ستاسو نه هم پاتے کیږی، نو جلتیٔ وکړئ انفاق کولو ته۔ په دواړو صورتونو کښ مقصد انسان لره د الله په لاره کښ په مال خرچ کولو باندے راپاروی، ځکه چه دا د الله تعالیٰ ورکړے مال دے، دے وجے نه د هغهٔ په لاره کښ په خرچ کولو کښ د بُخل نه کار اخستل نهٔ دی پکار۔

د آیت په آخر کښ داسے ایمان والو او د الله په لاره کښ خرچ کونکو ته د لوی اجر یعنی جنت زیرے ورکړے شوے۔

فَالَّذِیْنَ : مخکښ حکم د انفاق وو نو اُوس په طریقه د بشارت سره انفاق ته ترغیب دے۔

آمَنُوْا مِنْكُمْ وَاَنْفَقُوْا: یعنی کومو خلقو چه په الله او په رسول باندے ایمان او انفاق فی سبیل الله راجمع کړو۔ نو پدے کښ عثمان غنی ﷺ ته اشاره ده چه هغه په غزا د تبوك کښ د فوج په تیاریٔ کښ درے سوه اُوښان د پالانو او ځتهو او بارونو سره ورکړل، او زر دیناره ئے راوړل او د رسول الله ﷺ په مخکښ ئے کیخودل۔ او بیا تولو صحابه کرامؓ کښ د ایمان سره انفاق هم وو، د چا کم او د چا زیات، د خپل خپل وس مطابق۔

وَمَا لَكُمْ: ددے نه روستو د ایمان درے وجے بیانوی، یعنی د ایمان راوړو دپاره درے علتونه او وجوهات دی، او دارنگه پدے درے کارونو سره ایمان جوړیږی هم۔

Scanned by CamScanner

اول: اَلتَّدَبُّرُ فِیْ دَعْوَةِ الرَّسُوْلِ وَمُعْجِزَاتِهٖ۔ یعنی د رسول الله ﷺ په دعوت او د هغهٔ په معجزاتو کښې سوچ کول دی۔ دویم اَلتَّدَبُّرُ فِی الْقُرْآنِ ۔ په قرآن کریم کښې سوچ کول، او دریم اَلتَّدَبُّرُ فِی الْکَوْنِ۔ په کائناتو کښې سوچ کول دی۔

وَمَا لَکُمْ: پدے کښې انسان ته زجر او رټنه ورکړے کیږي، یعنې ستاسو څه عذر دے؟ او د ایمان نه کوم مانع دے؟ حال دا چه ددے رسول او د قرآن کریم په رالیږلو سره په کفر او شرك باندے د باقي پاتے کیدو تمام اسباب او وجوهات ختم شول، اُوس د ایمان راوړو نه هیڅ یو شے مانع نهٔ دے، بیا څهٔ وجه ده چه تاسو په الله او د هغهٔ په رسول باندے ایمان نهٔ راوړئ، حال دا چه رسول الله ﷺ د دعوت هره یوه طریقه اخ- باروی، او هر ممکن کوشش کوی چه تاسو په خپل رب ایمان راوړئ۔

وَالرَّسُوْلُ یَدْعُوْکُمْ: ددے مطلب دا دے چه د رسول الله ﷺ دعوت موجود دے، نو هغه سبب د ایمان دے، او د هغهٔ معجزے موجودے دی، د هغهٔ ذات گرامی او د هغهٔ صفاتِ عَذْبَه (خوارهٔ) موجود دی۔ او د نبی کریم ﷺ هره خبره ایمان ته دعوت دے کله په یو طرز او کله په بل طرز۔

وَقَدْ اَخَذَ مِیْثَاقَکُمْ: یعنی الله تعالیٰ ستاسو نه وعده اخستے ده۔

(۱) اَیْ بِالْحُجَجِ، اَیْ بِنَصْبِ الْاَدِلَّةِ الْعَقْلِیَّةِ ۔ یعنی په دلیلونو سره چه الله تعالیٰ عقلی دلیلونه په خپل ایمان باندے ودرولی دی، او تاسو ته ئے عقلونه درکړیدی، او تاسو ئے په سوچ کولو باندے قادر کړی یئ۔ او ستاسو په فطرت کښې ئے په خالق او رازق باندے د ایمان راوړو رغبت او خواهش ایښے، او رسول الله ﷺ راغے او ستاسو دا فطرت ئے راپورته هم کړو، بیا څهٔ وجه ده چه تاسو د ایمان راوړو نه ډډه کوئ ؟!۔

(صاحب الکشاف والقاضی البیضاوی)

(۲) یا مطلب دا دے چه الله تعالیٰ په اوله ورځ په عالم الذر کښې ستاسو نه لوظ اخستے وو چه کله د هغهٔ آخری رسول دنیا ته تشریف راوړی، نو تاسو به په هغهٔ ایمان راوړئ، بیا څهٔ سبب دے چه تاسو ایمان نهٔ راوړئ ؟! او همدا مطلب غوره دے۔

اِنْ کُنْتُمْ مُّؤْمِنِیْنَ: یعنی که تاسو په یو سبب سره ایمان راوړئ نو ددے نه بل لوی سبب نشته۔

هُوَ الَّذِیْ یُنَزِّلُ: دویم سبب د ایمان د جوړولو دپاره قرآن کریم دے چه پدے کښې سوچ

Scanned by CamScanner

کول او ددے سره تعلق ساتلو سره ایمان تازه کیږی۔ یعنی الله تعالیٰ چه انسانانو له د ایمان دعوت ورکولو دپاره کله نبی کریم ﷺ را اولیږهٔ، نو دے دعوت ته د قوت رسولو او ددے د تائید کولو دپاره ئے هغهٔ له ډیرے معجزے ورکړے، چه د هغے نه لویه او اهمه معجزه قرآن کریم وو، دے دپاره چه خلق دا معجزات اُووینی، او قرآن کریم آوریدو سره ایمان راوړی، او د کفر او شرك د تیارو نه را اوځی، او د ایمان په رڼرا سره خپل زړونه روښانه کړی۔

او الله تعالیٰ په خپلو بندګانو باندے ډیر زیات مهربانه او رحم کونکے دے، دے وجے نه هغهٔ د دوئ په حال رحم وکړو، او د دوئ د هدایت دپاره ئے کتاب را اولیږهٔ او رسول ئے را اولیږهٔ، دے دپاره چه دوئ د ایمان په دولت سره کامیاب شی، او د جنت حقدار جوړ شی، او د جهنم اُور په خپل ځان باندے حرام کړی۔

آیَاتٍ بَیِّنَاتٍ: ۱- ددے نه مراد ښکاره معجزے دی چه قرآن په کښ ډیر واضح دے۔
۲- دارنګه قرآنی آیتونه مراد دی۔

| وَمَا لَکُمْ اَلَّا تُنْفِقُوْا فِیْ سَبِیْلِ اللّٰهِ وَلِلّٰهِ مِیْرَاثُ |
| --- |
| او څه وجه ده تاسو لره چه خرچ نهٔ کوئ په لاره د الله کښ او خاص الله لره میراث |
| السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ لَا یَسْتَوِیْ مِنْکُمْ مَّنْ اَنْفَقَ |
| د آسمانونو او د زمکے دے، برابر نهٔ دے ستاسو نه هغه څوك چه انفاق ئے کړیدے |
| مِنْ قَبْلِ الْفَتْحِ وَقٰتَلَ ط اُولٰٓئِكَ اَعْظَمُ دَرَجَةً مِّنَ |
| مخکښ د فتح د مکے نه او جهاد ئے کړیدے دا کسان لوئی درجے والا دی د |
| الَّذِیْنَ اَنْفَقُوْا مِنْ بَعْدُ وَقٰتَلُوْا ط |
| هغه کسانو نه چه مالونه ئے لګولی دی روستو ددے نه، او جنګ ئے کړیدے۔ |
| وَکُلًّا وَّعَدَ اللّٰهُ الْحُسْنٰی ط وَاللّٰهُ بِمَا |
| او هریو سره وعده کړیده الله تعالیٰ ښائسته (د جنت) او الله په هغه عملونو |

Scanned by CamScanner

تَعْمَلُوْنَ خَبِيْرٌ ﴿۱۰﴾

چه تاسو ئې کوئ خبردار دے۔

**تفسير**: اُوس د انفاق کولو درے وجوهات بيانيږي۔

مفسرين ليکي: چونکه ددے سورت مرکزي مضمون د الله په لاره کښې خرچ کولو ته ترغيب ورکول دي، دے وجے نه په ګڼو آيتونو کښې الله تعالیٰ په مختلفو طريقو سره د الله په لاره کښې خرچ کول، ددے اهميت، او ددے لوی اجر بيان کړے دے۔

اوله وجه (۱) فِيْ سَبِيْلِ اللهِ۔ يعني اے مؤمن بنده! آيا ته د الله دين پورته کول غواړے او که نهٔ؟ که غواړے نو خامخا به انفاق کوے۔

(۲) وَلِلّٰهِ مِيْرَاثُ السَّمٰوٰتِ۔ دا مالونه الله ته پاتے دي نو په جلتئ سره ئې د الله دپاره ولګوه۔

(۳) لَايَسْتَوِيْ۔ يعني مال زر زر ولګوئ چه اُوچته مرتبه وګټئ ځکه چه مخکښې انفاق کونکي او روستو انفاق کونکي په درجه کښې برابر نهٔ دي۔

او مفسرين ليکي چه په دے آيتِ کريمه کښې الله تعالیٰ هغه خلقو ته زجر او توبيخ هم ورکړے چه هغوئ د محتاجئ د وېرے نه د الله په لاره کښې د خرچ کولو نه ډډه کوي، حالانکه دا مال هغه ذات ورکړے کوم چه د آسمانونو او د زمکے د خزانو مالك دے، د هغهٔ په خزانو کښې هيڅ کمے نشته۔ او هغهٔ د سورتِ سبا په (۳۹) آيت کښې فرمايلي دي : ﴿وَمَآ اَنْفَقْتُمْ مِّنْ شَيْءٍ فَهُوَ يُخْلِفُهٗ وَهُوَ خَيْرُ الرّٰزِقِيْنَ﴾ (تاسو چه څهٔ هم د الله په لاره کښې خرچ کوئ، الله ددے پوره پوره بدله درکوي، او هغه د ټولو نه بهتر روزي ورکونکے دے)۔ دے وجے نه د الله په لاره کښې د خرچ کولو نه يريدل، د قوي ايمان خِلاف خبره ده۔

﴿لَا يَسْتَوِيْ مِنْكُمْ مَّنْ اَنْفَقَ﴾ پدے کښې الله تعالیٰ د هغه خلقو فضيلت بيان کړے، چه هغوئ د مکے د فتح يا د حُديبيه د صلح نه مخکښې د الله په لاره کښې خرچ وکړو، او جهاد ئې وکړو دے دپاره چه د حق آواز اُوچت شي۔

ددے سابقينو اولينو سره هغه خلق برابريدے نشي چه هغوئ د مکے د فتح نه پس د الله په لاره کښې خرچ وکړو، او هغه وخت ئې جهاد وکړو کله چه اسلام ته قوت او غلبه حاصله شوے وه۔

او بخاريؒ او مسلمؒ په فضائل الصحابة کښې د ابو هريره ﷺ نه روايت کړے :

Scanned by CamScanner

[لَا تَسُبُّوْا اَصْحَابِیْ! فَوَ الَّذِیْ نَفْسُ مُحَمَّدٍ بِیَدِهٖ لَوْ اَنْفَقَ اَحَدُکُمْ مِثْلَ اُحُدٍ ذَهَبًا مَا بَلَغَ مُدَّ اَحَدِهِمْ وَلَا نَصِیْفَهٗ]

چه زما صحابو ته کنځل مهٔ کوئ، که چرې په تاسو کښې یو کس د اُحُد غرهٔ هومره هم سرهٔ زر خرچ کړی نو د هغوئ د مُد (تقریبًا نیمائی کلو) او د نیم مُد سره برابریدے نشی۔

(بخاری: فضائل الصحابه باب۵، مسلم فی فضائل الصحابة حدیث ۲۲۲/۲۲۱) وغیره۔

اول قسم خلق سابقین او مقربین دی او دویم قسم خلق اصحاب الیمین دی، او دا دلیل دے چه په صحابه کرامو کښې هم دا دواړه ډلے موجودے وے۔ او په روستو امت کښې هم موجودے دی ځکه چه (الفتح) نه مراد عامه فتح هم کیدے شی۔ یواځے د صلح حدیبیه یا فتح د مکے پورے خاص نهٔ دے۔

یعنی په یو کلی او ملك کښې چه د توحید او اسلام غلبه او فتح نهٔ وی راغلی او په دغه وخت کښې څوك جهاد او انفاق کوی نو هغوی غوره دی د هغه چا نه چه روستو د غلبے نه جهاد او انفاق کوی۔

حافظ سیوطیؒ په ((الاکلیل)) کښې لیکلی دی: [فِی الْآیَةِ دَلِیْلٌ عَلٰی اَنَّ لِلصَّحَابَةِ مَرَاتِبَ، وَاَنَّ الْفَضْلَ لِلسَّابِقِ، وَعَلٰی تَنْزِیْلِ النَّاسِ مَنَازِلَهُمْ، وَعَلٰی اَنَّ اَفْضَلِیَّةَ الْعَمَلِ عَلٰی قَدْرِ رُجُوْعِ مَنْفَعَتِهٖ اِلَی الْاِسْلَامِ وَالْمُسْلِمِیْنَ، لِاَنَّ الْاَجْرَ عَلٰی قَدْرِ النَّصَبِ]

دا آیت دلیل دے چه د صحابه کرامو مختلفے مرتبے وے، او په دوئ کښې چه کومو خلقو څومره مخکښې اسلام راوړے، په همدے اعتبار سره دوئ ته فضیلت حاصل دے۔

او پدے هم دلیل دے چه خلقو کښې به هریو تن خپله خپله مرتبه باندے نازلولے شی، او هغوی ته به خپله مرتبه ورکولے شی،

دارنګه دا آیت ددے دلیل هم دے چه د یو عمل څومره فائده اسلام او مسلمانانو ته واپس کیږی نو په هغه اندازه د هغے افضیلت هم وی، ځکه چه اجر په اندازه د سترې والی (او مرتبے) سره وی۔ (قاسمیؒ)

وَکُلًّا وَّعَدَ اللّٰهُ الْحُسْنٰی[۱]: یعنی په صحابهٔ کرامو کښې د مرتبو ددے فرق باوجود الله تعالیٰ تولو سره د جنت وعده کړے۔

حافظ ابن کثیرؒ وائی چه الله تعالیٰ ﴿وَکُلًّا وَّعَدَ اللّٰهُ الْحُسْنٰی﴾ (او تولو سره الله د جنت وعده کړے) ځکه وفرمایهٔ چه څوك دا ګمان ونکړی چه روستنی صحابهٔ کرامؓ د هیڅ

تعریف او صفت لائق نهٔ دی، بلکه د الله په نظر کښې تمام صحابهٔ کرامؓ د صفت لائق دی۔

ابن کثیرؒ لیکی چه الله تعالیٰ د مکے د فتح کیدو نه مخکښې د خرچ کونکو او جهاد کونکو اجر او ثواب، د روستنو صحابهٔ کرامو په مقابله کښې ځکه زیات اوساتلو چه هغهٔ ته د هغوئ د کامل اخلاص، نیت، انتهائی لِلّٰهیت، او ددے خبرے بنهٔ علم وو چه هغوئ ځنګه د تنګئ او پریشانئ په زمانه کښې د الله په لاره کښې خرچ کړے وو۔

نسائیؒ د ابو هریره ﷛ نه روایت کړے چه د صحابهٔ کرامو یوه روپئ د نورو د یو لکهـ نه زیات اهمیت لری۔

او دا خبره ټولو مومنانو ته معلومه ده چه ابو بکر صدیق ﷛ په دے آیت کښې د ذکر شوی فضیلت د ټولو نه زیات حقدار وو، ځکه چه دهٔ خالص د الله د رضا دپاره خپل ټول مال خرچ کړے وو۔ (ابن کثیر ومحاسن التاویل)

مَنۡ ذَا الَّذِیۡ یُقۡرِضُ اللّٰهَ قَرۡضًا حَسَنًا فَیُضٰعِفَهٗ

څوك دے هغه سړے چه قرض ورکړی الله ته قرض ښائسته، نو دوچنده به ئے کړی

لَهٗ وَلَهٗۤ اَجۡرٌ کَرِیۡمٌ ﴿۱۱﴾ یَوۡمَ تَرَی الۡمُؤۡمِنِیۡنَ

هغهٔ دپاره او هغهٔ لره به اجر عزتمند وی۔ په هغه ورځ چه تهٔ به اُووینے مؤمنان سړی

وَالۡمُؤۡمِنٰتِ یَسۡعٰی نُوۡرُهُمۡ بَیۡنَ اَیۡدِیۡهِمۡ وَبِاَیۡمَانِهِمۡ

او مؤمنے ښځے منډے به وهی رڼړا ګانے د دوی مخکښې د دوی نه او ښی طرفونو د

بُشۡرٰىکُمُ الۡیَوۡمَ جَنّٰتٌ تَجۡرِیۡ مِنۡ تَحۡتِهَا

دوی ته (وئیلے به شی) زیرے ستاسو نن ورځ جنتونه دی چه بهیږی به لاندے د هغے

الۡاَنۡهٰرُ خٰلِدِیۡنَ فِیۡهَا ؕ ذٰلِکَ هُوَ الۡفَوۡزُ الۡعَظِیۡمُ ﴿۱۲﴾ یَوۡمَ یَقُوۡلُ

نه ولے همیشه به یئ په هغے کښې، دا کامیابی لویه ده۔ په هغه ورځ چه وائی به

الۡمُنٰفِقُوۡنَ وَالۡمُنٰفِقٰتُ لِلَّذِیۡنَ اٰمَنُوا انۡظُرُوۡنَا

منافقان سړی او منافقے ښځے هغه کسانو ته چه ایمان ئے راوړیدے، اُوګورئ مونږ ته

Scanned by CamScanner

| نَقْتَبِسْ مِنْ نُّوْرِكُمْ قِيْلَ |
|---|
| (انتظار اُوکړئ مونږ ته) چه واخلو مونږ ستاسو د رنړا نه وُیه وئیلے شی |
| ارْجِعُوْا وَرَاءَكُمْ فَالْتَمِسُوْا نُوْرًا فَضُرِبَ بَيْنَهُمْ |
| واپس لاړ شئ روستو خپل ته نو اُولټوئ رنړا نو وُیه وهلے شی په مینځ د دوی کښ |
| بِسُوْرٍ لَّهٗ بَابٌ بَاطِنُهٗ فِيْهِ الرَّحْمَةُ |
| یو دیوال چه هغهٔ لره به دروازه وی، دننه به په هغے کښ رحمت وی |
| وَظَاهِرُهٗ مِنْ قِبَلِهِ الْعَذَابُ ﴿۱۳﴾ |
| او بهر طرف د هغے نه به عذاب وی۔ |

**تفسیر :** ربط :

مفسر ابو السعودؒ لیکی چه الله تعالی اول په خپله لاره کښ د خرچ کولو حکم اوکړو، بیائے هغه خلقو ته زجر او رټنه ورکړه چه هغوئ د کنجوسئ په وجه د الله په لاره کښ خرچ نهٔ کوی، بیائے د هغهٔ په لاره کښ د خرچ کونکو درجے اوښودلے، نو اُوس په دے آیت کښ په یو مخصوص انداز سره د الله په لاره کښ د خرچ کولو ترغیب ورکړے کیږی، چه کوم کس د هغهٔ په لاره کښ خرچ کوی گویا که الله له قرض ورکوی، چه ددے عوض به دهٔ ته خامخا ملاویږی۔ انفاق تهٔ ئے قرض ووئیلو، وجه دا ده چه د قرض ادائیگی ضروری وی نو دغه شان الله تعالیٰ به دے انسان ته خامخا اجر ورکوی۔

مَنْ ذَا الَّذِیْ: پدے لفظ کښ د امر نه زیاتی طلب وی۔

[قَرْض حَسَن] دے ته وائی چه د حلال مال نه وی، د انفاق کونکی نیت ښهٔ وی، د الله په لاره کښ د تولو نه کره مال خرچ کړی، او کوشش وکړی چه د تولو نه ښهٔ ځائے کښ ئے خرچ کړی۔ او خپله صدقه پټه وساتی، او روستو ورپسے زباتنه او ضرر ورپسے نکړی، او ریاء کاری پرے ونکړی، او خپل خرچ کم وګنړی اګر که ډیر لګوی۔ او د خپل ځان عزت او د فقیر ذلت ته ونهٔ ګوری لکه دا شرطونه په سورة البقره (۲۶۵) آیت کښ تیر شوی وو۔

بیا بعض اهل علم وائی چه د آیت نه مقصد جهاد دپاره خرچ کول دی۔

Scanned by CamScanner

او ځینې وائي چه ددې نه مقصد په بال بچ باندې خرچ کول دي. (زید بن اسلمؒ)
ابن کثیرؒ وائي : صحیح خبره داده چه د آیت مفهوم عام دې، یعنی په هر کارِ خیر کښې خرچ کول مقصود دي.
فَيُضَاعِفَهُ لَهُ: یعنی څوک چه د الله په لاره کښې په خالص نیت سره خرچ کوي، الله هغهٔ له د یو په بدله کښې څو چنده ورکوي، او ډیره عُمده بدله به ورکوي، یعنی د الله تعالیٰ له خوا چه دهٔ ته کومه بدله ملاویږي هغه به په مقدار کښې څو چنده زیاته او عُمده وي.
يَوْمَ تَرَى الْمُؤْمِنِيْنَ: اُوس بیا ایمان ته ترغیب دې، او د ایمان فضیلت ئې بیان کړیدې چه ایمان جوړ کړئ، د ایمان رڼړا ځان کښې راولئ، یو خړ پړ ایمان دې، او بل د نُور والا ایمان دې، نو ځان کښې د نُور والا ایمان پیدا کړئ. او هغه خواري غواړي ځکه چه هغه رڼړا د انسان نه زر مړه کیږي، وجه داده چه د ایمان رڼړا په آخرت کښې پکار راځي، چه ایمان کښې یې رڼړا وه نو په آخرت کښې به ډې په مخ او لاس کښې رڼړا وي، او که ایمان کښې ډې رڼړا نه وه، نو هلته به رڼړا نهٔ وي، وګوره په آخرت کښې د ایمان رڼړا او د منافقت تیارې ته. نو د قیامت په ورځ به ایمان د ایمان والو رهنمائي کوي، او هغوئ به جنت ته رسوي. او منافقت به منافقان په لاره کښې په تیارهٔ کښې پریدي، او بیا به جهنم ته غورزیږي.

ربط :

مخکښې آیت کښې حیات ذکر شو، نو اُوس دلته نُور (رڼړا) بیانیږي.
نُوْرُهُمْ: ددې نه د ایمان او د اعمالو نُور مراد دې. عبد الله بن مسعود ﷺ او قتادةؒ وغیره دلته د [نور] (رڼړا) نه حقیقي او ظاهري رڼړا اخستې ده، او وئیلي ئې دي چه په دې ورځ به د هر یو کس رڼړا د هغهٔ د عمل مطابق وي، د چا به د غرهٔ برابره وي، د چا به د کهجورې د وُنې هومره، د چا به د انسان د قد هومره، او د چا به ددې نه هم کمه وي، تردې چه د بعضو رڼړا به صرف د هغهٔ د دواړو قدمونو ترمینځه وي.
او ضحاکؒ، مقاتلؒ او ابن جریرؒ وغیره خیال دې چه ددې نه مراد پټه او معنوي رڼړا ده، یعنی د ایمان او نیك عمل ثواب، چه دا به د جنتیانو مخې ته راشي، او د دوئ د نجات سبب به جوړیږي، او د دوئ په ښي لاسونو کښې به د دوئ عملنامې وي.
د اول قول مطابق پدې آیتونو کښې د قیامت د ورځې بعض تصویر راخکلې شویدې،

Scanned by CamScanner

كله چه د قيامت ورځ راشي، او د څه مودے تيريدو نه روستو كافران او مشركان جهنم ته وليږلے شي چه بت او غلط بابا ئے هم اُور ته لاړو او دوی هم۔ نو دلته به په ميدان د حشر كښ منافقان او مؤمنان پاتے شي، نو پدے وخت كښ به الله تعالىٰ سخته تيارهٔ راولي، نو دوئ ته به حكم وشي چه روان شئ، پل صراط ته ځان ورسوئ نو الله به مؤمنانو ته رڼړا وركړي او منافقانو ته به هم معمولي شان رڼړا وركړي لكه د نوك په اندازه، چه دا به كله بليږي كله مړهٔ كيږي، په هوار ميدان كښ به روان وي خو چه كله صراط ته ورسيږي نو سخت ځاى راغے، د غورزيدو كنده ده، نو دلته رڼړا ته ډير ضرورت دے،

پدے وخت كښ به د منافقانو نه دغه رڼړا هم واخستے شي، او د مؤمنانو او د منافقانو ترمينځ به آتو ميتهكلي يو ديوال مينځ ته راشي چه د دوی بيلتون به راولي چه دننه طرفته به يخه او نرمه هواء وي او بهر طرفته به عذاب وي، نو منافقان به په عذاب كښ پاتے شي، او لاندے به جهنم ته پريوزي۔

منافقانو ته الله تعالىٰ ولے رڼړا وركړه ؟ نو ددے وجه دا وه چه دوی هم كلمه وئيلے وه ليكن چونكه دا كلمه د زړهٔ نه نهٔ وه بلكه تش د خولے وه، نو فائده ئے هم كمه وه، په سخت ځاى كښ پكار رانغله، په حقيقي ځاى كښ دا كلمه نهٔ وه نو په حقيقي ځاى كښ ترے ختمه شوه، او په لفظي ځاى (خوله) كښ وه نو په عام ځاى كښ ورسره رڼړا هم وه۔

نو دے وخت كښ به منافقان مؤمنانو ته آوازونه شروع كړي چه مونږ ستاسو ملګري او خپلوان وو، يو ځاى به مو مونځونه كول او يو ځاى به وسيدلو، مونږ ته هم لږه رڼړا راكړئ، نو هغوی به ورته جواب وركړي چه آؤ تاسو زمونږ ملګري وئ ليكن تاسو كښ پنځه مرضونه وو چه د هغے په وجه اُوس جهنم ته روان يئ۔

يَوْمَ: دا ظرف دے متعلق دے د ﴿ وَلَهٗ اَجْرٌ كَرِيْمٌ ﴾ پورے۔ يعنی دغه اجر به دوئ ته ملاويږي په هغه ورځ۔ يا متعلق دے په پټ (اُذْكُرْ) پورے يعنی رايادہ كړه هغه ورځ، آه۔

بَيْنَ اَيْدِيْهِمْ وَبِاَيْمَانِهِمْ: رڼړا به مخے او ښی طرفته وی ځكه چه دوی نيك بخت دی، اصحاب اليمين دی، او خطيبؒ او رازیؒ وئيلی دی چه د ايمان او عمل صالح په سبب به رڼړا مخے طرفته وی، او د انفاق په وجه به رڼړا ښی طرفته وی ځكه چه انفاق ئے په ښی لاس وركړے دے۔

پدے معنیٰ سره به باء په (بِاَيْمَانِهِمْ) كښ په معنیٰ د عَنْ سره وی۔ او ضحاكؒ دے كښ دا

Scanned by CamScanner

ترکیب وئیلې دې چه وبِاَيْمَانِهِمْ کښې باء په معنیٰ د فِيْ سره ده، او دا خبر مقدم دې، مبتداء پټه ده، او تقدیر داسې دې اَیْ وَفِيْ اَيْمَانِهِمْ كُتُبُ اَعْمَالِهِمْ. یعنې په ښې لاسونو کښې به ئې عملنامې وي، (گویا که دا د جنت ټیکټ دې) او صرف مخې ته به ئې رڼړا وي.

يَوْمَ يَقُوْلُ الْمُنَافِقُوْنَ: یعنې په دې ورځ بـه منافقان سړي او ښځې کله چه د مومنانو مخې او ښې اړخ تـه رڼړا اُووینـي، او وبه گوري چه دا رڼړا دوئ لره ډلې ډلې جنت طرفته روان کړي دي، او هغوئ بـه د خپـل منافقت په تیارو کښې غلط او روستو روستو روان وي، نو جنتیانو تـه به آواز وکړي او وُبه وائي چه لږ یو نظر خو زمونږ طرفته وگورئ، دې دپاره چه ستاسو د رڼړا روښانتیا زمونږ طرفتـه هم وشي، او مونږ هم هغه خواته لاړ شو چرته چه تاسو روان یئ.

ابن جریرؒ د [اُنْظُرُوْنَا] معنیٰ په [اِنْتَظِرُوْنَا] سره کړې، یعنې کله چه جنتیان تیزئ سره جنت طرفته روان وي، نو منافقان به دوئ ته ووائي چه لږ مونږ ته انتظار وکړئ او زمونږ دپاره هم سفارش وکړئ، دې دپاره چه مونږ هم تاسو سره لاړ شو.

نَقْتَبِسْ: اقتباس د بَلې شوې رڼړا نه ځان دپاره لیتکې بلول دي، دلته ترې رڼړا حاصلول مراد دي.

او دې کښې بعـض علماؤ دا وئیلي دي چه منافقانو له نور نشته صرف امید ئې دا دې چه د مؤمنانو په رڼړا سره به مونږ په صراط باندې لاړ شو لیکن هغوی خو ډیر تیز په صراط باندې تیر شول نو منافقان د رڼړا نه بالکل محروم شول.

لیکـن اول قول د ابن عباس ﷺ دې چه مـنافـقانو تـه هـم څه وخت دپاره رڼړا ورکړې کیږي. اخرجه الطبرانیّ وابن مردویۃ عن ابن عباس ﷺ)

قِيْلَ ارْجِعُوْا: یعنې ملائك یا مـو منان به دوئ اُورتې او وُبه وائي چه لاړ شئ د هغه ځای نه رڼړا تالاش کړئ د کوم ځای نه چه مونږ ته ملاؤ شوې ده، یعنې د میدانِ محشر نه. ❁ یا مـعنیٰ داده چه دا خو د ایمان رڼړا ده چه دا مونږ ته په دنیا کښې ملاؤ شوې وه، دې وجې نـه تـاسو دنیـا تـه واپس لاړ شـئ، او هلته نه دا رڼړا حاصله کړئ. او هلته تلل ممکن نهٔ دي نو د وی ته رڼړا حاصلیدل هم ممکن نهٔ دي.

❁ یا مـعنیٰ دا ده چه نامراده او تاوانیان واپس لاړ شئ، او خپل ځان دپاره بله کومه رڼړا تالاش کړئ.

Scanned by CamScanner

ددې خبرې اثر دا دی چه پس به د مؤمنانو او منافقانو ترمینځ یو غټ دیوال اوودرولے شي چه هغه به منافقان د مؤمنانو د رڼړا نه بیخي لرې کړي، او د هغوئ تیارهٔ به نوره هم زیاته شي. ځکه چه د رڼړا نه روستو تیاره راتلل ډیر سخت وي.

او په دې دیوال کښې به یو دروازه جنت طرفته پرانستے شي چه ددې نه به ایمان والا جنت ته داخل شي، او منافقان به هغوئ لره د افسوس نه ډکو نظرونو سره لیدونکي پاتے شي، په دې دروازه کښې دننه به جنت او د هغې نعمتونه وي، او ددې نه بهر چرته چه منافقان وي، تکه توره تیارهٔ او عذاب به وي.

| |
|---|
| یُنَادُوْنَهُمْ أَلَمْ نَكُنْ مَّعَكُمْ قَالُوْا بَلٰى |
| دوی به آوازونه اُوکړي هغوی ته آیا نهٔ وو مونږ ملګري ستاسو، هغوی به اُووائي آؤ |
| وَلٰكِنَّكُمْ فَتَنْتُمْ أَنْفُسَكُمْ وَتَرَبَّصْتُمْ وَارْتَبْتُمْ |
| لیکن تاسو فتنه کښې اچولي وو ځانونه خپل او انتظار مو کړے وو او شکونه مو |
| وَغَرَّتْكُمُ الْأَمَانِيُّ حَتّٰى جَاءَ أَمْرُ |
| کړي وو او دهوکه کړي وو تاسو لره آرزوګانو (خپلو خواهشاتو) تردې چه راغے حکم |
| اللّٰهِ وَغَرَّكُمْ بِاللّٰهِ الْغَرُوْرُ ﴿١٤﴾ فَالْيَوْمَ لَا |
| د الله او دهوکه کړې وئ تاسو په الله باندې دهوکه ورکونکي شي. نو نن به نشي |
| يُؤْخَذُ مِنْكُمْ فِدْيَةٌ وَّلَا مِنَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا |
| اخستے تاسو نه بدله (هیڅ جرمانه) او نهٔ د هغه کسانو نه چه کفر ئے کړیدے |
| مَأْوٰكُمُ النَّارُ هِيَ مَوْلٰكُمْ وَبِئْسَ الْمَصِيْرُ ﴿١٥﴾ |
| ځائے د اُوسیدو ستاسو اُور دے دا مددګار ستاسو دے او بد دے ځائے د ورګرځیدو. |

**تفسیر**: کله چه د مؤمنانو او منافقانو ترمینځ غټ دیوال اوودرولے شي، نو منافقان به په سخت افسوس او نا امیدئ سره بیا ایمان والو ته آوازونه شروع کړي، او وبه وائي چه آیا مونږ ستاسو پشان په ظاهره کښې مؤمنان نهٔ وو؟ ستاسو په جوماتونو کښې به مو

Scanned by CamScanner

مونږ کولو، او ستاسو پښان نور نیك عملونه به مو کول، بیا ولې زمونږ نن دا حالت دے؟!

نو مومنان به هغوئ ته دا جواب ورکړی چه آؤ! تاسو په دنیا کښې زمونږ سره وئ، په ظاهره کښې به مو زمونږ غونتې مومنان وئ، او نیك عملونه به مو کول، لیکن په حقیقت کښې نۀ تاسو مومنان وئ، نۀ ستاسو نیت صحیح وو، او نۀ ستاسو په عملونو کښې اخلاص او لِلّٰهِیّت وو، تاسو د کفر او نفاق په بیمارئ کښې آخته وئ، او د خواهشاتو او خوندونو بندګی مو کوله، او په هره لمحه کښې به مو د نبی کریم ﷺ او مومنانو دپاره خراب سوچونه کول، او په دروغژنو آرزوګانو سره به مو خپلو ځانونو له دهوکه ورکوله چه مونږ به هم الله تعالیٰ معاف کوی، او د مخلصو مسلمانانو پښان به مونږ هم جنت ته ځو۔

فَتَنْتُمْ: (۱) یعنی تاسو ځانونه د کفر او شرك په فتنه کښې غورزولی وو، او دا د تباهئ سبب دے نو ځکه ئې ورته فتنه ووئیله۔

(۲) مجاهدؒ وائی: (اَهْلَکْتُمُوْهَا بِالنِّفَاقِ) تاسو خپل نفسونه په نفاق سره هلاك کړی وو۔

(۳) یا تاسو په شهواتو او خوندونو سره ځانونه هلاك کړی وو۔ (ابن عباسؓ)

(٤) یا په ګناهونو سره۔ (ابو سنانؒ)

وَتَرَبَّصْتُمْ: (۱) اَیْ بِالْمُؤْمِنِیْنَ الدَّوَائِرَ۔ یعنی انتظار به مو کولو په نبی او مؤمنانو باندې د حوادثو د زمانې او د مصیبتونو راتللو۔

(۲) بِتَأْخِیْرِ التَّوْبَةِ ۔ یا تاسو انتظار کولو په توبه۔ یعنی په جلتئ سره مو د مرګ نه مخکښې توبه نۀ ویستله (ابن عباس ؓ) اول غوره دے۔ (فتح البیان)

وَارْتَبْتُمْ: یعنی تاسو په دین او ددے په کارونو کښې شکونه کول، په توحید، په قرآن او د رسول الله ﷺ په معجزاتو کښې، او په وعده د بعث بعد الموت کښې مو شکونه کول۔

وَغَرَّتْکُمُ الْاَمَانِیُّ : (۱) (آرزوګانو تاسو په دهوکه کښې واچولئ) چه الله به مو معاف کړی، هغه غفور رحیم دے۔

(۲) یا تاسو دا آرزوګانې کولې چه یوه ورځ به مسلمانان خامخا کمزوری شی۔

(۳) اَلْاَمَانِیُّ فِی الدُّنْیَا بِطُوْلِ الْاَمَلِ وَالطَّمَعِ فِی امْتِدَادِ الْاَعْمَارِ۔

Scanned by CamScanner

یعنی دنیا کښې ستاسو ډیرے آرزوګانے وے چه زمونږ به اُوږد ژوند وی، ګاړی موټرے، بنګلے او کاروبارونه او تجارتونه به وی او مزے به کوو. څوك چه پدے امیدونو کښې ولګیږی نو هغه ایمان جوړولو ته نهٔ وزګاریږی.

حَتّٰى جَاءَ اَمْرُ اللّٰهِ: (۱) دے نه مراد مرګ او قیامت دے، یعنی تاسو په دے دهوکه کښې پاتے شوئ، تردے چه مرګ په تاسو را اوغورځیدهٔ او تاسو ته د توبے توفیق ملاؤ نشو،

(۲) یا معنیٰ دا ده چه الله تعالیٰ د خپل رسول مدد وکړو، خپل دین ئے غالب کړو، او ستاسو آرزو په خاورو کښې ککړه شوه چه مسلمانان به کمزوری کیږی.

وَغَرَّكُمْ بِاللّٰهِ الْغَرُوْرُ: یعنی د الله د حِلم (صبر) او د هغهٔ له خوا د مهلت ورکولو نه تاسو غلطه فائده واخسته، په لوی الله مو پرواه نهٔ کوله، د هغه نه مو یره نهٔ کوله، هغهٔ ته به مو ځان نهٔ نزدے کولو، د شیطان په غولولو کښې راغلئ، او په کفر او نفاق باندے ټینګ پاتے شوئ تردے چه مرګ درته راغے.

فَالْيَوْمَ لَا يُؤْخَذُ مِنْكُمْ: دا قول د مؤمنانو دے، یا د الله تعالیٰ، یا د ملائکو دے منافقانو ته. یعنی اُوس ستاسو د خپل ځان علاج ختم شو. نن که تاسو ډکه زمکه سرهٔ زر هم دے دپاره پیش کړئ چه ستاسو ځانونه د اُور د عذاب نه خلاصے اُومومی نو داسے به اُونشی، او نن به تاسو سره همدا انجام د کافرانو هم وی.

ستاسو د ټولو استوګنه به جهنم وی، تاسو ټول به جهنم راتاؤ کړی، چه دا ستاسو د ټولو دپاره ډیره خرابه استوګنه ده.

فِدْيَةٌ: یعنی عوض او بدله نهٔ په مال او نهٔ په نفس سره او نهٔ په لږ مال او نهٔ په ډیر مال سره. او پدے کښې د نجات نه د دوئ امید قطع کول دی.

مَوْلٰكُمْ: ۱- د مولیٰ نه مراد دلته اولیٰ دے، یعنی دا اُور ستاسو سره لائق دے، لیکن دا تاویلی تفسیر دے.

۲- یا په معنیٰ د مددګار سره دے په طریقه د تهکم سره، یعنی هیڅوك مددګار به ئے نهٔ وی.

۳- یا په معنیٰ د دوست سره دے.

٤- یا په معنیٰ د مُتَوَلِّی دے، یعنی الله تعالیٰ به د دوئ عذاب اُور ته وسپاری او هغه به د دوئ د عذاب متولی (واکدار) شی.

Scanned by CamScanner

| أَلَمْ يَأْنِ لِلَّذِيْنَ آمَنُوْا أَنْ تَخْشَعَ |
|---|
| آیا وخت نهٔ دے راغلے هغه کسانو لره چه ایمان ئے راوړیدے چه عاجزي اُوکړي |
| قُلُوْبُهُمْ لِذِكْرِ اللهِ وَمَا نَزَلَ مِنَ الْحَقِّ وَلَا يَكُوْنُوْا |
| زړونه د هغوی ذکر د الله ته او هغه څهٔ ته چه نازل شویدے د حق نه او نشي دوی |
| كَالَّذِيْنَ أُوْتُوا الْكِتٰبَ مِنْ قَبْلُ فَطَالَ |
| پشان د هغه کسانو چه ورکړے شوے وو ورته کتاب مخکښ د دوی نه نو اُوږده شوه |
| عَلَيْهِمُ الْأَمَدُ فَقَسَتْ قُلُوْبُهُمْ وَكَثِيْرٌ مِّنْهُمْ فَاسِقُوْنَ ﴿١٦﴾ |
| په دوی باندے موده نو سخت شو زړونه د هغوی او ډیر د هغوی نه نافرمان دي۔ |
| اِعْلَمُوْا أَنَّ اللهَ يُحْيِ الْأَرْضَ بَعْدَ مَوْتِهَا قَدْ |
| پوهه شئ یقیناً الله راژوندیٔ کوی زمکه روستو د اُوچوالي د هغے نه یقیناً |
| بَيَّنَّا لَكُمُ الْآيَاتِ لَعَلَّكُمْ تَعْقِلُوْنَ ﴿١٧﴾ |
| مونږ بیان کړي تاسو ته آیتونه دے دپاره چه تاسو د عقل نه کار واخلئ۔ |

**تفسیر** : اُوس بیا د ایمان د جوړولو دلائل بیانوی، الله تعالیٰ مؤمنانو ته د خشوع اختیارولو دعوت ورکړیدے چه پدے سره ایمان جوړیږی۔

## شان نزول

مفسرینو د عبد العزیز بن ابی روّادؒ نه نقل کړیدی : [اِنَّ اَصْحَابَ النَّبِيِّ ﷺ ظَهَرَ فِيْهِمُ الْمِزَاحُ وَالضِّحْكُ فَنَزَلَتْ هٰذِهِ الْآيَةُ ﴿اَلَمْ يَأْنِ﴾ الخ] ۔ یعنی په بعض صحابه کرامو کښ خوش طبعي او مزاح او خندا پیدا شوه، نو الله ورپسے دا آیت راولیږلو۔

(مصنف ابن ابی شیبة)

او مسلمؒ، نسائیؒ، ابن ماجهؒ او ابن المنذرؒ وغیره د ابن مسعود ﷺ نه نقل کړیدی چه هغه وفرمایل : [مَا كَانَ بَيْنَ اِسْلَامِنَا وَبَيْنَ اَنْ عَاتَبَنَا اللّٰهُ بِهٰذِهِ الْآيَةِ ﴿اَلَمْ يَأْنِ﴾ الخ اِلَّا اَرْبَعُ سِنِيْنَ] (مسلم فی التفسیر حدیث : ٢٤)

Scanned by CamScanner

یعنی زمونږ. لا د اسلام څلور کاله نهٔ وو تیر شوی چه الله تعالیٰ مونږ پدے آیت سره ملامته کړو. یعنی په تاسو کښې ډیرے ډیرے خنداګانے راتشی.

او ددے آیت مقصد ایمان والو ته دا رغبت ورکول دی چه کله د دویٔ مخے ته د قرآن کریم تلاوت اوکړے شی، یا دویٔ د الله تعالیٰ ذکر او تلاوت کوی، نو د رشتینے ایمان تقاضا داده چه د دویٔ په زړونو کښې نرمی او عاجزی پیدا شی.

حسن بصریؒ وائی چه صحابهٔ کرامؓ د الله تعالیٰ په نظر کښې محبوب ترین خلق وو، او هغویٔ الله لره د هر چا نه زیات یادونکی وو، او د هغویٔ په زړونو کښې به د قرآن په آوریدو سره ډیره زیاته نرمی اوخشوع راتله، ددے باوجود الله تعالیٰ د دویٔ په باره کښې په دے آیت کښې وئیلی دی چه د الله د ذکر سره د دویٔ په زړونو بانده کَمَا حَقُّهٗ (پوره طور) سره خشوع نهٔ راځی، نو بیا نورو مسلمانانو له خو زیات یریدل پکار دی، او د قرآن په آوریدو سره د زړهٔ د خشوع او عاجزیٔ زیات اهتمام کول پکار دی. (فتح البیان)

بعض وائی: دا د منافقانو په باره کښې نازل وو چه هغوی به د سلمان فارسی ﷺ نه وغوښتل چه دویٔ ته د تورات عجیبه قصے بیانے کړی. نو دوی ته دعوت ورکړے شو چه د الله ذکر او قرآن ډے په دوی اثر وکړی. (قرطبیؒ)

لِذِكْرِ اللهِ: د [ذکر] نه مراد د الله تعالیٰ نوم، یا د قیامت په ورځ د هغهٔ وعد او وعید او حساب کتاب دے، او په ﴿وَمَا نَزَلَ مِنَ الْحَقِّ﴾ کښې د [حق] نه مراد قرآن کریم دے.

بعضو د [ذکر] او د [حق] دواړو نه قرآن کریم اخستے دے.

او په لفظ د ذکر کښې د ایمان او د عقیدے مسائلو ته اشاره ده، او په دویم لفظ کښې انفاق فی سبیل الله او نورو عملونو ته، چه قرآن کریم کښې نازل شویدی. او دا آیت دلیل دے چه خشوع او عاجزی انسان کښې د الله په ذکر او بل په قرآن بانده پیدا کیږی.

﴿وَلَا يَكُونُوا كَالَّذِينَ أُوتُوا الْكِتَابَ﴾ کښې مومنان د یهود اونصاریٰ پشان کیدو نه منع کړے شوی دی، چه هغویٔ دپاره الله تعالیٰ د قرآن کریم غونته تورات او انجیل نازل کړے وو، لیکن د زمانے په تیریدو سره د دویٔ تعلق د هغه کتابونو سره کمزورے شو، او هغویٔ د انبیاؤ تعلیمات هیر کړل، چه ددے نتیجه دا را اُووتله چه د هغویٔ د زړونو نه اِلٰهی ویره ختمه شوه، په هغے کښې سختی پیدا شوه، او هغویٔ تورات او انجیل بدل کړو، او د هغے په احکامو باندے ئے عمل کول پریښودل.

Scanned by CamScanner

حافظ ابن کثیرؒ لیکی چه په دے آیتِ کریمه کښې مومنانو لره د یهود او نصاریٰ پشان کیدو نه منع کړے شوې دی چه هغوئ د زمانے په تیریدو سره د معمولی دنیوی فائدو دپاره د الله کتاب بدل کړو، هغه ئے شاته گذار کړو، د انسانانو خود ساخته اقوال ئے دین وګنړلو، او خپل ملیان او پیران ئے معبودان جوړ کړل، چه ددے نتیجه دا را اووته چه د دوئ زړونه سخت شول، او د الله کلام بدلول د دوئ عادت جوړ شو۔ نو نۀ د هغوی زړونه وعظ قبلوی او نۀ په وعد او وعید سره د هغوی په زړونو کښې نرمی راځی۔ دے وجے نه الله تعالیٰ مومنان په هره معامله کښې د دوئ د مشابهت نه منع کړل۔

الله تعالیٰ د یهودیانو همدا حالت بیانوی او په سورتِ مائده (۱۳) آیت کښې فرمائی :

﴿فَبِمَا نَقْضِهِمْ مِّيثَاقَهُمْ لَعَنَّاهُمْ وَجَعَلْنَا قُلُوبَهُمْ قَاسِيَةً يُحَرِّفُونَ الْكَلِمَ عَنْ مَّوَاضِعِهِ وَنَسُوا حَظًّا مِّمَّا ذُكِّرُوا بِهِ﴾ الآية (بیا مونږ د دوئ د لوظ ماتولو د وجے نه په دوئ باندے لعنت وکړو، او د دوئ زړونه مو سخت کړل (چه ددے په نتیجه کښې) دوئ د الله په کلام کښې تحریف پیدا کړو، او دوئ ته چه په څۀ شئ سره نصیحت شوے وو د هغے لویه برخه ئے هیره کړه)۔

**فائده:** دا آیت د فُضیل بن عیاضؒ او د عبد الله بن المبارکؒ د هدایت ذریعه جوړه شوے وه۔ فُضیل په یوه جینئ باندے عاشق وو نو د هغے خوا ته په یو دیوال باندے ور اوریدو چه د یو لوستونکی نه ئے دا آیت واوریدو ﴿اَلَمْ يَأْنِ﴾ نو دۀ ووبل : (بَلٰى يَا رَبِّ قَدْ آنَ) آؤ، اے زما ربه، وخت راغے۔ بیا په یوه شاړه لاره تیریدو نو قافلے والو خپل مینځ کښې ووبل چه ددے ځای نه سفر کوو، او بعضو ووئیل چه سهار کښې به سفر وکړو دے دپاره چه فُضیل په لاره کښې په مونږ حمله ونکړی نو دۀ ځان سره ووبل چه (اَنَا اَسْعٰى بِاللَّيْلِ فِى الْمَعَاصِىْ) زۀ د شپے د ګناهونو پسے ګرځم او مسلمانان زما د ضرر نه یریږی، او زۀ وینم چه الله زۀ د دوی خوا ته ددے دپاره راوستم چه زۀ منع شم، بیا ئے ووبل :

[اَللّٰهُمَّ اِنِّىْ قَدْ تُبْتُ اِلَيْكَ، وَجَعَلْتُ تَوْبَتِىْ مُجَاوَرَةَ الْبَيْتِ الْحَرَامِ] اے الله ! ما تا ته توبه وېستله او خپله توبه مے دا وګرځوله چه زۀ به په مسجد حرام کښې وسیږم۔ (بیا ئے علم زده کړو او په مکه کښې وسیدو تردے چه وفات شو) (سیر اعلام النبلاء۸/ ٤٢٤)۔

او ابن المبارکؒ سیتار او رباب وهلو نو د هغے نه ورته آواز راغلو چه دا آیت ئے لوستلو (اَلَمْ يَأْنِ) (کیدے شی دا به کوم ملائك وئیلے وو) نو هغه رباب او سیتار مات کړو او علم ته کیناستو او ډیر بنۀ محدث او مجتهد ترے جوړ شو۔

اَلَمْ یَأْنِ: اَنیٰ او آنَ په معنیٰ د وخت راتللو سره دے۔ اَنیٰ لَكَ، یَأْنِیْ اِذَا حَانَ۔ اَیْ جَاءَ اِنَاهُ اَیْ وَقْتُهٗ۔ اَنیٰ یَأْنِیْ لفظ د وخت راتللو دپاره استعمالیږی۔

یا معنیٰ ده: [اَلَمْ یَحْضُرْ خُشُوْعُ قُلُوْبِهِمْ ؟ وَلَمْ یَجِیْ وَقْتُهٗ؟] آیا نۀ ده حاضره شوے خشوع د زړونو د دوی؟ او نۀ دے راغلے وخت د خشوع د زړونو د دوی؟۔

وَلَا یَکُوْنُوْا: (۱) دا یا منصوب دے عطف دے په تَخْشَعَ قُلُوْبُهُمْ باندے، نو د اَنْ د لاندے دے۔ او ددے ترتیب وجه به دا وی چه د زړۀ خشوع د یهودو او نصاراؤ د مشابهت او د قسوتِ قلب نه مانع ده۔

(۲) حافظ ابن کثیرؒ لیکی چه دا مستقله نهی ده، او پدے کښې منع ده مؤمنانو لره د مشابهت د یهود او نصاراؤ نه لکه مخکښې د ابن کثیرؒ په قول کښې ذکر شو۔

فَطَالَ عَلَیْهِمُ الْاَمَدُ: یعنی د دویٔ او د دویٔ د انبیاؤ ترمینځ زمانه اُوږده تیره شوه نو دوی د انبیاؤ علیهم السلام نصیحتونه هیر کړل۔ او څوك بیان کونکے ورته نۀ وو چه د هغه د بیان په وجه ئے زړونه نرم شی۔ ددے نه معلومه شوه چه څوك وعظ او نصیحت نۀ آوری، او د الله د کتاب درس ته نۀ کینی، نو د هغۀ زړۀ به خامخا سختیږی، او بیا به ئے ایمان خرابیږی، لکه اُوس د اکثرو انسانانو همدا مرض دے چه د جُمعے په ورځ هم ناوخته راروان وی، او د دین د آوریدو دپاره ورسره وخت نۀ وی۔

یا مطلب دا دے چه دویٔ ته د دنیا موده اُوږده ښکاره شوه چه قیامت به کله راځی او مرګ به کله وی، نو ددے وجه نه زړونه ئے سخت شو، او د ډیرو ایمانونه خراب شو۔

فَقَسَتْ قُلُوْبُهُمْ: یعنی زړونه ئے فاسد شو او عملونه ئے د فسق شو۔

اِعْلَمُوْا اَنَّ اللهَ: دا د زړۀ د ژوندی کولو مثال دے، لکه لقمان حکیمؒ خپل ځوی ته وئیلی وو: [اِنَّ اللّٰهَ یُحْیِ الْقُلُوْبَ بِنُوْرِ الْحِکْمَةِ کَمَا یُحْیِ الْاَرْضَ الْمَیْتَةَ بِوَابِلِ السَّمَاءِ]

(الموطأ باب ما جاء فی طلب العلم رقم: ۲۸۵۹)

الله تعالیٰ زړونه د حکمت (قرآن او سنت) په رڼا سره داسے راژوندی کوی لکه څنګه چه مړه زمکه د آسمان په باران سره راژوندیٔ کوی۔ دا هغه مثال دے۔

دلَعَلَّکُمْ تَعْقِلُوْنَ (۱) مطلب دا دے چه دا سوچ وکړه چه الله تعالیٰ اُوچه زمکه لمده او شنه کړی، نو که زۀ الله ته توبه وباسم او صحیح ایمان والا شم نو زما فسق او فجور به په نیکیٔ او په تقویٰ باندے بدل کړی، او ما کښې به هم ښائسته ونے او بوټی د ایمان او د

Scanned by CamScanner

تقویٰ او د نیکو عملونو راوخیژی۔

(۲) او د آیت الفاظ عام دی پدے وجه پدے کښ اثبات د قیامت او د بعث بعد الموت هم دے۔ یعنی لکه څنګه چه الله تعالیٰ په مړه زمکه کښ د باران په څاڅکو سره ژوند اچوی، دغه شان هغه د قیامت په ورځ د مړو په ژوندی کولو، او په دنیا کښ سخت زړونه د دلائلو په ذریعه د نرمولو او هغه په نیغه لاره راوړلو قدرت لری، هغه په دے قادر دے چه د انسانانو د بندو زړونو دروازے پرانیزی او په هغے کښ د ایمان او هدایت رڼړا ننباسی، ددے سختی په نرمیٔ سره او گمراهی ئے په هدایت سره بدله کړی۔

| إِنَّ الْمُصَّدِّقِينَ وَالْمُصَّدِّقَاتِ وَأَقْرَضُوا اللَّهَ |
| --- |
| یقیناً صدقه کونکی سړی او صدقه کونکے زنانه او چه قرض ورکوی الله تعالیٰ ته |
| قَرْضًا حَسَنًا يُضَاعَفُ لَهُمْ وَلَهُمْ أَجْرٌ كَرِيمٌ ﴿۱۸﴾ |
| قرض ښائسته دوچنده به کړے شی دوی لره (دا قرض) او دوی لره اجر عزتمند دے۔ |
| وَالَّذِينَ آمَنُوا بِاللَّهِ وَرُسُلِهِ أُولَٰئِكَ هُمُ |
| او هغه کسان چه ایمان ئے راوړیدے په الله او په رسولانو د هغهٔ، دا کسان هم دوی |
| الصِّدِّيقُونَ وَالشُّهَدَاءُ عِنْدَ رَبِّهِمْ لَهُمْ |
| صدیقین دی (پوره تصدیق کونکی دی) او گواهان دی په نیز د رب د دوی، دوی لره |
| أَجْرُهُمْ وَنُورُهُمْ وَالَّذِينَ كَفَرُوا وَكَذَّبُوا |
| اجر د دوی دے او رڼړا د دوی، او هغه کسان چه کفر ئے کړیدے او دروغژن ئے گڼړلی دی |
| بِآيَاتِنَا أُولَٰئِكَ أَصْحَابُ الْجَحِيمِ ﴿۱۹﴾ |
| آیتونه زمونږ، دا کسان جهنم والا دی۔ |

**تفسیر** : اُوس بیا صدقے ته ترغیب ورکوی، او دا سبب د حیاتِ قلبی دے، پدے سره ستا زړهٔ ژوندے کیږی، لکه حدیث کښ هم دا راغلی دی چه مسکین ته طعام ورکړه نو زړهٔ به دِے ژوندے شی۔

Scanned by CamScanner

یعنی کوم خلق چه ډیره ډیره صدقه ورکوي، که هغه نارینه وي اوکه زنانه، او د خیر او ښیګړې په مختلفو کارونو کښې خپل مال په خلوصِ نیت سره د الله د رضا دپاره خرچ کوي، الله تعالیٰ د هغویٔ د اعمالو څو چنده زیاتولو سره بدله ورکوي، ډیر کرته د لسو نه اُوو سوو چندو پورې، بلکه کله ددې نه هم ډیره زیاته بدله ورکوي، او د ټولو نه زیاته لویه بدله به دویٔ ته په آخرت کښې (جنت) ورکوي، چه د هغې د عیش او آرام او د هغې د نعمتونو په دنیا کښې څوك تصور هم نشي کولې.

اِنَّ الْمُصَّدِّقِیْنَ: دا په تشدید د صاد سره، د صدقې نه دې، په اصل کښې مُتَصَدِّقِیْنَ او مُتَصَدِّقَات دې، او په تشدید کښې ډیر والې د صدقې ته اشاره ده، نو مؤمن به ډیرو صدقو والا وي. او روستو ئې قرض ذکر کړو اګرکه صدقه قرض ته هم شامله ده، نو ددې (١) یوه وجه دا ده چه په قرض حسن کښې اشاره ده چه ستا په صدقه کښې دې نیت خالص وي، او د اجر اُمید وي او هسې مال لګول دې نهٔ وي.

(٢) بله وجه دا ده چه په مؤمن دوه قسمه صدقې ورکول لازم دي، یو دائمي صدقې چه هر وخت کښې څه نا څه صدقه وکړي، او دویم هنګامي حالت کښې صدقه کول لکه مثلاً جهاد ته ضرورت راغلو، ستا په خپلوانو او ملګرو ناڅاپي آفت او مصیبت راغلو نو دلته به هم ډیر مال لګوې، داسې به نهٔ وائې چه ما پرون اته آنې ورکړې وې او بس. نو اَلْمُصَّدِّقِیْنَ کښې هنګامي حالت کښې صدقه مراد ده، او قرض حسن کښې دائمي صدقه ده. او دا ډیره ښکلې فائده ده، چه د انسان ذهن جوړوي.

(٣) بعض وائي : اول کښې زکاة او نورو واجباتو او نفلي خیراتونو ته اشاره ده، او په دویم کښې اشاره ده انفاق ته په لاره د دعوت او د اشاعت د دین کښې او د جهاد او قتال دپاره.

(٤) بعض وائي : په اول تعبیر کښې اشاره ده نظر کولو مسکینانو او فقراؤ ته او په دویم تعبیر کښې اشاره ده لحاظ کولو د الله تعالیٰ ته بغیر د ریاء او سمعت وغیره نه. (احسن الکلام)

وَالَّذِیْنَ آمَنُوْا بِاللهِ: د مخکښې او دې آیت نه د مسلمانانو درې قسمه خلق بیانیږي، یو قسم هغه خلق وو چه هغوی په بیحده اخلاص سره د الله په لاره کښې خرچ کوي، د دویٔ اجر په مخکښې آیت کښې بیان شو. او دوه قسمه په دې آیت کښې بیانیږي، دویم قِسم خلق هغه دي چه هغویٔ په الله او د هغهٔ په رسول ایمان راوړو.

Scanned by CamScanner

او د ايمان مفهوم د اهلِ سنت په نيز دادې چه په زړهٔ سره ايمان راوړې شي، او ژبې سره ددې ايمان اقرار وكړې شي، او بيا د زړهٔ، ژبې او د اندامونو د عمل په ذريعه ددې تصديق وكړې شي، يعنې منافقت طريقې سره ايمان نهٔ وي راوړې. د امتِ محمديه داسې خلقو ته الله تعالىٰ د صديقينو لقب وركړې.

صديق مبالغه ده په صِدق او تصديق كولو كښې، يعنې ډير رشتينې او ډير تصديق كونكې. بعض وائي: صديقين هغه چا ته وائي چه د الله په توحيد او د ټولو پيغمبرانو په تصديق كښې ئې هيڅ شك نهٔ وي راغلې.

او بل صديق په خاصه معنىٰ سره دې، او هغه دا چه هغهٔ د يوې لمحې دپاره هم الله او د هغهٔ رسول دروغژن نهٔ وي گڼړلې.

په دې اعتبار سره ددې لقب مستحق ابو بكر صديق ﷛، د آلِ فرعون مردِ مومن، او هغه مومن سړې شو چه د هغې ذكر په سورهٔ يٰسٓ كښې راغلې.

حافظ ابن القيمؒ په «طريق الهجرتين» كښې د انسانانو طبقات ذكر كړيدي، او وئيلي ئې دي چه د نبوت مرتبه پسې د صديقيت مرتبه ده، او دوى ربانيون او راسخون في العلم دي، او واسطې دي په مينځ د رسول او د هغهٔ د امت كښې، او دوى دعوت كونكي دي طريقې د رسول الله ﷺ ته.

او د مجاهدؒ نه نقل دي چه هر مؤمن بالله والرسل صديق دې. نو دا عامه معنىٰ ده لكه رسول الله ﷺ هم پدې عامه معنىٰ كښې بعض اعمال داخل كړيدي.

ابن حبانؒ د عمرو بن مره جهني ﷛ نه روايت راوړيدې چه نبيِ كريم ﷺ ته يو تن راغلو عرض ئې وكړو: [يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اَرَاَيْتَ اِنْ شَهِدْتُ اَنْ لَّا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ، وَاَنَّكَ رَسُوْلُ اللّٰهِ، وَصَلَّيْتُ الصَّلَوَاتِ الْخَمْسَ، وَاَدَّيْتُ الزَّكَاةَ، وَصُمْتُ رَمَضَانَ وَقُمْتُهٗ، فَمِمَّنْ اَنَا ؟ قَالَ مِنَ الصِّدِّيْقِيْنَ وَالشُّهَدَاءِ]

اې د الله رسوله! خبر راكړه كه زهٔ د توحيد او ستا د رسالت گواهي وركړم او پنځه وخته مونځونه وكړم او زكاة وركړم او د رمضان روژې ونيسم او د هغې قيام الليل (تراويح) وكړم، نو زهٔ به د چا نه حساب يم؟ وې فرمايل: د صديقين او شهداؤ نه.

(صحيح ابن حبان رقم: ٣٤٣٨) وابن خزيمة (٢٢١٢) مسند الشاميين (٢٩٣٩) واسناده صحيح)

نو دلته ئې د رمضان تراويح كونكي ته صديق او شهيد ووئيلو. سره د نورو فرائضو

Scanned by CamScanner

نه۔
او دریم قِسم خلق هغه دي چه د الله په لاره کښې شهیدان شو، دوئ ته به د دوئ د رب له خوا خاص اجر او رنړا ملاویږي، چه دا به دوئ سره خاص وي۔
(۱) بیا بعضِ مفسرینو په دے آیت کښې د [الشُّهَدَاءُ] او [الصِّدِّيْقُوْنَ] دواړه د الله په رسولانو باندے د ایمان راوړونکو لقب ګرځولے دے، ددے رائے مطابق د امتِ محمدیه تمام مخلص ایماندار، صدیقین او شهداء دي، او دوئ ته به د دوئ د رب د طرفه خاص اجر او رنړا ملاویږي، د خپلو خپلو درجاتو مطابق۔ نو (لَهُمْ اَجْرُهُمْ) به د دواړو سره متعلق وي۔ او عامو مؤمنانو ته ئے شهیدان پدے معنیٰ وئیلی دي چه دوئ به د قیامت په ورځ په خلقو باندے ګواهي ورکوي لکه ﴿لِتَكُوْنُوْا شُهَدَاءَ عَلَى النَّاسِ﴾ کښې هغه ذکر دے۔ یعني دوئ صدیقین دي په دنیا کښې، او شهداء (ګواهان) دي په آخرت کښې۔
(طریق الهجرتین)
(۲) یا د شهادت نه مراد ګواهي د توحید او رسالت ده،
(۳) یا معنیٰ ده: دعوت او بیان کونکي په دنیا کښې۔
(۲) حافظ ابن قیّم فرمائي: دا هم جائز ده چه (هُمُ الصِّدِّيْقُوْنَ) باندے وقف وکړے شي، او وَالشُّهَدَاءُ مبتداء شي او (لَهُمْ اَجْرُهُمْ وَنُوْرُهُمْ) د هغے خبر جوړ شي۔ نو کلام به دوه جملے شي، په اول کښې به دا خبره راشي چه څوك په الله او په رسولانو ایمان راوړي نو دا صدیقین دي۔ او په دویمه جمله به کښې به دا خبره وي چه کوم خلق شهیدان شي په نیز د رب نو هغوي دپاره به د هغوي اجرونه او رنړا ملاویږي۔
او د صدیقینو مرتبه د شهیدانو نه مخکښې ده، پدے وجه ئے په آیت کښې هغوي مخکښې ذکر کړل، نو دلته به د شهداء نه خاص هغه خلق مراد وي چه د الله په لاره کښې قتل شوي وي۔ (طریق الهجرتین)
عِنْدَ رَبِّهِمْ: پدے کښې اشاره ده چه هر وژلے شوے شهید نۀ وي بلکه شهید به هغه وي چه د الله په نیز شهید وي۔
نو ګویا که پدے آیتونو کښې د نیك بختو څلور واړه طبقے ذکر شوے یو صالحین چه هغه په مخکښې آیت کښې ذکر شول (الْمُصَّدِّقِيْنَ وَالْمُصَّدِّقَاتِ) او دویم صدیقین او دریم شهداء پدے آیت کښې، او څلورم رسولان دي او هغه په روستو (لَقَدْ اَرْسَلْنَا رُسُلَنَا بِالْبَيِّنَاتِ)

Scanned by CamScanner

کښې ذکر کیږي، او یوه ډله د بد بختانو ده نو هغه اُوس ذکر کوي :
﴿ وَالَّذِيْنَ كَفَرُوْا وَكَذَّبُوْا بِآيٰتِنَآ ﴾ دا هغه خلق دي چه دوی د کفر لاره اختیار کړه او د الله آیتونه ئې دروغژن وګنړل، نو د دوئ انجام دا دے چه د دوئ استوګنه به جهنم وي۔

| |
|---|
| اِعْلَمُوْٓا اَنَّمَا الْحَيٰوةُ الدُّنْيَا لَعِبٌ وَّلَهْوٌ وَّزِيْنَةٌ وَّتَفَاخُرٌ |
| پوهه شئ یقیناً ژوند دنیوی لوبے او تماشه ده او ډول دے او فخر کول دي |
| بَيْنَكُمْ وَتَكَاثُرٌ |
| په مینځ ستاسو کښې (په یو بل باندے) او ډیروالے کول دي (سیالي کول دي) |
| فِي الْاَمْوَالِ وَالْاَوْلَادِ كَمَثَلِ غَيْثٍ اَعْجَبَ |
| په مالونو او اولادو کښې (ددے مثال) پشان د باران دے چه تعجب کښې واچوی |
| الْكُفَّارَ نَبَاتُهٗ ثُمَّ يَهِيْجُ فَتَرٰىهُ مُصْفَرًّا ثُمَّ يَكُوْنُ حُطَامًا وَفِي |
| زمیندارو لره ګیاه د هغے بیا اُوچ شي نو وینے به ته هغه زیړ، بیا شي ذره ذره او په |
| الْاٰخِرَةِ عَذَابٌ شَدِيْدٌ وَّمَغْفِرَةٌ مِّنَ اللّٰهِ وَرِضْوَانٌ وَمَا الْحَيٰوةُ |
| آخرت کښې عذاب سخت دے او بخنه ده د طرف د الله نه او رضا ده۔ او نهٔ دے ژوند |
| الدُّنْيَآ اِلَّا مَتَاعُ الْغُرُوْرِ ﴿٢٠﴾ سَابِقُوْٓا اِلٰى مَغْفِرَةٍ مِّنْ رَّبِّكُمْ |
| دنیوی مګر سامان د دهوکے۔ د یو بل نه مخکښې والے کوئ بخنے ته د طرف د رب |
| وَجَنَّةٍ عَرْضُهَا كَعَرْضِ السَّمَآءِ وَالْاَرْضِ |
| ستاسو نه او جنت ته چه پلنوالے د هغے پشان د پلنوالي د آسمان او د زمکے دے، |
| اُعِدَّتْ لِلَّذِيْنَ اٰمَنُوْا بِاللّٰهِ وَرُسُلِهٖ ؕ |
| تیار کړے شویدے دپاره د هغه کسانو چه ایمان ئې راوړیدے په الله او په رسولانو د |
| ذٰلِكَ فَضْلُ اللّٰهِ يُؤْتِيْهِ مَنْ يَّشَآءُ ؕ وَاللّٰهُ ذُو الْفَضْلِ الْعَظِيْمِ ﴿٢١﴾ |
| هغهٔ دا فضل د الله دے ورکوي ئې چا ته چه وُغواړي او الله خاوند فضل لوئي دے۔ |

Scanned by CamScanner

**تفسير** : پدے آیتونو کښې د دنیا زهد (بے رغبتی) بیانوی، ددے د بیانولو فائده دا ده چه د ایمان د خرابولو غټه ذریعه دنیا ده، او د ایمان د جوړولو غټه ذریعه د دنیا زهد دے، دنیا سپکه وګڼره،

د دنیا زهد څه ته وائی؟ یو قِصَرُ الْاَمَل - امیدونه لنډ کړه چه صبا له مرم او دنیا ډیره معمولی ده، لوی الله له ور روان یم، نو پدے سره به دِے الله تعالیٰ زړه جوړ کړی- او د دنیا محبت سره زړهٔ خرابیږی-

او بل پدے کښې انفاق ته هم ترغیب دے چه دنیا معمولی ده د الله دپاره مال ولګوئ- ټول شرونه د دنیا د محبت د وجه نه کیږی-

اِعْلَمُوْا: دا علم حاصلول واجب دی ځکه چه الله تعالیٰ پرے حکم کړیدے-

او پدے آیت کښې د ټولے دنیا حقیقت بیان شویدے، او ددے بے ثباتی او زر ختمیدل ئے بیان کړی- چه دا دنیا د لوبو تماشو نوم دے چه په دے کښې د خلقو زړونه او بدنونه ټول مشغوله کیږی، پوره ژوند تیر کړی او د دوئ زړونه د الله د یاد او د قیامت ورځے د وعدے او وعید نه غافله وی، او د ډول ډهال، لباس، خوراك څښاك، عالیشان مکانات، عُمده سورلیانے او دنیوی جاه او مرتبے نه نهٔ پورته کیږی او د آخرت په باره کښې دوئ ته د سوچ کولو توفیق نهٔ ملاویږی، او د یو بل په مقابله کښې خپل حسب او نسب بیانوی او د مال او اولاد په ډیروالی ذکر کولو سره فخر کوی- نو پدے دنیا کښې نهٔ د الله رضا شته او نهٔ جنت او نهٔ امن او نهٔ د اُور نه بچاؤ-

مفسرین وائی : ددے مطلب دا دے چه مشغولتیا او زړه مشغوله کول په دنیاوی ژوند باندے ددے پنځو څیزونو ترمینځ اوړی راوړی، کله به ټول څیزونه انسان ته راجمع شی او کله نهٔ-

مفسر قُشیرئ لیکی : [وَهٰذِهِ الدُّنْيَا الْمَذْمُوْمَةُ هِيَ الَّتِيْ تُشْغِلُ الْعَبْدَ عَنِ الْآخِرَةِ فَكُلُّ مَا يُشْغِلُهُ عَنِ الْآخِرَةِ فَهُوَ الدُّنْيَا وَاَمَّا الطَّاعَاتُ وَمَا يُعِيْنُ عَلَيْهَا فَمِنْ اُمُوْرِ الْآخِرَةِ]

(تفسير القشيری۷/ ۳۹۱، وفتح البيان)-

یعنی دا ناکاره دنیا ده چه بنده د آخرت نه غافله کوی، نو هر هغه شے چه بنده د آخرت نه غافله کړی نو دا د دنیا حقیقت دے- او هر چه طاعات او عبادات او ددے وسائل او ذریعے دی نو هغه د آخرت د کارونو نه دی- (فتح البيان)

Scanned by CamScanner

**حکمة** : په آیت کښې ئے صرف پنځه څیزونه په ترتیب سره ذکر کړل ځکه چه پدے کښې د انسان د ابتداء نه تر انتهاء پورے احوالو ته اشاره ده۔ چه کله انسان ورو کے وی نو لوبے کوی، د هیڅ شی فکر ورسره نهٔ وی، او چه کله لږ راغټ شی، ځوانئ ته قریب شی نو لهو (تماشے) کوی، او چه کله ځوانئ ته ورسیږی نو بیا د زینت او ډول او لباسونو په چکر کښې وی۔ بیا چه کله څلویښتو ته ورسیږی نو په خپلو مالونو او اولادو باندے فخر شروع کړی۔ او چه کله بوډا شی نو بیا د مال او اولاد د ډیرولو په فکر کښې وی لکه رسول الله ﷺ فرمائی : [يَهْرَمُ ابْنُ آدَمَ وَتَشِبُّ مِنْهُ اثْنَتَانِ الْحِرْصُ عَلَى الْمَالِ وَالْحِرْصُ عَلَى الْعُمُرِ] بنیادم بوډا کیږی او د هغهٔ نه دوه څیزونه ځوانیږی، یو په مال باندے حرص کول او بل په عمر باندے حرص کول۔ (مسلم : ۲٤٥٩)

**كَمَثَلِ غَيْثٍ**: اُوس د دنیا زر زوال بیانیږی چه د دنیا ددے عارضی څیزونو مثال د باران غونته دے چه د هغے په وجه د زمکے بوټی تلك شنهٔ شی، او ددے بوټو په لیدو سره زمیندار بنهٔ خوشحاله شی، داسے لکه څنګه چه کافران په ډول ډهال سره خوشحالیږی، بیا هغه بوټی اُوچ شی او زیړ شی، بیا ذرے ذرے شی او بوس ترے جوړ شی، او زمکه داسے شاړه شی لکه تهٔ به وے چه هلته هیڅ کله بوټے د سره راختلے نهٔ دے۔

همدا حال د دنیا دے، ددے ځای هر یو شے تلونکے راتلونکے دے، او هر نعمت فانی دے۔ او کوم څیز چه باقی پاتے کیدونکے دے هغه نیك عمال دی چه بنده سره آخرته پورے ځی، او د اُور نه ددهٔ لپاره د خلاصون سبب جوړیږی۔

**أَعْجَبَ الْكُفَّارَ** : یعنی خوشحالوی زمیندارو لره۔ زمیندارو ته کفار ځکه وائی چه د کفر په معنیٰ کښې پټوالے پروت دے او زمیدار هم دانے په زمکه کښې پټوی لکه څنګه چه کافر د ایمان د رڼا حقیقت په انکار او سرکشئ سره پټ کړیدے۔

**يَهِيجُ**: أَيْ يَجِفُّ بَعْدَ نَضَارَتِهِ وَخُضْرَتِهِ۔ یعنی وچ شی پس د تازګئ او شینکئ نه۔

**مُصْفَرًّا** : أَيْ مُتَغَيِّرًا عَمَّا كَانَ عَلَيْهِ مِنَ الْخُضْرَةِ إِلَى لَوْنِ الصُّفْرَةِ ۔ یعنی متغیر د حالت د شینکئ نه زیړ والی ته۔

**وَفِي الْآخِرَةِ عَذَابٌ شَدِيدٌ**: یعنی د آخرت هیرونکی او په دنیا کښې په لهو او لعب کښې د مشغولیدونکو انجام دا دے چه د قیامت په ورځ به داسے نافرمان خلق په سخت عذاب کښې اخته کیږی، او کوم خلق چه د آخرت فکر کوی او د الله حقونه اداء کوی، د

هغوئ ټول ګناهونه به معاف کړے شي، او د دوئ رب به دوئ نه خوشحاله شي۔
وَمَا الْحَيَاةُ الدُّنْيَا إِلَّا مَتَاعُ الْغُرُورِ: دا د مخکنی مضمون خلاصه ده چه د دنیا ژوند د دهوکے سامان دے، انسان غافله کوی، او په دهوکه کښې ئے اچوی، نو دغه پنځه څیزونه د هغے نه راپیدا کیږی۔
سعید بن جبیرؒ وائی چه دنیا دهغه چا دپاره د دهوکے ګنده ځای دے څوك چه د آخرت د فکر نه غافله وی، او کوم خلق چه د آخرت په فکر کښې مشغوله وی، هغوئ دپاره دا دنیا داسے فائده مند شے دے چه دهٔ له ددے نه بهترین نعمت یعنی جنت ته رسولو کښې مدد کوی۔
سَابِقُوا: د دنیا او ددے د نعمتونه سپکاوے او زوال بیانولو نه پس، په دے آیتِ کریمه کښې د آخرت د بیش قیمته او ابدی نعمتونو حاصلولو طرفته رغبت ورکړے شوے۔
بندګانو ته د الله د بخښنے، د هغهٔ د رضا او د جنت د حاصلولو دپاره د یو بل نه د مخکښې کیدو نصیحت کړے شوے۔
او دا څیزونه د زړهٔ په رشتینے توبے، بخښنے غوښتلو، ګناهونه نه لرے کیدو، نیك عمل کولو، او د الله د مخلوق سره په ښیګړه کولو ملاویږی۔
سَابِقُوا: مُسَابقه د یو بل نه سیالی کولو او مخکښې کیدو ته وئیلے شی۔
كَعَرْضِ السَّمَاءِ: حسنؒ وائی: دلته ټول اُوه واړه آسمانونه او اُوه واړه زمکے مراد دی چه هر یو بل ته فراخه شوے وی۔ لکه په سورة آل عمران کښې ئے ﴿عَرْضُهَا السَّمٰوٰتُ وَالْاَرْضُ﴾ وئیلے وو۔ او په عرض ذکر کولو کښې اشاره ده چه ددے د طُول اندازه صرف الله ته معلومه ده ځکه چه عرض د یو شی د طول نه کم وی۔ یا عرض په معنیٰ د وسعت او فراخئ سره دے، او دا د یو جنتی د جنت اندازه ده۔
اُعِدَّتْ لِلَّذِیْنَ آمَنُوا: پدے کښې د الله تعالیٰ د رحمت امید دے چه د ایمان سره ئے بل قید نهٔ دے لګولے۔ یعنی صرف په ایمان سره دا جنت ملاویږی۔
لیکن ددے سره نور دلیلونه ملګرے کړه چه په هغے کښې دا دی چه د ایمان سره به ئے فرائض ادا کړی وی، او د ګناهونو نه به ئے ځان ساتلے وی، آؤ، که یو انسان کښې ګناهونه وی نو د الله مشیت ته سپارلے شویدے، یا به ئے همداسے معاف کړی یا به سزا ورکړی خو بیرته به جنت ته راوځی۔

Scanned by CamScanner

وَاللّٰهُ ذُو الْفَضْلِ الْعَظِیْمِ: یعنی الله سره فضل زیات دے لیکن مستحقینو ته ئے ورکوی۔

| |
|---|
| مَا أَصَابَ مِنْ مُّصِیْبَةٍ فِی الْأَرْضِ وَلَا فِیْ أَنْفُسِكُمْ إِلَّا فِیْ |
| نهٔ رسیږی یو مصیبت په زمکه کښې او نهٔ په ځانونو ستاسو کښې مګر په |
| كِتَابٍ مِنْ قَبْلِ أَنْ نَّبْرَأَهَا إِنَّ ذٰلِكَ |
| تقدیر کښې دے مخکښې ددے نه چه مونږ پیدا کړو خلقو لره (هغے لره) یقیناً دا کار |
| عَلَی اللّٰهِ یَسِیْرٌ ﴿۲۲﴾ لِكَیْلَا تَأْسَوْا عَلٰی مَا فَاتَكُمْ |
| په الله باندے آسان دے۔ دے دپاره چه خفه نشئ په هغه څه چه فوت شویدے ستاسو |
| وَلَا تَفْرَحُوْا بِمَا آتَاكُمْ وَاللّٰهُ |
| نه او خوشحالی به نهٔ کوئ په هغه نعمتونو چه الله درکړیدی تاسو ته او الله |
| لَا یُحِبُّ كُلَّ مُخْتَالٍ فَخُوْرٍ ﴿۲۳﴾ الَّذِیْنَ |
| مینه نهٔ کوی د هر تکبر کونکی، خپلے ستائینے کونکے سره۔ هغه کسان دی |
| یَبْخَلُوْنَ وَیَأْمُرُوْنَ النَّاسَ بِالْبُخْلِ وَمَنْ یَّتَوَلَّ |
| چه بخل کوی او حکم کوی خلقو ته په بخل، او څوك چه واوړیدو (د طاعت د الله نه) |
| فَإِنَّ اللّٰهَ هُوَ الْغَنِیُّ الْحَمِیْدُ ﴿۲٤﴾ |
| نو یقیناً الله هغه بے حاجته دے، ستائیلے شویدے۔ |

**تفسیر:** مَا أَصَابَ: ربط ددے آیت د مخکښې سره په دوه طریقو دے:

(۱) زمونږ مشائخ وائی چه پدے سورت کښې انفاق ته ترغیب دے، نو دا جواب د سوال دے، سوال پیدا شو چه مال مونږ څکه ساتو چه څه مصیبت او غم به راشی په هغے کښې به ئے ولګوو؟ نو الله فرمائی چه مصیبتونه خو په تقدیر کښې لیکلے شویدی، هغے دپاره مالونه مهٔ ساتئ، تقدیر کښې چه الله څه لیکلی وی هغه به کیږی، تاسو مالونه

Scanned by CamScanner

ولګوئ.

(۲) لیکن د تدبر نه روستو داسے معلومیږی چه په دے آیت کښې د تقدیر بیان دے، او په تقدیر باندے صحیح ایمان راوړلو سره بنده د ایمان حقیقت ته رسیږی،

لکه حدیث کښې دی :

[وَلَا يَبْلُغُ عَبْدٌ حَقِيْقَةَ الْإِيْمَانِ حَتّٰى يَعْلَمَ اَنَّ مَا اَصَابَهُ لَمْ يَكُنْ لِيُخْطِئَهُ وَمَا اَخْطَأَهُ لَمْ يَكُنْ لِيُصِيْبَهُ]۔

(او هیڅ بنده د ایمان حقیقت ته نشی رسیدے تردے چه پدے خبره پوهه شی چه کوم مصیبت دهٔ ته رسیدو نو هغه به نهٔ خطا کیدو او کوم چه ددهٔ نه واوړیدو نو هغه دهٔ ته نهٔ رسیدو۔

(ابوداود : ۴۷۰۰) واحمد : ۶/۴۴۱) والبزار (۴۱۰۷) وصحیح الجامع (۲۱۵۰) واسناده صحیح)

او پدے سورت کښې هم د ایمان حقیقت بیانیږی نو په تقدیر ایمان لرل هم د ایمان د حقائقو نه یو حقیقت دے۔

(۳) او دا د روستو جهاد سره هم لګی چه د جهاد نه مهٔ یریږه، داسے مهٔ وایه چه مړ به شم ځکه چه مرګ او ژوند په تقدیر کښې لیکلے شویدے۔ دارنګه د فقر نه یره مهٔ کوه۔ ډیر خلق د ایمان حقیقت ته نهٔ رسیږی پدے وجه چه د مصیبت او فقر نه یریږی۔

(۴) دارنګه دا متعلق دے د مخکښې (سَابِقُوْا) سره، یعنی الله مخکښې په مسابقه باندے حکم وکړو نو وَهم راغے چه پدے مسابقه کښې تکلیفونه راځی، او ددے برداشت کول خو ګران دی، نو ددے نه خان ساتل پکار دی؟

جواب دا دے چه تقدیر کښې مقرر وی نو هغه به ضرور واقع کیږی۔

فِي الْاَرْضِ : د زمکے مصیبتونه لکه قحطونه، وباء، سیلابونه، زلزلے، ګرانی، فصلونه خرابیدل، میوه جات کمیدل او ضائع کیدل۔ اُوبه کمیدل وغیره۔

وَلَا فِيْ اَنْفُسِكُمْ : د نفسونو د مصیبت نه مراد مرضونه، (قتادهٔ) فقیری، اولاد مړه کیدل۔ ابن جریج وائی : د ژوند تنګسیا مراد ده۔ یا حدود قائمیدل۔ (مقاتل)۔

اِلَّا فِيْ كِتَابٍ: دا دلیل دے چه تقدیر صرف علم د الله تعالیٰ ته نهٔ وائی بلکه ورسره په لوح محفوظ کښې د هغے لیکل دی۔

نو څوک چه د تقدیر نه انکار کوی یا د تقدیر کتابت نهٔ منی بلکه صرف د الله تعالیٰ

Scanned by CamScanner

علم منی. دا دواړه په باطله عقیده کښې اخته دی اګرکه په دواړو کښې فرق شته.

مِنْ قَبْلِ اَنْ نَبْرَاَهَا : (۱) هَا ضمیر (اَلْبَرِیَّه) یعنی مخلوقاتو ته راجع دے. یعنی د مخلوقاتو د پیدا کولو نه مخکښې د دوی سره متعلق تمام کارونه په لوح محفوظ کښې لیکلے شویدی، نو که زمکے ته یا انسانانو ته څۀ مصیبت رسیږی، نو دا په لوحِ محفوظ کښې د مخکښې نه لیکلے شوی دی.

او کومه خبره چه د مخکښې نه د هغۀ په علم کښې مقرره شوے، د هغے واقع کیدل لازمی خبره ده، او اګرکه انسانی عقل ددے خبرو راګیرولو نه کوتاه دے، لیکن الله دپاره دا خبرے ډیرے آسانے دی، ځکه د هغه علم او د هغۀ قدرت د هر یو شیٔ نه راګیر شوے دے.

(۲) یا (هَا) ضمیر مصیبت ته. (۳) یا انفس ته. (٤) یا زمکے ته راجع دے.

یعنی مخکښې د پیدا کولو د مصیبت یا د نفسونو ستاسو نه. یا د زمکے نه.

اِنَّ ذٰلِكَ: یعنی ددے ټولو کائناتو لیکل د الله په نیز ډیر آسان دی، د هغۀ علم او قدرت به په مخلوق باندے نشی قیاس کولے.

لِکَیْلَا تَاْسَوْا: پدے آیت کښې ئے په تقدیر باندے د ایمان راوړو دوه فائدے ذکر کړیدی.

لِکَیْلَا: دا متعلق دے په (اَخْبَرْنَاکُمْ/ اَعْلَمْنَاکُمْ) پورے، یعنی مونږ تاسو ته دا خبر درکړو چه هر مصیبت او هر خیر د مخکښې نه لیکلے شویدے.

نو د تقدیره یوه فائده دا ده چه د انسان نه څه نعمت فوت شی، عافیت، روزی، صحت، مال وغیره نو په هغے پسے به ډیر خفګان نۀ کوی ځکه چه دا یقین به کوی چه الله ما له په تقدیر کښې داسے لیکلی وو او په همدے کښې زما دپاره خیر دے.

دویمه فائده : (وَلَا تَفْرَحُوْا) یعنی کوم نعمت چه دوئ ته ملاؤ شوے په هغے غاوره نشی، او تکبر شروع نکړی بلکه د خپل مولیٰ شکر اداء کړی چه دا نعمت ئے ورته ورکړو. ځکه چه الله تعالیٰ متکبران او د خپل ځان صفت کونکی نۀ خوښوی، چه هغه د الله نعمتونه خپل عقل او صلاحیت او مرتبے او عزت طرفته منسوب کوی، او په ډیره سرکشیٔ کښې راشی، او وائی چه ﴿ اِنَّمَا اُوْتِیْتُهٗ عَلٰی عِلْمٍ بَلْ هِیَ فِتْنَةٌ ﴾

دا خو (ماته صرف زما د علم په وجه راکړے شوے، حالانکه دا نعمتونه هغۀ له د آزمائش په طور ورکړے شوی دی).

Scanned by CamScanner

مُخْتَالٍ : (۱) هغه انسان دے چه ځان ورته په خپل خیال کښې لوی ښکاره شویدے ځکه چه دنیا ورته حاصله شویده۔ او بیا په هغے باندے فخرونه هم کوی۔ نو مختال د زړه صفت شو او فخور د ژبے۔

(۲) یا مختال هغه دے چه ځان ته د لوئی په نظر ګوری، او فخور هغه دے چه خلقو ته د سپکاوی په سترګه ګوری۔

(۳) مختال هغه دے چه مصیبتونه دفع کول د الله د طرفنه نهٔ ګنړی، او فخور هغه دے چه د نعمتونو حصول په خپل طاقت او قدرت کښې ګنړی۔

الَّذِيْنَ يَبْخَلُوْنَ : پدے کښې انفاق ته ترغیب او د بُخل بدی بیان شوے چه کوم خلق د مال سره د سخت محبت د وجے نه بُخل کوی، او نورو ته هم ددے رذیل کار حکم ورکوی، الله تعالیٰ د دوئ نه بے نیازه دے، او دوئ دپاره د قیامت په ورځ سخته سزا ده۔

نو دا مستقل کلام دے مبتداء ده او خبر ئے پټ دے چه (فَاللّٰهُ غَنِیٌّ عَنْهُمْ) الله د دوئ نه بے حاجته دے۔

او پدے کښې اشاره ده چه انسان به د ایمان حقیقت او د الله محبت ته هله رسیږی چه د بُخل نه ځان وساتی۔

او دارنګه پدے کښې د تقدیر نهٔ منلو آثار ذکر کیږی۔

يَبْخَلُوْنَ : دا بخل عام دے، د علم او مال (زکاة او کفارے) او د احسان بخل کولو ټولو ته شامل دے۔

وَيَأْمُرُوْنَ النَّاسَ بِالْبُخْلِ: سعید بن جبیرؒ فرمائی :

[یَبْخَلُوْنَ بِالْعِلْمِ وَیَاْمُرُوْنَ النَّاسَ بِالْبُخْلِ لِئَلَّا یُعَلِّمُوا النَّاسَ شَیْئًا]۔

په علم باندے بخل کوی او خلقو ته د علم په بخل حکم کوی دے دپاره چه خلقو ته څه ونهٔ ښائی۔

وَمَنْ يَّتَوَلَّ فَاِنَّ اللّٰهَ هُوَ الْغَنِيُّ الْحَمِيْدُ: کښې د دوئ همدے انجام طرفته اشاره شوے ده چه څوك د الله د یاد او د هغهٔ د امرونو نه اعراض کوی، نو خپل نقصان به کوی، الله خو بے حاجته دے، او د ټولو تعریفونو یواځے حقدار دے۔ هغهٔ ته د بندګانو د مال او دولت ضرورت نشته، ددے فائده خو ټوله انسان ته راواپس کیږی۔

Scanned by CamScanner

| لَقَدْ أَرْسَلْنَا رُسُلَنَا بِالْبَيِّنَاتِ وَأَنْزَلْنَا مَعَهُمُ |
|---|
| یقیناً مونږ رالیږلی دی رسولان په ښکاره دلیلونو او نازل کړی وو مونږ د هغوی سره |
| الْكِتٰبَ وَالْمِيزَانَ لِيَقُومَ النَّاسُ بِالْقِسْطِ وَأَنْزَلْنَا الْحَدِيدَ |
| کتاب او تله، دے دپاره چه اُودریږی خلق په انصاف سره او نازل کړیده مونږ اُوسپنه |
| فِيهِ بَأْسٌ شَدِيدٌ وَّمَنَافِعُ لِلنَّاسِ |
| چه په هغے کښې جنګ سخت دے، او فائدے دی دپاره د خلقو، |
| وَلِيَعْلَمَ اللّٰهُ مَنْ يَنْصُرُهُ |
| او دے دپاره چه راښکاره کړی الله تعالیٰ هغه چا لره چه مدد کوی د هغهٔ |
| وَرُسُلَهُ بِالْغَيْبِ إِنَّ اللّٰهَ قَوِيٌّ عَزِيزٌ ﴿۲۵﴾ |
| او د رسول د هغهٔ په حال د نهٔ لیدلو کښې، یقیناً الله قوت والا دے زورور دے۔ |

**تفسیر** : ددے ځای نه روستو دا خبره بیانوی چه د اسلام غلبه او ترقی په دوه څیزونو سره راځی، یو په دعوت، او دویم په جهاد۔ نو پدے آیت کښې ترغیب ورکوی جهاد ته په طریقه د دعوت بالکتاب، او قتال ته په طریقه د استعمال د حدید سره، او د دواړو فائدے ئے ذکر کړیدی۔ په اول کښې الله تعالیٰ د خپلو انبیاءِ کرامو د رالیږلو غرض او حکمت، او هغه درے څیزونه بیان کړی دی، کوم چه ددے انبیاوٌ د تائید او تصدیق دپاره دوئ ته ورکړے شوی وو۔ اولنے شے چه د دوئ د تائید دپاره دوئ ته ورکړے شوے وو، دلائل او معجزات وو، او دویم شے اِلٰهی کتاب وو، چه په هغے کښې د مخلوق د دین او دنیا د ښیګړے هره خبره بیان شوے وه، او دریم شئ ته الله تعالیٰ [میزان] (تله) وئیلی ده، چه ددے تفسیر مجاهدؒ او قتادهؒ وغیره په [عدل] سره کړے دے۔

او حافظ ابن کثیرؒ وئیلی دی چه ددے نه مراد هغه حق دے چه د هغے د حق کیدو کواهی تول هر هغه خلق ورکوی کوم چه عقلِ سلیم (روغ عقل) لری۔

او مقصد په آیت کښې دا دے چه کله ته ځان ته مؤمن وائے او حقیقت د ایمان ته ځان

Scanned by CamScanner

رسول غواړے، نو دا کارونه وکړه، يعنی د الله په کتاب عمل او د هغه په لاره کښې دعوت او جهاد کول۔

بِالْبَيِّنَاتِ: ددے نه مراد ښکاره احکام د عقيدے، او دليلونه او معجزات دی۔

مَعَهُمُ الْكِتٰبَ: کتاب اسم جنس دے، ډيرو کتابونو ته شامل دے۔ او په مَعَهُمُ کښې اشاره ده چه په هر رسول باندے اگرچه کتاب نۀ وو نازل کړے شوے ليکن مخکنے کتاب به ورسره وو لکه تورات نازل کړے شوے وو په موسیٰ ؑ باندے ليکن د هغۀ نه روستو تر عيسیٰ ؑ پورے دغه کتاب نورو رسولانو سره وو۔

وَالْمِيْزَانَ: (۱) دا عطف د صفت دے په صفت باندے، يعنی هغه کتاب ميزان وو دپاره د فرق د حق او د باطل۔

(۲) يا ددے نه مراد عدل دے چه الله په هغے باندے حکم کړيدے لکه چه مخکښې بيان شو۔ او د عدل د نازلولو معنیٰ دا ده چه ددے اسباب او تقاضاګانے نازلے کړے شويدی چه انسان نه د عدل غوښتنه کوی۔

(۳) يا هغه حق چه په هغے باندے صحيح عقلونه ګواهی ورکوی (ابن کثيرؒ)۔

لِيَقُوْمَ النَّاسُ بِالْقِسْطِ: يعنی دے تمامو څيزونو سره د انبياؤ د راليږلو غرض دا وو چه د کوم حق دعوت خورولو دپاره چه الله تعالیٰ دوئ راليږلی، خلق هغه قبول کړی، يواځے د الله بندګی وکړی، او په خپله انفرادی او اجتماعی زندګئ کښې د الله نازل کړے د عدل او انصاف قانون نافذ کړی، چه ددے تفصيل د الله په کتاب او د نبی کريم ﷺ په سنت کښې موجود دے۔ د جناياتو قانون، قصاص، حدود، د ميراث احکام، او نور انسانی حقوق ټول په دے ترڅ کښې راځی۔ الله تعالیٰ د خپلو بندګانو نه غوښتنه کوی چه هغوئ دا تمام قوانين او احکام په خپل انفرادی او اجتماعی ژوند کښې نافذ کړی۔ ځکه چه د عدل نه بغير د انسانو ژوند ګډوډ دے، معاشره به خرابيږی۔

## د وسپنے فائدے

وَاَنْزَلْنَا الْحَدِيْدَ: ((مونږ وسپنه نازله کړے ده چه په دے کښې سخت هيبت او قوت دے، او خلقو دپاره نورے ډيرے فائدے دی))۔

بَاْسٌ: بچاؤ، قوت او سختی او هيبت او وسله ده۔ ددے جملے د مخکنئ جملے سره

Scanned by CamScanner

تعلق دادے چه کوم خلقو له الله تعالیٰ عقل او پوهه ورکړے ده، هغوئ د الله د کتاب آیتونه آوري او په هغے عمل شروع کړي، او په خپل انفرادي او اجتماعي ژوندگئ کښ عدل او انصاف قائمول شروع کړي، او کوم عام خلق چه د دوئ مخلص تابعدار وي، په هغوئ باندے چه کله د شریعت قوانین نافذ کیږي، نو هغه قبلوي، او نظامِ عدل جاري کیږي، او کوم خلق چه د سرکشئ لاره اختیاروي، او نظامِ عدل درے وړے کول غواړي، هغوئ له حکومتي طاقت د نظامِ عدل په پابندئ باندے مجبوروي۔

مقصد دا چه اول په کتاب او سنت باندے دعوت کول دي، او بیا د مخالفینو سره قتال کول دي په استعمال د آلاتو د وسپنے سره۔ ددے وجه نه ئے اوله فائده په ﴿فِیْهِ بَاْسٌ شَدِیْدٌ﴾ سره ذکر کړه۔

په وسپنه کښ الله تعالیٰ انسانانو دپاره ډیرے فائدے ایخودے دي۔ تمام جنګي آلات او اسلحه ددے نه جوړیږي۔ قِسما قِسم صنعتونه (کاریګرئ)، د لوښو قِسمونه او د پټیو آلات ددے نه تیاریږي، چاړه، چاقو، تبر، ترخذ، کرنډئ، آره، پاله، بیلچه، رمبے، کرندے (کوداله)، جبل، ځټکے او نورے مشینرئ وغیره۔ بلکه دا وئیل به صحیح وي چه په انساني ژوند کښ استعمالیدونکي شیانو کښ شاید داسے کوم شے نشته چه په هغے کښ څۀ نه څۀ طریقے سره اُوسپنه استعمال شوي نۀ وي۔ (بیضاويؒ)

او فِیْهِ بَاْسٌ شَدِیْدٌ کښ اشاره ده چه مسلمانانو له پکار دي چه د کفارو د قتال دپاره د اُوسپنے د آلاتو نه کار واخلي، دا جوړ کړي او بیا ئے د جهاد دپاره استعمال کړي۔

وَاَنْزَلْنَا : د وسپنے د نازلولو معنیٰ دا ده چه دا په آسماني تدبیر سره پیدا شویده ځکه چه د بارانونو په ذریعه الله تعالیٰ په زمکه او غرونو کښ معدنیات پیدا کوي، او اُوسپنه هم د معدنیاتو نه ده، او کوم روایتونو کښ چه راغلي دي چه آدم علیه السلام د خپل ځان سره وسپنه د آسمان نه راکوزه کړے وه، نو علامه قاسميؒ وئیلي دي چه هغه دروغ او موضوع روایت دے۔

وَلِیَعْلَمَ اللّٰهُ مَنْ یَّنْصُرُهٗ : (۱) دا عطف دے په پټ عبارت باندے اَیْ لِیَسْتَعْمِلَهُ النَّاسُ وَیَنْتَفِعُوْا بِهٖ وَلِیَعْلَمَ آه ۔ یعني اُوسپنه دے دپاره نازله شویده چه خلق ئے استعمال کړي، او فائده ترے واخلي، او دے دپاره چه په اُوسپنه سره جهاد وکړي، نو الله تعالیٰ به مدد وکړي۔

Scanned by CamScanner

(۲) یا عطف دے په (لِيَقُوْمَ النَّاسُ بِالْقِسْطِ) باندے، یعنی مونږ رسولان راولیږل او داسے داسے کارونه مو وکړل دے دپاره چه خلق په انصاف ودریږی، او بل الله تعالیٰ راښکاره کړی چه د هغهٔ د رسولانو او د هغهٔ د دین مدد څوك کوی او څوك نهٔ؟۔

او همدا تفسیر غوره دے۔

او مطلب دا دے چه الله تعالیٰ د رسولانو په رالیږلو سره په خلقو امتحان کوی چه څوك مدد کوی او څوك نهٔ؟۔

مَنْ يَّنْصُرُهٗ: د الله سره مدد د هغهٔ د دین سره مدد کول دی په قرآن بیانولو سره، او بل په جهاد کولو سره، ځکه چه ددے دواړو کارونو په وجه خلق هدایت او توحید او سنت طرفته راځی۔ په قرآن دعوت کیږی، او په وسپنه جهاد کیږی او دواړه به شریك روان وی۔

إِنَّ اللّٰهَ قَوِیٌّ عَزِيْزٌ : یعنی الله تعالیٰ قوی او غالب او زورَور دے، د هغهٔ هیڅ ضرورت نشته چه د هغهٔ سره یا د هغهٔ د رسولانو سره څوك مدد وکړی بلکه الله تعالیٰ دویٔ پدے خبره مکلف کړل دے دپاره چه دویٔ ته فائده حاصله شی، د هغهٔ د رضا او د جنت مستحق شی هرکله چه دویٔ د الله تعالیٰ خبره ومنی۔

**فائده** : دلته ئے کتاب، میزان او حدید جمعه کړل، ددے حکمت دا دے چه په کتاب کښې د بندګانو د مصلحت او فائدے احکام شرعیه دی، او الله په دے کښې په یو بل باندے د ظلم او زیاتی نه منع کړے، او په عدل او انصاف ئے حکم کړے په هر شی کښې تردے چه په رزقونو او خوراکونو کښې هم، او پدے کښې د انصاف دپاره ئے د عدل آله (تله) راولیږله چه د دویٔ معاملات برابر په برابر شی، او د ظلم او زیاتی نه بچ شی، نو الله دوی ته د تلے جوړولو او استعمالولو حکم وکړو۔ ځکه چه کله یو بل باندے ظلم او زیاتے کیږی نو د انسانو ژوند به ګدوډ وی، او همدا معنیٰ په ﴿وَالسَّمَاءَ رَفَعَهَا وَوَضَعَ الْمِيْزَانَ أَلَّا تَطْغَوْا فِي الْمِيْزَانِ وَأَقِيْمُوا الْوَزْنَ بِالْقِسْطِ وَلَا تُخْسِرُوا الْمِيْزَانَ﴾ کښې ذکر شویده۔

بیا چه څوك د کتاب په اوامرو او احکامو باندے عمل نکوی، او په تله باندے خپل معاملات نهٔ برابروی، نو هغوی محتاج دی چه د هغوی سره په توره جهاد وکړے شی، نو پدے طریقه ئے په مختصر انداز کښې ډیرو ګڼرو مختلفو معانیو او مقاصدو ته اشاره وکړه، او ددے نه دا ښکاره شوه چه بادشاه د الله تعالیٰ خلیفه دے د هغه په بندګانو، او د

Scanned by CamScanner

هغهٔ امین دے په رعایت د حقوقو د هغهٔ، پدے وجه چه دهٔ ته ئے د تورے طاقت ورکړے او په زمکه کښې ئے ورته ځای او غلبه ورکړېده۔

(قاله ابو نصر العُتَیبیّ نقله صاحب فتح البیان)

| وَلَقَدْ أَرْسَلْنَا نُوحًا وَإِبْرَاهِيمَ وَجَعَلْنَا |
|---|
| او یقیناً رالیږلے دے مونږ نوح او ابراهیم (علیهما السلام) او ګرځولے دے مونږ |
| فِي ذُرِّيَّتِهِمَا النُّبُوَّةَ وَالْكِتٰبَ فَمِنْهُمْ مُّهْتَدٍ |
| په اولادو د دوی کښې پیغمبري او کتاب نو بعض د دوی نه هدایت موندونکی وو |
| وَكَثِيرٌ مِّنْهُمْ فَاسِقُونَ ﴿٢٦﴾ ثُمَّ قَفَّيْنَا عَلٰى آثَارِهِمْ بِرُسُلِنَا |
| او ډیر د دوی نه نافرمان وو۔ بیا رالیږل مونږ روستو د هغوی پسے رسولان خپل |
| وَقَفَّيْنَا بِعِيسَى ابْنِ مَرْيَمَ وَآتَيْنَاهُ الْإِنْجِيلَ |
| او روستو مو رالیږو عیسیٰ ځوی د مریم او ورکړے وو مونږ هغهٔ ته انجیل |
| وَجَعَلْنَا فِي قُلُوبِ الَّذِينَ اتَّبَعُوهُ رَأْفَةً |
| او ګرځولے وو مونږ په زړونو د هغه کسانو کښې چه تابعداري ئے کړے وه د هغهٔ نرمي |
| وَّرَحْمَةً وَّرَهْبَانِيَّةَ نِ ابْتَدَعُوهَا |
| او رحم او په ګوتونو کښې کیناستل چه دوی د ځان نه جوړ کړے وو، |
| مَا كَتَبْنَاهَا عَلَيْهِمْ إِلَّا ابْتِغَاءَ رِضْوَانِ اللّٰهِ فَمَا رَعَوْهَا |
| نهٔ وو فرض کړے مونږ په دوی باندے مګر لټول د رضا د الله نو دوی لحاظ اُونکړو |
| حَقَّ رِعَايَتِهَا فَآتَيْنَا الَّذِينَ آمَنُوا |
| د هغے لائق لحاظ د هغے، نو ورکړو مونږ هغه کسانو ته چه ایمان ئے راوړے وو |
| مِنْهُمْ أَجْرَهُمْ وَكَثِيرٌ مِّنْهُمْ فَاسِقُونَ ﴿٢٧﴾ |
| د دوی نه ثواب د هغوی او ډیر د دوی نه نافرمان وو۔ |

Scanned by CamScanner

**تفسیر** : اُوس د خاصو پیغمبرانو بعض واقعاتو ته اشاره ده او پدے کښ یوه خبره مقصودی ده چه هغے ته به خبره تاو کړی۔ نو دلته تخصیص بعد التعمیم دے دپاره د زیات خصوصیت او شرافت د دواړو، ځکه چه د دوی نه روستو راتلونکی ټول انبیاء علیهم السلام د همدوی د نسل نه دی۔

نوح علیه السلام نه پس چه څومره انبیاء راغلی دی هغه ټول ددهٔ د نسل نه وو۔ او د ابراهیم علیه السلام نه پس چه څومره آسمانی کتابونه نازل شوی، او څومره انبیاء او رسولان رالیږلے شوی، هغه ټول ددهٔ د اولادو د نسل نه وو، او د کومو خلقو د هدایت دپاره چه دغه انبیاء علیهم السلام راغلی وو، هغوی په دوه ډلو کښ تقسیم شول، ځهٔ خلقو خو د دوی دعوت قبول کړو، د الله تعالیٰ د وحدانیت اقرار ئے وکړو، او د نیك عمل ژوند ئے اختیار کړو، او زیاتره خلقو د سرکشئ لاره غوره کړه، د الله کتاب ئے شاته وارتولو، په دے کښ ئے تحریف وکړو او د خپلو علماؤ او راهبانو (عابدانو) اقوال او آراء ئے دین وګڼړلو۔

نو پدے کښ مونږ ته دا دعوت دے چه تاسو د دغه هدایت والو تابعداری وکړئ او د سرکشانو پسے مهٔ روانیږئ۔

دارنګه د تخصیص دویمه وجه دا ده چه ددے دواړو د زمانے نه د شرك او د مشرکانو رد شروع شویدے۔

**نُوْحًا**: دا دلیل دے چه نوح علیه السلام اول رسول دے انسانانو ته، ددهٔ نه مخکښ رسول نهٔ دے تیر شوے، او آدم علیه السلام نبی مُکَلَّم وو، او دا هم معلومه شوه چه کوم مؤرخین وائی چه ادریس علیه السلام د نوح علیه السلام نیکهٔ وو نو دا د قرآن مخالف خبره ده۔

**وَالْكِتٰبَ**: کتاب جنس دے، ټولو آسمانی کتابونو ته شامل دے۔

د ابن عباس رضی الله عنه نه نقل دی چه د کتاب نه مراد په قلم باندے خط کول او لیکل دی۔

**فَمِنْهُمْ**: دا ضمیر (ذریت) یعنی اولادو ته راجع دے، او دے کښ اشاره ده چه دوی دعوت جاری وساتلو لیکن بعض کسانو کښ اهلیت وو، نو حق دعوت ئے قبول کړو، او بعضو انکار وکړو۔

**وَكَثِيْرٌ مِّنْهُمْ**: دا دلیل دے چه په ټولو زمانو کښ د انبیاء علیهم السلام تابعدار کم پاتے شویدی او فاسقان، سرکشان زیات وو۔

**ثُمَّ قَفَّيْنَا**: دا د مخکښ تفصیل سره متعلق دے، او د خبره لنډوی او مقصود ته رسیږی۔

Scanned by CamScanner

يعنى الله تعالىٰ د انبياؤ او رسولانو دا سلسله جارى اوساتله، موسىٰ، الياس، داؤد، سليمان او نور انبياء عليهم السلام راغلل، تردے چه عيسىٰ ځوى د مريم عليه السلام الله تعالىٰ خپل رسول جوړ كړو او راوے ليږلو. چه دا د ابراهيم عليه السلام د اولاد نه وو، ځكه چه ددۀ مور مريم عليها السلام د ابراهيم عليه السلام د خاندان نه وه.

الله تعالىٰ عيسىٰ عليه السلام لـه انجيل وركړے وو، دے دپاره چه ددے مطابق د خلقو رهنمائى وكړى، او الله د هغۀ د حواريـنـو يعنى اولنو تابعدارو په زړونو كښې يو بل دپاره او د عام مخلوق دپاره نرمى او محبت واچولو، ځكه چه عيسىٰ عليه السلام ترڅو پورے ژوندے وو، هغوئ ته به ئے نصيحت كولو چه دوئ د يهوديانو غونته جوړ نشى چه د هغوئ زړونه الله تعالىٰ سخت جوړ كړى وو، بلكه د الله د مخلوق سره دِے د شفقت او محبت او د حلم او برد بارئ سلوك وكړى. ددے تعليماتو اثر دا اوشو چه د دوئ زړونه د نرمئ او محبت غوښتونكى شو، او د زړۀ د سختيدو نه ئے نفرت وكړو.

او دا قانون دے چه استاذ څنگه وى نو په شاگردانو هم همغه شان اثر كيږى، عيسىٰ عليه السلام كښې شفقت وو نو د هغۀ په تابعدارو كښې هم دغه شان صفت راغلو، دا وجه ده چه بشر دوستى په نصاراؤ كښې په نسبت د نورو خلقو زياته وه.

او دا د هغه زمانے خلق مراد وو اگركه اُوس هم ددے اثرات شته. لكه الله تعالىٰ د سورۀ المائده په (۸۲) آيت كښې د دوئ د همدے نرمئ په باره كښې فرمائيلى دى :

﴿ لَتَجِدَنَّ أَشَدَّ النَّاسِ عَدَاوَةً لِّلَّذِينَ آمَنُوا الْيَهُودَ وَالَّذِينَ أَشْرَكُوا وَلَتَجِدَنَّ أَقْرَبَهُم مَّوَدَّةً لِّلَّذِينَ آمَنُوا الَّذِينَ قَالُوا إِنَّا نَصَارَىٰ ذَٰلِكَ بِأَنَّ مِنْهُمْ قِسِّيسِينَ وَرُهْبَانًا وَأَنَّهُمْ لَا يَسْتَكْبِرُونَ ﴾

(يقينًا تۀ به د ايمان والو د تولو نه زيات دشمنان يهوديان او مشركان بيامومے، او ايمان والو ته د تولو نه زيات دوستئ ته نزدے به تۀ خامخا هغه څوك اومومے چه هغوئ ځان ته نصارىٰ وائى، دا ځكه چه په دوئ كښې علماء او د عبادت دپاره په گوټونو كښې ناست كسان موندلے كيږى، او په دے وجه چه دوئ تكبر نۀ كوى).

او پدے كښې اشاره ده چه اے خلقو ! د رسول الله ﷺ صحيح تابعدارى وكړئ الله به درله زړونه جوړ كړى، او شفقت او رحمت به پكښې پيدا كړى.

رَأْفَةً وَّرَحْمَةً: ۱ - رأفت د زړۀ نرمى ده، او رحمت نه مراد شفقت او ترس كول دى، اول د انسان په زړه كښې صفت د نرمئ وى، نو بيا د هغے په وجه په خلقو باندے ترس او شفقت

Scanned by CamScanner

کوی۔
۲- یا رأفت مینے ته وائی، نو دوی به هم د یو بل سره مینه کوله۔
وَّرَحْمَةً: او یو بل باندے به ئے ترس او رحم کولو۔ او دا د مسلمانانو ترمینځ ډیر ښکلے صفت دے، او حدیث کښ دی [لَا تَدْخُلُوْنَ الْجَنَّةَ حَتّٰی تُؤْمِنُوْا وَلَا تُؤْمِنُوْا حَتّٰی تَحَابُّوْا]
تاسو جنت ته نشئ داخلیدے ترڅو چه تاسو کښ ایمان نهٔ وی او مؤمنان نشئ جوړیدے تردے چه تاسو د یو بل سره مینهٔ وکړئ) (مسلم: ۲۰۳)
وَرَهْبَانِیَّةَ ابْتَدَعُوْهَا : مخکښ الله تعالیٰ د عیسیٰ ؑ د تابعدارو ښه صفت بیان کړو نو اُوس د هغوی یوه خرابی بیانوی چه پدے کښ مونږ ته یو لوی سبق پروت دے۔
او هغه دا چه دوئ د الله د عبادت په غرض سره په دینِ عیسوی کښ یو بدعت را اوخکلو چه هغے ته قرآن کریم د (رهبانیت) نوم ورکړے دے،
او ددے اصل تاریخ دا وو چه د عیسیٰ ؑ تابعدار یو وخت کښ په صحیح طریقه روان وو، نو بیا څه وخت روستو پرے یهودیانو غلبه وکړه، او دوئ سره ئے ظلمونه شروع کړل، قتلونه ئے وکړل، او د دوئ د دین د خرابولو کوششونه ئے شروع کړل، نو په دوی کښ نیکان خلق د علاقو نه ووتل او په شارو او اطرافو او کوټونو کښ ئے د خلقو نه جدائی اختیار کړه، دے دپاره چه د الله عبادتونه به کوی څکه چه د دعوت لارے پرے بندے شوے، دا ورته الله تعالیٰ نهٔ ووئیلی چه تاسو به کناره کشی کوئ او د خلقو نه به جدا کیږئ لیکن هر کله چه دوی کوټونو ته لاړل بیا به ئے د هغے هیڅ لحاظ نهٔ ساتو بلکه هلته به ئے خوبونه کول (لکه یو معتکف اول کښ اعتکاف پرے لازم نهٔ دے لیکن چه بیا ئے شروع کړی نو کیپونه پکښ لګوی او خوبونه او تش آرام پکښ کوی) بلکه ددے دپاسه لا دا چه د ښځو سره ئے پکښ تعلقات پیدا شول۔
نو الله تعالیٰ د دوی په دے رهبانیت باندے رد کوی، او بیا ئے په عدم التزام باندے رد کوی چه اول خو دوی له دا بدعت جوړول پکار نهٔ وو بیا چه دوئ د الله د رضا د حاصلولو دپاره دا بدعت ایجاد کړو، نو بیا خو پکار وه چه دوئ د هغے صحیح حق ادا کړے وے، او د هغے رعایت ئے کړے وے۔ نو دوه جرمونه دوی راجمعه کړل، یو بدعت پیدا کول، او بل د الله ادب پکښ نهٔ کول، نو پدے کښ مونږ ته الله تعالیٰ فرمائی چه تاسو په خپل دین کښ د بدعت نه ځان وساتئ، بیا که یو تن د عبادت په نوم یو بدعت ایجاد کړی نو پکار

Scanned by CamScanner

ده چه د هغے په وجه د الله بے ادبی خو ونکړی لکه ددے مثال دا دے چه يو تن د فرض مانځه نه روستو په جُمعه سره هميشه دعاګانے غواړی، دا کار يو بدعت دے، او بيا دا دعاء په بنائسته طريقه نهٔ کوی بلکه اخوا ديخوا پکښې ګوری او هسے رواجی دعا کوی، هيڅ توجه ئے پکښې الله ته نهٔ وی۔ نو دا بله ګمراهی شوه۔

او ددے بل مثال لکه صلاة قضاء عمری، صلاة رجبيه، او بدعی ذکرونه لکه هُو هُو ذکر اول پيدا کول نهٔ دی پکار بيا چه انسان پيدا کړی نو د هغے سره سرونه خوزول او ځانونه يو طرف او بل طرفته غورزول او مسجد کښې رمباړے او شور جوړول پکښې بله ګمراهی او د الله بے ادبی ده۔

**فائده۱** : پدے کښې زمونږ دپاره فائده دا شوه چه هر کله چه په بدعت کښې د الله رعايت ضروری دے ځکه چه د عبادت په نيت ئے جوړ کړے، نو د عبادت مُبتدعه رعايت چه څوك نهٔ کوی هغه مذموم شو [فَكَيْفَ بِمَنْ اَضَاعَ عِبَادَةً مَشْرُوْعَةً/ اَوْ اَضَاعَ شَرْعَ اللّٰهِ]۔ نو د هغه چا به څه حال وی چه يو مشروع عبادت ضائع کوی، يا د الله شريعت ضائع کوی۔

مونږ د اسلام دعوه کړے او د قرآن او د سنت دعوه مو کړے، او التزام مو کړے چه په قرآن او حديث به عمل کوو، او بيا ددے لحاظ نهٔ ساتلے کيږی، نهٔ مونځونه صحيح شته، نهٔ زکاة او نهٔ د الله د ذکر پابندی شته، او نهٔ نور اعمال شرعيه، نو بيا دا څنګه اسلام شو؟ هسے ليبل باندے خو کار نهٔ کيږی بلکه د اسلام لحاظ به ساتے۔

**فائده ۲** : علمونه درے قسمه دی :

(۱) علم الرواية۔ چه انسان دين بل ته بيانوی او نقل کوی۔

(۲) دويم عِلْمُ الدِّرَايَة يعنی بيا په دين باندے ځان پوهه کول او صحيح دين پيژندل۔

(۳) او دريم علم الرِّعَايَة دے۔ چه د هغه علم په هر وخت کښې لحاظ ساتل دی، د علم تقاضے پوره کول، او دا ګران کار دے۔ مونږ ډيرو انسانانو ته د دين خبرے يادے وی ليکن د هغے لحاظ نهٔ ساتو۔ او څوك چه د يو يے خبرے لحاظ نهٔ ساتی نو دا دلالت کوی چه دا په دين کښې بے باکه دے۔ او انسان کښې کمال په رعايت باندے پيدا کيږی يعنی د الله حکم زده کول او بيا په خپل وخت د هغے لحاظ ساتل۔

Scanned by CamScanner

## رهبانیت څه ته وائی؟

رهبانیت: په اصل کښې هغه کار ته وائی چه رُهبان ته منسوب وی، او رهبان معنیٰ ده یریدونکے شخص. یعنی د راهب کار. (یعنی پیرتوب) یا رهبانیت د رَهْب نه دے په لغت کښې یرے کولو ته وائی. لکه آیت کښې دی: ﴿وَاضْمُمْ اِلَیْكَ جَنَاحَكَ مِنَ الرَّهْبِ﴾ (القصص: ۳۲) او په اصطلاح د قرآن کښې رهبة او رهبانیة: د الله نه ویره کول او د هغه یرے د وجه نه د الله تعالیٰ د منهیاتو نه ځان ساتل لکه پدے قول د الله تعالیٰ کښې ذکر شویدی: ﴿وَاِیَّایَ فَارْهَبُوْنِ﴾. (او خاص زما نه یره وکړئ) (البقره: ٤٠)

او په عرف کښې د رهبانیت مطلب دا دے:

[هِیَ الْمُبَالَغَةُ فِی الْعِبَادَةِ وَالرِّیَاضَةِ وَالْاِنْقِطَاعُ عَنِ النَّاسِ وَاِیْثَارُ الْعُزْلَةِ وَالتَّبَتُّلِ]

دا په عبادت او ریاضت کښې مبالغه او غلو کول دی، او د خلقو نه کناره کشی اختیارول او ګوټونو ته تلل دی.

او په بل تعبیر سره رهبانیت دے ته وائی چه انسان د الله د رضا حاصلولو دپاره د دنیا وَمَا فِیْهَا نه کناره کشی اختیار کړی، او د تنهایئ په ګوټ کښې کینی، او د الله په یاد کښې مشغول شی، او بعض مباح تلذذات (خوندور څیزونو) نه ځان ساتی، لکه نکاح، او قیمتی اعلیٰ کپړے، او ښه خوراکونه. لکه د نصاراؤ غلو دا وه چه په ځان باندے ئے ګران ګران اعمال مقرر کړل، لکه د ښو خوراکونو، څکاکونو، نکاحونو او جامو نه ئے ځان منع کړو، او غارونو او ګیرجو او شارو ته ووتلل. (محاسن التاویل للقاسمیؒ)

بیا رهبانیت په دوه طریقو دے: (۱) یو دا چه د شرعی ضرورت د وجه نه جدائی اختیارول لکه فتنے ډیرے شی، او جهاد او دعوت بالکل نشی کیدے او په خپل دین باندے ویریږی، خلق ئے خامخا په فتنو کښې اخته کوی، نو په داسے وخت کښې د خلقو نه دده کول او صحراء یا غار ته تلل، او دیته فرار لِلدِّیْن او هجرت وئیلے کیږی لکه امام بخاریؒ پدے باندے باب قائم کړیدے (بَابٌ مِنَ الدِّیْنِ الْفِرَارُ مِنَ الْفِتَنِ).

یعنی د فتنو نه تښتیدل د دین برخه ده. لکه څنګه چه اصحاب کهفو غار ته هجرت کړے وو، او دارنګه په حدیث د ابوسعید خدری رضی الله عنه کښې بخاری رقم (۱۹) وغیره کښې راغلی دی: رسول الله ﷺ وفرمایل: [یُوْشِكُ اَنْ یَّکُوْنَ خَیْرَ مَالِ الْمُسْلِمِ غَنَمٌ یَتْبَعُ بِهَا

Scanned by CamScanner

شَعَفَ الْجِبَالِ وَمَوَاقِعَ الْقَطْرِ يَفِرُّ بِدِيْنِهٖ مِنَ الْفِتَنِ] نزدے ده چه داسے وخت به راشي چه غوره مال د مسلمان به ګډے بزے وي، او د باران د ځايونو نه به ئے د غرونو سرونو ته بوځي چه خپل دين به د فتنو نه تختوي. (بچ کوی).

دارنګه حديث کښ دي: [فَاعْتَزِلْ تِلْكَ الْفِرَقَ كُلَّهَا وَلَوْ اَنْ تَعَضَّ بِاَصْلِ شَجَرَةٍ حَتّٰى يُدْرِكَكَ الْمَوْتُ وَاَنْتَ عَلٰى ذٰلِكَ] (بخاری: ٣٦٠٦) مسلم (٤٨٠٩)

يعني د دغه ټولو فرقو نه جدا شه اګرکه ته د ونے په بيخ باندے چک ولګوے تردے چه تا ته پدے حالت کښ مرګ راشي.

دے ته هجرت وئيلے کيږي، او دے ته که رهبانيت وئيلے شي نو هغه به لغةً وي. يعني د خپل دين په باره کښ د فتنو نه يريدل، او په شريعت کښ دے ته رهبانيت نهٔ وئيلے کيږي. يا لکه رسول الله ﷺ به د نبوت نه مخکښ غار حراء ته تللو او د مشرکانو سره به په شرك کښ نهٔ شريك کيدو.

(٢) دويمه طريقه دا ده چه په غير د شرعي ضرورت نه د خلقو نه جدائي اختيارول او عبادتونه کول، او په ځان باندے تکليفونه او رياضتونه تيرول نو دا زمونږ په شريعت کښ قطعاً منع دي لکه په حديث کښ دي: [هَلَكَ الْمُتَنَطِّعُوْنَ] (تشدد کونکی هلاك شول). (مسلم: ٦٩٥٥)

❁ حديث کښ دي: [يَا عُثْمَانُ اِنِّيْ لَمْ اُوْمَرْ بِالرَّهْبَانِيَةِ]

(سنن الدارمی ٢/ ١٣٢) وصححه الالبانیؒ فی الصحيحة (١/٦٧٩) رقم (٣٩٤).

اے عثمانه! ما ته په رهبانيت (پيرتوب) باندے حکم نهٔ دے شوے. ابو قلابهٔ وائي: عثمان بن مظعون ؓ ځان له يوه کوټه جوړه کړه نو په هغے کښ د عبادتونو دپاره کيناستو. نو دا خبره نبی کریم ﷺ ته ورسيده، نو هغه ورته راغے او د کوټے د دروازے دواړه درشلے ئے ونيولے او ورته ئے وفرمايل: [يَا عُثْمَانُ اِنَّ اللهَ لَمْ يَبْعَثْنِيْ بِالرَّهْبَانِيَةِ (مَرَّتَيْنِ اَوْ ثَلَاثًا) وَاِنَّ خَيْرَ الدِّيْنِ عِنْدَ اللهِ الْحَنِيْفِيَّةُ السَّمْحَةُ].

اے عثمانه! يقين وکړه چه زهٔ الله تعالیٰ په رهبانيت (پيرتوب) باندے نهٔ يم راليږلے (دا خبره ئے دوه يا درے ځل وفرمائيله) او يقيناً د الله په نيز غوره دين دين ابراهيمی دے چه د توحيد آسان دين دے. (طبقات ابن سعد ٣/٣٩٥) والصحيحة (٤/٣٨٥) رقم (١٧٨٢).

او په روايت د احمد (٦/٢٢٦) کښ دي: عروهٔ فرمائي: د عثمان بن مظعون ؓ بي بي

Scanned by CamScanner

(خوله بنت حکیم) عائشہؓ کره راغله چه ساده هیئت ئے جوړ کړے وو - نو په هغے کښې دا دی: رسول الله ﷺ عثمان (رضی الله عنه) سره ملاؤ شو ورته ئے وفرمایل:

[یَا عُثْمَانُ ! اِنَّ الرَّهْبَانِیَّةَ لَمْ تُکْتَبْ عَلَیْنَا، اَفَمَا لَکَ فِیَّ اُسْوَةٌ؟ فَوَ اللّٰهِ اِنِّیْ اَخْشَاکُمْ لِلّٰهِ وَاَحْفَظُکُمْ لِحُدُوْدِهٖ].

اے عثمانه! رهبانیت (پیرتوب) په مونږ نۀ دے مقرر کړے شوے (یعنی زمونږ په دین کښې پیرتوب نشته) آیا ستا دپاره په ما کښې ښائسته اقتداء نشته؟ قسم په الله زۀ په تاسو کښې د الله نه زیات یریدونکے یم، او د هغۀ د حدودو زیات حفاظت کونکے یم.

(واسناده صحیح- الصحیحة برقم: ۱۷۸۲) (۳۸۵/٤)

❁ حدیث کښې دی: رسول الله ﷺ وفرمایل: [لَاتُشَدِّدُوْا عَلٰی اَنْفُسِکُمْ فَیُشَدَّدُ عَلَیْکُمْ فَاِنَّ قَوْمًا شَدَّدُوْا عَلٰی اَنْفُسِهِمْ فَشَدَّدَ اللّٰهُ عَلَیْهِمْ فَتِلْکَ بَقَایَاهُمْ فِی الصَّوَامِعِ وَالدِّیَارِ ﴿رَهْبَانِیَّةَ نِ ابْتَدَعُوْهَا مَا کَتَبْنَاهَا عَلَیْهِمْ﴾] ابوداود (٤٩٠٦) وابی یعلی (٣٦٩٤) واسناده حسن قاله حسین سلیم اسد وقال ابن تیمیة: له شواهد فی الصحیح، اقتضاء الصراط المستقیم ۱/۲۹٦) وصحح اسناده البوصیری فی اتحاف الخیرة المهرة (۹۲/۵)

تاسو په خپلو ځانونو سختی مۀ راولئ (په ډیرو عبادتونو مقررولو) نو په تاسو به سختی راوستے شی ځکه چه پخوا یو قوم وو چه په ځانونو ئے سختی راوسته نو الله هم په هغوی سختی راوسته نو دغه د هغوی باقیمانده خلق دی په ګیرجو کښې. (پیرتوب دوی د ځان نه جوړ کړے وو ما په دوی باندے نۀ وو لیکلے).

## آیا په نصرانیت کښې رهبانیت موجود وو؟

پدے کښې د اهل علمو اختلاف دے، یو قول دا دے چه د هغوی په دین کښې رهبانیت وو لکه د یو تفسیر په بناء وویل شو چه (رَهْبَانِیَّةً) منصوب دے عطف دے په (رَاْفَةً وَّرَحْمَةً) باندے، او دا هم د جَعَلْنَا دپاره مفعول دے.

او دویم قول د حدیث د ابن مسعود رضی الله عنه نه معلومیږی چه په هغے کښې درے د نجات والو ډله کښې ئے یوے ته رهبانیت والا وئیلی وو. لکه روستو فائده کښې راځی.

او دویم قول دا دے چه په نصرانیت کښې هم رهبانیت نۀ وو بلکه رهبانیت اختیارول د هغوی خود ساخته عمل وو، حقیقی بدعت وو.

Scanned by CamScanner

او دویم دلیل دا دے چه ډیرو متأخرینو مسیحینو د رهبانیت بدعت بد ګڼلے دے، او ویلی ئے دی چه ددے په تاثیر د نفسونو او اخلاقو کښی ډیر لوی ضررونه او مفاسد دی.

علامه قاسمیؒ د مسیحینو د یو کتاب ((ریحانة النفوس)) نه نقل کړیدی چه رهبانیت د یو وَهم نه پیدا شوے دے، او هغه دا چه د خلقو نه جدائی اختیارول، او زیږ او سخت ځیزونه استعمالول ددے دپاره یو لوی شان دے.

لیکن ددے وَهم دپاره د کتب مقدسه ؤ نه هیڅ سند او دلیل نشته، بلکه د مسیح (عیسیٰ) مثال او د نورو رسولانو مثال تول په توله ددے په ضد او خلاف دے ځکه چه هغوی د خلقو د ګډون نه نهٔ وو جدا شوی دے دپاره چه یو اځے ژوند تیر کړی بلکه هغوی همیشه د خلقو سره شریك ژوند تیر کړے، خلقو ته به ئے تعلیم ورکولو او وعظ او نصیحت به ئے کولو.

او په تورات کښی ددے د رهبانیت هیڅ مثال نهٔ موندے کیږی. بلکه کومو مسیحینو ته چه دا شے راغلے دے نو دا ورته د هندوانو د طرفنه راغلے دے. (محاسن التاویل للقاسمی)

دا اختلاف په هغه وخت کښی دے چه د رهبانیت معنیٰ صرف دا واخستے شی چه د خلقو نه د الله د بندګئ کولو دپاره جدا شی او اختلاط پریدی لیکن روستو زمانو کښی رهبانیت او پیرتوب هغه شے دے چه د خلقو نه کناره کشی وکړی، او نکاح هم په ځان حرامه کړی او نور حلال طیبات هم په ځان حرام کړی تردے پورے چه د جمعے مونځونه نکوی، غسل هم نکوی، بلکه بعض پکښی ختنه هم نکوی، نشے کوی، په غزلو او سرودونو سره د روح غذا حاصلوی، رقص او ګداګانے کوی، نو دا رهبانیت په هر دین کښی قطعی حرام دے، لیکن د نصاراؤ راهبانو او ددے امت صوفیانو او پیرانو دا طریقه ایجاد کړه دے دپاره چه د خلقو نه ددے په ذریعه سره مالونه جمعه کړی لکه چه قرآن کریم کښی دے ته اشاره کړیده ﴿إِنَّ كَثِيرًا مِنَ الْأَحْبَارِ وَالرُّهْبَانِ لَيَأْكُلُونَ أَمْوَالَ النَّاسِ بِالْبَاطِلِ وَيَصُدُّونَ عَنْ سَبِيلِ اللَّهِ﴾ (سورة توبه : ٣٤)

او دارنګه په دوی باندے رد په سورة المائده (٨٧) آیت کښی ذکر شویدے.

فَمَا رَعَوْهَا حَقَّ رِعَايَتِهَا : یعنی عملی طور سره دے خلقو کَمَا حَقُّهٗ ددے رهبانیت پابندی ونهٔ کړے شوه، بلکه د زمانے په تیریدو سره د دین عیسوی نه لرے شول، او د دنیا دارو بادشاهانو د مرضئ مطابق ئے د الله کتاب (انجیل) بدل کړو، او هغه رهبانیت ئے

Scanned by CamScanner

پرېښودهٔ کوم چه دوئ د خپل طرفه جوړ کړے وو، صرف يو څو خلق په صحيح دين باندے باقي پاتے شول، چه د هغے ذکر ئے د آيت په آخره کښې کړے دے او وئيلي ئے دي چه ﴿ فَاٰتَيْنَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا مِنْهُمْ اَجْرَهُمْ ﴾ کوم خلق چه د شرك او بدعت نه بچ پاتے شول، او د عيسیٰ عليه السلام په صحيح دين باندے قائم پاتے شول، او د نبی کريم ﷺ د راليږلو نه پس ئے په هغهٔ ايمان راوړو، الله تعالیٰ هغوئ له لوی اجر ورکړو۔

**فائده۱:** حافظ ابن کثيرؒ ليکي چه پدے آيت کښې د نصاراو درے فرقو ته اشاره ده چه هغه په حديث د ابن مسعود رضی الله عنه کښې ذکر شويدی، حاصل ئے دا دے چه د عيسیٰ عليه السلام د پورته کيدو نه روستو بنی اسرائيلو په دوه اويا ډلو (په يو روايت کښې درے اويا ډلو) کښې تقسيم شول چه درے فرقو پکښې نجات وموندو، يوے فرقے د جبابره بادشاهانو مخے ته د عيسیٰ عليه السلام د دين دعوت ورکړو، آخر دوئ د هغوی سره قتال شروع کړو تردے چه شهيدان شول، نو نجات ئے وموندو، او د دويمے ډلے د قتال طاقت نهٔ وو، نو هغوی د بادشاهانو او جبابره ؤ مخے ته د الله تعالیٰ د دين دعوت او تبليغ شروع کړو، نو دوئ ووژلے شو او په آرو باندے آره کړے شول، او په اُور باندے ئے وسيزل۔ نو دوئ صبر وکړو او نجات ئے موندہ کړو۔

او دريمه ډله هغه وه چه نهٔ ئے د قتال طاقت لرلو او نهٔ د ظالمانو په مخکښې د حق وينا د دعوت کولو (مجبوره شو) نو دوی غرونو او غارونو ته لاړل د خپل رب بندگی ئے کوله۔

ابن کثيرؒ ليکي چه دا روايت د داود المحبر وضاع راوی د وجه نه بے اعتباره دے، ليکن ددے تقويت کيږی په بل سند سره چه هغه ابويعلی الموصلیؒ ذکر کړيدے۔ آه۔

او دارنگه طبرانیؒ په المعجم الکبير رقم (١٠٢٠٦) کښې راوړيدے، وقال الالبانی فی تخريج کتاب السنة لا بن ابی عاصم ص (٧١) اسناده ضعيف رجاله ثقات علی ضعف فی هشام بن عمار والوليد بن مسلم يدلس تدليس التسوية ولم يصرح بالتحديث فی غير شيخه بكير ـ شيخ البانیؒ وائی: په کبير د طبرانی کښې ددے نه غوره سند موجود دے۔ (نفس المصدر)

وروی الحاکم باسناد صحيح برقم: ٣٧٩٠) وروی النسائی (٥٤٠٠) مثله عن ابن عباسؓ موقوفا باسناد صحيح (صححه الالبانیؒ)

معلومه شوه چه رأفة کښې اوله فرقه مراد ده چه قتال کونکے وه، او په رحمة کښې دويمه فرقه ده چه دعوت کونکی وو، او دريمه فرقه په رهبانية سره ذکر شويده۔

Scanned by CamScanner

**فائده ۲** : د رأفةً او رحمةً سره ئے جَعَلْنَا وونیلو یعنی خان ته ئے نسبت وکړو او د رهبانیةً نسبت ئے دوئ ته وکړو۔ دے کښې حکمة دا دے چه رافة او رحمة په زړه کښې یو طبعی او خُلقی شے دے چه د انسان کسب لره په کښې څه مداخلت نشته، او هرچه رهبانیت دے نو هغه د بدن د افعالو نه دے، او د انسان کسب لره په هغے کښې مداخلت شته۔ (فتح البیان)

## د آیت تفسیر :

**وَرَهْبَانِيَّةً ابْتَدَعُوهَا** : رهبانیةً منصوب دے په پټ اِبْتَدَعُوْا سره چه روستو (اِبْتَدَعُوْهَا) د هغے تفسیر دے۔ پدے کښې دوه تفسیره دی (۱) یو دا چه د دوئ په دین کښې رهبانیت نهٔ وو جائز، او ابتداع نه مراد دا دے چه دوئ د خان نه راپیدا کړو،

او اِلَّا ابْتِغَاءَ : استثناء منقطع ده، نو معنیٰ دا ده : رهبانیة دوی د خان نه راپیدا کړو چه مونږ دا په دوی باندے نهٔ وو فرض کړے/ مقرر کړے۔ (لٰكِنِ ابْتَدَعُوْهَا ابْتِغَاءَ رِضْوَانِ اللّٰهِ) لیکن دوی دا بدعت راپیدا کړو دپاره د طلب کولو د رضا د الله تعالیٰ، خو بیائے د هغے لحاظ هم ونهٔ ساتلو۔ نو د دوی د بدئ وجه دا شوه چه دوی په خان باندے بدعت (رهبانیت) لازم کړو پدے عقیده چه دا د الله طاعت دے، او الله به پدے باندے راضی کیږی، نو هرکله چه دوی پریخودو او د هغے لائق رعایت ئے ونکړو نو دا دلالت کوی ددوی په بے باکئ باندے په هغه شی کښې چه دوئ پرے د دین عقیده لرله۔

او دا تفسیر د قتادهؒ او د یو جماعت د علماؤ نه نقل دے۔

❁ زجاجؒ داسے معنیٰ کوی : چه اِلَّا ابْتِغَاءَ رِضْوَانِ اللهِ بدل د (هَا) ضمیر نه، او تقدیر داسے وائی : (مَا كَتَبْنَاهَا اِلَّا شَيْئًا اَلْبَتَّةَ اِلَّا كَتَبْنَا عَلَيْهِمُ ابْتِغَاءَ رِضْوَانِ اللّٰهِ)۔

یعنی مونږ په دوی باندے هیڅ شے د رهبانیة نهٔ دے مقرر کړے مګر مونږ په دوی باندے د الله د رضا طلب کول فرض کړی وو۔ (فتح البیان وغیره)

(۲) دویم دا چه د دوی په دین کښې رهبانیت جائز وو خو صرف د الله د رضا دپاره، یعنی رهبانیتِ مقیده جائز وو نو بیا به استثناء متصل وی۔ او د (اِبْتَدَعُوْهَا) نه مراد به دا وی چه د هغے کیفیت او طریقه ئے بدله کړه او د هغے مقصد ئے اُلټه کړو۔ نو (رهبانیة) به منصوب وی په مخکښې (جَعَلْنَا) سره۔

معنیٰ دا ده : مونږ د دوئ دپاره رهبانیت مقرر کړو، چه دوئ د هغے کیفیت او طریقه او

Scanned by CamScanner

مقصد بدل کړو، ما نهٔ وو فرض کړے په دوی باندے دا رهبانیة مګر دپاره د طلب کولو د رضا د الله تعالیٰ لیکن دوی د هغے هیڅ رعایت ونکړو، د الله رضائے پرے طلب نکړه مګر کمو خلقو وکړه او ډیر پکښ فاسقان شول۔ او دا قول د مجاهدٌ دے۔

نو په آیت کښ الله تعالیٰ زمونږ دپاره د دغه بنی اسرائیلو مذمت (بدی) بیان کړه چه هغوی په دغه نهٔ رعایت سره مذموم کیږی، نو دغه شان تاسو به هم مذموم کیږئ که د کتاب او سنت رعایت ونکړئ، نو اُوس څه وکړو ؟ نو الله روستو آیت کښ د صحیح ایمان دعوت ورکوی فرمائی :

| |
|---|
| يَا أَيُّهَا الَّذِيْنَ آمَنُوا اتَّقُوا اللهَ وَآمِنُوْا بِرَسُوْلِهٖ |
| اے ایمان والو ! اُویریږئ د الله نه او ایمان راوړئ په رسول د هغهٔ باندے |
| يُؤْتِكُمْ كِفْلَيْنِ مِنْ رَّحْمَتِهٖ وَيَجْعَلْ لَّكُمْ نُوْرًا |
| دربه کړی تاسو ته دوه اندی (برخے) د رحمت خپل نه، او ویه ګرځوی تاسو لره رڼرا |
| تَمْشُوْنَ بِهٖ وَيَغْفِرْ لَكُمْ وَاللهُ غَفُوْرٌ |
| چه ګرځئ به تاسو په هغے سره او بخنه به وکړی تاسو ته او الله بخنه کونکے |
| رَّحِيْمٌ ﴿۲۸﴾ لِئَلَّا يَعْلَمَ أَهْلُ الْكِتَابِ أَلَّا يَقْدِرُوْنَ |
| رحم کونکے دے۔ دے دپاره چه پو هه نهٔ شی اهل کتاب پدے چه دوی قدرت نهٔ لری |
| عَلٰى شَيْءٍ مِّنْ فَضْلِ اللهِ وَأَنَّ الْفَضْلَ بِيَدِ اللهِ يُؤْتِيْهِ |
| په هیڅ شی باندے د فضل د الله نه او یقیناً فضل په لاس د الله کښ دے، ورکوی ئے |
| مَنْ يَّشَاءُ ط وَاللهُ ذُو الْفَضْلِ الْعَظِيْمِ ﴿۲۹﴾ |
| چا ته چه اُوغواړی، او الله خاوند د فضل لوئی دے۔ |

**تفسیر** : پدے آیت کښ د رسول الله ﷺ د اتباع درے فائدے ذکر شویدی۔

پدے آیت کښ کوم مؤمنان مراد دی؟ (۱) نو د ابن عباس رضی الله عنه د وینا مطابق په دے آیتِ کریمه کښ الله تعالیٰ د نبی کریم ﷺ د زمانے یهود او نصاریٰ مخاطب کړی دی کومو به

Scanned by CamScanner

چه په تیرو شوو انبیاءِ کرامو باندې د ایمان راوړلو دعویٰ کوله، او دوئ ته ئې د دوئ دعوې مطابق د ایماندارو خطاب ورکړو چه تاسو خو ځان ته په تورات او انجیل ایمان والا وایئ نو د الله نه ویریږئ، او په نبی کریم ﷺ باندې د ایمان راوړو دعوت ئې ورکړو، دې دپاره چه دوی د فسق نه بچ شی، او وې وئیل چه که دوئ دا دعوت قبول کړو او ددې مطابق ئې عمل وکړو نو دوئ له به دو چنده اجر ملاویږی، یو اجر په مخکنی نبی باندې د ایمان راوړو په وجه، او دویم اجر په نبی کریم ﷺ باندې د ایمان راوړو په وجه. لکه همدا خبره په حدیث د بخاری او مسلم کښې راغلې ده، (بخاری: ۹۷) مسلم: ٤٠٤)

د ابو موسیٰ اشعری ﷺ نه روایت دې چه نبی کریم ﷺ وفرمایل:

[ثَلَاثَةٌ يُؤْتَوْنَ أَجْرَهُمْ مَرَّتَيْنِ رَجُلٌ مِنْ أَهْلِ الْكِتَابِ آمَنَ بِنَبِيِّهِ وَأَدْرَكَ النَّبِيَّ ﷺ فَآمَنَ بِهِ]

درې قِسمه خلقو ته به دو چنده اجر ملاویږی. په دوئ کښې اول د اهلِ کتابو هغه کس دې چه هغهٔ په خپل نبی باندې ایمان راوړو، او په ما باندې ئې ایمان راوړو ... الحدیث).

(بخاری: ۹۷) مسلم: ٤٠٤)

(۲) سعید بن جبیرؒ وائی: کله چه اهلِ کتابو فخر وکړو چه دوئ ته به دوچنده اجر ملاویږی نو الله تعالیٰ دا آیت د امتِ محمدیه په باره کښې نازل کړو. اول قول غوره دې.

اتَّقُوا اللهَ: ددې تقویٰ نه مراد د عقیدې د شرك او د تثلیث او تشبیه نه ځان ساتل دی کوم چه یهودیانو او نصاراؤ د ځان نه جوړه کړې وه.

بِرَسُوْلِهٖ: دا اضافتِ عهدی دې، ددې نه مراد رسول الله ﷺ دې.

يُؤْتِكُمْ كِفْلَيْنِ: کِفل په اصل کښې هغه زړې شړۍ ته وئیلې کیږی چه د اُوښ په شا باندې غوړوی دې دپاره چه بنده پرې د سورلۍ نه ونهٔ غورزیږی، بیا د ثواب برخې او حصې ته وئیلې کیږی چه انسان لره د بد بختۍ نه بچ ساتی، دلته ترې مراد دوچنده ثواب او اندې (بار/پنډ) د ثوابونو دې.

## سوال وجواب

سوال: دا خو دوه کارونه دی، ایمان په مخکنی نبی او ایمان په آخری نبی او په دوه نیك عملونو خو ضرور دوه ثوابونه ملاویږی نو د دوی خصوصیت په څه وجه سره دې؟

جواب: پدې کښې په هر ایمان باندې مستقل دوه ثوابونه دی لیکن په دې شرط سره

Scanned by CamScanner

چه دویم ایمان ورسره پیوست شي نو ګویا که په دواړه ایمانونو باندې څلور څلور ثوابونه شول.

وَيَجْعَلْ لَّكُمْ نُوْرًا: (۱) ددې نه مراد په دنیا کښې هغه نور دې چه په قرآن او ددې په علومو سره حاصلیږي. (۲) یا د نور نه مراد واضح دین دې یعنی تاسو لره به په دین کښې داسې ښکاره لاره وګرځوي چه د هغې په وجه به تاسو په سمه لار روان شئ. او په آخرت کښې هغه رڼرا ده چه پدې سورت کښې دوه کرته ذکر شوه.

تَمْشُوْنَ بِهٖ: یعنی تاسو به پدې رڼرا سره په پُلِ صراط باندې روان یئ.

او په دنیا کښې د مشي نه مراد دا دې چه تاسو به د قرآن او سنت موافق ژوند تیروئ، او پدې کښې دنیاوي بشارت ته هم اشاره ده چه ستاسو دین به غالب وي او شهرت او عزت به مو همیشه روان وي.

وَيَغْفِرْ لَكُمْ: یعنی په آخري نبي باندې د ایمان راوړو نه مخکښې چه تاسو نه کوم ګناهونه شویدي هغه به درته معاف کړي.

لِئَلَّا يَعْلَمَ اَهْلُ الْكِتَابِ: دا آیت د مخکښې آیت سره متعلق دې، او پدې کښې غوره تفسیر دا دې چه (لِئَلَّا) کښې لام زیاتي دې، او په عربئ ژبه کښې د لام زیاتوالې په فصیح کلام کښې د تاکید دپاره راځي لکه (مَا مَنَعَكَ اَلَّا تَسْجُدَ اِذْ اَمَرْتُكَ) (اَلَا لَا بَارَكَ اللّٰهُ فِيْ سُهَيْلٍ) دارنګه (فِيْ بِئْرٍ لَا حُوْرٍ). (لَا اُقْسِمُ بِهٰذَا الْبَلَدِ)

او د اهل الکتاب نه مراد هغه خلق دي چه په آخري نبي ئې ایمان نهٔ دې راوړې، او د فضل الله نه مراد هغه درې فائدې دي کومې چه په اتباع د رسول الله ﷺ کښې ذکر شوې. او دارنګه عام فضل هم مراد دې دې.

نو مطلب دا شو چه اهل کتابو کومو چه ایمان نهٔ وو راوړې هغوی به دا دعوه کوله چه مونږ د الله تعالیٰ صحیح بندګان یو، جنت مونږ له پیدا دې، د الله ټول فضل په مونږ باندې وقف شویدې، نور انسانان د فضل لائق نهٔ دي، دا خو زمونږ د خدمت دپاره پیدا دي (نو دوي به ټول مخلوق سپك او ځانونه ئې لوي ګڼړل)، د الله فضل به صرف په مونږ کیږي، عربو ته وګوره او د الله فضل ته ؟!.

نو دلته الله تعالیٰ ایمان والو ته وائي چه تاسو د اهل کتابو ضد وکړئ، په ځان کښې ایمان راولئ او تقویٰ اختیار کړئ او د خپل نبي صحیح تابعداري وکړئ، نو الله به تاسو

Scanned by CamScanner

باندے د خپل فضل او رحمت بارانونه راولیږي، په دنیا کښ به کامیابی او عزت او غلبه درکړي، او قسما قسم نعمتونه به درکړي، نو یهودیانو ته به پته ولګی چه مونږ خو وئیل چه د الله فضل به صرف په مونږ کیږي، دلته خو په نورو خلقو باندے هم د الله فضل وشو، زمونږ خبره خو غلطه وختله، نو الله فرمائی چه تاسو د اهل کتابو د ضد نه دغه مخکښی کارونه وکړئ دے دپاره چه اهل کتابو ته د خپلے خبرے غلط والے معلوم شی، او پدے پوهه شی چه دوی سره د الله د فضل ټیکه او اختیار نشته چه د دوئ په خوښه به چا ته فضل ورکوی او چا ته نهٔ.

یا اَلَّا یَقْدِرُوْنَ عَلٰی شَیْءٍ مِنْ فَضْلِ اللهِ۔ یعنی دوی قادر نهٔ دی په دفع کولو د دغه فضل باندے د هغه چا نه چه الله پرے فضل کړیدے، او مستحقین د فضل دی۔ ځکه چه ټول فضل خو د الله په اختیار کښ دے، هغه ئے چه چا ته ورکول غواړی ورکوی ئے، لکه دغه فضل ئے په آخری امت باندے په نبی رالیږلو سره وکړو او دوی ته ئے غلبه ورکړه۔

مفسرینو نور تفسیرونه هم ذکر کړیدی لیکن پس د سوچ نه هغه په تکلفاتو بناء دی چه د آیت ظاهر ورسره موافقت نهٔ لری۔ والله تعالیٰ اعلم۔ وبالله التوفیق۔

## امتیازات:

١- پدے سورت کښ تحقیق حقائق الایمان بیان شو۔
٢- د تقدیر دوه فائدے پکښ خصوصی طور سره ذکر دی۔
٣- د دنیا کامله بی رغبتی پکښ ذکر شوه۔
٤- د رهبانیت خبره پکښ ذکر شوه۔
٥- د رسول الله ﷺ د تابعدارئ درے مزیدارے فائدے پکښ بیان شوے۔

ختم شو تفسیر د سورة الحدید په فضل د الله تعالیٰ په شعبان ١٤٣٧/٥ هـ موافق: ٢٠١٦/٥/١٠ صباح یوم الاربعاء بجه: ٩:٠٠۔ پشاور۔

❁❁

Scanned by CamScanner

بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ط

| رکوعاتها (۳) | (۵۸) سورة المجادلة مدنية (۱۰۵) | آیاتها (۲۲) |
| --- | --- | --- |

سورة المجادله مدنی دے، په دے کښې دوه ویشت آیتونه او درے رکوع دی۔

## تفسیر سورة المجادله

نوم : (۱) ددے نوم [اَلْمُجَادَلَة] د اولنی آیت د ﴿تُجَادِلُكَ﴾ نه اخستے شوے۔ (مجادِله) په زیر د دال سره جګړه او بحث کونکے زنانه او په زبر د دال سره هغه زنانه چه د هغے سره بحث کړے شویدے)

(۲) سورة الظهار۔ (۳) سورة قَدْ سَمِعَ هم ورته وئیلے کیږی۔

د نازلیدو زمانه : قرطبیؒ لیکی چه دا سورت د ټولو په نیز مدنی دے۔ او ددے ځای نه تر (سُوْرَةُ الْمُلْك) پورے ټوله سیپاره کښې مدنی سورتونه دی چه په واقعاتو او احکامو باندے مشتمل دی۔

### مناسبت

۱ - مخکښې سورت کښې ئے د ایمان تجدید ذکر کړو چه دا تازه کړئ، نو دلته منافقانو ته رټنه ورکوی چه دوئ هغه خلق دی چه د خپل ایمان غم ورسره نشته، نو دلته زجر دے منافقانو ته په ناکاره صفتونو د هغوی سره۔

۲ - هلته د اهل کتابو په باره کښې ووئیل شو چه د هغوی د ضد نه نیك اعمال کړئ، نو دلته وائی چه د دوئ ضد ځکه پکار دے چه دا خلق داسے مفسدان دی چه منافقانو ته شیطانی کوی۔

Scanned by CamScanner

## مقصد د سورت

۱- بعض علماء وائی چه پدے کښی زجر دے بخلاؤ ته، او دا معلومیږی د ﴿ ءَاَشْفَقْتُمْ اَنْ تُقَدِّمُوْا بَيْنَ يَدَیْ نَجْوَاكُمْ ﴾ نه لیکن دا موضوع دومره واضحه نهٔ ده۔

۲- دویمه موضوع: اَلزَّجْرُ لِلْمُنَافِقِيْنَ بِاَوْصَافِهِمُ الْقَبِيْحَةِ ۔ منافقانو ته د هغوی په ناکاره صفتونو رټنه ورکول دی۔ دا موضوع دے سورت کښی شته لیکن صرف په آخرنۍ رکوع کښی راغلے ده۔

۳- زمونږ استاذ محترم (الشیخ الرستمی رحمة الله علیه) فرمائی:

موضوع د سورت زجر او منع ده د طریقو د فساد نه چه هغه شپږ ذکر کړیدی:

(۱) تحریم په ظهار سره۔

(۲) محاده د الله تعالیٰ او د رسول سره، (۳) نجویٰ په گناه او عدوان سره۔

(٤) په غیر شرعی طریقے سره تحیه کول۔ (۵) په دروغه سره قسم کول۔

(٦) صد عن سبیل الله کول۔

٤- ډیره واضحه موضوع دا معلومیږی چه پدے سورت کښی اِتِّبَاعُ الْقَوَانِيْنِ الشَّرْعِيَّةِ الَّتِیْ اَتٰی بِهَا الرَّسُوْلُ ﷺ وَتَقْبِيْحُ الْقَوَانِيْنِ الْوَضْعِيَّةِ وَالْاَمْرُ بِاتِّبَاعِ الرَّسُوْلِ دے۔

یعنی د شرعی قوانینو تابعداری کول لازم دی کوم چه رسول الله ﷺ راوړیدی او د وضعی (خان نه ایجاد شوی) قوانینو بدی بیانوی او د رسول الله ﷺ په تابعدارئ حکم کوی۔

د الله د قانون تابعداری دا ده چه ظهار مهٔ کوه، که وشو نو درے کفارے دی، بیا په (۵) آیت کښی فرمائی: ﴿ اِنَّ الَّذِيْنَ يُحَادُّوْنَ ﴾ د الله او د رسول په خلاف قوانین مهٔ جوړوئ۔

بل غلط قانون دا وو چه بے خایه جرگے کول، غلط سلامونه اچول، د رسول الله ﷺ د مجلس بے ادبی کول، رسول الله ﷺ تنگول دا د منافقانو غلط قوانین او طریقے وے۔

خوک چه دا نهٔ کوی نو د هغوی بدی بیانوی، او خوک ئے چه کوی نو د هغوی صفات بیانوی نو د ایمان والو صفات به بیان کړی۔

نو ښکاره موضوع دا شوه چه دا رسول چه تاسو ته د کومے خبرے امر کوی هغے باندے عمل وکړئ او د کوم کارونو نه چه تاسو منع کوی د هغے نه خان وساتئ او ددهٔ مخالفت مهٔ کوئ۔

Scanned by CamScanner

| قَدْ سَمِعَ اللّٰهُ قَوْلَ الَّتِیْ تُجَادِلُكَ فِیْ |
| --- |
| یقیناً واوریده الله تعالیٰ وینا د هغې زنانه چه بحث ئې کولو تا سره په باره |
| زَوْجِهَا وَتَشْتَكِیْٓ اِلَی اللّٰهِ وَاللّٰهُ یَسْمَعُ تَحَاوُرَكُمَا |
| د خاوند د هغې کښې او شکایت ئې کولو الله ته او الله آوریدلے خبرې اترې ستاسو، |
| اِنَّ اللّٰهَ سَمِیْعٌۢ بَصِیْرٌ ﴿۱﴾ |
| یقیناً الله آوریدونکے لیدونکے دے۔ |

**تفسیر:** شان نزول :

مفسرینو لیکلی دی چه دا آیتِ کریمه د خوله بنت ثعلبه انصاریه رضی الله عنها او د هغې د خاوند اَوس بن صامت ﷺ په باره کښې نازل شوے وو۔ اَوس بن صامت ﷺ د عباده بن صامت ﷺ ورور دے، د خپلې بی بی نه ئې د کور والی مطالبه وکړه نو هغې انکار وکړو نو دے په غصه کښې راغے او هغې ته ئې ووئیل چه تهٔ په ما باندې زما د مور د شا غونته ئې۔ او په دے زمانه کښې به [ظِهار] طلاق گنړل کیدهٔ۔

او ددے دواړو واړهٔ بچی وو، او دا دواړه د ډیر عمر وو۔ او بیرته پدے کار خفه هم وو، دے وجې نه خَوله رسول الله ﷺ خواته راغله، او ټوله قصه ئې واوروله، خپله او د خپل خاوند او د خپلو بچو پریشان حالی ئې بیان کړه۔

په یو صحیح روایت کښې دی، هغې ووئیل :

[یَا رَسُوْلَ اللّٰه ! اَكَلَ شَبَابِیْ، وَنَثَرْتُ لَهٗ بَطْنِیْ، حَتّٰی اِذَا كَبِرَتْ سِنِّیْ وَانْقَطَعَ وَلَدِیْ ظَاهَرَ مِنِّیْ] (ابن ماجه : ۱۶۷۸)

اے د الله رسوله ! اَوس زما ځوانی اوخوړه، او ما خپله خیټه هغهٔ دپاره خوره کړه، اوکله چه زما عمر زیات شو، او بچی کیدل مے بند شو، نو هغهٔ ما سره ظِهار اوکړو، نو رسول الله ﷺ وفرمایل چه په دے باره کښې په ما باندې هیڅ وحی نهٔ ده نازله شوے۔

خَولے ووئیل : اے د الله رسوله ! د هر شئ په باره کښې په تا باندې وحی نازله شوے ده، او صرف همدا معامله پاتے شوے ده ؟ نبی ﷺ وفرمایل : هاؤ ! خبره همدغسے ده څنګه چه

Scanned by CamScanner

مـا کړې ده. نـو خـولـې وویـل چه زهٔ الله ته شکایت کوم، نهٔ د هغهٔ رسول ته. نو دا آیت نازل شو.

امام احمدؒ او امام بخاريؒ د عائشې رضی الله عنها نه روایت کړې، هغې وویل :

[اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِیْ وَسِعَ سَمْعُهُ الْاَصْوَاتَ لَقَدْ جَائَتِ الْمُجَادِلَةُ تَشْكُوْ اِلَی النَّبِیِّ ﷺ وَاَنَا فِیْ نَاحِیَةِ الْبَیْتِ مَا اَسْمَعُ مَا تَقُوْلُ فَاَنْزَلَ اللّٰهُ تَعَالٰی قَدْ سَمِعَ اللّٰهُ قَوْلَ الَّتِیْ تُجَادِلُكَ) الآیة.

چه ټول تعریفونه هغه الله لره دي چه تمام آوازونه آوري. جګړه کونکې ښځه (خَوله) نبی کریم ﷺ ته راغله، او خبرې ئې شروع کړې، او زهٔ د کور په یو ګوټ کښې ووم، لیکن د هغې خبرې مې نهٔ آوریدلې، نو الله عز وجل ﴿قَدْ سَمِعَ اللهُ﴾ الآیة نازل کړو.

(بخاري : ۷۳۸۵) وابن ماجه : (۱۸۸) واللفظ له.

او د جاهلیت والو دا قانون ووچه په ظهار کښې به ئې خپله ښځه مُؤَبده (همیشه دپاره) حرامه ګڼړله.

نو الله تعالیٰ دلته د ظهار حکم بیان کړو چه ددې دوه حکمه دي. یو دا چه ظهار یو ناروا کار دې دا مهٔ کوئ ځکه چه د خپلې ښځې مشابهت د مور سره ورکول خلاف الحقیقة منکر کار دې ځکه چه مور نه خو انسان پیدا وي، او ښځې نه انسان فائده اخلي.

اُوس که یو تن دا ګناه وکړي نو بیا دې کفاره وکړي دا به پرې همیشه حرامه نهٔ وي، کفاره یو غلام آزادول دي، که دا نهٔ وي نو بیا دوه میاشتې پرله پسې روژې نیول دي، او که دا هم نشي کولې نو بیا شپیته مسکینانو ته دې خوراك ورکړي هر مسکین ته یو مد (نیمه کیلو) غنم یا وره دې ورکړي. او د وریشو او وریژو وغیره نه به پوره کیلو ورکوي.

بیا ددې قانون سره نورې خبرې ملګرې کړې کله چه د جاهلیت دا قانون خراب شو نو منافقانو او یهودو خبرې شروع کړې چه دا نبی خو هر شے ورانوي او خبرې بدلوي، کوشش ئې دا وو چه د جاهلیت او ظلم قوانین دې په خلقو کښې پاتې وي، نو دوی به د رسول الله ﷺ بے ادبی او د مؤمنانو سپکاوے کولو او ضرر به ئې ورکولو او د رسول الله ﷺ سره به ئې د تنګولو دپاره غیر ضروري مشورې کولې،

نو الله قانون راولیږلو چه د مشورې نه مخکښې به صدقه ورکوئ. منافقان منع شو. نو ځکه په آخري رکوع کښې په هغوی باندې تفصیلي رد کوي، د منافقانو تعلق د یهودو سره وو، د رسول الله ﷺ او مؤمنانو سره ئې نهٔ وو نو ځکه الله په هغوی باندې رد

کوی۔

﴿ قَدْ سَمِعَ اللّٰهُ ﴾ د سورة آل عمران په تفسیر کښې مونږ لیکلی وو چه دا الفاظ په دوه ځایونو کښې استعمالیږی، یو د ترحم او شفقت دپاره لکه همدلته مراد دے۔ یقیناً الله واوریده دغه خبره او الله ددے شکایت قبول کړو او هغے ته ئے جواب ورکړو۔ سمع د الله تعالیٰ حقیقی صفت دے، او په ظاهری معنیٰ سره دے، تشبیه او تمثیل او تکییف او تاویل ته ئے هیڅ حاجت نشته۔

تُجَادِلُكَ فِيْ زَوْجِهَا : یعنی بحث او خبرے اترے ئے کولے د رسول الله ﷺ سره په باره د خاوند د هغے کښې۔ چه بیرته واپسیٔ ته څه لاره کولاوه شی، ځکه چه زهٔ بوډئ شوے یم، که زهٔ ترے جدا شم نو ما بل څوك نهٔ کوی، او دے خپله بوډا دے خدمت ته محتاج دے، او بل طرفته زما واړهٔ واړهٔ بچی دی، ضائع کیږی،

اِنْ ضَمَمْتُهُمْ اِلَيَّ جَاعُوْا وَاِنْ تَرَكْتُهُمْ لَهٗ ضَاعُوْا۔

که زهٔ دوی ځان سره یو ځای کوم نو وږی کیږی، او که دهٔ ته ئے پریدم نو ضائع کیږی۔ او بل طرفته فقیری هم ده۔ نو ډیره پریشانی شوه، روغ کور پرے وران شو۔ زهٔ د خپلے محتاجئ، لوږے او بے وسئ شکایت الله ته کوم۔ او خپل سر ئے آسمان طرفته پورته کړو، وے وئیل : اے الله ! زهٔ صرف تاته شکایت کوم۔ نو ډیره دلسوزه دعاء ئے الله ته وکړه چه الله تعالیٰ سمدست قبوله کړه۔

د مجادلے نه مراد بحث او محاوره کول دی لکه روستو ئے په تَحَاوُرَكُمَا سره تعبیر کړیدے، او دلته ئے ورته جدال وئیلے دے ځکه چه د زنانه د طرف نه په لهجه کښې سختی وه د وجے د خفګان د هغے نه۔

وَتَشْتَكِيْ اِلَى اللّٰهِ: یعنی د ظهار په وجه چه څوَلے ته د خپل ځان، او د خپل خاوند او د بال بچ په باره کښې کوم فکر او پریشانی راغلے وه، د هغے اظهار ئے د خپل رب مخے ته کولو، او دعا ئے کوله چه هغه ددے دا پریشانی لرے کړی۔ او ددے وجه دا وه چه رسول الله ﷺ به ورته وئیل چه تهٔ په خپل خاوند حرامه ئے، او هغے وویل چه اے د الله رسوله ! قسم په الله ! اَوس د طلاق لفظ نهٔ دے استعمال کړے، او دا هغه محاوره وه د دواړو ترمینځ چه الله واوریده۔

تَحَاوُرَكُمَا : محاوره یو بل سره خبرو اترو، او سوال جواب کولو ته وئیلے شی۔

Scanned by CamScanner

| اَلَّذِيْنَ يُظَاهِرُوْنَ مِنكُمْ مِّنْ نِّسَائِهِمْ مَّا هُنَّ أُمَّهَاتِهِمْ |
| --- |
| هغه کسان چه ظهار کوی ستاسو نه د زنانو خپلو نه، نهٔ دی دوی میندے د دوی، |
| إِنْ أُمَّهَاتُهُمْ إِلَّا اللَّائِيْ وَلَدْنَهُمْ وَإِنَّهُمْ لَيَقُوْلُوْنَ |
| نهٔ دی میندے د دوی مگر هغه چه زیږولے ئے دی دوی لره، او یقیناً دوی خامخا وائی |
| مُنكَرًا مِّنَ الْقَوْلِ وَزُوْرًا ط وَإِنَّ اللهَ لَعَفُوٌّ غَفُوْرٌ ﴿٢﴾ |
| ناروا خبره او دروغ او یقیناً الله خامخا معافی کونکے، بخنه کونکے دے۔ |

**تفسیر** : اُوس قانون د ظهار بیانیږی، الله تعالیٰ فرمائی چه کوم خلق د خهٔ خفگان په وجه خپلو ښځو ته وائی چه تاسو په مونږ باندے زمونږ د میندو د شاگانو پشان شوئ، یعنی زمونږ د میندو په شان په مونږ حرامے شوئ، نو داسے وئیلو سره د دوئ دغه ښځے په همیشه حراموالی کښې د دوئ د میندو غوندے نهٔ جوړیږی، میندے خو هغه وی چه دوئ ئے زیږولی دی، دے وجے نه په حراموالی کښې د دوئ ښځے د دوئ د میندو پشان نهٔ جوړیږی۔

## د ظهار معنیٰ او احکام

د ظهار معنیٰ ده، خپله ښځه د مور د شا سره مشابه کول لکه عربو به داسے الفاظ وئیل: [اَنْتِ عَلَيَّ كَظَهْرِ اُمِّيْ] تهٔ په ما باندے زما د مور د شا په شان ئے۔ یعنی لکه څنگه چه زما د مور شا په ما حرامه ده، نو دغه شان تهٔ هم په ما حرامه ئے۔ دا په جاهلیت کښې ابدی طلاق وو۔

او ظهار په اصل کښې د ظهر نه دے عُلُو (پورته والی) ته وئیلے شی۔ یا ظهر شا ته وئیلے شی۔ او دا کنایه وی د سورلئ نه او د سورلئ نه مراد جماع کول دی۔

پدے کښې د اهل علمو اختلاف دے چه آیا ظهار صرف پدے یو لفظ واقع کیږی او که نور الفاظ هم ددے معنیٰ ورکوی؟ مثلاً د لور یا خور یا نورو محرماتو سره تشبیه ورکړی؟ نو امام ابو حنیفةؒ او مالکؒ او یو جماعت د علماؤ وئیلی دی چه دا هم ظهار کښې داخلیږی، او دا قول د حسنؒ او نخعیؒ او زهریؒ او اوزاعیؒ او ثوریؒ دے،

Scanned by CamScanner

او دویم قول د محققینو دے چه دا ظهار نهٔ دے بلکه ظهار د مور سره تشبیه ورکولو پورے خاص دے، او دا قول د امام قتادۃ او شعبیؒ نه نقل دے۔
او همدا قول راجح دے۔ ځکه چه په احادیثو کښې لفظ د ظهر او د اُمّ ذکر کیږی. او قرآن کریم کښې هم (اُمَّهَاتِهِمْ) لفظ ذکر دے۔
او دغه شان دویم اختلاف هم دے چه خپله ښځه د مور د سر یا د لاس یا د خپو سره یا د نورو اندامو سره مشابه کړی، آیا دا به ظهار وی او که نهٔ؟ نو بعض اهل علم (کوم چه قیاسونه کوی) هغوی وائی چه (كُلُّ عُضْوٍ لَا يَحِلُّ لَهُ النَّظَرُ يَقَعُ بِهِ الظِّهَارُ)
هر هغه اندام چه هغے ته د سړی دپاره کتل جائز نهٔ وی نو د هغے سره تشبیه ورکولو سره به ظهار واقع کیږی لکه خیټه، سینه، فخذ (ورون)، وغیره۔
او که داسے اندام ذکر کړی چه هغے ته کتل جائز وی لکه اَنْتِ عَلَيَّ كَيَدِ اُمِّيْ، كَرِجْلِ اُمِّيْ۔ تهٔ په ما باندے زما د مور د لاس یا د خپے په شان ئے۔ نو دا به ظهار نهٔ وی۔
او بعض اهل علمو وئیلی دی چه پدے ټولو صورتونو کښې که د ظهار نیت ئے وی نو ظهار به واقع کیږی او کفاره به ورکوی کله چه رجوع کوی۔
او پدے کښې بعض علماؤ خو لا پردئ ښځے سره مشابهت ورکول یا د پلار سره مشابهت ورکول هم په ظهار کښې داخل کړیدی۔
دے مخکنو اهل علمو د ﴿مُنْكَرًا مِّنَ الْقَوْلِ وَزُوْرًا﴾ الفاظو نه استدلال کړیدے چه که یو تن د خپلے ښځے تشبیه د مور د شا یا خیټے یا د سینے یا د پردئ ښځے سره ورکړی نو دا ټول منکره وینا ده او دروغ دی، نو نورو ځیزونو سره تشبیه ورکول قیاس دی په ظهر باندے په علت د منکر کیدو او دروغ کیدو کښې۔
لیکن حقه خبره هغه ده چه مونږ مخکښې ذکر کړه چه ظهار صرف د مور او صرف د ظهر (شا) سره تشبیه ورکولو پورے خاص دے،
او ددے قیاس نه جواب دا دے چه هر قول منکر او زور خو سبب د کفارے نهٔ وی۔ لکه یوتن چا ته کنځل وکړی، یا نور دروغ ووائی نو پدے کښې خو کفاره نشته۔ احکام د ظهار پرے نهٔ جاری کیږی۔ احکام په هغه شی جاری کیږی چه الله او رسول وئیلی وی او ددے نورو صورتونو په باره کښې رسول الله ﷺ کفاره نهٔ ده وئیلے او کفاره عبادت دے او عبادت په قیاسونو نهٔ ثابتیږی۔

Scanned by CamScanner

البته که د مور یا د خور یا د لور د عورت یا سینے، یا پتون سره تشبیه ورکړی نو پدے کښې نیت لره اعتبار دے که ددهٔ نیت د تحریم وو نو روستو د سورة التحریم نه معلومیږی چه د حلال څیز په حرامولو باندے قسم لازمیږی نو دا شخص به هم د قسم کفاره ورکړی، ځکه چه تحریم د حلال قسم دے۔
او که ستا ادب غرض وو چه ته ما ته داسے ګرانه او محترمه ئے لکه د مور په شان یا د مور د خپو یا لاسونو یا د سینے په شان۔ بیا دربانده هیڅ نشته، او که ستا په دغه الفاظو سره اراده د ظهار وی، نو په دغه الفاظو سره ظهار نهٔ واقع کیږی بلکه د قسم کفاره به ورکړے۔
نو حکم آسان شو چه ګناه دِے کړے، توبه وباسه او کفاره د قسم ورکړه۔ او چه د مور د شا سره ئے مشابه کړی نو بیا به شرعی ظهار وی کوم چه پدے آیتونو کښې ذکر دی۔
(فتح الباری وابن کثیر وفتح البیان)
وَإِنَّهُمْ لَيَقُولُونَ مُنكَرًا مِّنَ الْقَوْلِ وَزُورًا : اُوس الله د دوئ په دے خبره رد کوی فرمائی چه داسے وینا کول ډیره زیاته خرابه/ ناکاره / او نا جائزه خبره ده چه عقلمند خلق ئے نهٔ برداشت کوی، او شریف خلق په خپلو ژبو داسے خبرے نهٔ راوړی۔
او ددے حکم ئے بیان کړو، فرمائی چه ظِهار یو باطل کار دے، دروغ دی چه ددے هیڅ حقیقت نشته۔
وَإِنَّ اللّٰهَ لَعَفُوٌّ غَفُورٌ: اُوس که د یو تن د خُولے نه داسے خبره راوځی او بیا پرے خپیمانه او توبه ګار وی نو څه به کوی؟ نو الله وفرمایل : چه الله به د دوئ دا ګناه معاف کړی ځکه هغه ډیر زیات معاف کونکے، او بخښنه کونکے دے۔
او پدے کښې اِشاره ده چه د ظهار دوه علاجونه دی، یو رښتینی توبه ویستل، او بله کفاره ورکول او د کفارے معنیٰ هم ده، د ګناه رژول او ختمول۔

Scanned by CamScanner

| |
|---|
| وَالَّذِيْنَ يُظَاهِرُوْنَ مِنْ نِّسَآئِهِمْ ثُمَّ يَعُوْدُوْنَ لِمَا |
| او هغه کسان چه ظهار کوی د بیبیانو خپلو نه بیا واپس کیږی ماتولو د هغې خبرې |
| قَالُوْا فَتَحْرِيْرُ رَقَبَةٍ مِّنْ قَبْلِ اَنْ يَّتَمَاسَّا |
| ته چه وئیلې ده نو آزادول د مرئی دی مخکښ ددې نه چه یو بل سره ملاؤ شی |
| ذٰلِكُمْ تُوْعَظُوْنَ بِهٖ ؕ وَاللّٰهُ بِمَا تَعْمَلُوْنَ خَبِيْرٌ ﴿۳﴾ |
| دا وعظ کیدې شی تاسو ته پدې سره، او الله په هغه عملونو چه تاسو ئې کوئ خبردار |
| فَمَنْ لَّمْ يَجِدْ فَصِيَامُ شَهْرَيْنِ مُتَتَابِعَيْنِ |
| دې۔ پس چا چه نۀ مونده (مرئې) نو روژې نیول دی د دووه میاشتو پرله پسې |
| مِنْ قَبْلِ اَنْ يَّتَمَاسَّا فَمَنْ لَّمْ يَسْتَطِعْ فَاِطْعَامُ |
| مخکښ ددې نه چه یو ځائې شی دواړه نو څوک چه طاقت نۀ لری نو طعام ورکول |
| سِتِّيْنَ مِسْكِيْنًا ؕ ذٰلِكَ لِتُؤْمِنُوْا بِاللّٰهِ وَرَسُوْلِهٖ |
| دی شپیتو مسکینانو ته دا ددې دپاره چه ایمان راوړئ تاسو په الله او په رسول د هغهٔ |
| وَتِلْكَ حُدُوْدُ اللّٰهِ ؕ وَلِلْكَافِرِيْنَ عَذَابٌ اَلِيْمٌ ﴿۴﴾ |
| او دا پولې د الله تعالیٰ دی، او دپاره د کافرانو عذاب دردناک دې۔ |

**تفسیر**: په دې آیتِ کریمه کښې هغه خلقو دپاره حکم بیان شوې چه هغوئ د ظِهار کولو نه پس په خپل کار خپیمانه وی، او جِماع کولو سره هغه دوباره د خپلو ځانونو دپاره حلال جوړول غواړی۔ نو دوی به کفاره ورکوی، یعنی په دوئ باندې د جماع کولو نه مخکښې واجب دی چه یو مسلمان غلام یا وینزه آزاده کړی، اوکه چرې دا نۀ ملاویږی، یائې قیمت زیات وی، نو پرله پسې دوه میاشتې روژې دِې اُونیسی، او که د څهٔ بیمارئ د وجې نه ددې طاقت نۀ لری نو شپیتهٔ مسکینانو له دِې خوراك ورکړی۔

امام احمدؒ، ابوداودؒ، طبرانیؒ او بیهقیؒ د یوسف بن عبد الله بن سلام نه او هغهٔ د خوله بنت ثعلبه نه روایت کړې چه قسم په الله! د سورهٔ المجادله اولنی آیتونه زما او زما د

Scanned by CamScanner

خاوند اَوْس بن صامت په باره کښې نازل شوی دی. دویٔ پوره واقعه بیان کړه او وئیلی ئې دی چه د ﴿قَدْ سَمِعَ اللهُ﴾ نه تر ﴿عَذَابٌ اَلِيْمٌ﴾ پورے څلور آیتونه نازل شوی وو. نو رسول الله ﷺ ماته ووئیل چه زهٔ به اَوْس ته د یو غلام آزادولو حکم وکړم. نو ما ووئیل: اے د الله رسوله! هغه دده طاقت نهٔ لری، نو وے فرمایل: بیا دِے هغه پرله پسے دوه میاشتے روژے اونیسی. نو ما ووئیل:

[وَاللّٰهِ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ إِنَّهُ شَيْخٌ كَبِيْرٌ مَا بِهِ مِنْ صِيَامٍ]

قسم په الله! هغه خو بوډا دے، د روژے نیولو طاقت په هغهٔ کښې چرته دے. نو وے فرمایل:

[فَلْيُطْعِمْ سِتِّيْنَ مِسْكِيْنًا وَسَقًا مِنْ تَمْرٍ]

بیا دِے هغه شپیتو مسکینانو له (یو وسق یعنی شپیتهٔ صاعه) کهجورے خوراك کښې ورکړی، ما ووئیل چه قسم په الله د هغه سره دا هم نشته، رسول الله ﷺ وفرمایل:

(فَاَنَا سَاُعِيْنُهُ بِعِذْقٍ مِنْ تَمْرٍ) زهٔ به ورسره په یوه پچیٔ کجورو مدد وکړم. نو ما ووئیل:

(وَاَنَا يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ سَاُعِيْنُهُ بِوَسَقٍ آخَرَ) زهٔ به هم د هغه سره په بل وسق (شپیته صاعو) سره مدد وکړم. رسول الله ﷺ وفرمایل:

(قَدْ اَصَبْتِ وَاَحْسَنْتِ فَاذْهَبِيْ وَتَصَدَّقِيْ بِهِ عَنْهُ ثُمَّ اسْتَوْصِيْ بِابْنِ عَمِّكِ خَيْرًا قَالَتْ فَفَعَلْتُ)

یقیناً تا ډیر حق او ښائسته کار وکړو، لاړه شه او ددهٔ د طرفنه هغے باندے صدقه وکړه، بیا د خپل تره ځوی سره ښه ژوند تیره وه، هغه وائی: ما همدغسے وکړل.

(احمد ٢٧٣١٩) وسنن ابی داود (٢٢١٤) وهو صحيح لغيره وهذا اسناد ضعيف لجهالة معمر بن عبد الله بن حنظلة وقد صرح ابن اسحاق بالتحديث عند احمد وابن حبان ومع ذلك حسن اسناده الحافظ في الفتح ٤٣٣/٩، وجوده ابن التركمانى فى الجوهر النقى ٣٩١/٧)

**ثُمَّ يَعُوْدُوْنَ لِمَا قَالُوْا:** پدے کښې اهل ظواهرو پدے کښې دا وئیلی دی چه ظهار دیته وائی چه یو تن ښځے ته یو ځل الفاظ استعمال کړی (اَنْتِ عَلَيَّ كَظَهْرِ اُمِّيْ)

او دوباره ئے بیا استعمال کړی. په یو ځل استعمالولو سره ظهار نهٔ واقع کیږی ځکه چه واپس کیدل هغه خبرے ته چه دوی وئیلے ده هغه همدا ده چه مخکنی الفاظ دوباره ووائی او دا د بُکیر بن الاشجّ، ابو العالیه او فراء رحمهم الله رایه هم ده.

نو دوی معنیٰ کوی:

(ثُمَّ يَعُوْدُوْنَ اِلٰى قَوْلِ مَا قَالُوْا) ۔ يعنى بيا راواپس كيږى هغه وينا ته چه دوى مخكښ وئيلے ده۔
ليكن عام علماء د امت، فقهاء او محدثين فرمائى چه كه يو تن يو ځل هم دغه الفاظ استعمال كړى نو دا به شرعاً ظهار وى، اگركه تكرار ئے نهٔ وى كړے۔
او دلته د يَعُوْدُوْنَ لِمَا قَالُوْا نور تفسيرونه دى۔ (١) يو دا چه لِمَا قَالُوْا فِى الْجَاهِلِيَّةِ۔
يعنى هغه خبرے ته راواپس كيږى چه دوى به په جاهليت كښ وئيله۔
لكه مجاهدؒ وائى : عَوْدُهُمْ اِلٰى فِعْلِ الْجَاهِلِيَّةِ۔ يعنى د جاهليت كار ته واپس كيږى يعنى په اسلام كښ ظهارونه كوى چه دا په اسلام كښ حرام كار دے۔ نو هغه به د كفارے په طور تحرير د رقبه كوى۔
(٢) دويم ابن القيمؒ په زاد المعاد كښ غوره كړيدے او دا د فقهاءِ احنافو رائے هم ده چه دلته د عود لِمَا قَالُوْا (يعنى د واپسئ) مقصد : اَلْعَزْمُ عَلَى الْوَطْيِ ده۔ يعنى بيرته ښځے سره د وطى اراده لرى، نو دلته مضاف پټ دے۔
اَىْ يَعُوْدُوْنَ لِنَقْضِ مَا قَالُوْا/ وَلِنَكْثِ مَا قَالُوْا۔
يعنى دوى راواپس كيږى ماتولو د هغه خبرے ته چه دوى كړيده، يعنى خپله خبره بيرته اخلى او په خپل كار خپيمانه كيږى او دوباره هغه ښځه راواپس كوى۔
زجاجؒ وائى : لام اجليه دے، اَىْ ثُمَّ يَعُوْدُوْنَ اِلٰى اِرَادَةِ الْجِمَاعِ مِنْ اَجْلِ مَا قَالُوْا۔
يعنى بيرته راواپس كيږى ارادے د جماع ته د وجه د هغه خبرے نه چه دوى كړيده۔
فراءؒ وائى : لام په معنىٰ د عَنْ دے۔ معنىٰ دا ده : (ثُمَّ يَرْجِعُوْنَ عَمَّا قَالُوْا وَيُرِيْدُوْنَ الْوَطْيَ)۔ يعنى بيا واپس كيږى د هغه خبرے نه چه دوى كړيده او اراده د وطى لرى۔
بعض وائى : ثُمَّ يَعُوْدُوْنَ اِلٰى مَا قَالُوْا بِالتَّدَارُكِ وَالتَّلَافِىْ۔
يعنى بيا واپس كيږى هغه خبرے ته چه كومه ئے كړيده په تدارك او تلافى سره۔ يعنى بيرته تدارك كول غواړى۔ چه ښځه ترے فوت نشى۔ (فتح البيان)
او همدا خبره ظاهر د آيت دے او ښيخى د محاورے مطابق دے۔ لكه خلق وائى خپلے خبرے ته واپس شو يعنى خپله خبره ئے بيرته واخسته۔
فَتَحْرِيْرُ رَقَبَةٍ: اَىْ فَعَلَيْهِ تَحْرِيْرُ يعنى په دهٔ باندے آزادول د رقبے دى، د رقبے نه مراد غلام دے۔

Scanned by CamScanner

مِنۡ قَبۡلِ اَنۡ يَّتَمَآسَّا : يعني د ښځې سره د نزديکت نه مخکښې به کفاره ورکړي بيا ښځې سره ملاويدے شي، که بالفرض يو تن د ښځې سره د کفارے د ورکولو نه مخکښې نزديکت وکړو نو ګناهګار دے، ليکن ډبله کفاره به پرے نۀ راځي۔

لکه يو صحابي وويل اے د الله رسوله ! ما د خپلې ښځې سره ظهار کړے وو بيا ما په رمضان کښې په شپه کښې د کفارے ورکولو نه مخکښې مباشرت وکړو نو رسول الله ﷺ ورته وفرمايل :

[فَلَا تَقۡرَبۡهَا حَتّٰى تَفۡعَلَ مَا اَمَرَكَ اللّٰهُ]

اُوس آينده کښې بيا مۀ نزدے کيږه تردے چه تۀ عمل وکړے په هغه حکم د الله تعالیٰ چه تا ته ئے کړيده (يعني کفاره ورکول)

(الترمذي في الطلاق باب ۱۹، رقم (۱۱۹۹) والنسائي في الطلاق باب ۳۳) رقم (۳۴۵۷) وغيره۔

نو رسول الله ﷺ پرے دوه کفارے رانۀ وستے۔ يوه کفاره کافي ده۔

ذٰلِكُمۡ تُوۡعَظُوۡنَ : پدے کښې ترغيب دے چه تاسو ته ددے خبرے نصيحت کيږي نو ددے منل په تاسو ضروري دي۔

يا وعظ په معنیٰ د زجر (منع کيدو) سره دے، اَيۡ تُزۡجَرُوۡنَ بِهٖ عَنۡ اِرۡتِکَابِ الظِّهَارِ ۔ يعني دا حکم چه دے تاسو منع کولے شئ پدے سره د ظهار کولو نه۔

**فائده** : د تحرير رقبه سره (فَمَنۡ لَّمۡ يَجِدۡ) او د صيام سره ئے (فَمَنۡ لَّمۡ يَسۡتَطِعۡ) ذکر کړيدے ځکه چه وَجَدَ اکثر د مالي قوت سره ذکر کيږي لکه سورة طلاق (٦) آيت او استطاعت اکثر ذکر کيږي په بدني طاقت کښې۔

شَهۡرَيۡنِ مُتَتَابِعَيۡنِ : يعني پرله پسے دوه مياشتے روژے نيول دي چه په مينځ کښې به روژه نۀ ماتوي، که په غير د عذر نه ئے ماته کړه نو بيرته به د سر نه شروع کوي، او که د عذر د وجه نه وي لکه سفر يا مرض،

نو دے کښې سعيد بن المسيبؒ او حسنؒ، او عطاء بن ابي رباحؒ او عمرو بن دينارؒ او شعبيؒ او شافعيؒ او مالكؒ وائي چه د همدغه ځاى نه به شروع کيږي، او د سر نه به ئے نۀ راګرځوي۔

او امام ابوحنيفةؒ وائي چه بيرته به د سر نه شروع کوي۔ اول قول غوره دے، لَا يُكَلِّفُ اللّٰهُ نَفۡسًا اِلَّا وُسۡعَهَا او ﴿ فَاتَّقُوا اللّٰهَ مَا اسۡتَطَعۡتُمۡ ﴾ پرے دليل دے۔

Scanned by CamScanner

سِتِّيْنَ مِسْكِيْنًا : هر مسکین ته به یو مُد (نیمه کیلو) د غنمو نه یا پوره کیلو د نورو خوراکونو نه ورکړی لکه چه مخکښ ذکر شو۔

**فائده** : د طعام ورکولو سره ئے (مِنْ قَبْلِ اَنْ يَّتَمَاسَّا) ونهٔ وئیل، نو دے نه معلومه شوه چه مطلق به په خپل اطلاق جاری کیږی، که یو تن مسکینانو ته د طعام ورکولو په دوران کښ جماع وکړی نو دوباره طعام ورکول لازم نهٔ دی، بیا ئے دلته دغه لفظ رانهٔ وړو ځکه چه مسکینانو ته طعام ورکول یو امر آنی دے، چه په ډیر لنډ وخت کښ پوره کیږی، د بازار نه به وړه راوړی او مسکینانو ته به ئے ورکړی، ټول په یو کینتیه کښ پوره کیږی۔ او دومره وخت کښ د جماع ضرورت روستو کولے شی۔

ذٰلِكَ لِتُؤْمِنُوْا بِاللهِ وَرَسُوْلِهٖ :دا د کفارے فائده ذکر کوی چه پدے سره ایمان زیاتیږی۔یعنی د ظِهار حکم ځکه بیان شو چه تاسو په الله او د هغهٔ په رسول ایمان راوړئ، او د هغهٔ په حکم عمل وکړئ، دغه مخکنی اعمالو ته ئے ایمان ووئیلو ددے نه معلومه شوه چه ایمان د عقیدے، قول او عمل درے وارو د مجموعے نوم دے۔

ذٰلِكَ: ۱ - اشاره ده اَدَاءُ الكفارات ته، پدے سره ایمان ځکه زیاتیږی چه د انسان به ښځے ته ښه ضرورت وی لیکن کله چه هغه دوه میاشتے روژے نهٔ وی پوره کړی نو ښځے ته به نهٔ نزدے کیږی، دا ولے؟ ځکه چه الله تعالیٰ او د هغهٔ رسول حق دی، د هغوی داسے وینا ده نو زهٔ پرے عمل کوم، اگرکه نور څوك او د الله رسول به ئے نهٔ وینی۔

۲ - ابن عطیۃ وائی : ذلك اشاره ده رخصت ورکولو ته په کفاراتو کښ، یعنی دا ایمان به ډیرے زیات شی چه الله څومره احسان کونکے دے چه مونږ ته ئے یوه کفاره مقرر نکړه بلکه رخصتونه ئے پکښ راکړل، نو د الله او د هغهٔ د رسول سره به ډیرے مینه پیدا شی۔

اول مطلب ظاهر دے۔

وَتِلْكَ حُدُوْدُ اللهِ : حد هغه پولے ته وائی چه د هغے نه زیاتے کمے کول منع وی۔ او په احکامو د الله تعالیٰ کښ هم زیاتے کول په ابتداع سره، او کمے کول په فسق سره حرام دی۔

وَلِلْكَافِرِيْنَ : څوك چه د الله تعالیٰ د حدودو نه انکار کوی نو هغه حقیقی کافر دے، او چه څوك انکار نهٔ کوی لیکن په هغے باندے عمل نکوی نو هغه حکمی کافر دے، نو پدے لفظ کښ دوارو مرتبو ته اشاره ده۔

Scanned by CamScanner

| |
|---|
| إِنَّ الَّذِيْنَ يُحَادُّوْنَ اللهَ وَرَسُوْلَهُ كُبِتُوْا كَمَا |
| يقيناً هغه کسان چه مخالفت کوی د الله او د رسول د هغهٔ نه ذليله شو لکه څنګه |
| كُبِتَ الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِهِمْ وَقَدْ |
| چه ذليل کړے شويدی هغه کسان چه مخکښ د دوی نه دی او يقيناً |
| أَنْزَلْنَا آيَاتٍ بَيِّنَاتٍ وَلِلْكَافِرِيْنَ عَذَابٌ مُّهِيْنٌ ﴿٥﴾ |
| رالیږلی دی مونږ آیتونه ښکاره او د کافرانو دپاره عذاب دے ذليله کونکے۔ |
| يَوْمَ يَبْعَثُهُمُ اللهُ جَمِيْعًا فَيُنَبِّئُهُمْ |
| په کومه ورځ چه راپورته به کړی دوی لره الله تعالیٰ تول نو خبر به ورکړی دوی ته |
| بِمَا عَمِلُوْا أَحْصَاهُ اللهُ وَنَسُوْهُ |
| د هغه عملونو چه دوی کړيدی، راګير کړيدی دا الله تعالیٰ او دوی هير کړيدی |
| وَاللهُ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ شَهِيْدٌ ﴿٦﴾ |
| او الله په هر شی باندے حاضر ناظر دے۔ |

**تفسير**:إِنَّ الَّذِيْنَ: دا آيت د خندق د غزا نه مخکښ نازل شوے وو، او په دے کښ الله خپل رسول ﷺ له زيرے ورکړے چه د قريشو خلق که هر څومره فوج واخلی، او په مدينه باندے د حملے دپاره راشی، دوئ به په هر حال کښ ماتے خوری، او الله تعالیٰ به دوئ خوار او ذليله کوی۔ دے وجے نه الله تعالیٰ همدے قريشی کافرانو ته اشاره کوی فرمائی چه کوم خلق د الله او د هغهٔ د رسول مخالفت کوی، او دوئ سره دشمنی کوی، هغه به ذليل او رسوا کړے شی،

د هغه تير شوو کافرو قومونو غونته چه هغوئ د الله د انبياؤ سره دشمنی وکړه۔ څکه چه مونږ خو قرآن کريم کښ داسے واضح او په ډاګه آيتونه نازل کړی دی کوم چه زمونږ د رسول په نبوت او د هغهٔ د دعوت په رشتين والی دلالت کوی ددے باوجود چه کوم خلق ايمان نهٔ راوړی، او د الله حدود پائيمال کوی، مونږ به دوئ له په دنيا کښ ذليله او

Scanned by CamScanner

رسوا کړو، او په آخرت کښ به داسے کافرانو له دردناك عذاب وی۔
صاحب د محاسن التنزیل (قاسمیؒ) او علامه آلوسیؒ لیکی چه بعضِ مفسرینو (لکه بیضاویؒ) د ﴿یُحَادُّوْنَ اللهَ وَرَسُوْلَهٗ﴾ تفسیر دا بیان کړے چه
[اَلَّذِیْنَ یَضَعُوْنَ اَوْ یَخْتَارُوْنَ حُدُوْدًا غَیْرَ حُدُوْدِهِمَا]
(کوم خلق چه د الله او د هغهٔ د رسول د بیان کړو قوانینو او حدودو نه سویٔ نور قوانین جوړوی یا هغه خوښوی)۔ انتهیٰ۔
دے نه پس ئے لیکلی چه په دے کښ د هغه بادشاهانو او خرابو مشرانو دپاره سخته دهمکی ده چه هغویٔ د اسلامی شریعت خلاف قوانین جوړوی۔ انتهیٰ۔
(محاسن التاویل للقاسمیؒ وروح المعانی)
کُبِتُوْا: کبت ذلت، او د جماعت تس نس کیدو ته او شرمیدو ته وئیلے شی۔
ابوعبیدهؒ او اخفشؒ وائی: هلاکت ته۔ سُدیؒ وائی: لعنت ته وائی۔ دارنګه پرمخے غورزیدو ته وائی۔
کَمَا کُبِتَ الَّذِیْنَ: ددے نه مراد پخوانی امتونه دی، او هغه یهودیان دی چه د هغوی ذلت په سورة البقره او سورة نساء کښ تیر شویدے۔
وَقَدْ اَنْزَلْنَا آیَاتٍ بَیِّنَاتٍ: ۱- یعنی مونږ ښکاره آیتونه رالیږلی دی نو د هغے نه تاسو فائده واخلئ او د پخوانو هلاکتونه او ذلتونه ترے معلوم کړئ۔
۲- دویم مونږ ښکاره آیتونه او احکام رالیږلی دی، نو ددے مخالفت څنګه کوئ، مخالفت خو خلق هله کوی چه حکم واضح نهٔ وی، او دلته حکم واضح شویدے، نو د مخالفت او محادة هیڅ وجه نشته۔
مُّهِیْنٌ: څوك چه مخالفت کوی نو هغه ځان عزتمند ګنړی نو ځکه ورته الله تعالیٰ ذلیله کونکے عذاب ورکوی۔
**فائده**: دغه شان خبره روستو (۲۰) آیت کښ هم راغلے ده ﴿اِنَّ الَّذِیْنَ یُحَادُّوْنَ اللهَ وَرَسُوْلَهٗ اُولٰٓئِكَ فِی الْاَذَلِّیْنَ﴾ او روستو سورة المنافقون کښ دی:
﴿وَلِلّٰهِ الْعِزَّةُ وَلِرَسُوْلِهٖ وَلِلْمُؤْمِنِیْنَ﴾ او حدیث د بخاری کتاب الجزیه باب ما قیل فی الرماح (۸۸) کښ دی:
[وَجُعِلَ الذِّلَّةُ وَالصَّغَارُ عَلٰی مَنْ خَالَفَ اَمْرِیْ] څوك چه زما د امر خلاف کوی نو ذلت او

Scanned by CamScanner

سپکاوے په هغه باندے کیخودے شویدے۔
نو ددے نه معلومه شوه چه هر هغه څوك (منافق وی، که مسلمان، بزرگ وی او که غیر بزرگ) چه د نبی کریم ﷺ د طریقے مخالفت کوی نو هغه به خامخا ذلیله کیږی اګرکه ځان ته به عزتمند وائی، سنت طریقے چه څوك په یو مسجد او علاقه کښې بندول غواړی هغه ته به ځان عزتمن ښکاری لیکن لوی ذلیله دے، الله به ئے خلقو کښې په ناشنا شرمونو باندے شرموی۔
او په سنت باندے عمل کولو کښې سو چه عزت دے، تهٔ به یو ځای کښې سنت طریقه پریدے دے دپاره چه زما عزت پاتے شی، او خلقو ته سپك ښکاره نشم، نو الله تعالیٰ به دِے ذلیله او سپك کړی۔ په سنت کښې عزت دے۔
**یَوْمَ یَبْعَثُهُمُ اللّٰهُ**: ددے آیت تعلق د پورتنی آیت سره دے، او معنیٰ داده چهٔ د الله او د هغهٔ د رسول د مقرر کړو حدودو نه تجاوز کونکی خلق به الله په دنیا کښې رسوا کوی،
او په آخرت کښې به دوئ له دردناك عذاب وی، کله چه الله تعالیٰ دا ټول راجمع کړی، او دوئ له د دوئ د کړو خبر ورکړی۔ دوئ په دنیا کښې دا ګناهونه کړی، او هیر کړی ئے دی، لیکن الله نهٔ دی هیر کړی، هغهٔ خو یوه یوه ذره لیکلے ساتلے ده، هیڅ یو خبر د هغهٔ د علم د احاطے نه خارج نهٔ دے۔
**فائده** : الله تعالیٰ په کافرانو رد کوی دپاره د یره ولو د مؤمنانو چه تاسو د هغوی مشابهت مهٔ کوئ۔ لکه دا طریقه په دے راتلونکو سورتونو کښې هم ده۔
**أَحْصَاهُ اللّٰهُ** : دا دلیل دے د (یُنَبِّئُهُمْ) یعنی خبر به څکه ورکوی چه الله دا په خپل علم کښې راګیر کړیدی۔ اِحصاء : په معنیٰ د شماره کښې راګیرولو دے چه یو هم ترینه پاتے نشی۔

Scanned by CamScanner

| |
|---|
| أَلَمْ تَرَ أَنَّ اللہَ يَعْلَمُ مَا فِي السَّمَاوَاتِ وَمَا |
| آیا نۀ گورے تۀ یقیناً الله تعالیٰ پوهیږي په هغه څه چه په آسمانونو او هغه څه |
| فِي الْأَرْضِ مَا يَكُونُ مِنْ نَّجْوَى ثَلَاثَةٍ إِلَّا هُوَ |
| چه په زمکه کښې دي، نۀ کیږي هیڅ جرګه د درېے کسانو مګر الله تعالیٰ |
| رَابِعُهُمْ وَلَا خَمْسَةٍ إِلَّا هُوَ سَادِسُهُمْ وَلَا أَدْنَى مِنْ ذَٰلِكَ |
| څلورم د هغوی دے، او نۀ د پنځه کسانو مګر هغه ئے شپږم دے او نۀ کم ددے نه |
| وَلَا أَكْثَرَ إِلَّا هُوَ مَعَهُمْ أَيْنَ مَا كَانُوا ثُمَّ يُنَبِّئُهُمْ |
| او نۀ زیات مګر هغه د دوی سره وی هرځائے چه وی دوی، بیا به خبر ورکړی دوی ته |
| بِمَا عَمِلُوا يَوْمَ الْقِيَامَةِ ط إِنَّ اللہَ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيمٌ ﴿۷﴾ |
| په هغه عملونو چه دوی کړیدی په ورځ د قیامت، یقیناً الله تعالیٰ په هر شی باندے پوهه دے۔ |

**تفسیر** : ربط : دا متعلق دے د (اَحْصَاهُ اللہُ) سره، او د هغے تشریح او تفصیل دے۔ او پدے کښې اشاره ده چه په جرګو کولو کښې د الله نه یره وکړئ هغه ستاسو په هر حال علم لرونکے دے۔ او پدے کښې بیان د علم د الله تعالیٰ دے، او دے ته تهدید بالعلم وائی۔ (د همکی ورکول په علم سره) یعنی د بدو اعمالو نه منع کول په علم د الله تعالیٰ سره۔

یعنی د الله د علم نه ویریږه، بد اعمال مۀ کوه ځکه چه الله په تا باندے په هر ځای کښې پوهه دے، لکه منافقان به جرګه جرګه کیدل، د یهودو سره به کیناستل، د رسول الله ﷺ بدی به ئے بیانوله، او کله د مؤمنانو، په مدینه کښې اسلامی حکومت جوړ شو نو دوی به پکښې ورانے کولو،

بیا دا د هرے زمانے سره لګیږی څوک چه د چا سره په ګناه کښې جرګے کوی نو الله به ورسره ګوری، او که په نیکئ راجمع وی نو الله به اجر ورکوی۔ نو د الله په علم بیانولو کښې زیرے او یره دواړه پراته وی۔

الله خپل نبی ته فرمائی : اے زما رسوله ! آیا تۀ نۀ پیژنے چه الله تعالیٰ د آسمانونو او

Scanned by CamScanner

زمکے هر یو وړوکے او غټ څیز پیژنی، هیڅ یو شے د هغهٔ نه پټ نهٔ دے. د هغهٔ د علم د راګیرولو خو دا حال دے چه که درے کسان خپلو کښې پټے خبرے کوی، نو دوئ سره څلورم هغه وی، او که پټے خبرے کونکی پنځه وی، نو شپږم ئے هغه وی، برابره ده چه هغه خلق ددے نه کم وی یا زیات، او چرته چه هم وی، هغه په هر حال کښې د دوئ سره وی، او د دوئ په تمامو پټو خبرو باندے خبریږی.

الله تعالیٰ د سورة التوبه په (۷۸) آیت کښې فرمایلی دی:

﴿ أَلَمْ يَعْلَمُوْٓا أَنَّ اللهَ يَعْلَمُ سِرَّهُمْ وَنَجْوَاهُمْ وَأَنَّ اللهَ عَلَّامُ الْغُيُوْبِ ﴾

(آیا دوئ نهٔ پوهیږی چه الله ته د دوئ د زړونو رازونه او د دوئ د پټو جرګو هر څهٔ پته ده، او الله د غیبو خبرو نه خبردار دے).

مَا يَكُوْنُ مِنْ نَّجْوَى: مَا نافیه ده، يَكُوْنُ کښې كَانَ تامه دے په معنیٰ د وجود سره.

مِنْ نَّجْوَى: کښې مِنْ د تعمیم د نفی او تاکید دپاره دے.

۱– نجویٰ مصدر دے، جرګے کولو ته وائی. او مضاف دے ثَلَاثَةٍ ته (یعنی جرګه د درے کسانو) یا مضاف پټ دے (أَهْلِ نَجْوٰى – یا ذَوِىْ نَجْوٰى) جرګے والا. او ثَلَاثَةٍ ئے نعت (صفت) دے. (یعنی نهٔ وی جرګه کونکی یا خاوندان د جرګے درے کسان)

یا نجویٰ کله په معنیٰ د جرګه مارانو سره استعمالیږی، نو بیا مضاف راویستو ته ضرورت نشته، او ثَلَاثَةٍ به صفت د نَجْوٰى وی. یعنی نهٔ موجودیږی جرګه ماران درے کسان.

د (ثلاثة او خمسة) تخصیص ئے ددے وجه نه وکړو چه اکثر وخت جرګه کښې دوه طرفونه وی او یو پکښې فیصله کونکے پکار وی، نو د هغے ادنیٰ عدد درے شول او وریسے پنځه شول. (احسن الکلام)

بله وجه دا ده چه دا آیت چه د کومو منافقانو په باره کښې نازل وو نو هغوی په یو ځای کښې درے کسان وو او په بل ځای کښې پنځه وو. یا پدے وجه چه تاك عدد د جفت نه بهتر دے ځکه چه الله وِتر دے، وتر (تاك) خوښوی.

نو پدے کښې تنبیه ده چه د اِلٰهی امورو رعایت په ټولو څیزونو کښې پکار دے.

فراءؒ وائی: دلته عدد مقصود نهٔ دے ځکه چه الله تعالیٰ د هر عدد سره وی کم وی او که زیات، هر پټ او ښکاره باندے پوهه دے. (فتح البیان)

Scanned by CamScanner

هُوَ مَعَهُمْ أَيْنَ مَا كَانُوا:

## د معیت تفصیل

د اهل سنتو په نیز دلته معیت په اعتبار د علم او قدرت سره مراد دے، او څوك چه دا تفسیر کوی چه الله په عرش هم دے، او په هر ځای کښ هم دے، نو دا بدعی تفسیر دے او ددے ډیر وجوه دی (۱) اوله وجه دا ده چه د معیت همدا ظاهره معنیٰ ده، ظاهر دے ته وائی چه د سیاق او سباق نه معلومیږی، لهذا دے ته به تاویل نهٔ وئیلے کیږی. لکه وګوره چه قرآن کریم کښ کوم ځای د الله معیت راغلے دے، نو هلته به مخکښ روستو ضرور علم ذکر وی.

امام احمدؒ ته چا ووئیل چه د معیت معنیٰ به دا وی چه الله په اعتبار د ذات سره مونږ سره دے، او دا آیت ئے ورته ولوستو. نو هغه ورته فرمایل: (اِقْرَأْ مَا قَبْلَهَا) ددے آیت اول سر ووایه. نو هغه (اَلَمْ تَرَ اَنَّ اللهَ يَعْلَمُ) ولوستو، بیا ئے ورته ووئیل:
(اِقْرَأْ مَا بَعْدَهَا) اُوس د آیت آخر ولوله نو هغه (اِنَّ اللهَ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيْمٌ) ولوستو، نو ورته ئے ووئیل چه اُوس تا ته خپله د معیت معنیٰ واضحه شوه چه په اعتبار د علم سره د هغوی سره دے. نو دا ظاهر القرآن دے.

(۲) دویمه وجه: حدیث کښ دی: (اِنَّ بِالْمَدِيْنَةِ اَقْوَامًا مَا سِرْتُمْ مَسِيْرًا وَلَا قَطَعْتُمْ وَادِيًا اِلَّا كَانُوْا مَعَكُمْ) په مدینه کښ څه خلق دی چه تاسو هیڅ مزل نهٔ کوئ او نهٔ یوه کنده قطع کوئ مګر هغوی ستاسو سره دی). صحابه کرامؓ تپوس وکړو چه هغوی په مدینه کښ دی، او زمونږ سره دی؟، نو وے فرمایل: (اِلَّا شَرَكُوْكُمْ فِي الْاَجْرِ) یعنی هغوی تاسو سره شریك دی په اجر کښ. یعنی د معیت معنیٰ دا ده چه تاسو سره په اجر کښ شریك دی، (حَبَسَهُمُ الْمَرَضُ) هغوی د بیمارئ د وجه نه پاتے شویدی. (بخاری: ۴۴۲۳)
نو دلته رسول الله ﷺ معیت د شراکت فی الاجر دپاره استعمال کړو، لهذا معیت کښ دا لازمه نهٔ ده چه د هغه ذات به دلته حاضر وی.

(۳) دریمه وجه: د ټولو سلفو دا تفسیر دے چه هغوی د معیت نه مراد د علم او قدرت او بصر معیت دے، او هیڅ یو سلفی عالِم د معیت نه معیت ذاتی نهٔ دے مراد کړے او سلف (صحابه کرامؓ او تابعین وغیره) د الله په کتاب ښهٔ پو هیدل، د هغوی فهم لره به اعتبار وی، کله چه هغوی په یوه خبره اتفاق وکړی نو د هغے خبرے نه اوړیدل به

Scanned by CamScanner

ګمراهي تصور کیږي، دا اجماع د امت حسابیږي. لکه ددې په باره کښې کتب التفسیر او اقوال د سلفو په کتابونو د عقیده او اسماء او صفاتو کښې وګوره.

(٤) وجه: محاوره کښې هم دا قانون دې چه هغوی معیت په همدې معنیٰ استعمالوي، لکه یو تن په کراچۍ کښې دې او ته ورته د پېښور نه خط ولیږې چه د دین کار کوه (اَنَا مَعَكَ) زهٔ تا سره یم. نو دلته مطلب دا وي چه (اَنَا مَعَكَ بِالنُّصْرَةِ وَالْمَحَبَّةِ وَالدُّعَاءِ) زهٔ ستا ملګرې یم په مدد کولو او محبت کولو او دعاء کولو کښې. نو دا عقیده غلطه ده چه څوك وائي چه الله تعالیٰ په اعتبار د ذات سره په هر ځای کښې دې.

(٥) دا خبره د عقل هم خلاف ده او عقلي دلیل چه کله د شریعت سره برابر وي دا هم دلیل دې، الله فرمائي: (لَعَلَّكُمْ تَعْقِلُوْنَ) عقل وکړئ. په قیاس او دلیل عقلي کښې فرق دې.

عقلي دلیل دا دې چه الله تعالیٰ چه کائنات پیدا کول، نو آیا د ځان دپاسه او که د لاندې او که ددې په مینځ کښې ننوتې دې (والعیاذ بالله) اول او دریم صورت خو نشته نو بس معلومه شوه چه الله تعالیٰ د کائناتو دپاسه دې.

(٦) بله وجه دا ده چه کائنات د الله په نسبت انتهائي واړه دي، او تول د الله په لاس کښې دي، نو په داسې وړوکې مخلوق کښې د الله ذات منل ممکن نهٔ دي او د هغه د شان بې ادبي ده. او د عقل هم خلاف ده.

حافظ ابن کثیرؒ لیکي: د اکثرو خلقو په دې باندې اجماع ده چه په دې آیت کښې د ((الله د بندګانو سره)) د کیدو نه مراد د ځپل علم په ذریعه سره دوئ سره کیدل دي.

په همدې باندې بس نهٔ ده، بلکه هغه د خپل آوریدو په قوت او د خپلو لیدو په ذریعه هم د خپلو بندګانو نه ګیره اچولې ده، یعني هغه د دوئ نه پوره طور سره خبردار دې، هیڅ یوه خبره ددهٔ نه پټه نهٔ ده.

نو د بندګانو معیت او د الله تعالیٰ معیت ترمینځ ډیر فرق دې. لکه څنګه چه د الله تعالیٰ د استواء او علو علی العرش او د بندګانو د علو او استواء ترمینځ فرق دې.

Scanned by CamScanner

| |
|---|
| اَلَمْ تَرَ اِلَى الَّذِيْنَ نُهُوْا عَنِ النَّجْوٰى ثُمَّ يَعُوْدُوْنَ |
| آیا نهٔ گورې ته هغه کسانو ته چه منع کړې شویدی د جرګو نه بیا واپس کیږی |
| لِمَا نُهُوْا عَنْهُ وَيَتَنَاجَوْنَ بِالْاِثْمِ وَالْعُدْوَانِ |
| هغه څهٔ ته چه منع کړې شویدی دوی د هغې نه او جرګې کوی په ګناه او په زیاتی |
| وَمَعْصِيَتِ الرَّسُوْلِ وَاِذَا جَآءُوْكَ حَيَّوْكَ |
| (ظلم) او په نافرمانئ (خلاف) د رسول سره او کله چه راشی دوی تا ته سلام اچوی |
| بِمَا لَمْ يُحَيِّكَ بِهِ اللّٰهُ وَيَقُوْلُوْنَ |
| په تا باندې په هغه طریقه چه سلام نهٔ دې اچولې تا ته په هغې سره الله او وائی دوی |
| فِيْٓ اَنْفُسِهِمْ لَوْلَا يُعَذِّبُنَا اللّٰهُ بِمَا نَقُوْلُ |
| په زړونو خپلو کښې ولې عذاب نهٔ راکوی مونږ ته په هغه څهٔ چه مونږه ئې وایو، |
| حَسْبُهُمْ جَهَنَّمُ يَصْلَوْنَهَا فَبِئْسَ الْمَصِيْرُ ﴿٨﴾ |
| کافی دې دوی لره جهنم داخلیږی به هغې ته نو بد ځائے د ورګرځیدو دې۔ |

**تفسیر** : پدې آیت کښې په منافقانو او یهودو دواړو باندې رد دې چه هغوی به فسادونه او ورانی کوله۔ نبی کریم ﷺ امر کړې وو : (اَنْ لَّا يَتَنَاجَوْا دُوْنَ الْمُؤْمِنِيْنَ فَلَمْ يَنْتَهُوْا) چه منافقان به د مؤمنانو نه غیر جرګې نهٔ کوی نو دوی منع نشو۔ خو دا خبره په هغه وخت کښې ده چه کله منافقان جدا ښکاره شوی وی۔

مفسرینو د مجاهدؒ قول نقل کړې چه دا آیت د مدینې د یهودو په باره کښې نازل شوې وو۔ او د ابن زیدؒ وینا ده چه ځینو منافقانو به نبی کریم ﷺ سره داسې پټې خبرې کولې چه مومنان به اوبریدل چه شاید د څهٔ جنګ خبره کیږی، یا څهٔ مصیبت را روان دې۔

(یا به ئې رسول الله ﷺ په ډیرو جرګو او مرکو سره تنګول مقصد وو، یو به ووئیل چه زما خصوصی کار دې، او بیا به هیڅ د کمال خبره نهٔ وه۔ حال دا چه رسول الله ﷺ ته خو د امت ډیر کارونه او ذمه واری وړپه غاړه وو نو الله دوی لره منع کړل چه داسې کار به نهٔ

Scanned by CamScanner

کویٔ او ظاهر دا ده چه دا منع مخکښ په سورة النساء (۱۱٤) آیت کښ تیره شویده ﴿لَا خَیْرَ فِیْ کَثِیْرٍ مِنْ نَّجْوٰاهُمْ﴾ یعنی د درے قسمه جرګونه سویٔ جرګو کښ هیڅ خیر نشته، داسے جرګے به نهٔ کویٔ). لکه اُوس هم دغسے خلق شته چه اهل علم په عذابوی او هغوی تنګوی او خبره به ئے هیڅ نهٔ وی).

لیکن هرکله چه دغه خلق منع نشو نو الله دا آیت نازل کړو چه ددے خلقو په حال خو تعجب پکار دے چه د جرګو نه منع کړے شول لیکن دوی منع نشول دوی ته به الله د جهنم سزا ورکړی۔

په ځینو نورو روایتونو کښ راځی چه کله به مسلمانان د یهودو او منافقانو خواته تیریدل، نو هغویٔ به خپلو کښ پټے خبرے شروع کړے، دے دپاره چه مسلمان دا ګمان اوکړی چه دویٔ د هغهٔ خِلاف څهٔ خبره کوی،

یا د مسلمانانو په لښکر باندے دشمن حمله کړے ده، او هغے ته ئے نقصان رسولے چه د هغے خبر د دویٔ سره دے۔ مسلمانان به دے خبرو سره خوف زده کیدل، او د هغویٔ مقصد به هم دا وو چه د مسلمانانو ترمینځه رعب خور شی۔ نبی کریم ﷺ ته چه کله ددے خبرے احساس وشو نو هغویٔ خلق د پټو خبرو کولو نه منع کړل۔

امام احمدؒ، بخاریؒ او مسلمؒ او نورو محدثینوؒ د ابن مسعود ؓ نه روایت کړے، رسول الله ﷺ وفرمایل : [ اِذَا کُنْتُمْ ثَلَاثَةً فَلَا یَتَنَاجٰی رَجُلَانِ دُوْنَ الْاٰخَرِ] کله چه تاسو درے کسه ویٔ، نو دوه دے جدا کیدو سره پټے خبرے نهٔ کوی، ځکه دا کار دریم انسان غمژن کوی)،

(بخاری : ٦٢٨٨) مسلم (٥٨٢٥)

لیکن یهودیان او منافقان د خپلو حرکتونو نه منع نشول نو الله تعالیٰ په دے آیتِ کریمه کښ د دویٔ نه پرده لرے کړے ده چه دا خلق د الله او د هغهٔ د رسول دشمنان دی، او په خپلو کښ د مسلمانانو په خِلاف د ظلم او زیاتی او د نبی کریم ﷺ د خبرے نهٔ منلو په باره کښ پټے جرګے کوی۔

او د دویٔ باطنی خباثت دے حد ته رسیدلے دے چه کله دویٔ نبی کریم ﷺ خوا ته راشی نو د [اَلسَّلَامُ عَلَیْکُمْ] په ځائے [اَلسَّامُ عَلَیْکُمْ] وائی، یعنی تاله دے مرګ راشی۔

امام احمدؒ او مسلمؒ وغیره د ابن عمر رضی الله عنهما نه روایت کړے چه یهودیانو به نبی کریم ﷺ ته [اَلسَّامُ عَلَیْکُمْ ] وئیلو، د هغویٔ مقصد به هغهٔ ته کنځل کول وو۔ بیا به

Scanned by CamScanner

ئے په خپلو زړونو کښې وئیل چه: ﴿لَوْلَا يُعَذِّبُنَا اللّٰهُ بِمَا نَقُوْلُ﴾ چه څهٔ وایو په دے باندے الله مونږ له عذاب ولے نهٔ راکوی ؟! نو ﴿وَإِذَا جَاءُوْكَ حَيَّوْكَ﴾ الآية نازل شو۔ انتهیٰ۔

او الله تعالیٰ د دوئددے تعجب جواب دا ورکړو چه دا عذاب به دوئ له د قیامت په ورځ ملاویږی، هر کله چه دوئ په جهنم کښې د سوزولو دپاره ورګذار شی، چه دا به ډیره زیاته خرابه استوګنه وی۔

عَنِ النَّجْوٰى: د جرګے نه مراد د ګناه جرګے دی، یا بے ځایه فضول جرګے کول۔

بِالْإِثْمِ وَالْعُدْوَانِ: لکه دروغ، ظلم، چغلی، او عدوان هغه دے چه په هغے کښې په مسلمانانو ظلم او زیاتے وی۔

وَمَعْصِيَتِ الرَّسُوْلِ: یعنی یو بل ته د رسول الله ﷺ په مخالفت باندے وصیت کوی، یا هر هغه ګناه چه د پیغمبر د حق سره تعلق لری لکه د هغهٔ د سنت نه مخالفت کول، د هغه بے ادبی کول، بدعات او رسمونه رواجونه کول۔

ددے وجه نه مؤمن چه هر مجلس کښې کینی نو احتیاط به کوی چه آیا زما پدے مجلس کښې ناسته خو د ګناه نهٔ ده۔ پدے کښې چه دا کومے خبرے کیږی آیا دا د الله او د رسول د حکم مطابق دی او که نهٔ، دے ته تقویٰ وائی چه بنده احتیاطی ژوند تیر کړی۔

حَيَّوْكَ بِمَا لَمْ يُحَيِّكَ بِهِ اللّٰهُ: دا مخکنی غائبانه مرضونه وو اُوس مخامخ مرض د دوئ دا وو چه مخامخ به ئے پرے (اَلسَّامُ عَلَيْكَ) وئیلو۔ او د سَام معنیٰ ده مرګ۔ یعنی په تا دِے مرګ راشی، نو رسول الله ﷺ به دوی ته (وَعَلَيْكُمْ) وئیلو۔ یوه ورځ عائشے رضی الله عنها ددوی په غرض پوهه شوه نو هغے په جواب کښې ووئیل:

(وَعَلَيْكُمُ السَّامُ وَاللَّعْنَةُ وَفِیْ رِوَايَةٍ وَغَضِبَ عَلَيْكُمْ) (بخاری: ٦٤٠١)

نو نبی ﷺ ورته وفرمایل: (عَلَيْكِ بِالرِّفْقِ، اِيَّاكِ وَالْفُحْشَ) نرمئ نه کار واخله او د سختو خبرو نه ځان وساته۔ هغے ووئیل: اے د الله رسوله! تا د دوی خبره وانهٔ وریده، هغه وفرمایل: (اَلَمْ تَسْمَعِیْ مَا قُلْتُ) آیا تا هغه خبره وانهٔ وریده چه ما ورته په جواب کښې ووئیله۔ (یعنی زهٔ خو څه غافل نهٔ یم، ما پوره جواب ورکړو وَعَلَيْكَ- یعنی په تا دِے مرګ راشی)۔ بیائے وفرمایل: (يُسْتَجَابُ لَنَا فِيْهِمْ وَلَا يُسْتَجَابُ لَهُمْ فِيْنَا)

زمونږ دعا (ښیرے) د دوی په باره کښې قبلیږی، او د دوئ ښیرے زمونږ په باره کښې نهٔ قبلیږی۔ (ځکه چه دوئ په باطله دی)۔ (بخاری: ٦٤٠١)

Scanned by CamScanner

بیا رسول الله ﷺ قانون مقرر کړو چه (إِذَا سَلَّمَ عَلَيْكُمْ أَهْلُ الْكِتَابِ فَقُولُوا وَعَلَيْكُمْ، فَإِنَّمَا يَقُولُ أَحَدُهُمُ السَّامُ عَلَيْكَ) کله چه په تاسو اهل کتاب سلام اچوی نو تاسو ورته صرف وَعَلَيْكُمْ وایئ؛ ځکه چه په دوی کښې بعض کسان اَلسَّامُ عَلَيْكَ وائی۔

(الموطأ رقم: ۹۱۲) والبخاری (۶۲۵۸) مسلم (۵۷۸۰)

ددے روایت د مفهوم نه دا معلومیږی چه که یو تن صحیح سلام وا چولو او (اَلسَّامُ عَلَيْكَ) ئے ونهٔ وئیلو نو بیا به صحیح جواب ورکولے شی لکه پدے باندے درے روایتونه راغلی دی۔ البته په هغوی باندے به ابتداءً سلام نشی اچولے۔

وَيَقُولُونَ فِي أَنْفُسِهِمْ : د دوئ مطلب دا وو چه که دا د الله پیغمبر وے نو مونږ ورته بنیرے وکړے او الله مونږ ته څه نهٔ وائی، عذاب نهٔ راکوی، معلومیږی چه دا حق پیغمبر نهٔ دے او مونږ چه څه وایو نو دا حقه ده، انسان ډیر تلوارګرن او جلت باز دے، د دوی مقصد دا وو چه سمدست عذاب نهٔ رالیږی نو دا به پیغمبر نهٔ وی، حال دا چه دنیا خو دار الامتحان دے۔ دا بهانه د ډیرو مجرمانو دپاره ده۔ الله صبرناك ذات دے، كه دنيا کښې عذاب ورنکړی نو ﴿حَسْبُهُمْ جَهَنَّمُ﴾ جهنم هم ورله کافی سزا ده، یعنی دنیا کښې به عذاب ورکړی، او که دنیا کښې ئے ورنکړه نو جهنم ته خو به خامخا روان وی۔

دا آیت دلیل دے چه د رسول الله ﷺ قصداً بے ادبی کول کفر دے۔

يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِذَا تَنَاجَيْتُمْ فَلَا تَتَنَاجَوْا بِالْإِثْمِ وَالْعُدْوَانِ

اے ایمان والو! کله چه جرګے کوئ تاسو نو جرګے مهٔ کوئ په ګناه او په ظلم

وَمَعْصِيَتِ الرَّسُولِ وَتَنَاجَوْا بِالْبِرِّ وَالتَّقْوَىٰ وَاتَّقُوا

او په خلاف (نافرمانئ) د رسول سره او جرګے کوئ په نیکئ او په تقوی او اُویریږئ

اللَّهَ الَّذِي إِلَيْهِ تُحْشَرُونَ ﴿٩﴾ إِنَّمَا النَّجْوَىٰ

د هغه الله نه چه خاص هغهٔ ته به ورجمع کړے شئ تاسو۔ یقیناً جرګے (د ګناه)

مِنَ الشَّيْطَانِ لِيَحْزُنَ الَّذِينَ آمَنُوا وَلَيْسَ

د شیطان نه دی دے دپاره چه غمژن کړی هغه کسان چه ایمان ئے راوړیدے او نهٔ دے دا

Scanned by CamScanner

| بِضَآرِّهِمْ شَيْـًٔا اِلَّا بِاِذْنِ اللّٰهِ ۭ وَعَلَى اللّٰهِ |
| --- |
| ضرر ورکونکے هغوی ته هیڅ شے مګر د الله په حکم سره او خاص په الله باندے ډے |
| فَلْيَتَوَكَّلِ الْمُؤْمِنُوْنَ ﴿۱۰﴾ |
| ځان اُوسپاری مؤمنان۔ |

**تفسیر** : پـه دے آیتِ کریمه کښې الله تعالیٰ مسلمان د یهودو او منافقانو غونتنه، د ظلم او زیاتی او د نبی کریم ﷺ د خبرے نهٔ منلو پـه باره کښې د جرګے کولو نه منع کړیدے، ځکـه دا د مـومـن د شان خِلاف خبره ده، او دویٔ ته ئے نصیحت کړے چه که دویٔ جرګه کوی نو داسے خبرو دپاره چه په هغے کښې د اسلام او مسلمانانو خیر خواهی وی، او د الله د بنـدګئ او د هغـهٔ د رسول د اطاعت خبره وی۔ او پدے کښې تعریض دے په منافقانو او یهودو باندے چه هغوی به غلطے جرګے کولے۔

عبد الله بن عباس ﷺ فرمائی : نبی کریم ﷺ به چه کله یوه سریّه (فوجی دسته) د جهاد دپاره ولیـږلـه نـو دلتـه بـه منافقان د مسلمانانو مخامخ راغلل او خپل مینځ کښې به ئے سرونه خوزول، مسلمانانو ته به ئے اشاره ورکوله چه دغه خلق خو شهیدان شول، او کله چه به ئے رسول الله ﷺ ولیـدو نـو خپـل میـنـځ کـښې به جرګه کیناستل او خفګان به ئے راښکاره کړو نو پدے کار باندے رسول الله ﷺ او مسـلـمـانان خبر شو نو الله دا آیت نازل کړو۔ (ابنِ مردویه، والدر المنثور)

اِذَا تَنَاجَیْتُمْ : پـدے قیـد ذکـر کـولو کښې اشاره ده چه جرګے نهٔ دی پکار لیکن هغوی په جرګو باندے اموخته وو نو بیائے د زیاتو جرګو د غلطو نتیجو نه ویره ول۔ (التحریر)

وَتَنَاجَوْا بِالْبِرِّ وَالتَّقْوٰی : یـعـنـی خپـل میـنـځ کـښې په نیکئ او په تقویٰ کارونو کښې مشـورے او مرکے کویٔ نو د هر خیر کار دپاره جرګه او مشوره کول پکار دی، نهٔ د ګناه او نافرمانئ دپاره۔ البر : د خیر ټول کارونه چه په دین کښې په هغے باندے امر شویدے۔

تقویٰ : یعنی د دین کارونو په عملی کولو کښې جرګه وکړی۔

اِنَّمَا النَّجْوٰی : اُوس دا فرمائی چه منافقان او یهودیان چه کومے جرګے مرکے کوی نو دا د شیطان د طرفـنه دی، یا د ګناه او د عدوان او د رسول الله ﷺ د مـخـالـفت جرګے شیطانی

Scanned by CamScanner

جرګې دي، دوی لره شیطان پدې کار راپارولي دي،
او د دوئ مقصد دا دے چه پدے سره ایمان والا غمژن کړي څکه چه هغوی به دا ګمان کوي چه دوی مونږ ته څه چل جوړوي، یا به په مونږ کښې کوم نقصان وي.
او په جرګو کولو سره نور خلق په احساس کمترئ کښې واقع کیږي چه په ما کښې به څه خیر نهٔ وي، یا به دے کسانو ته سپك بنكاره كیږم څكه ما سره جرګه نكوي نو پدے وجه د ډیرو جرګو نه منع راغلے ده.
نو پدے آیت کښې ایمان والو ته تسلي ده او د هغوی د نفسونو نه غم لرے کول دي کوم چه د منافقانو د جرګو مرکو په لیدلو سره دوی ته راپیښ شوے وو.
النَّجْوٰی : کښې الف لام عهدي دي، مراد ترے نه د منافقانو جرګے دي.
مِنَ الشَّیْطَانِ : یعنی دوی ته شیطان وسوسه اچوي چه داسے جرګے وکړي چه په هغے سره ایمان والا غمجن کړي او معاشره خرابه کړي.
او کله شیطان ددے جرګو په وجه جرګه کونکي په ګمراهئ کښې اتخلوي.
او کله شر او فساد مینځ کښې راپیدا کول غرض وي. نو دلته د شیطان د جرګے صرف یو علت ذکر دے. (التحریر)
وَلَيْسَ بِضَارِّهِمْ : پدے کښې الله تعالیٰ ایمان والو ته تسلي ورکړیده او د دوئ همت ئے زیات کړیدے چه دوئ دے د خپلو دشمنانو یعنې یهودو او منافقینو د پټو جرګو نه پریشانه کیږي نهٔ. دوئ ته به پدے پټو جرګو سره هیڅ نقصان نهٔ رسیږي،
مګر که د الله خوښه شي، دے وجے نه مومنانو له د دشمن د پټو جرګو نه غمژن کیدل نهٔ دي پکار، او د خپل رب په نصیحتونو باندے عمل کول پکار دي، او صرف په هغهٔ باندے بهروسه کول پکار دي. که چرے دوئ داسے وکړي نو د دشمن چلونه به ناکام شي، او هغه به ماتے وخوري.

Scanned by CamScanner

| |
|---|
| يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِذَا قِيلَ لَكُمْ تَفَسَّحُوا فِي الْمَجَالِسِ |
| اے ایمان والو ! کله چه ووئیلے شی تاسو ته فراخی وکړئ په مجلسونو کښې |
| فَافْسَحُوا يَفْسَحِ اللَّهُ لَكُمْ |
| نو فراخه شئ (یو بل ته ځائے پریږدئ) فراخی به راولی الله تاسو لره (په دنیا او آخرت |
| وَإِذَا قِيلَ انْشُزُوا فَانْشُزُوا يَرْفَعِ اللَّهُ الَّذِينَ |
| کښې) او کله چه ووئیلے شی پاڅیږئ نو پاڅئ تاسو پورته کوی الله تعالیٰ هغه کسان |
| آمَنُوا مِنْكُمْ وَالَّذِينَ أُوتُوا الْعِلْمَ |
| چه ایمان ئے راوړیدے ستاسو نه او هغه کسان چه ورکړے شویدے ورته علم |
| دَرَجَاتٍ ۚ وَاللَّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ خَبِيرٌ ﴿۱۱﴾ |
| په ډیرو درجو سره، او الله په هغه عملونو چه تاسو ئے کوئ خبردار دے۔ |

**تفسیر** : پدے آیت کښې د مجلس متعلق آداب او قوانین بیانوی۔

ربط او تړون

ددے آیتِ کریمه د مخکښې سره ربط او تړون واضح دے ځکه چه کله خلق د پټو جرګو نه منع شول، نو معلومه شوه چه په همدے محفلونو او مجلسونو کښې د کیناستو اجازت خو شته، لیکن د مجلسونو څۀ آداب دی چه د هغے لحاظ ساتل ضروری دی۔

شان نزول

قتادهٔ وائی چه دا آیت د نبی کریم ﷺ د تعلیم د مجلسونو په باره کښې نازل شوے۔ څۀ خلقو به چه څوک راتلونکے اولیدلو، نو هغهٔ ته د ځای ورکولو نه به تنګیدل، نو الله تعالیٰ دوئ ته نصیحت اوکړو چه دوئ یو د بل دپاره فراخی پیدا کړی۔ او ددے اجر او ثواب ئے دا اوښودلو چه الله تعالیٰ به ددے په ځای، په روزئ او سینو کښې فراخی ورکړی۔ لیکن دا خبره ضعیفه ده، صحیح دا ده چه دلته الله تعالیٰ ټولو انسانانو ته د هغوی د مجلسونو آداب بیانوی نو د رسول الله ﷺ د مجلسونو پورے ددے تخصیص صحیح نهٔ

Scanned by CamScanner

دے۔ هغه او د هغے نه سوئ تولو مجلسونو ته دا شامل دے برابره ده چه هغه د جنګ دپاره مجلس وی، یا د ذکر او تعلیم یا جُمعے په ورځ وی۔
دا وجه ده مجالس لفظ ئے جمعه راوړیده۔ او په دے کښ دے ته هم اشاره ده چه څوك کوم ځای ته مخکښ راغلو نو هغه ئے زیات حقدار دے، لیکن د بل ورور دپاره به فراخی راولی ترڅو چه دهٔ ته په هغے کښ ضرر نهٔ وی۔ (قرطبیؒ)
او په دے آیت کښ د ایمان د وجه نه د ملګرو په اکرام او عزت کولو باندے امر دے، او بیا د اهل علمو زیات اکرام او عزت کول لازم دی، دا دلیل دے چه د مجلس او جماعت شرکاء به مساوی نهٔ ګنړئ بلکه علم والو له به افضله مرتبه او عهده ورکولے شی۔
د منافقانو طریقه دا وه چه په مجلس کښ به وران کیناستل، ځای به ئے تنګولو، دویمه طریقه دا وه چه مخکښ به کیناستل، او بیا به ئے خبرے ته غوږ هم نهٔ کیخودو، او مشران صحابه کرامؓ به شا ته کیناستل، صحیح آوریدونکو نه به ئے ځای ونیولو نو کله به رسول الله ﷺ څه کسان پاڅول لکه یو ځل ابوبکر صدیق ﷛ راغے نو رسول الله ﷺ څه کسان پاڅول او هغه ته ئے وویل چه دلته راشه کینه، نو په دے باندے دغه منافقان خفه شو۔
مقاتل بن حیانؒ وائی چه دا آیت د جُمعے په ورځ نازل شو، رسول الله ﷺ په صُفه باندے ناست وو او ځای تنګ وو او هغه به د بدریانو صحابه کرامو (مهاجرینو او انصارو) اکرام کولو، نو څه بدریان صحابه کرامؓ راغلل چه د دوئ نه مجلسونه نیول شوی وو، نو هغوی رسول الله ﷺ ته مخامخ ودریدل او سلام ئے واچولو، بیا ئے په ملګرو سلام واچولو نو هغوی تولو جواب ورکړو، بیا هغوی همدغه شان په انتظار کښ ولاړ وو چه دوئ ته به فراخی پیدا کړے شی، نو دا خبره رسول الله ﷺ ویړندله نو ډیره پرے ګرانه پریوته، نو خوا کښ غیر بدری صحابه کرامؓ ئے پاڅول چه فلانیه تهٔ پاڅه او تهٔ نو د دغه کسانو په اندازه غیر بدریان ئے پاڅول نو دا کار په پاڅونکو باندے ګران تمام شو نو دا آیت نازل شو۔
او په دے کښ ئے دا آداب ذکر کړل چه کله تاسو ته رسول الله ﷺ د پاڅیدو حکم کوی نو پاڅیږئ او خفګان به هم نهٔ کوئ، په مجلس کښ چه کله ناست ئے، نو راتلونکی ملګری ته ځای فراخه کړه، آو تیك ده، هغهٔ ته د هغهٔ د اکرام دپاره پاڅیدل نشته۔

Scanned by CamScanner

او حدیث کښې دي:
[لَا يُقِيمِ الرَّجُلَ الرَّجُلُ مِنْ مَجْلِسِهِ ثُمَّ يَجْلِسُ فِيهِ، وَلٰكِنْ تَفَسَّحُوا وَتَوَسَّعُوا]
یو تن دې بل لره د هغهٔ د مجلس نه نهٔ پاڅوی چه بیا په هغې کښې خپله کینی لیکن په مجلس کښې فراخی راولئ۔ (بخاری فی الجمعة باب ۲۰ رقم (۶۲۷۰) واحمد)
او یو مسلمان چه بل له وینی نو دهٔ له پکار ده (اَنْ يَّتَزَحْزَحَ لَهٗ) چه هغهٔ ته په مجلس کښې وخوزیږی، پدې سره ستا اُوچت اخلاق ښکاره کیږی او د مؤمن اکرام راځی۔
**يَفْسَحِ اللّٰهُ لَكُمْ**: یعنی تاسو مجلسونو کښې مسلمان ورور ته فراخی راولئ نو الله به تاسو له فراخی درکړی په جنت کښې/ یا په هر هغه شی کښې چه تاسو پکښې فراخی غواړئ لکه زړه، اجر، کور، رزق، اولاد وغیره۔ عجیبه نسخه ده۔
حافظ ابن کثیرؒ لیکی: دا به ځکه کیږی چه جزاء د عمل سره مشابه وی، لکه د عثمان بن عفان ﷺ په روایت شوی صحیح حدیث کښې راځی چه هغه بخاری روایت کړے چه [مَنْ بَنٰى لِلّٰهِ مَسْجِدًا بَنَى اللّٰهُ لَهٗ بَيْتًا فِي الْجَنَّةِ] (څوک د الله دپاره جومات جوړ کړی، الله به هغهٔ دپاره په جنت کښې کور جوړ کړی) (بخاری: ۴۵۰)
او په یو بل روایت کښې دی: [وَمَنْ يَسَّرَ عَلٰى مُعْسِرٍ يَسَّرَ اللّٰهُ عَلَيْهِ فِي الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ...... وَاللّٰهُ فِي عَوْنِ الْعَبْدِ مَا كَانَ الْعَبْدُ فِي عَوْنِ أَخِيهِ]
(او څوک چه کوم تنګ دست سره د نرمئ معامله اوکړی، الله تعالیٰ به په دنیا او آخرت کښې دهٔ دپاره آسانی پیدا کړی، او الله تعالیٰ د خپل بنده مدد کوی، تر څو چه دے د خپل ورور په مدد کښې وی)۔ (مسلم: ۷۰۲۸)
دا قِسم آیتونه او حدیثونه ډیر زیات دی۔
**وَإِذَا قِيلَ انْشُزُوا فَانْشُزُوا**: دے کښې بل ادب دے، اے مومنانو! کله چه تاسو ته ووئیلے شی چه په مجلسونو کښې فراخی پیدا کولو دپاره د خپل ځای نه پاسئ، یا د نبی کریم ﷺ د مجلسونو نه د پاسیدو دپاره تاسو ته ووئیلے شی دے دپاره چه تاسو د خپلے اُوږدے ناستے په وجه هغه پریشانه نهٔ کړئ۔ نو تاسو له فوراً خبره منل پکار دی۔
یا یو امیر د مجلس چا ته حکم وکړی چه د خپل ځای نه پورته شه دے دپاره چه مشر سړی له ځای ورکړی نو دا شخص به دا خبره منی۔
دارنګه چه امر وکړی د مانځه دپاره، د جهاد دپاره، بل څه د خیر کار دپاره، د طاعت دپاره

Scanned by CamScanner

چه د خپل ځای نه ودرېږئ نو دا امر به هم منلے کیږي۔ (ابن عباسؓ)

قتادة وائي : اَجِيْبُوْا اِذَا دُعِيْتُمْ اِلٰى اَمْرٍ بِمَعْرُوْفٍ ۔ کله چه تاسو یو نیك کار باندے حکم کولو ته راوبللے شئ نو د هغے قبول والے کوئ. ظاهر دا ده چه آیت دے تولو ته شامل دے۔ او معنیٰ دا ده چه کله تاسو ته ووئیلے شی چه یو دیني کار دپاره پاځیږئ نو پاځیږئ او ځانونه مهٔ درنوئ۔

اُنْشُزُوْا : نشز او نشوز معنیٰ ده پورته والے،/ د خپل ځای نه وړاندے کیدل او جدا کیدل۔ لکه اِمْرَأَةٌ نَاشِزَة هغه ښځه ده چه د خپل خاوند نه په دړه وی۔

يَرْفَعِ اللّٰهُ الَّذِيْنَ آمَنُوْا مِنْكُمْ وَالَّذِيْنَ اُوْتُوا الْعِلْمَ دَرَجَاتٍ :

ددے حکم منلو اجر او ثواب دا دے چه الله تعالیٰ پورته کوی هغه خلق چه ستاسو نهٔ ئے په الله او د هغهٔ په رسول باندے ایمان راوړے، او د هغوی اطاعت کوی، او د الله د احکامو علم حاصلوی، او ددے مطابق عمل کوی، نو دوئ ته به الله تعالیٰ په دنیا او په آخرت کښ لوی درجے ورکوی۔ په دنیا کښ به عزت ورکوی او په آخرت کښ به جنت ورکوی۔

يَرْفَع لفظ راوړو کښ اشاره ده چه پدے خبره منلو سره چه تهٔ د مجلس نه پاځولے شوے ستا عزت کم نشو، سپك نشوے بلکه الله تعالیٰ ستا درجے پورته کوی۔

وَالَّذِيْنَ اُوْتُوا الْعِلْمَ: دے کښ دوه تفسیره دی :

(۱) یو دا چه دا عطف د یو نوع مؤمنانو دے په بله نوع د مؤمنانو باندے۔ او په کلام کښ تقدیر دے :

[يَرْفَعِ اللّٰهُ الَّذِيْنَ آمَنُوْا فِي الْكَرَامَةِ فِي الدُّنْيَا وَالثَّوَابِ فِي الآخِرَةِ وَيَرْفَعُ الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْعِلْمَ دَرَجَاتٍ كَثِيْرَةً عَلٰى عَامَّةِ الْمُؤْمِنِيْنَ]

يعنی الله ایمان والا په دنیا کښ په کرامت سره او په آخرت کښ په ثواب سره پورته کوی (چه دا رفعت په ایمان سره شو) او علم والا پورته کوی په ډیرو درجو سره په عامو مؤمنانو باندے (دا رفعت په علم سره شو)

او دے کښ اشاره ده چه هرکله علماؤ له الله تعالیٰ درجات ورکړیدی، نو که یو تن هغه تهٔ په مجلس کښ خپل ځای ورکړی نو الله به ئے درجات پورته کړی۔

او اشاره ده چه د الله تعالیٰ په نیز په ایمان او په علم سره رفعت حاصلیږی نهٔ په مخکښ راتللو سره مجالسو ته اګرکه ددے هم خپل فضیلت شته۔

Scanned by CamScanner

او دلته کښے اشاره ده چه هر کله د اهل علمو درجات پورته دی، نو د هغوی قدر او احترام کول لازم دی. هغه له الله تعالیٰ اُوچته درجه ورکړیده نو تاسو ئے عزت وکړه، الله تعالیٰ به تا هم پورته کړی. لکه صف اول کښې ورله ځای ورکړه، مجلس کښې ئے عزتمند مقام کښې کینوه. نو تا ته به دوه اجرونه ملاؤ شی، یو د صف اول، او بل د عالِم او د مشر د اکرام کولو، او دے ته مسئله د ایثار بالقرب وائی، او ددے آیت نه هم معلومیږی.

او دا آیت په فضیلت د علم کښې کافی آیت دے.

(۲) دویم تفسیر:

(وَالَّذِيْنَ) عطف دے په مخکنی (الَّذِيْنَ) باندے، او دواړه یو جمله ده، او مطلب دا دے چه الله تعالیٰ پورته کوی هغه کسان چه ایمان ئے راوړے وی، او عالمان هم وی په ډیرو درجاتو سره. هر مؤمن له الله تعالیٰ څه نا څه علم ورکړیدے، نو پدے کښې اشاره ده چه ته هم د الله د احکامو علم حاصل کړه، او د هغهٔ په آدابو او قوانینو باندے عمل وکړه، او د مشرانو قدر او احترام وکړه الله به دِے درجات پورته کړی. اول تفسیر غوره دے.

(۳) شوکانیؒ د آیت معنیٰ دا بیان کړے چه مومنانو له په غیر مومنانو باندے، او اهلِ علمو له په غیر اهلِ علمو باندے څو چنده فوقیت (اُوچتوالے) ورکوی. نو کوم کس چه د ایمان او علم دواړو نه برخور وی، هغهٔ له به الله تعالیٰ د ایمان په وجه ګڼرے درجے ورکړی، او بیا د علم د وجے نه به ګڼرے درجے ورکوی.

او مراد د اُوتوا العلم نه د قرآن کریم علماء دی،

عبد الله بن مسعود ﷺ فرمائی:

[مَا خَصَّ اللّٰهُ الْعُلَمَاءَ فِيْ شَيْءٍ مِنَ الْقُرْآنِ مَا خَصَّهُمْ فِيْ هٰذِهِ الْآيَةِ]

الله تعالیٰ په قرآن کریم کښې علماء په هیڅ شی کښې دومره خاص نهٔ دی ذکر کړی لکه چه پدے آیت کښې ئے خصوصی طور سره ذکر کړیدی. او د هغهٔ نه دا هم نقل شویدی چه اے خلقو! پدے آیت ځان پو هه کړئ دے دپاره چه ستاسو د علم سره مینه پیدا شی.

او پدے مقام کښې ابن کثیرؒ، قرطبیؒ، شربینیؒ، آلوسیؒ، وغیره مفسرینو د علم فضائل په تفصیل سره ذکر کړیدی.

**فائده:** په آیت کښې حکم شوے چه خلق دے په مجلسونو کښې د نورو راتلونکو دپاره فراخی پیدا کړی. دے نه دا خبره معلومیږی چه څوك د خپل ځای نه پاسول نهٔ دی

Scanned by CamScanner

پکار۔ امام احمدؒ او بخاریؒ او مسلمؒ د ابن عمر رضی الله عنه نه روایت کړے چه رسول الله ﷺ وفرمایل : [لَا يُقِيمُ الرَّجُلُ الرَّجُلَ مِنْ مَقْعَدِهٖ ثُمَّ يَجْلِسُ فِيهِ وَلٰكِنْ تَفَسَّحُوْا وَتَوَسَّعُوْا] (هیڅ یو انسان دے چالره د هغهٔ د ځای نه پانهٔ سوی چه خپله هلته کینی، بلکه تاسو د نورو دپاره فراخی پیدا کوئ)۔ لکه چه دا روایت مخکښې تیر شو۔ (مسلم : ۵۸۱۳)

حافظ ابن کثیرؒ په دے باره کښې د فقهاؤ اختلاف نقل کړے۔

بعضو وئیلی دی چه دا جائز دی، او په بخاری کښې د ابو سعید خدری رضی الله عنه نه د روایت شوی حدیث نه ئے استدلال کړے، چه په هغے کښې نبی کریم ﷺ د سعد بن معاذ رضی الله عنه دپاره صحابه کرامؓ ته د پاسیدو حکم کړے وو او وئیلی ئے وو چه (قُوْمُوْا اِلٰى سَيِّدِكُمْ) (تاسو د خپل سردار دپاره پاسیږئ)۔

او بعضو وئیلی دی چه داسے کول هله جائز دی چه څوك د سفر نه راشی، یا حاکم چه کله خپل مجلس ته راشی، لکه څنګه چه رسول الله ﷺ سعد بن معاذ رضی الله عنه دپاره صحابهٔ کرامو ته حکم کړے وو چه هغوئ پاسیږی او د هغهٔ استقبال وکړی، لیکن که یو کس دا خپل عادت جوړوی نو جائز نهٔ دی ځکه چه نبی کریم ﷺ فرمایلی دی :

[مَنْ اَحَبَّ اَنْ يَّتَمَثَّلَ لَهُ الرِّجَالُ قِيَامًا فَلْيَتَبَوَّأْ مَقْعَدَهٗ مِنَ النَّارِ]

چه کوم کس دا خوښوی چه خلق دے د هغهٔ دپاره پاسیږی، نو هغه دے خپله استوګنه په جهنم کښې جوړه کړی۔ دا حدیث ابوداود د معاویه رضی الله عنه نه روایت کړے۔

(ابوداود : ۵۲۳۱) والترمذی (۲۷۵۵)

| |
|---|
| يَا أَيُّهَا الَّذِيْنَ آمَنُوْا إِذَا نَاجَيْتُمُ الرَّسُوْلَ فَقَدِّمُوْا بَيْنَ يَدَىْ |
| اے ایمان والو! کله چه جرګه کوئ تاسو د رسول سره نو مخکښې اُولیږئ مخکښې |
| نَجْوٰىكُمْ صَدَقَةً ذٰلِكَ خَيْرٌ لَّكُمْ وَأَطْهَرُ فَإِنْ |
| د جرګے ستاسو نه صدقه دا غوره دے تاسو لره او پاکونکے دے نو که |
| لَّمْ تَجِدُوْا فَإِنَّ اللهَ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ﴿۱۲﴾ ءَأَشْفَقْتُمْ |
| تاسو نهٔ موندہ کوئ (صدقه) نو یقیناً الله بخونکے رحم کونکے دے۔ آیا یریږئ تاسو |

| |
|---|
| اَنْ تُقَدِّمُوْا بَيْنَ يَدَيْ نَجْوَاكُمْ صَدَقَاتٍ فَإِذْ لَمْ تَفْعَلُوْا |
| ددے نه چه اُولیږئ مخکښې د جرګو ستاسو نه صدقے نو کله چه اُونکړو تاسو (دا کار |
| وَتَابَ اللهُ عَلَيْكُمْ |
| د وجے د عجز نه) او مهربانی وکړه الله په تاسو باندے (نو معاف ئے کړو) |
| فَأَقِيْمُوا الصَّلَاةَ وَآتُوا الزَّكَاةَ وَأَطِيْعُوا اللهَ وَرَسُوْلَهٗ ط |
| نو پابندی د مونځ کوئ او ورکوئ زکاة او تابعداری کوئ د الله او د رسول د هغه، |
| وَاللهُ خَبِيْرٌ بِمَا تَعْمَلُوْنَ ﴿١٣﴾ |
| او الله خبردار دے په هغه عملونو چه تاسو ئے کوئ۔ |

**تفسیر** : پدے آیت کښې امر دے په صدقه ورکولو مخکښې د جرګے کولو د رسول الله ﷺ سره، پدے کښې حکمت رد کول دی په منافقانو باندے، بل پدے کښې اِرَاحَةُ الرَّسُوْل دے، یعنی رسول الله ﷺ ته راحت ورکول دی۔

او پدے قانون کښې په منافقانو باندے امتحان وو او د خپل نبی حفاظت وو،

❁ د حسن بصریؒ وینا ده چه دا آیت د بعضِ مسلمانانو په باره کښې نازل شوے وو چه د نبی کریم ﷺ سره به ئے بار بار په یواځے والی کښې خبرے کولے نو په نورو صحابوؓ باندے به ددے خراب اثر پریوتلو، هغوئ به دا سوچ کولو چه زمونږ مرتبه د رسول الله ﷺ په نیز کمه ده۔ دے وجے نه الله تعالیٰ رسول الله ﷺ سره د پټو خبرو کولو نه مخکښې د صدقے ورکولو حکم وکړو، دے دپاره چه نبی ﷺ سره پټے خبرے کونکی کم شی۔

❁ د زید بن اسلمؒ وینا ده چه دا کار به یهودو او منافقانو کولو، او خپلو کښې به ئے وئیلے چه د محمد غوږونه کچه دی، د هر چا خبرے ته غوږ ږدی، او هیچا لره د خپل ځان سره د پټو خبرو کولو نه نه منع کوی۔

(د دوی مقصد رسول الله ﷺ پریشانه کول او د هغه ځوند تنګول وو) او په مخلصو صحابه کرامو‌ؓ باندے به ددے خراب اثر پریوتلو، شیطان به د دوئ په زړونو کښې شك غورزولو چه شاید دوئ د مسلمانانو د کوم دشمن فوج خبره کړے وی کوم چه د

Scanned by CamScanner

مسلمانانو سره د جنګ کولو دپاره جمع شوي دي. نو الله تعالیٰ (۹) آیت نازل کړو،
لیکن یهود او منافقان د خپل شرارت نه منع نشول، نو الله دا آیت نازل کړو چه په دے کښې د نبی کریم ﷺ سره د پټو جرګو کولو نه مخکښې د صدقے کولو حکم ورکړے شوے دے. دے وجے نه یهود او منافقان د نهٔ مخلص کیدو په وجه او د مال د محبت د وجے نه د پټو خبرو کولو نه منع شول، لیکن په غریبانو مسلمانانو باندے دا حکم ګران اولګیدهٔ. دوئ به د نبی کریم ﷺ نه ضروری مسائل تپوسل غوښتل او د صدقے دپاره د مال نهٔ ملاویدو په وجه به ئے د نبی ﷺ سره خبرے نشوه کولے.
دے وجے نه دیو څو ورځو نه پس د صدقے ورکولو حکم منسوخ شو، او مسلمانانو ته حکم وکړے شو چه دوئ د نبی کریم ﷺ سره د خبرو کولو په وخت د هغهٔ انتهائی درجه احترام کوی، او د ادب لحاظ ډے ساتی.
ابن عباس ﷺ فرمائی: مسلمانانو د رسول الله ﷺ نه تپوسونه زیات شروع کړل تردے چه په هغهٔ باندے ئے سختی راوسته نو الله وغوښتل چه په خپل نبی باندے آسانی راولی نو کله ئے چه دا حکم نازل کړو چه صدقه به ورکوئ، نو ډیرو خلقو بُخل وکړو او د تپوسونو نه بند شو نو ددے نه روستو (ءَ أَشْفَقْتُمْ) آیت نازل شو نو الله په دوی باندے فراخی راوسته او تنګی ئے ختمه کړه. (فتح البیان)
صَدَقَةً: ددے صدقے اندازه نهٔ وه ښودلے شوے نو رسول الله ﷺ علی بن ابی طالب ﷺ سره مشوره وکړه چه ستا د یو دینار په باره کښې څه رایه ده؟ هغه ووېل: خلق ددے طاقت نهٔ لری، وے وئیل څومره پکار ده؟، ما ووېل: د وریشے په اندازه سرهٔ زر. نو هغه راته ووېل: إِنَّكَ لَزَهِيدٌ. تهٔ خو ډیر بے رغبته ئے. (وفی اسناده علی بن علقمه الانماری وهو ضعیف). نو بیا یو درهم مقرر شو.
او دا صدقه ورکول به دلیل وی ددے خبرے چه دا انسان په رشتیا سره د علم طلبګار دے، او مسئلے ته ئے ضرورت دے. نو خلق به بے ځایه مشورے هم نهٔ کوی ځکه چه پیسے لګول به ورته ګران وی، لکه منافقان شا ته شول، که دین چرته په روپو وے، نو ډیرو انسانانو به یوه مسئله هم نهٔ زده کولے. خو دین ارزان دے ځکه ئے ډیر خلق نهٔ زده کوی.
یو روایت کښې دی: علی بن ابی طالب ﷺ فرمائی: ما پدے حکم باندے عمل کړیدے

Scanned by CamScanner

[كَانَ عِنْدِیْ دِیْنَارٌ فَبِعْتُهٗ بِعَشْرَةِ دَرَاهِمَ]

ما سره یو دینار وو نو ما په لسو دراهمو خرڅ کړو نو هرکله چه به ما د رسول الله ﷺ سره جرګه مشوره کوله نو مخکښې به مې یو درهم صدقه کړو۔

(المستدرك ٢/٤٨١/ رقم ٣٧٩٤) وقال: صحيح على شرط الشيخين ووافقه الذهبي وفي اسناده يحيى بن مغيره السعدى صدوق فالحديث اسناده حسن ولا بأس به)

لیکن پدې کار کښې صحیح مخلصو مؤمنانو ته مشکلات راغلل، ځکه چه د رسول الله ﷺ په شان مُعلم ته ددوئ ضرورت وو، او دوئ به د مال په وجه د هغهٔ نه محرومه شی، نو ځکه الله تعالیٰ دا حکم منسوخ کړو۔

بعض وائی: دا حکم لسو ورځو یا څه موده پورې وو، بیا منسوخ شو۔ او پدې حکم رانازلولو او بیرته منسوخ کولو کښې فائده وشوه او هغه دا چه دا ذهن سازی وشوه چه رسول الله ﷺ ستاسو ددې ډیرو مشورو او جرګو نه تنګیږی، د هغهٔ رعایت وکړئ۔ مؤمنانو به بیا د رسول الله ﷺ ډیر زیات رعایت او ادب کولو، کله چه به اُوده وو نو نهٔ به نې راپاڅولو چه پدې حالت کښې ورته چرته وحی کیږی۔

لکه په حدیث د ابوذر ﷺ کښې ذکر دی، او کور ته به چه ننوتو نو آوازونه به ئې ورته نهٔ کول۔ او چه پریشانئ شان حالت کښې به وو نو تپوس به ئې ترې نهٔ کولو۔

بعض علماء دې ته د نسخ نوم نهٔ ورکوی بلکه وائی چه دا تخفیف دې په اول حکم کښې، هغه دا چه صدقه ورکول اول کښې واجب وو بیا د وجوب نه استحباب ته حکم نقل شو۔

او کوم علماء چه دې ته نسخ وائی لکه متقدمین، نو بیا ددې نه دا هم معلومیږی چه په قرآن او حدیث کښې داسې احکام هم شته چه د عمل کولو نه مخکښې منسوخ شوی وی لکه پنځوس مونځونه د معراج په شپه فرض شو، د عمل کولو نه مخکښې منسوخ شو او پنځه پاتې شول،

او پدې کښې هم حکمت وی چه هغه ذهن سازی کول دی چه اجر د پنځوسو ورکوی، او دارنګه بنده شکر وکړی چه بنه دې چه پنځوس مونځونه منسوخ شو ګنې دا خو به ډیره ګرانه وه، نو دا پنځه مونځونه به په ډیر شوق سره کوی، او پدې سره د الله سره مینه پیدا کیږی چه څومره رحیم ذات دې۔

Scanned by CamScanner

﴿ذٰلِكَ خَيْرٌ لَّكُمْ وَاَطْهَرُ﴾ يعنى (نبى كريم ﷺ سره د پټو خبرو كولو نه مخكښې صدقه وركول ستاسو دپاره په هره طريقه بهتره ده) تاسو له به ددے څو چنده اجر او ثواب ملاويږي، او ستاسو د غريبو مسلمانانو ورونو به ښيګړه وي. او ستاسو زړونو لره صفا كونكے ده.

ءَاَشْفَقْتُمْ: دا آيت روستو نازل شو. دے ته ئے إشفاق ځكه ووئيلو چه دوئ پريدل كه دا حكم لازم شى نو بيا خو به دوى ته ډيره ګرانه شى، د رسول الله ﷺ د صحبت نه جدا والے او محرومتيا راځى، ځكه چه په ورځ كښې د رسول الله ﷺ سره لس كرته ملاويدو سره لس روپئ وركول خو ګران دى.

فَاِذْ لَمْ تَفْعَلُوْا: ددے نه معلوميږي چه پدے حكم باندے چا عمل نۀ وو كړے. زر منسوخ شو.

وَتَابَ اللهُ عَلَيْكُمْ: يعنى رحم ئے وكړو په تاسو باندے په منسوخ كولو ددے حكم. دے ته ئے توبه ووئيله ځكه چه الله تعالىٰ استعمال كړل په خپل طاعت كښې، ولے كه دا حكم وے، نو په طاعت كښې به نۀ استعماليدے، هميشه به په ګناه كښې وے، او دا حكم لرے شو نو اوس د پيسو نه په غير د رسول الله ﷺ نه د خپل دين تپوس كولے شے نو په طاعت كښې استعمال شوے نو ځكه ورته توبه ووئيلے شوه.

﴿فَاِذْ لَمْ تَفْعَلُوْا﴾ يعنى نبى ﷺ سره د سركوشئ كولو نه مخكښې صدقه وركول اوس ضرورى خبره نۀ ده، بلكه مستحب ده، دے وجے نه اُوس چه كوم كس صدقه ورنۀ كړے شوه، هغۀ له هيڅ د حرج خبره نۀ ده.

فَاَقِيْمُوا الصَّلٰوةَ: يعنى اُوس خو د جرګے او مشورے او تپوس كولو نه مخكښې د صدقے وركولو حكم منسوخ شو ليكن استحباب ئے باقى دے، خو څوك دے دا ګمان ونكړى چه دغه حكم منسوخ شو نو مونځونه او زكاتونه به منسوخ وى، نو الله وفرمايل چه په اخلاص سره د خپلو مونځونو حفاظت كوئ، زكاة اداء كوئ، او د الله او د هغۀ د رسول (ﷺ) په اطاعت كښې سستى مۀ كوى، دے دپاره چه د صدقے دپاره د مال نۀ كيدو كمے پوره كړے شى، او ددۀ په اجر او ثواب كښې اضافه وشى.

Scanned by CamScanner

| أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِيْنَ تَوَلَّوْا قَوْمًا |
|---|
| آیا نهٔ گورې ته هغه کسانو ته چه دوستي کوي (ورواوړيدل) د داسې قوم سره |
| غَضِبَ اللهُ عَلَيْهِمْ مَا هُمْ مِنْكُمْ وَلَا مِنْهُمْ |
| چه غضب کړيدې الله په هغوی باندې نهٔ دي دوی ستاسو نه او نهٔ د هغوی نه |
| وَيَحْلِفُوْنَ عَلَى الْكَذِبِ وَهُمْ يَعْلَمُوْنَ ﴿١٤﴾ أَعَدَّ اللهُ لَهُمْ |
| او قسمونه کوي دوی په دروغه او دوی پوهېږي۔ تيار کړيدې الله تعالیٰ دوی لره |
| عَذَابًا شَدِيْدًا إِنَّهُمْ سَاءَ مَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ ﴿١٥﴾ اِتَّخَذُوْا |
| عذاب سخت، يقيناً دوی بد دي هغه عملونه چه دوی ئې کوي۔ نيولي دي دوی |
| أَيْمَانَهُمْ جُنَّةً فَصَدُّوْا عَنْ سَبِيْلِ اللهِ فَلَهُمْ عَذَابٌ مُّهِيْنٌ ﴿١٦﴾ |
| قسمونه خپل ډهال نو منع شو د لارې د الله نه نو دوی لره عذاب سپکونکے دے۔ |
| لَنْ تُغْنِيَ عَنْهُمْ أَمْوَالُهُمْ وَلَا أَوْلَادُهُمْ مِنَ اللهِ |
| هيڅرې به دفع نهٔ کړي دوی نه مالونه د دوی او نهٔ اولاد د دوی د الله (د عذاب) نه |
| شَيْئًا أُولٰئِكَ أَصْحَابُ النَّارِ هُمْ فِيْهَا خَالِدُوْنَ ﴿١٧﴾ |
| هيڅ شے، دا کسان اُور والا دي دوی به په دے کښې هميشه وي۔ |

**تفسير** : پدے رکوع کښې په منافقانو باندے ردونه کيږي، او هغوی ته زجرونه بيانيږي او د هغوی پنځلس بد صفات ذکر کوي، او په (۱۵) او (۱۷) آيت کښې تخويف ورکوي، او په آخر کښې د مؤمنانو صفت بيانوي چه هغوی د دے مفسدانو نه برائت کوي او هغوي ته زيرے ورکوي۔

**أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِيْنَ** : په کومو ورځو کښې چه دا سورت په مدينه کښې نازل شو، په دغه ورځو کښې د منافقانو منافقت آخر سر ته رسيدلے وو، شپه او ورځ به دا خلق يهوديانو سره ملاويدل، او د اسلام او مسلمانانو خلاف به ئې سازشونه کول، او دوئ ته د نقصان

Scanned by CamScanner

رسولو هر ممکن کوشش به ئے کولو۔ په دے آیتِ کریمه کښ د همدے منافقانو نه پرده لرے کړے شوے ده چه دا خلق مسلمانان نهٔ دی، او نهٔ دویٔ د یهودیانو نه دی۔

الله تعالیٰ د سورۃ الحشر په (۱۱) آیت کښ هم د منافقانو دا حقیقت داسے بیان کړے دے، او وئیلی ئے دی: ﴿ اَلَمْ تَرَ اِلَى الَّذِيْنَ نَافَقُوْا يَقُوْلُوْنَ لِاِخْوَانِهِمُ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا مِنْ اَهْلِ الْكِتٰبِ لَئِنْ اُخْرِجْتُمْ لَنَخْرُجَنَّ مَعَكُمْ ﴾ الآية

(آیا تا منافقان نهٔ دی لیدلی دی چه خپلو اهلِ کتابو کافرو ورونو ته وائی چه که تاسو جلا وطن کړے شوئ نو مونږ به هم تاسو سره خامخا اوځو)۔

او د سورۃ النساء په (۱۴۳) آیت کښ فرمائی: ﴿ مُذَبْذَبِيْنَ بَيْنَ ذٰلِكَ لَآ اِلٰى هٰٓؤُلَآءِ وَلَآ اِلٰى هٰٓؤُلَآءِ ﴾ (دویٔ په مینځ کښ زوړند پاتے دی، نهٔ پوره طور سره هغویٔ طرفته دی، نهٔ صحیح طورسره دویٔ طرفته دی)۔

اَلَّذِيْنَ نه مراد منافقان دی او (قَوْمًا) نه مراد یهودیان دی۔ ځکه چه په دوی باندے د الله غضب شوے وو لکه په سورۃ البقره (۶۱) او (۹۰) آیتونه پدے باندے دلیل دی۔ او د تَوَلَّوْا معنیٰ ده (وَالَوْهُمْ) یعنی دوستی کوی د هغوی سره۔ یا په معنیٰ د اوریدو سره دے۔

اول بد صفت (تَوَلَّوْا) دے، او دویم (مَا هُمْ مِنْكُمْ وَلَا مِنْهُمْ) دے۔

دریم: ﴿ وَيَحْلِفُوْنَ عَلَى الْكَذِبِ ﴾ ابن جریر طبریؒ ددے تفسیر دا بیان کړے چه منافقانو به رسول الله ﷺ ته وئیل: مونږ گواهی ورکوو چه تهٔ د الله رسول ئے، حالانکه دویٔ په خپلے گواهیٔ کښ دروغژن وو، یعنی دویٔ ته پته وه چه په رشتینے زړهٔ سره مونږ دا گواهی نهٔ ورکوو۔ دارنگه په دعوه د ایمان او د تابعداریٔ د رسول کښ دروغژن دی۔ او بیا پدے باندے قسمونه هم کوی۔

يَحْلِفُوْنَ ئے په صیغه د مضارع راوړو پدے کښ تجدد ته اشاره ده، او لفظ د عَلىٰ کښ جراءت (زړه ورتیا) ته اشاره ده۔ یعنی زړه ورتیا کونکی دی په دروغو او په قسم کولو۔

وَهُمْ يَعْلَمُوْنَ: یعنی سره د علم او د قصد نه دروغ وائی او قسمونه کوی، او دا یمین غموس دے چه انسان سیده جهنم ته رسوی۔ دا ورسره ځکه وائی چه کله یو تن قسم وکړی خو په خبره پوهه نهٔ وی نو بیا گناهګار نهٔ دے۔

اَعَدَّ اللّٰهُ: پدے کښ د منافقانو حال او انجام بیانیږی چه دویٔ له الله تعالیٰ سخت عذاب تیار کړیدے۔ بعض علماء وائی چه ددے عذاب شدید نه مراد دنیاوی عذاب او د قبر

Scanned by CamScanner

عذاب دے، ځکه چه د آخرت عذاب ئے روستو ذکر دے۔
اِنَّهُمْ سَاءَ مَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ : پدے کښې د دوئ بـل عيب ذکر دے چه دوی له الله تعالىٰ ځکه سخت عذاب ورکوی چه د دوئ عملونه ناکاره دی۔
اِتَّخَذُوْا اَيْمَانَهُمْ جُنَّةً: دا جـمـلـه جواب د سوال دے چه که څوك ووائی چه دوئ سره د پـوهـے نـه ولے په دروغه قسمونه کوی؟ نو جواب کوی چه دوئ د خپلو ځانونو بچ کولو دپاره خپـل دروغژن قسمونه ډهال جوړ کړل، او خلق پټ په پټه په الله او د هغهٔ په رسول بـانـدے د ايمان راوړو نه بندوی۔ د مسلمانانو کارونه سپك ښکاره کوی، او د دوئ طاقت کمزورے ښکاره کوی۔
جُنَّةً: ډهال ته وائی چه په هغے سره ځان د تورے وغيره د ګوزار نه بچ کوی، نو دغه شان دوی په دے قسمونو سره ځانونه د مؤمنانو د زجر او هر شرمندګئ نه بچ کوی۔
فَصَدُّوْا عَنْ سَبِيْلِ اللهِ : ١- لازم مـعـنىٰ ده : دوئ بند شو د حق نه۔ په دروغو قسمونو او چلونو سره انسان د حق نه محروميږی۔
٢- يا متعدی دے، يعنی خلق منع کوی د لارے د الله تعالىٰ نه۔
فَلَهُمْ عَذَابٌ مُّهِيْنٌ : مـخـکښې عذاب شديد وو، دلته عذاب مهين، او دواړه عذابونه د يـو بـل نـه جـدا دی۔ هـرکـله چه دوی په دروغ قسم کولو کښې د الله د نوم توهين کوی او دارنګه د مؤمنانو اهانت کوی نو پدے وجه عذاب مهين ئے ذکر کړو۔
بـعـض وائـی : يـو عـذاب دے خو دوه صفتونه ئے دی چه سخت به هم وی او شرمونکے ذليله کونکے به هم وی۔
او بعض وائی : اول عذاب قبر دے، او دويم عذاب د آخرت دے۔ اول قول غوره دے۔
لَنْ تُغْنِيَ : کـه څـوك ووائـی چـه دوی سره مالونه او اولاد شته هغه به ئے بچ کړی، نو الله فرمائی : چه دا به ورته د الله د عذاب په مقابله کښې هيڅ فائده ونکړی۔
او پـدے کـښې رد دے د دوئ په غلط خيال باندے چه دوی دا فسادونه کوی او بيا په خپل مـال او اولاد سره لوئی او تکبر کوی او د حق نه انکار کوی۔ نو دوی ته پو هه شی چه په قيامت کښې د دوی مالونه او اولاد پکار نهٔ راځی۔
اَمْوَالُهُمْ : چه مالونه په فديه کښې ورکړی، يا رشوت ورکړی۔
وَلَا اَوْلَادُهُمْ: مشـرکـانو ته د هغوی اولاد فائده نهٔ ورکوی، لکه چه مدد ئے وکړی يا په

Scanned by CamScanner

دنیا کښې هغوی ته دعاګانې کوي، یا په نیك عملونو سره د هغوی مور او پلار (مشرکانو) ته هیڅ فائده نهٔ ملاویږي.

مِّنَ اللّٰهِ: یعنی د عذاب د الله تعالیٰ نه.

شَيْئًا: ۱- مفعول به دے. یعنی هیڅ شے د عذاب.

۲- یا مفعول مطلق دے اَیْ شَيْئًا مِّنَ الْاِغْنَاءِ. او مِنَ الله په معنیٰ د (عِنْدَ اللّٰهِ) سره دے، یعنی فائده به ورنکړي دوی ته مالونه او اولاد د دوی په نیز د الله هیڅ فائده.

| |
|---|
| يَوْمَ يَبْعَثُهُمُ اللّٰهُ جَمِيْعًا فَيَحْلِفُوْنَ |
| په هغه ورځ چه راپورته به کړي دوی لره الله تعالیٰ ټول نو قسمونه به کوي |
| لَهٗ كَمَا يَحْلِفُوْنَ لَكُمْ وَيَحْسَبُوْنَ اَنَّهُمْ عَلٰى |
| هغهٔ ته لکه څنګه چه قسمونه کوي تاسو ته او ګمان کوي چه یقیناً دوی په یو |
| شَيْءٍ اَلَا اِنَّهُمْ هُمُ الْكَاذِبُوْنَ ﴿۱۸﴾ اِسْتَحْوَذَ |
| (فائده مند) شي باندے دي، خبر شئ! یقیناً خاص هم دوی دروغژن دي. غلبه کړیده |
| عَلَيْهِمُ الشَّيْطَانُ فَاَنْسَاهُمْ ذِكْرَ اللّٰهِ اُولٰئِكَ حِزْبُ |
| په دوی باندے شیطان نو هیرے ئے کړل د دوی نه یادول د الله، دا کسان ډله |
| الشَّيْطَانِ اَلَا اِنَّ حِزْبَ الشَّيْطَانِ هُمُ الْخَاسِرُوْنَ ﴿۱۹﴾ |
| د شیطان ده، خبرشئ!، ډله د شیطان هم دوی تاوانیان دي. |

**تفسیر**: پدے کښې بیا درے بد صفتونه ذکر کوي.

يَوْمَ: دا متعلق دے په (لَنْ تُغْنِيَ) پورے. د هغے دپاره ظرف دے، یا اُذْكُرْ (رایاد کړه) لفظ پټ دے.

الله تعالیٰ وفرمایل کله چه د قیامت په ورځ الله تعالیٰ دوئ دوباره ژوندي کړي، نو په منافقت کښې د خپل مهارت او مضبوطیا په وجه به د الله تعالیٰ مخامخ هم د خپل رشتین والي او اخلاص ثابتولو دپاره دروغژن قسمونه شروع کړي چه مونږ خو په دنیا

Scanned by CamScanner

کښې کفر نهٔ دے کړے، او مونږ ددے نبی رشتینی تابعدار وو، لکه څنګه چه په دنیا کښې د دروغژنو قسمونو په ذریعه ئے مسلمانانو له دا یقین ورکولو چه دوئ هم مخلص مسلمانان دی۔ الله فرمائی : چه دا خلق ما ته معلوم دی چه ما ته به هم دروغژن قسمونه کوی لکه تاسو ته ئے چه اُوس کوی۔

او دا خبره به هیره کړی چه دوئ په آخرت کښې دا دروغژن قسمونه د هغه علام الغیوب مخے ته خوری چه د هغهٔ نه هیڅ شے پټ نهٔ دے۔

یعنی د منافقانو ژوند تول د قسمونو نه ډك دے، او د دروغو قسمونه ئے دومره قوی صفت دے چه په قیامت کښې به هم دغه شان دروغژن قسمونه کوی۔

وَيَحْسَبُوْنَ اَنَّهُمْ عَلٰى شَىْءٍ: ۱- یعنی دوی اُوس ګمان کوی چه دوی په یو معتبر شی روان دی چه هغه هوښیارتیا او عقلمندی ده، یعنی دوی به خپله چالاکی کمال ګنړلو چه ددے په وجه به د رسول الله ﷺ د تابعدارئ نه روستو پاتے کیدل، او دا به ئے وئیل چه مونږ خو ددے صحابه کرامو په شان نهٔ یو چه په معمولی خبره ځان قربان کړو۔

بعض خلق د منافقت چالاکی کمال ګنړی، لکه زمونږ د اُمت مبتدعین۔ ځان ئے هلاك کړو، او نهٔ پو هیږی۔ کوشش دا کوی چه خلق د الله نه بابا ته واړوی، او د رسول الله ﷺ نه ئے بل امتی یا خواهش ته واړوی۔

۲- یا دا په آخرت کښې مراد دے، یعنی دوی پدے دروغژنو قسمونو سره ګمان کوی چه دوی ته به دا څه فائده رابنکاری، یا به ترے څه ضرر دفع کړی لکه دوی به په دروغژنو قسمونو په دنیا کښې دغه شان ګمان کولو۔

۳- یا دنیا کښې مراد دے، اَیْ يَحْسَبُوْنَ اَنَّهُمْ عَلٰى شَىْءٍ مُعْتَبَرٍ مِنَ الدِّيْنِ۔ یعنی دوی خو اُوس ګمان کوی چه دوی په یو معتبر او مقبول دین باندے روان دی۔ لیکن دا خبره به دوی ته فائده ورنکړی۔ اشاره ده چه مشرك او منافق هم ځان په حقه ګنړی۔

اَلَا اِنَّهُمْ هُمُ الْكٰذِبُوْنَ : یعنی خبر شئ دوی کامل او همیشه دروغژن دی چه دروغ ئے لازمی صفت ګرځیدلے دے، او دوی په قسم سره د خپلو دروغو پټولو کوشش کولو نو ځکه الله تعالیٰ د تاکید دپاره اَلَا او اِنَّ او هُمْ ضمیر فصل او جمله اسمیه راوړه۔

په تفسیر د سورة البقره کښې مونږ لیکلی وو چه د منافقانو ښکاره صفتونه یو دروغ دی، دویم نِسْيَانُ ذِكْرِ اللّٰهِ۔ (د الله ذکر هیرول) او دریم تَرْجِيْحُ جَانِبِ الْمَخْلُوْقِ عَلٰى جَانِبِ اللّٰهِ۔

Scanned by CamScanner

د مخلوق جانب غوره کول په جانب د الله باندے۔
اِسْتَحْوَذَ عَلَيْهِمُ الشَّيْطَانُ: پدے کښې د منافقانو نور درے عیبونه ذکر کیږي۔
یعنی دوئ کښې دغه تیر شوی بد صفتونه ولے راغلل؟ نو الله دلته سبب بیانوی چه د دوئ په زړ او دماغو باندے شیطان قبضه اچولے ده، او هغه ئے پوره راګیر کړیدی چه ددے په سبب دروغ وئیل د دوئ دویم فطرت جوړ شوے دے، د دنیا په رنګینو او عارضی خوندونو کښې ډوب شوی دی، او د الله د یاد نه بیخی غافله شوی دی۔
اِسْتَحْوَذَ: د حَوْذ نه دے په معنیٰ د راګیرولو او احاطه اچولو او غلبه کولو او پورته کیدو او په تیزئ او آسانتیا سره شړلو سره دے۔ او دا مستلزم وی غلبے او قوت او قبضے اچولو لره۔ یعنی شیطانانو په خپلو وسوسو او ګمراه کولو سره په دوی باندے داسے قوت او غلبه موندلے ده لکه چه هغه د دوئ بادشاه دے او دوی ئے رعیت دے۔ او په مؤمن باندے شیطان لږ غفلت اچوی لیکن چه لږ بیدار شی نو شیطان تړے وتښتی او په منافقانو باندے ئے تسلط کړے وی، زړه ئے ورله پوره نیولے وی۔
فَأَنْسَاهُمْ ذِكْرَ اللّٰهِ: ۱- د ذکر الله نه مراد د هغهٔ یادول دی۔
۲- یا د هغهٔ آوامر ئے ترے هیر کړی چه په هغے باندے عمل وکړی۔ او د هغهٔ زواجر (عذابونه) ئے هیر کړی چه په هغے سره د هغهٔ د ګناهونو نه منع شی۔
۳- یا دا چه په زړونو او په ژبو سره ئے د هغهٔ یاد هیر کړیدے۔
٤- او ذکر الله توحید او قرآن کریم ته هم وائی۔
أُولَٰئِكَ حِزْبُ الشَّيْطَانِ: یعنی کوم رذیل صفتونه او خبیث خویونه چه پورته بیان شو، دے سره متصف خلق په اصل کښې د شیطان د ډلے خلق دی چه دوئ په زمکه کښې په فساد خورولو کښې د هغوئ پیروی کوی، لیکن دوئ له یاد ساتل پکار دی چه شیطان به د دوئ هیڅ پکار رانشی۔
حِزْبَ: کښې معنیٰ د تَحَزُّب او ډله بازئ پرته ده نو حزب هغه تابعدارو ملګروته وئیلے شی چه په اِتباع د متبوع کښې کلك او تعصب کونکی وی، بل طرفته په آسانه سره نهٔ آوری او نهٔ د بل چا خبره آوری۔
الْخَاسِرُونَ: دا کسان کامل تاونیان دی ځکه چه جنت ئے په اُور باندے خرڅ کړو او هدایت ئے په ګمراهئ باندے، او په الله او د هغهٔ په رسول ئے دروغ ووئیل او د دروغو

Scanned by CamScanner

قسمونه ئې په دنيا او په آخرت كښې وكړل او په خپلو ځانونو ئې هميشه نعمتونه ختم كړل، او ځانونه ئې عذابونو ته وړاندې كړل ددې نه بل لوى تاوان بل كوم كيدې شي؟!۔

| إِنَّ الَّذِيْنَ يُحَادُّوْنَ اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗٓ أُولٰٓئِكَ |
|---|
| يقيناً هغه كسان چه خلاف كوى د الله او د رسول د هغهٔ نه، دا كسان |
| فِى الْأَذَلِّيْنَ ﴿۲۰﴾ كَتَبَ اللّٰهُ |
| په ډيرو ذليلانو كښې دى۔ ليكلى دى الله تعالىٰ (په تقدير كښې) چه |
| لَأَغْلِبَنَّ أَنَا وَرُسُلِىْ إِنَّ اللّٰهَ قَوِىٌّ عَزِيْزٌ ﴿۲۱﴾ |
| خامخا غالبه كيږم به زهٔ او رسولان زما، يقيناً الله قوت والا دې زورور دې۔ |

**تفسير** : منافقانو دا كوشش كولو چه د يهودو په صحبت او ملګرتيا او په دروغژنو قسمونو سره ځان عزتمن كړى، نو الله وفرمايل چه ترڅو دوئ د الله تعالىٰ او د هغهٔ د رسول خلاف كوى نو دوئ به هم هميشه په دنيا او په آخرت كښې خوار او ذليله وى، هيڅكله به دوئ ته عزت نهٔ ملاويږى۔

فِى الْأَذَلِّيْنَ : پدې كښې زيات تاكيد دې ځكه چه أُولٰٓئِكَ اسم اشاره ئې ذكر كړه، او فِىْ كلمه ئې ذكر كړه چه په استغراق او إِنغِمَاس باندې دلالت كوى۔ يعنى دوى غرق او ډوب دى په جماعت د ذليلانو كښې۔

كَتَبَ اللّٰهُ لَأَغْلِبَنَّ: اُوس الله تعالىٰ ايمان والو ته زيرې وركوى په غلبه او مدد سره، او رد كوى په منافقانو باندې، منافقانو كوشش كولو چه اسلام مغلوبه كړى او د نبى كريم ﷺ دعوت ختم كړى،

نو الله وفرمايل چه منافقان دې ددې خبرې نه خاطر جمع شى چه الله به د خپل رسول مدد نهٔ كوى بلكه الله تعالىٰ دا خبره ليكلې ده چه په هر حال كښې به صرف الله تعالىٰ او د هغهٔ رسول غالبه كيږى، او د شيطان تابعدار به ذليله او رسوا كيږى، ځكه چه الله تعالىٰ د ټولو نه زيات قوى او زورور دې، په دهٔ باندې هيڅوك غالبه كيدې نشى۔

كَتَبَ: يعنى الله په تقدير كښې ليكلى دى، او په هغې كښې هيڅ قسم تبديلى نهٔ راځى۔

Scanned by CamScanner

یعنې دا هسې عارضي خبره نهٔ ده بلکه فیصله شوې او لیکلې شویده.

لَأَغْلِبَنَّ: دا غلبه د جهاد او شهادت سره منافات نهٔ لري، کله به یو رسول شهید کیږي هم، دا هم غلبه ده، لکه د غلبې مختلف شکلونه دي. لکه سورة حم مؤمن (٥١) آیت کښې دي: ﴿إِنَّا لَنَنصُرُ رُسُلَنَا وَالَّذِينَ آمَنُوا فِي الْحَيَاةِ الدُّنْيَا﴾

(یقیناً مونږ به خامخا د خپلو رسولانو او مؤمنانو په ژوند دنیوی کښې مدد کوو).

نو آیا مؤمنان نهٔ شهیدان کیږي؟ معلومیږي چه دلته غلبه په اعتبار د عاقبت سره ده، او غلبه په اعتبار د عام کولو د دین سره او غلبه په اعتبار د حجت سره ده.

إِنَّ اللّٰهَ قَوِيٌّ: یعنې الله زورور دے، نو اے منافقانو! تاسو ددے نبی د دین د ختمولو او خکته کولو کوشش مهٔ کوئ، هسې به ځانونه ستړي کړئ، د الله مقابله څوك نشي کولے.

| لَا تَجِدُ قَوْمًا يُؤْمِنُونَ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ |
|---|
| تهٔ به موندهٔ نکړې داسې قوم چه ایمان لري په الله او په ورځ روستنۍ |
| يُوَادُّونَ مَنْ حَادَّ اللّٰهَ وَرَسُولَهُ وَلَوْ |
| چه دوی مینه کوي د هغه چا سره چه خلاف کوي د الله او د رسول د هغهٔ اګرکه |
| كَانُوا آبَاءَهُمْ أَوْ أَبْنَاءَهُمْ أَوْ إِخْوَانَهُمْ أَوْ عَشِيرَتَهُمْ أُولَٰئِكَ كَتَبَ |
| وي پلاران د دوی یا ځامن د دوی یا ورونه د دوی یا قبیله د دوی دا کسان لیکلے دے الله |
| فِي قُلُوبِهِمُ الْإِيمَانَ وَأَيَّدَهُم بِرُوحٍ |
| تعالیٰ په زړونو د دوی کښې ایمان او مضبوط کړي ئې دي دوی په رحمت سره |
| مِّنْهُ وَيُدْخِلُهُمْ جَنَّاتٍ تَجْرِي مِن تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ |
| د خپل طرف نه، او داخلوي به دوی جنتونو ته چه بهیږي لاندې د هغې نه ولې |
| خَالِدِينَ فِيهَا ۚ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمْ وَرَضُوا عَنْهُ |
| همیشه به وي په هغې کښې، راضي دے الله تعالیٰ د دوی نه او دوی راضي دي د هغهٔ نه |

Scanned by CamScanner

| اُولٰٓئِكَ حِزْبُ اللّٰهِ اَلَآ اِنَّ حِزْبَ اللّٰهِ هُمُ الْمُفْلِحُوْنَ ﴿۲۲﴾ |
|---|
| دا کسان ډله د الله ده، خبر شئ! یقیناً ډله د الله هم دوی کامیاب دی۔ |

**تفسیر** : منافقان وائی چه مونږ خو مؤمنان یو، هسے د یهودو سره تعلق ساتو، ددے وجه نه چه څه حادثه به راشي نو د دوئ نه به مدد او فائده اخلو، نو الله پدے آیت کښې قانون کیخودو (او دا آیت هم د موالات او معادات په باره کښې سخت آیت دے)

قانون دا دے چه څوك د ایمان دعویدار دے، ځان ته په الله او په قیامت باندے ایمان لرونکے وائی، نو دے به چرته د الله تعالیٰ د دشمنانو سره دوستي ونکړي، اگرکه هغه کفارئے خپلوان هم وی، ځکه چه د ایمان تقاضا دا ده چه د کافر نه به براء ت کوی، ځکه چه دا دواړه خبرے (ایمان او محبت د کافرانو) متناقضین دی، چه هیڅکله په یو انسان کښې نشي راجمع کیدے، داسے نشي کیدے چه یو تن دے ځان ته مسلمان هم وائی او بیا دے وائی چه خیر دے زهٔ به د کافرانو سره دوستي هم کوم۔

ددے وجه نه د محبت ډیر صورتونه دی، د هغوی سره په زړهٔ کښې مینه ساتل، د اسلام او د مسلمانانو په مقابله کښې د هغوی مدد کول، او د هغوی دپاره جاسوسی کول او د هغوی داسے اعزاز او اکرام کول چه هغوی په مؤمنانو باندے عزتمند او شرفاء وګنړی۔

ربط :

مخکښې د الله او د هغهٔ د رسول د دشمنانو ذکر وشو، اُوس د هغه ایمان والو ذکر کیږی چه هغوئ په هیڅ حال کښې هم د الله د دشمنانو سره دوستي نهٔ کوی، ځکه په الله باندے ایمان او د هغهٔ په رسول باندے ایمان او د هغهٔ د رسول د دشمنانو سر مینه کول په یو زړهٔ کښې نهٔ جمع کیږی۔ او مقصد ددے آیتِ کریمه نه د الله او د هغهٔ د رسول د دشمنانو د دوستئ نه په ممانعت کښې مبالغه کول دی، یعنی مومنانو له کافرانو سره د ناستے پاستے او دوئ سره د ګډون کولو نه بیخی ډډه کول پکار دی، او په دے معامله کښې د مومن په زړهٔ کښې معمولی شان میلان هم نهٔ دے پکار۔ اگرکه د الله دغه دشمنان ستاسو پلرونه، ځامن، ورونه یا نور نزدے رشته دار ولے نهٔ وی، ځکه ایمان د مؤمن نه غوښتنه کوی چه د الله د دشمنانو سره هیڅ تعلق ونهٔ ساتی۔

د سورهٔ آل عمران په (۲۸) آیت کښې الله تعالیٰ دا خبره داسے بیان کړے ده :

Scanned by CamScanner

﴿لَا يَتَّخِذِ الْمُؤْمِنُونَ الْكَافِرِينَ أَوْلِيَاءَ مِنْ دُونِ الْمُؤْمِنِينَ وَمَنْ يَفْعَلْ ذَٰلِكَ فَلَيْسَ مِنَ اللَّهِ فِي شَيْءٍ إِلَّا أَنْ تَتَّقُوا مِنْهُمْ تُقَاةً وَيُحَذِّرُكُمُ اللَّهُ نَفْسَهُ﴾

(مومنانو باندے لازم دی چه ایمان والو پریښودلو سره کافران دوستان جوړ نهٔ کړی، او څوک چه داسے اوکړی هغه د الله په حفاظت کښې نهٔ دے، مګر دا چه تاسو د دوئ د شر نه په څهٔ طریقه بچ کیدل مقصد وی۔ او الله تاسو د خپل نفس نه یروی)۔

وَلَوْ كَانُوا : یعنی دا خلق اګر که انسان ته ډیر نزدے دی لیکن کله چه کافران وی نو دشمنی به ورسره کولے شی۔ په باب د دین کښې به د خپلولئ لحاظ نشی کیدے، د الله او د رسول حق مقدم دے په حقوقو د قرابت باندے۔ لکه دا خبره په سورة التوبه کښې هم ذکر شویده۔

يُوَادُّونَ: د دشمنئ صورت دا دے چه که پلار حربی کافر وی نو د هغهٔ سره به قتال کولے شی، او که حربی نهٔ دے نو بیا به د هغه سره د زړهٔ محبت نهٔ ساتی او په دنیاوی امورو کښې د هغهٔ خدمت کولے شی۔

حافظ ابن کثیرؒ د سعید بن عبد العزیزؒ وغیره په حواله لیکلی دی چه دا آیت د صحابه کراموؓ په باره کښې نازل وو (چه هغوی پدے آیت باندے ډیر ښکلے عمل کړے وو)

ابو عبیده بن الجراح ﷺ د بدر په میدان کښې خپل پلار وژلے وو، او ابو بکر صدیق ﷺ په دے ورځ خپل خوی عبد الرحمن د جنګ د مقابلے دپاره راوغوښتو، (هغه ترے وتښتیدو، بیا روستو چه مسلمان شو نو خوی ورته وویل چه تهٔ ما لره د بدر په ورځ یو ځای کښې مخے له راغلے ما ښه وژلے شوے لیکن ما وویل چه پلار مے دے، نو هغهٔ ورته وفرمایل: قسم په الله که تهٔ ما لیدلے وے نو ما د الله دپاره وژلے)

او مصعب بن عمیر ﷺ په دے ورځ خپل ورور عبید بن عمیر قتل کړے وو،

او عمر بن خطاب ﷺ په دے ورځ خپل یو نزدے رشته دار وژلے وو، یعنی خپل ماما عاص بن هشام بن المغیره۔

او حمزه، علی او عبیده بن الحارث رضی الله عنهم په دے ورځ خپل د ترونو ځامن (عتبه، شیبه او ولید بن عتبه) قتل کړی وو۔

ام حبیبه رضی الله عنها د ابو سفیان لور وه کله چه صلح حدیبیه ماته شوے وه، او ابو سفیان بیرته دا صلح تازه کوله، نو خپلے لور ام حبیبه رضی الله عنها کره ورغلو، نو

Scanned by CamScanner

یوه بستره پرته وه هغې ترې اُوچته کړه، ابوسفیان ورته ووېل: دا بستره دې څنګه اُوچته کړه (رَغِبْتِ بِهَا عَنِّیْ) دې سره دې زما نه زیاته مینه وکړه او که نهٔ زما عزت کوے بله بستره راوړے؟ هغې وفرمایل: (اَنْتَ رَجُلٌ نَجِسٌ مُشْرِكٌ فَلَمْ اُحِبَّ اَنْ تَجْلِسَ عَلَيْهِ) ته مشرك نجس ئې. نو ما خوښه نهٔ کړه چه تهٔ په هغې باندې کینې، نو هغهٔ ووېل:
(لَقَدْ اَصَابَكِ بَعْدِیْ شَرٌّ) چه زما نه روستو تا ته شر رسیدلے دے.
(الاکتفاء بما تضمنه من مغازی رسول الله والثلاثة الخلفاء ۲/۱۷۸)
نو دے زنانه د الله دپاره څومره غیرت وکړو، پلار ئې مسافر دے او میلمه راغلے دے او بیا ډیره موده بعد ورسره ملاؤ شویدے.
او د بدر د قیدیانو په باره کښې عمر فاروق ﷛ وفرمایل: دا قیدیان به قتل کړو چه الله ته خپل اخلاص وښایو. او عبد الله بن رواحه ﷛ وفرمایل: دوئ به په اُور وسیزو.
ابوعامر الراهب (الفاسق) په خپل قوم کښې ډیر عزتمند وو، کله چه مرتد شو او د احابیشو په ملګرتیا کښې جنګ ته راغلو، قریشو ته ئې ووېل چه زهٔ د خپل قوم سره مخامخ شم نو یو تن به هم د رسول الله ﷺ سره پاتے نشي، کله چه جنګ کښې رامخامخ شو خپل قوم ته ئې ووېل: اَنَا اَبُوْعَامِرٍ. زهٔ ابوعامر یم. نو قوم ورته ووېل: لَا اَنْعَمَ اللّٰهُ بِكَ عَيْنًا يَا فَاسِقُ. الله دې ستا سترګے یخے نکړی اے فاسقه. مخکښې به ئې ورته راهب (پیر) وئیلو، اُوس ئې ورته فاسق ووئیلو، دے ته ایمانی غیرت وائی. (سیرت ابن اسحاق)
اُولٰٓئِكَ كَتَبَ فِيْ قُلُوْبِهِمُ الْإِيْمَانَ: اَیْ اَثْبَتَ وَحَكَمَ لَهَا بِالْإِيْمَانِ. د داسے مومنانو په باره کښې الله وفرمایل چه الله د دوئ په زړونو کښې ایمان مضبوط کړے، او د هغې دپاره ئې په ایمان باندے فیصله کړیده. او لکه څنګه چه په کاغذ باندے لیکل کیږی، او لیکل پکښې دننه ننوتي وی، نو دغه شان د دوی په زړونو کښې ایمان ننوتے دے. کنایه ده د ثَبَات او مضبوطوالی نه. یعنی دوئ داسے کامل یقین والا دی چه هغه په محبت د غیر الله سره نهٔ محو کیږی لکه د کاغذ نه خط نهٔ جدا کیږی.
وَاَيَّدَهُمْ بِرُوْحٍ مِّنْهُ: (۱) د روح نه مراد بعضِ خلقو د الله خاص مدد اخستے دے. یعنی که د الله مدد نهٔ وے نو د پلار وغیره سره دشمنی ګران کار دے.
(۲) بعضو د زړهٔ رڼرا،
(۳) او بعضو قرآن او حجت. (ربیع بن انسؓ).

Scanned by CamScanner

(٤) او بعضو جبریل علیه السلام۔

(٥) او بعضو ایمان اخستے دے۔

(٦) یا د روح نه مراد د رحمت دے۔ دریم قول غوره دے۔ وجه دا ده چه په قرآن کښې الله تعالیٰ د کافرانو دشمنی بیانوی، او د مؤمنانو په زړونو کښې خو هسے هم ایمان وی، او د کافرانو سره دشمنی وی نو په قرآن سره نور مضبوط شو۔

نو پدے کښې دا زیرے پروت دے چه الله تعالیٰ به داسے مضبوط ایمان والا خلق په دنیا کښې نهٔ ضائع کوی، د هغه تائید او نصرت به د دوئ سره وی، او په آخرت کښې به ئے داسے جنتونو ته داخلوی چه د هغے لاندے به نهرونه بهیږی، چه په دے کښې به دوئ همیشه دپاره اوسی، او د دوئ الله به د دوئ نه راضی کیږی، په دوئ به د خپلو رحمتونو باران کوی، او دا مومنان به د خپل رب قِسما قِسم نعتمونو موندلو سره د هغهٔ نه خوشحاله شی۔

أُولَٰئِكَ حِزْبُ اللَّهِ : یعنی په دنیا کښې دا خلق د الله تعالیٰ د ډلے افراد دی، د هغهٔ د حکمونو اتباع کوی، د هغهٔ د دشمنانو سره جنګ کوی، او د هغهٔ د دوستانو مدد کوی۔ پدے کښې اشاره ده چه د الله تعالیٰ په ډله کښې به هغه شخص وی چه د دوست (الله) د رضا کولو د وجه نه خپل خپلوان او خپل دوستان پریږدی او د هغوی سره هیڅ محبت او نصرت نهٔ کوی۔ وبالله التوفیق۔

## امتیازات او خصوصیات

١ - مسئله د ظهار پکښې ذکر ده۔

٢ - آدَابُ النَّجْوىٰ او آدَابُ الْمَجْلِس پکښې ذکر دی۔

٣ - د نبی کریم ﷺ سره د مشورے نه مخکښې د صدقے حکم چه اُوس منسوخ شوے۔

٤ - د حزب الشیطان او د حزب الرحمٰن تذکره پکښې شویده۔

ختم شو تفسیر د سورة المجادله په مدد د رحمٰن او رحیم سره په تاریخ : ٧ شعبان ١٤٣٧ هـ موافق : ١٣ مئ ٢٠١٦ء یوم الجمعه۔

❀❀❀

Scanned by CamScanner

بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ط

| آیاتها (٢٤) | (٥٩) سورة الحشر مدنية (١٠١) | رکوعاتها (٣) |
| --- | --- | --- |

سورت حشر مدنی دے، په دے کښ خلیریشت آیتونه او درے رکوع دی۔

## تفسیر سورة الحشر

نوم : (١) حشر ورته ځکه وائی چه پدے کښ د یهودیانو حشر ذکر شویدے۔
(٢) بل نوم ئے سورة بنی النضیر دے۔ بخاریؒ او مسلمؒ او نورو محدثینو د سعید بن جبیرؒ نه روایت کړیدے چه ما د عبد الله بن عباس ﷺ نه د سورة حشر په باره کښ پوښتنه وکړه، نو هغهٔ ووئیل (قُلْ سُوْرَةُ بَنِي النَّضِيْرِ) چه دا (سورتِ بنی النضیر) دے، یعنی دا سورت د دوئ په باره کښ نازل شوے وو۔
(بخاری ١٤ - باب حدیث بنی النضیر رقم : ٤٠٢٩) ومسلم : (٧٧٤٣)
د نازلیدو زمانه : د قرطبیؒ وینا ده چه دا سورت د ټولو په نیز مدنی دے۔

## مناسبت

١- مخکښ سورت کښ ئے د قوانین وضعیه ؤ بدی بیان کړه نو دلته د کفارو ذلت بیانوی کوم چه وضعی قوانین جوړوی، مخکښ هم بیان شو دلته ئے بیا بیانوی۔
٢- مخکښ په وضعی قوانینو رد او د رسول الله ﷺ د مخالفینو ذلت ئے بیان کړو نو دلته د هغوی عملی رسوائی بیانیږی چه وګورئ الله تعالیٰ بنی نضیر رسوا کړل۔
٣- مخکښ د منافقانو یو قسم قبائح وو نو دلته ئے بل قسم قبائح ذکر کوی۔
٤- مخکښ مفسدانو ته زجرونه او رټنے بیان شوے نو دلته تخویف دنیوی بیانوی۔

Scanned by CamScanner

## مقصد د سورت

تَذْلِيْلُ الْكُفَّارِ وَالْمُنَافِقِيْنَ وَتَحْذِيْرُ الْمُسْلِمِيْنَ مِنْ اَوْصَافِهِمْ۔ د كفارو او منافقانو ذليله كول او مسلمانان د هغوئ د صفتونو نه يره ول۔ چه زهٔ به كافران او منافقان ذليله كوم، او تاسو كښې دے د هغوى په شان صفتونه رانشى۔

په سورت كښې درے حصے دى، په اوله حصه كښې چه اوله ركوع ده، د يهوديانو تذليل ذكر دے او په دويمه حصه كښې د منافقانو تذليل، او په آخرى ركوع كښې د مسلمانانو يره ول دى د بدو صفاتو د منافقانو نه۔

ددے سورت تفسير په صحيح طريقے سره د پيژندلو د پاره مناسب معلوميږى چه د امام ابن القيم" د زاد المعاد، طبقات ابن سعدّ، او سيرت ابن هشامّ وغيره په مدد سره د مدينے د قبائلو اَوس او خزرج او د دوئ په خوا او شا كښې د اوسيدونكو يهوديانو مختصره پيژندنه وكړے شى، لكه دا مخكښې هم ذكر شويدى ليكن د زياتى فائدے دپاره سره د اضافے نه ذكر كيږى۔

د مدينے په خوا اوشا كښې د يهودو درے مشهور قبائل وسيدل : بنى قينقاع، بنى نضير او بنو قريظه۔ دا خلق په (۱۳۲ م، ق) كښې د روميانو د ظلمونو نه تنګ راغلل او د فلسطين نه حجاز ته راغلل، او د اَيله، مقنا، تيماء، وادى القُرىٰ، فَدَكْ او خيبر وغيره په سر سبز علاقو كښې آباد شول۔

د دوئ نه تقريبًا درے صدئ روسته دَ اَوس او خزرج قبائل د يمن د عظيم سيلاب (ډيم راخلاصيدو) د وجے نه د هلته نه وتښتيدل او يثرب كښې آباد شول۔

د زمانے په تيريدو سره بنى قينقاع د خزرج قبيلے سره، او بنى قريظه او بنى نضير د اَوس قبيلے سره نزدے شو۔

يهود د خپلے سود خورئ او چالاكئ او عيارئ د وجے نه د يثرب او د خوا او شا علاقو په اقتصاد باندے قابض شول، او د خپل وجود باقى ساتلو دپاره به ئے هميشه اَوس او خزرج خپلو كښې جنګول، دے دپاره چه چرته دا خلق متحد نشى او دوئ دباؤ نهٔ كړى۔

نبى كريم ﷺ چه كله مدينے ته تشريف راوړو، نو اَوس او خزرج او د مكے مهاجرين ئے يو ځاى كړل او د مسلمانانو يو وحدت ئے قائم كړو، او د يهودو قبائلو سره ئے د امن او د

مدینے نه د دفاع متحده معاهده وکړه، لیکن یهودو ددے معاهدے پابندي ونۀ کړه. او د اسلام او مسلمانانو د ورځ په ورځ زیاتیدونکی طاقت د دوئ په زړونو کښې د حسد اُور بل کړو، دوئ نبی کریم ﷺ او مسلمانانو ته د نقصان رسولو دپاره هر ناپاک چل چلول شروع کړو۔

د اَوس او خزرج پخوانئ دشمنئ ئے د دوئ ترمینځه را اوپاروله، او د بدر د غزا د کامیابیو نه پس خو د دوئ د بغض او حسد اُور نور هم بل شو۔

د بنی نضیرو سردار کعب بن اشرف مکے ته لاړو او د قریشو کافرانو ئے دوباره په جنګ کولو باندے را اوپارول او هلته نه واپس راتلو سره به ئے د مسلمانانو د ښځو نوم نه اخستل او عشقیه شعرونه به ئے وئیل۔ آخر نبی کریم ﷺ ددهٔ نه تنګ راغے، او د محمد بن مسلمه انصاری ﷛ په ذریعه ئے هغه قتل کړو۔

بنی قینقاع د یثرب په ښار کښې د خزرج قبیلے خوا او شاته اوسیدل، او د لوهارئ کار به ئے کولو۔ دوئ په خپل طاقت او په خپل اُوده سوه خوانانو باندے ډیر ناز کولو۔

یوه ورځ دوئ په رنړا ورځ یوه مسلمانه ښځه په بازار کښې بربنده کړه، چه ددے په نتیجه کښې یو مسلمان او یهودی قتل شو۔ ددے واقعے نه پس نبی کریم ﷺ د هغوئ خواته ورغے، هغوئ ته ئے معاهده وریاده کړه، او د شرافت په دائره کښې د اُوسیدو نصیحت ئے ورته وکړو، لیکن هغوئ اُلټه جواب ورکړو او وے وئیل چه مونږ د قریشو خلق نۀ یو، چه هغوئ له تا د بدر په میدان کښې ماتے ورکړه، که مونږ سره ډے واسطه راغله نو تاته به معلومه شی چه سړی څنګه وائی ؟۔

د دوئ ددے جواب نه رسول الله ﷺ وپیژندله چه دوئ د مسلمانانو په خلاف د جنګ اعلان کړے دے۔ دے وجے نه نبی ﷺ د صحابهٔ کرامو دیوے ډلے سره د دوئ د محلے محاصره وکړه۔ پنځلس ورځے لا تیرے شوے نۀ وے چه هغوئ د نبی ﷺ نه د خپلو ځانونو امان وغوښتلو۔ نبی ﷺ په دے شرط باندے دوئ ته د دوئ ځانونه وراُوبخښل چه دوئ به خپل ټول مال او اسلحه او د حرفت او صنعت سامانونه پریږدی، او د مدینے نه به اُوځی۔

چنانچه هغوئ دغسے وکړل، الله تعالیٰ د دوئ په زړونو کښې داسے رُعب واچولو چه د صدیو نه استوګن کورونه ئے د پوره سامانونو سره پریښودل، او هلته نه خیبر طرفته

Scanned by CamScanner

لاړل۔ دے واقعے نه پس د مدینے یهود څو ورځو پورے خو ویریدونکی پاتے شول، لیکن د اُحُد د غزا په ورځو کښ د منافقانو په را پارولو باندے، او خپله د خپل فطری خباثت له وجے نه د مدینے د دفاعی معاهدے پابند پاتے نشول۔

د اُحُد د غزا نه پس رسول الله ﷺ د بنو عامرو دوه کسانو ته امان ورکړے وو نو یو صحابی (عمرو بن امیه الضمری ؓ) هغه دواړه په لاره کښ قتل کړل، هغه پرے خبر نهٔ وو، رسول الله ﷺ ته ئے چه دا خبر ورکړو نو هغه وفرمایل: چه دوی ته خو ما امان ورکړے وو اُوس به ددویٔ دیت ورکوو، رسول الله ﷺ سره دوه سوه اُوښان نهٔ وو نو وے وئیل چه بنی نضیرو ته به ورشو او د هغوی نه به قرض دیت وغواړو (لکه چه د دویٔ سره په مدینه کښ دا معاهده شوے وه چه د یو بل مدد به کوو۔

او ددے نه دا هم معلومه شوه چه عامو کفارو سره (کله چه حربی نهٔ وی) معاملات کول جائز دی، دا جدا شے دے او د هغوی سره محبت ساتل جدا شے دے)

کله چه نبی کریم ﷺ د بنی نضیرو کلی ته تشریف یوړو، نو دویٔ موقع غنیمت وګڼړله او د رسول الله ﷺ د وژلو سازش ئے وکړو او فیصله ئے وکړه چه د نبی ﷺ په سر باندے به د دیوال دپاسه نه یو لوی ګټ راګذار کړی، لیکن الله تعالیٰ په همدغه وخت د وحی په ذریعه هغهٔ ته اطلاع ورکړه، نو هلته نه فوراً صحابه کرامؓ سره واپس مدینے ته راغے، او دویٔ ته ئے خبر اولیږلو چه دویٔ په لسو ورځو کښ دننه دننه خپل کلے پریدی،

لیکن دویٔ د عبد الله بن ابی ابن سلول په وسوسه ددے کار کولو نه انکار وکړو، هغه ورته وئیلی وو چه که تاسو سره جنګ وشو مونږ به درسره یو، او که تاسو د کلی نه وخکلے شویٔ مونږ به درسره یو۔

نو دوی پدے خبره دهوکه شو۔ نو نبی ﷺ په ربیع الاول (٤) هجری کال کښ د هغے محاصره وکړه، هغوی خپلو لویو لویو قلعه ګانو ته وختل، دروازے ئے ځان پسے بندے کړے او خوراکونه څکاکونه ورسره بنهٔ ډیر وو، او دلته مسلمانانو ترے ګیره واچوله، ډیرے ورځے محاصره وو (شپږ ورځے) نو رسول الله ﷺ صحابه کرامؓ ته حکم وکړو چه دویٔ په دے کجورو ډیره خواری کړیده او پدے باندے ډیر خفه کیږی (یهود هسے هم بخیلان شیونه وو) پدے طریقه به دویٔ راکوز شی، کله چه د کجورو وهل او سیزل شروع شول نو دوی ته ډیر زیات درد ورسیدو لکه غشے چه د دوی په زړونو لګیږی، نو

Scanned by CamScanner

هغوی مسلمانانو ته پیغور ورکړو چه تاسو خو ځان ته اصلاح والا وایئ او دلته کجورے سیزئ دلته منافقانو وویل چه کجورو څه ګناه کړے وه۔ دا خو فساد دے۔

کله چه د یهودیانو زړونه وډردیدل نو دیته تیار شول چه مونږ پدے شرط راکوزیږو چه زمونږ وینه به محفوظ وی او مونږ به د مدینے نه وځو او د وسلے نه علاوه چه څه هم په خپلو اُوښانو باندے وړے شو نو هغه به وړو۔

نو دوی دروازے او لرګے ویستل او په اُوښانو به ئے اچول او سپك او ذلیله خیبر طرفته روان شول، د دوئ نه صرف دوه سړی یامین بن عُمیر بن کعب او ابو سعد بن وهب مسلمان شو، او باقی خیبر ته، او په دوئ کښ ځینے شام ته لاړل۔

د بنی نضیرو همدے جلا وطنئ ته قرآن ﴿ أَوَّلِ الْحَشْرِ ﴾ وئیلے دے۔

دا خلق په دویم ځل د عمر بن خطاب ﷛ په زمانه کښ د خیبر نه جلا وطن شول او شام ته لاړل چه دا د دوئ دویم حشر وو، او دریم حشر به ئے د قیامت په ورځ وی چه ددے په باره کښ په بعضِ حدیثونو کښ راغلی دی چه هغه به د شام په سرزمین کښ وی۔

نبی کریم ﷺ د دوئ نه پاتے شوی مالونه او اسباب په مهاجرینو کښ تقسیم کړل۔

په خیبر کښ دا خلق وسیدل، د دوئ د مشرانو حُیَیُ بن اَخطب او سَلام بن ابی الحُقَیق او کنانة بن الربیع بن ابی الحُقیق زړونه پرسیدلی وو پدے وجه دوی لړ روستو زمانه کښ قریشو سره رابطے وکړے، او د عربو عام قبائل ئے په رسول الله ﷺ باندے راپاڅول، او د هغے په نتیجه کښ لس زره فوج په مدینه باندے حمله کونکی راغلل چه دے ته غزوه د خندق او احزاب وئیلے شی۔

او بیا د حدیبیه نه روستو رسول الله ﷺ په خیبر حمله وکړه، او هغه ئے هم فتح کړه، او د دوئ نه ئے د خیبر د زمکے زمینداران جوړ کړل ځکه چه دوئ سوال زاری کوله، بیا د عمر فاروق ﷛ په زمانه کښ شام ته وشړل شول۔

## د مال فیء قانون

د دوئ نه ډیر مالونه د صلح په طریقه واخستے شو، نه په طریقه د جنګ سره نو دے ته په شریعت کښ مال فَیء وائی، او د مال فیء قانون دا وی چه دا به ټول بیت المال ته واچولے شی، د رسول الله ﷺ په ژوند کښ ئے قانون دا وو چه دا ټول د رسول الله ﷺ حق وو

Scanned by CamScanner

چه هغه پرے هر څه کوی، د مجاهدینو پکښ حق نهٔ وو، بیا به هغه پرے څهٔ کول؟ نو هغه به د خپلو بیبیانو دپاره د یو کال خرچه جدا کوله، خپلو خپلوانو له به ئے پرے ودونه کول، او فقیرانو مسکینانو ته به ئے د هغے نه ورکړه کوله، او باقی مال به ئے په جهاد کښ استعمالولو او څان له به ئے یوه روپۍ هم صبا ته نهٔ ساتله۔

عمر فاروق ﷺ فرمائی : هغه به د هغے نه په خپل اهل باندے د یو کال نفقه کوله بیا چه به څه پاتے شو نو هغے باندے به ئے وسله او اسونه اخستل دپاره د تیارئ د جهاد فی سبیل الله۔ (بخاری ومسلم)

او د رسول الله ﷺ د وفات نه روستو د مال فیء قانون دا دے چه دا د ټولو مسلمانانو ترمینځ مشترك دے، اګرکه جهاد کښ ئے شرکت نهٔ وی کړے لکه په (۱۰) آیت کښ ددے حکم تفصیل راروان دے چه درے قسمه خلقو ته به ورکولے شی۔

او امیر المؤمنین عمر فاروق ﷺ به وئیل :

[لَئِنْ عِشْتُ لَيَأْتِيَنَّ الرَّاعِيَ وَهُوَ بِسَرْوِ حِمْيَرَ نَصِيبُهُ مِنْهَا لَمْ يَعْرَقْ فِيهَا جَبِينُهُ]

که زهٔ ژوندے وم نو د حِمْیَر علاقے په یوه بانډه کښ که یو اعرابی وی هغه ته به ئے هم ورکوم چه د هغهٔ ددے په باره کښ په تندی خوله هم نهٔ وی راغلی۔

(شرح السنه رقم: ۲۷٤۰) مصنف عبد الرزاق (۲۰۰٤۰) وهو صحیح موقوفا)

د اسلامی حکومت فائدے به مسلمانانو ته رسیږی۔

د بنو نضیرو د جلاوطنئ پورتنئ واقعه د همدے سورت مرکزی موضوع ده۔ اوس راشئ چه د سورت مطالعه وکړو۔

Scanned by CamScanner

| |
|---|
| سَبَّحَ لِلّٰهِ مَا فِي السَّمَاوَاتِ وَمَا فِي |
| پاکي وائي الله لره هغه څيزونه چه په آسمانونو کښې دي او هغه څۀ چه په |
| الْأَرْضِ وَهُوَ الْعَزِيْزُ الْحَكِيْمُ ﴿١﴾ هُوَ الَّذِيْ |
| زمکه کښې دي، او هغه زورور حکمتونو والا دے. خاص الله هغه ذات دے |
| أَخْرَجَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا مِنْ أَهْلِ الْكِتَابِ مِنْ دِيَارِهِمْ |
| چه راويستل ئې هغه کسان چه کافران دي د کتاب والو نه د کورونو د هغوی نه |
| لِأَوَّلِ الْحَشْرِ مَا ظَنَنْتُمْ أَنْ يَّخْرُجُوْا وَظَنُّوْا |
| په اول راغونډولو سره، ګمان نۀ کوو تاسو چه وُبه اُوځي دوی او ګمان کولو دوی |
| أَنَّهُمْ مَّانِعَتُهُمْ حُصُوْنُهُمْ مِّنَ اللّٰهِ فَأَتَاهُمُ |
| چه يقيناً منع کونکي دي دوی لره قلعه ګانے د دوی د الله (د عذاب) نه نو راغے دوی ته |
| اللّٰهُ مِنْ حَيْثُ لَمْ يَحْتَسِبُوْا وَقَذَفَ فِيْ قُلُوْبِهِمُ |
| الله تعالیٰ د هغه ځائے نه چه ګمان نۀ کولو دوی او وے غورزوله په زړونو د دوی کښې |
| الرُّعْبَ يُخْرِبُوْنَ بُيُوْتَهُمْ بِأَيْدِيْهِمْ وَأَيْدِي الْمُؤْمِنِيْنَ |
| يره، ورانول دوی کورونه خپل په لاسونو خپلو او په لاسونو د مؤمنانو |
| فَاعْتَبِرُوْا يَا أُولِي الْأَبْصَارِ ﴿٢﴾ |
| نو نصيحت واخلئ اے عقلونو والو۔ (اے پوهے والو) |

**تفسير**: د الله عظمت په اوله کښې ولے ذکر کیږي؟ دا د روستنۍ خبرے د تتميم دپاره ذکر کیږي، يعنې الله دومره لوی دے چه ټول مخلوقات د هغۀ په ذکر کښې لګيا دي، او يهوديان ددے لوی الله عظمت نۀ پيژني، او د هغۀ مخالفتونه کوي،

بل: الله پاک دے، د عيب کارنۀ کوي، د کمال کارونه کوي، نو يهوديان چه ئې ددے علاقے نه وشړل نو پدے کښې ئې کمال دے۔ ځکه چه الله تعالیٰ د ظلم کولو نه پاک دے،

Scanned by CamScanner

هغه چه څه کوی، نو د خپل عزت حاصلولو دپاره ئے نهٔ کوی هغه خو عزیز دے او بے فائدے ئے هم نکوی ځکه چه حکیم دے۔
**اَلَّذِیۡنَ کَفَرُوۡا مِنۡ اَهۡلِ الۡکِتَابِ**: ددے کافرانو نه مراد بنی نضیر دی چه دا د هارون ؑ د اولاد نه وو، او د رومانیانو د ظلم نه تنگ راتلو سره مدینے ته راغلی وو، او د رسول الله ﷺ د راتیږلو انتظار به ئے کولو۔ کله چه هغهٔ د مکے نه هجرت وکړو مدینے ته راغے نو هغهٔ سره ئے دشمنی شروع کړه، او نمبر دیته اُورسیدهٔ چه هغویٔ ئے د مدینے نه جلاوطن کړل، چه دیته په دے آیت کښ [أول حشر] وئیلے شوے دے۔
**مِنۡ دِیَارِهِمۡ**: د اصلی وطن نه شړل ډیره لویه سزا ده، د مودو نه پدے مقام کښ آباد وو، جائیدادونه ئے وو، ددے پریخودل څه آسان کار نهٔ دے۔
**اَخۡرَجَ** کښ ئے نسبت الله تعالیٰ ته وکړو ځکه چه دا ویستل د الله تعالیٰ په امر سره وو خپل رسول ته۔
**لِاَوَّلِ الۡحَشۡرِ**: په اول راغوندولو سره۔ دے ته ئے اول ځکه ووئیلو چه دلته الله تعالیٰ اول ځل راغونډ کړل او بیا ئے خیبر ته وشړل، او دویم ځل په خیبر کښ راغونډ کړے شو او شام ته وشړل شو۔ لِاَوَّلِ کښ لام د توقیت (وقت) دپاره دے۔ یعنی په وخت د اول حشر کښ۔
د عکرمهٔ وینا ده چه د چا چه د قیامت په ورځ د شام زمکه د میدانِ محشر په جوړیدو کښ شك وی هغه دِے دا آیت اولولی۔ (ځکه چه دا خلق شام ته تلی وو او د دوی آخری حشر به هم دغه ځای ته کیږی)۔
**مَا ظَنَنۡتُمۡ**: دا خطاب دے صحابه کرامو ته۔ یعنی ستاسو په خیال کښ هم دا نهٔ راتله چه داسے قوی بنی النضیر به د خپلو کورونو نه ووځی او دا علاقے به پریدی، او د هغوی هم دا گمان نهٔ وو، لیکن الله تعالیٰ ذلیله کړل۔ ځکه چه څوك د الله نافرمانی کوی، نو که د هغه نه تولهٔ دنیا تاؤ وی او په ډیر محفوظ ځایونو کښ وی نو هم به ذلیله کیږی،
اَبَی اللهُ اِلَّا اَنۡ یُّذِلَّ مَنۡ عَصَاهُ۔
(الله به خامخا هغه چا لره ذلیله کوی چه د هغهٔ نافرمانی کوی)
**حُصُوۡنُهُمۡ**: جمع د حِصن ده، قلعه ته وئیلے شی، د دویٔ څلور قلعه گانے مشهورے وے، وطیح، نطاة، سلالم، کتیبه۔ حُصُوۡنُهُمۡ فاعل دے د مَانِعَتُهُمۡ دپاره۔

Scanned by CamScanner

فَاَتَاهُمُ اللّٰهُ : اتیان (راتلل) د الله د صفاتو نه دے، په غیر د تاویل او د تشبیه نه لکه په سورة البقره آیت (۲۱۰) کښې ذکر شویدے۔ د الله راتلل حق دی، او ددے معنیٰ په اعتبار د محاورے سره په حکم او امر سره کول هم جائز دی چه الله تعالیٰ خپل نبی ته حکم وکړو چه دوی وباسی۔

يُخْرِبُوْنَ: ۱- لِشُحِّهِمْ۔ دوی خپل کورونه ورانول یو خو دوی بخیلان وو، د مسلمانانو سره ئے حسد وو چه د دوی په کورونو کښې ونهٔ وسیږی۔

۲- لِحَاجَتِهِمْ اِلَى الْخَشَبِ ۔ د دوی لرګو ته ضرورت وو۔ د کورونو نه ئے دروازے، درشلے او بشونه راویستل دے دپاره چه دا ځان سره ویسی۔

(قاله الزهريؒ وابن زيدؒ وعروه بن زبيرؒ)

مؤمنانو د هغوی کورونه ددے دپاره خرابول چه دوئ ذلیله کړی او دوئ ته زیات تکلیف ورسوی۔

فَاعْتَبِرُوْا :اَىْ اِتَّعِظُوْا وَتَدَبَّرُوْا ۔ یعنی نصیحت واخلئ او فکر وکړئ۔ اعتبار د عبرت او عبور نه دے، تیریدو او انتقال ته وئیلے شی لکه عَبْرَةٌ اُوښکے ته وائی چه د سترګے نه وبهیږی۔

(۱) واحدیؒ وائی : د اعتبار معنیٰ ده په څیزونو کښې نظر اچول دے دپاره چه پدے سره ددے د جنس نه بل شے معلوم شی۔

(۲) د یو شی نه ذهن بل شی طرفته بوتللو ته وئیلے شی۔

(۳) په بل تعبیر سره : اعتبار او عبرت اخستل دا دی : انتقال د یو معلوم نه (چه په آوریدو یا په لیدلو سره معلوم شی) غیر معلوم ته په طریقه د فکر کولو سره۔

دلته په ډیرو خبرو عبرت اخستل دی :

(۱) تَوَكَّلُوْا عَلَى اللّٰهِ وَلَا تَغْتَرُّوْا بِقُوَاكُمْ كَمَا اغْتَرَّ الْيَهُوْدُ۔

په الله توکل کوئ او په خپلو طاقتونو مهٔ دوکه کیږئ لکه چه یهودیان دهوکه شوی وو۔

(۲) ذِلَّةٌ فِىْ مُخَالَفَةِ الرَّسُوْلِ ۔ د رسول الله ﷺ په مخالفت کولو کښې سراسر ذلت دے اګر که تا سره به ډیر فوجونه او طاقتونه وی۔ کتابی دے او الله تعالیٰ ئے ذلیله کوی څکه چه د هغهٔ د رسول مخالف دے،

(۳) د کافرانو په مقابله کښې به الله تعالیٰ د ایمان والو مدد کوی اګرکه کمزوری وی. او د الله وعدې او وعیدونه رشتینی دی.

بعض خلق ددې نه قیاس ثابتوی، لکه صاحب د نور الانوار ترې ثابت کړې، چه یو حکم قیاس کړی په بل باندې د وجه د جهت جامعه او علت مشترکه نه.

دلته شرعی لفظ اعتبار ذکر دې، او قیاس لفظ نهٔ دې ذکر، آؤ دا جدا مسئله ده چه په اسلام کښې قیاس شته او که نهٔ؟ پدې کښې د اهل علمو اختلاف دې،

راجح دا ده چه قیاس ته د امت هیڅ ضرورت نشته، ټول مسائل قرآن او حدیث کښې شته، البته که یو عالِم ته په یوه مسئله کښې آیت او حدیث نهٔ وی معلوم او مجبوره راشی نو د هغهٔ دپاره جائز ده چه ځان له قیاس وکړی لیکن په بل چا باندې د هغې منل ضروری نهٔ دی لکه امام ابو حنیفهٔ به یو قیاس وکړو نو د هغهٔ شاګردانو به ورسره نهٔ منلو. نو قیاس په امت باندې حجت نهٔ دې. دومره لوی شے نهٔ دې لکه چه بعض کتابونو والا پرې ټول دین روان کړیدې.

ددې مثال داسې دې لکه مرداره چه په وخت د ضرورت کښې پکار راځی.

اصولینو هم لیکلی دی چه قیاس مُثبت د احکامو نهٔ دې بلکه مُظهر دې، ددې مطلب هم دا دې چه قیاس مستقل دلیل نهٔ دې.

| وَلَوْلَا أَنْ كَتَبَ اللّٰهُ عَلَيْهِمُ الْجَلَاءَ |
|---|
| او کچرته نهٔ وې لیکلې الله تعالیٰ په دوی باندې شړل د وطن نه |
| لَعَذَّبَهُمْ فِي الدُّنْيَا وَلَهُمْ فِي الْآخِرَةِ عَذَابُ |
| خامخا عذاب به ئې ورکړې وې دوی ته په دنیا کښې او دوی لره په آخرت کښې عذاب د |
| النَّارِ ﴿۳﴾ ذٰلِكَ بِأَنَّهُمْ شَاقُّوا اللّٰهَ وَرَسُولَهُ |
| اُور دې. دا پدې وجه چه دوی مخالفت کړې وو د الله او د رسول د هغهٔ |
| وَمَنْ يُشَاقِّ اللّٰهَ فَإِنَّ اللّٰهَ شَدِيدُ الْعِقَابِ ﴿۴﴾ مَا |
| او څوک چه مخالفت کوی د الله نو یقیناً الله سخت عذاب والا دې. هغه |

Scanned by CamScanner

| قَطَعْتُمْ مِّنْ لِّيْنَةٍ اَوْ تَرَكْتُمُوْهَا قَائِمَةً عَلٰى اُصُوْلِهَا |
|---|
| چه پریکړې تاسو د اُونې د کجورو نه یا پریخوستې تاسو دې لره ولاړې په خپلو بیخونو |
| فَبِاِذْنِ اللّٰهِ وَلِيُخْزِيَ الْفَاسِقِيْنَ ﴿٥﴾ |
| باندې نو دا په حکم د الله سره دی، او دې دپاره چه اُوشرموی نافرمان۔ |

**تفسیر** : مطلب دا دې چه که الله تعالیٰ په دوی باندې په تقدیر کښې او د دوئ په قسمت کښې د اول نه جلاوطنی نهٔ وې لیکلې، نو الله تعالیٰ به د بنی قریظه ؤ په شان دوی له هم په دنیا کښې د قید او بند او د وژلو سزا ورکړې وې، او د آخرت عذاب خو ورله ضرور شته۔ یعنی د عذاب نه خو خلاصیدې نشی، لیکن تقدیر خو نهٔ بدلیږی نو پدې وجه الله تعالیٰ دوی ته په دنیا کښې صرف همدغه د جلا وطنئ او د ذلت سزا ورکړه۔

دا هم دلیل دې چه الله تعالیٰ هر شے په تقدیر کښې لیکلې دې او هغه نهٔ بدلیږی۔

**اَلْجَلَاءَ**: د اخراج او جلاء فرق دا دې چه جلاء هغه شړل دی چه د اهل او اولادو سره وی او اخراج عام دې چه د اهل او اولاد سره وی او که د هغوی نه بغیر وی۔

دویم دا چه جلاء خاص ده په جماعت (ډیرو کسانو) پورې، او اخراج عام دې که د یو شخص وی او که د ډیرو وی۔ (قاله الماوردیؒ)

**لَعَذَّبَهُمْ**: یعنی الله تعالیٰ به نورې سزاگانې ورکړې وې لکه قید او قتل لکه د بدر د مشرکانو په شان یا په طوفانونو او سیلابو او قحطونو وغیره سره۔

**ذٰلِكَ بِاَنَّهُمْ شَآقُّوا اللّٰهَ** : اُوس ددې عذابونو علت بیانوی چه دوئ د الله او د رسول مخالفت کړیدې او هغې سره الله تعالیٰ عذابونه ترلی دی۔ دوئ وعده ماته کړه او د هغهٔ نه ئې انکار وکړو۔

مشاقه د شَق نه دې، چودلو او دوه ټکړې کولو ته وائی، او دا په ښکاره مخالفت کښې استعمالیږی، یا مشاقه د شِق نه دې یو طرفته وئیلې شی، یعنی د الله او د رسول نه په مخالف طرف کښې ودریدل۔ یو معصیت دې هغه نفس مخالفت کولو او حکم ماتولو ته وائی۔ او مشاقه دا ده چه انسان په ضد کښې ودریږی، او انکار کوی او خپله خبره د الله او د رسول د خبرې نه غوره گنړی، دا وجه ده چه مشاقه کفر دې او معصیت عام دې۔

Scanned by CamScanner

وَمَنْ يُّشَاقِّ اللهَ: پدے سورت کښې د اِدغام سره ذکر شو، او په سورة الانفال کښې ﴿وَمَنْ يُّشَاقِقِ﴾ په فك ادغام سره ذکر وو، په صورت د ادغام کښې په معنیٰ کښې زیادت وی او هلته د عامو کافرانو بحث وو، او دلته د یهودیانو مشاقه ذکر ده، او د دوی کفر او مخالفت ډیر سخت وو.

او دلته ئې صرف د الله تعالیٰ مشاقه ذکر کړه ځکه چه د الله تعالیٰ مشاقه د هغهٔ د رسول مشاقه ده.

مَا قَطَعْتُمْ: دا جواب د سوال د یهودو او منافقانو دے.

محمد بن اسحاق د یزید بن رومانؒ، قتادهٔ او مقاتل بن حیانؒ قول نقل کړے چه کله رسول الله ﷺ بنی النضیر محاصره کړل نو د هغوئ د ذلیله او رسوا کولو او د هغوئ په زړونو کښې د رُعب اچولو دپاره بعضِ صحابهٔ کرامؓ ته ئې حکم وکړو چه د هغوئ د کهجورو ځینے ونے پریکړی. نو هغوئ ځینے ونے پریکړے، (تر څلورو سوو پورے) نو بنی نضیرو رسول الله ﷺ ته دا خبره را اولیږله چه ته خو په زمکه کښې د فساد خورولو نه منع کوے بیا د ونو پریکولو حکم څنګه کوے؟!

او دا وَهم د بعض مسلمانانو په زړونو کښې هم راتللے شو چه ونو څه ګناه کړیده چه هغه مال ضائع کړو؟.

نو الله تعالیٰ دا آیت نازل کړو او د نبی ﷺ او د صحابهٔ کرامؓ کارئے جائز وګنړلو، او د خلقو ذهن سازی ئې وکړه، بلکه دا ئې ووئیل چه دا څهٔ چه وشو د الله په حکم سره وشو، او دے دپاره وشو چه الله تعالیٰ خپل او د خپل رسول دشمنان ذلیله او رسوا کړی. نو دا بعینهٖ د الله تعالیٰ د حکمت مطابق کار وو.

ددے په باره کښې حسان بن ثابت ؓ وفرمایل:

| | | |
|---|---|---|
| تَعَاقَدَ مَعْشَرٌ نَصَرُوْا قُرَيْشًا | ❁ | وَلَيْسَ لَهُمْ بِبَلْدَتِهِمْ نَصِيْرٌ |
| هُمُ اُوْتُوا الْكِتَابَ فَضَيَّعُوْهُ | ❁ | وَهُمْ عُمْيٌ مِنَ التَّوْرَاةِ بُوْرٌ |
| كَفَرْتُمْ بِالْقُرْآنِ وَقَدْ اَبَيْتُمْ | ❁ | بِتَصْدِيْقِ الَّذِيْ قَالَ النَّذِيْرُ |
| وَهَانَ عَلٰى سَرَاةِ بَنِيْ لُؤَيٍّ | ❁ | حَرِيْقٌ بِالْبُوَيْرَةِ مُسْتَطِيْرُ |

هغه ډلے چه د قریشو سره ئې مدد وکړو ددے نبی په خلاف ئې تړون وکړو، لیکن د دوی لپاره د

Scanned by CamScanner

دوی په علاقه کښې هیڅ مددګار نشته۔

❁ دا هغه خلق دی چه دوئ ته کتاب ورکړے شوے وو لیکن دوی هغه ضائع کړو، او دوی د تورات نه راندهٔ او هلاك شویدی۔ تاسو په قرآن باندے کفر وکړو او د هغه خبرو د تصدیق نه مو انکار وکړو کوم چه دا نبی ئے بیانوی۔

❁ او آسان شو په سردارانو د بنی لؤی باندے هغه اُور چه په بُویره علاقه (باغ) کښې خور وور بلیدو۔

او په ترمذی کښې په صحیح سند سره د ابن عباس ﷺ نه روایت شویدے چه کله د دوی ونے پریکړے شوے نو مسلمانانو ووئیل چه مونږ بعض ونے پریکړے او بعض مو پریخودے نو مونږ به د رسول الله ﷺ نه تپوس کوو چه آیا مونږ چه کومے پریکړے پدے کښې اجر شته او کومے چه مو پریخودے آیا په هغے کښې څه ګناه شته؟ نو دا آیت نازل شو ما قطعتم الآیة۔ (ترمذی فی تفسیر سورة ۵۹، باب ۲) رقم (۳۳۰۳)

مِّنْ لِّيْنَةٍ: د کجورے ونے ته وائی هر قسم چه وی، او دا په بُویره مقام کښې وے۔ (بویره تصغیر د بئر دے، دا د یهودیانو ځای وو)

أَوْ تَرَكْتُمُوْهَا: یعنی یا مو بعضے پریخودے۔

فَبِإِذْنِ اللهِ: یعنی دا د الله حکم وو او په الله باندے اعتراض نهٔ کیږی، او پدے کښې حکمتونه وو چه بعض د هغے نه دا دی:

وَلِيُخْزِيَ الْفَاسِقِيْنَ: دے دپاره چه دا فاسقان (چه د الله د طاعت نه وتلی دی) وشرموی، چه څنګه مسلمانان د دوئ په مالونو کښې د خپلے خوښے مطابق فیصلے او تصرف کوی، او دوی غصه کړی۔

ددے آیت نه بعض علماؤ دلیل نیولے دے چه د مصلحت دپاره د کافرانو قلعه ګانے او کورونه نړول یا سیزل یا په مجانیقو باندے ویشتل جائز دی۔

او بعض نورو اهل علمو وئیلی دی چه ددے نه ځان ساتل پکار دی مګر دا چه کافرانو ته سخت زور ورکوی۔ (الترمذی، وفتح البیان)

Scanned by CamScanner

وَمَا اَفَاءَ اللّٰهُ عَلٰى رَسُوْلِهٖ مِنْهُمْ فَمَا

او هغه مالونه چه راواپس کړیدی الله تعالیٰ په رسول خپل باندے د دوی نه نو نهٔ دی

اَوْجَفْتُمْ عَلَيْهِ مِنْ خَيْلٍ وَّلَا رِكَابٍ وَّلٰكِنَّ اللّٰهَ يُسَلِّطُ رُسُلَهٗ

زغلولی تاسو په هغے باندے څه اسونه او نهٔ اوښان لیکن الله مقرروی رسولان خپل

عَلٰى مَنْ يَّشَاءُ وَاللّٰهُ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ ﴿٦﴾

په هغه چا باندے چه اُوغواړی او الله په هر شی باندے پوره قدرت لرونکے دے۔

مَآ اَفَاءَ اللّٰهُ عَلٰى رَسُوْلِهٖ مِنْ اَهْلِ الْقُرٰى

هغه مال چه واپس کړیدے الله تعالیٰ په رسول خپل باندے د کلو والو نه

فَلِلّٰهِ وَلِلرَّسُوْلِ وَلِذِى الْقُرْبٰى وَالْيَتٰمٰى وَالْمَسٰكِيْنِ وَابْنِ السَّبِيْلِ

نو خاص الله لره دی او رسول لره او خپلوانو لره او یتیمانو او مسکینانو او مسافر لره

كَىْ لَا يَكُوْنَ دُوْلَةً ۢ بَيْنَ الْاَغْنِيَاءِ مِنْكُمْ

دی دپاره چه نشی اوړیدونکے راوړیدونکے په مینځ د مالدارانو کښې ستاسو نه

وَمَآ اٰتٰىكُمُ الرَّسُوْلُ فَخُذُوْهُ وَمَا نَهٰىكُمْ

او هغه چه درکوی تاسو ته رسول نو وائے خلئ او هغه څه چه منع کړی یئ تاسو

عَنْهُ فَانْتَهُوْا وَاتَّقُوا اللّٰهَ اِنَّ اللّٰهَ شَدِيْدُ الْعِقَابِ ﴿٧﴾

د هغے نه نو منع شئ، او اُویریږئ د الله نه، یقیناً الله سخت عذاب ورکونکے دے۔

**تفسیر :** اُوس بل وَهم دفع کوی، کله چه دا ټول مالونه (زمکے، جائیدادونه) د بیت المال شو نو ځینو صحابه کرامؓ وغوښتل چه بنی نضیرو پریښی مالونه دے د نورو غنیمت مالونو غونته د دوئ ترمینځه تقسیم کړے شی، نو الله وفرمایل چه دا غنیمت نهٔ دے بلکه دا مال فیء دے چه د رسول الله ﷺ په رعب سره حاصل شویدے، او ددے دپاره صحابو جنګ نهٔ وو کړے، او نهٔ په دے پسے لرے سفر شوے وو، بلکه صرف دوه

Scanned by CamScanner

میله پیدل مسافت کولو سره د بنی نضیرو محلاتو ته اُورسیدل او هغه ئے د څلور وارو طرفونو نه راګیر کړل، او الله د دوئ په زړونو کښې رعب واچولو، دے وجے نه په غیر د څۀ مقابلے نه صرف د یو څو ورځو نه پس ئے هر څۀ پرېښودل او هلته نه لاړل.

دے مال ته د اسلامی فقه په اصطلاح کښې (مالِ فیء) وئیلے کیږی.

مال فیئ دے ته وائی چه په صلح سره یا په جزیه سره حاصل شی، یا کافر مسلمان بادشاه ته هدیه او تحفه راوړی، او دا د غنیمت د مال غونته تقسیمیږی نۀ، بلکه نبی کریم ﷺ له اختیار وو چه هغه څنګه غواړی په دے کښې تصرف کولے شی.

اَفَاءَ: د فیء نه دے په معنیٰ د رجوع سره، او دلته هم دے مال خپل اصلی مالك ته رجوع وکړه چه هغه مسلمان دے.

فَمَا اَوۡجَفۡتُمۡ عَلَیۡهِ مِنۡ خَیۡلٍ وَّلَا رِکَابٍ: یعنی تاسو نۀ دی زغلولی په هغے باندے اسونه او نۀ اُوښان، یعنی په جنګ سره نۀ دی حاصل شوی.

یُسَلِّطُ رُسُلَهٗ: یعنی الله تعالیٰ خپل رسول په دوئ باندے مسلط کړو او هغۀ ته ئے رعب ورکړو.

مَا اَفَاءَ اللهُ: مخکښې دا حکم بیان شو چه مال فیئ تول د رسول الله ﷺ سره خاص وو، نو اُوس د دے تفصیلی مصرف بیانوی، ګویا که دا آیت تشریح ده د مخکښې آیت. او اهل القریٰ ذکر کولو کښې اشاره ده چه د مال فیئ دا حکم یواځے د بنو النضیر د مالونو پورے خاص نۀ دے بلکه که د نورو کافرانو نه په دغه طریقه مالونه حاصل شی نو هغه به هم مال فیئ وی. لکه د دے کلو نه مراد فدك، او بعض کلیٔ د بنی قریظه ؤ او بنو النضیر او خیبر وغیره دی.

فَلِلّٰهِ: یعنی د دے اختیار او تصرف د الله تعالیٰ دپاره دے. مطلب دا دے چه د الله خوښه ده چه هغه په کښې څنګه فیصله کوی. او دا مطلب نۀ دے چه د الله دپاره به په کښې حصه مقرروله شی. او د هغۀ فیصله دا ده چه دا به د هغۀ د رسول او د هغۀ د خپلوانو او عامو یتیمانو او مسکینانو او مسافرو دپاره وی. څکه چه دا مال د بیت المال شو او د بیت المال نه به په دغه طریقه خرچ کولے شی.

وَلِلرَّسُوۡلِ: دا لام د استحقاق دے.

نو رسول الله ﷺ به ترے د خپلو بیبیانو له خرچه ورکوله، میلمانۀ به ئے راتلل هغوی ته

Scanned by CamScanner

به ئې ورکول، یتیمانان او مسکینان به راتلل، او خپل خپلوانو کښې به ئې چه څوک محتاج وو هغوی له به ئې پرې ودونه کول او خرچه به ئې ترې ورکوله، بیا به چه څه پاتې شو نو د جهاد دپاره به ئې پرې سامانونه اخستل.

د ذوی القربیٰ نه مراد د رسول الله ﷺ خپلوان دی، چه هغه بنو هاشم او بنو المطلب دی ځکه چه دوی د صدقې او زکاتونو اخستو نه بند دی، نو په مال فیء کښې ورته حق ورکړې شو.

وَالْيَتَامٰى: ددې نه مراد ماشومان نا بالغ دی، مذکر وی او که مؤنث، خو چه پلار ئې مړ وی.

كَيْ لَا يَكُوْنَ: اُوس الله تعالیٰ ددې فائده بیانوی چه الله مال فیء په تاسو کښې تقسیم نکړو د غنیمت په شان، ځکه چه که تاسو کښې غنیمتونه هم تقسیم کړې شی، او دا مال هم تقسیم کړې شی، نو ددې مطلب خو به دا شی چه تاسو به سم مالداره شئ، ټول مالونه او جائیدادونه او زمکې باغونه به د یو څو مجاهدینو شی، او نور ډیر غریبانان به محروم پاتې شی.

او پدې کښې په رسم د جاهلیت باندې رد دې په باره د مال فئ کښې ځکه چه په جاهلیت کښې به مالِ فئ او مالِ غنیمت کښې پوره څلورمه حصه د رئیس د هغوی وه، ددې وجه نه هغه ته به مرباع یا ربیع القوم وئیل کیدو، او باقی درې حصو کښې به هم د هغه اختیار وو که چا له به ئې ورکولې او که نۀ ورکولې، او اکثر به ئې مالدارو کښې تقسیمولې.

او دا دلیل دې چه په اسلام کښې سرمایه دارانه نظام نشته لکه چه پدې کښې سوشلسټ نظام هم نشته بلکه هر چا ته به که مالداروی او که غریب، د هغۀ شرعی حق ورکیدې شی. نو دلته مقصد دا دې چه ما کوم قانون کیخودو نو دې کښې د غریبانانو فائده ده، بیا به یو تن ډیر مالداره شوې وې او نورو مسلمانانو ته به هیڅ فائده نۀ ملاویدې.

دُوْلَةً: په پیښ د دال سره. مَا يُدَالُ بَيْنَ الْاَيْدِيْ. د هغه مال نوم دې چه هغه د خلقو ترمینځ اوړی راوړی، د هغوی ترمینځ ادل بدل کیږی. یعنی مالداره خلق به ئې د غریبانو نه علاوه خپل مینځ کښې اړوی راړوی.

ددې وجه نه عمر فاروق رضی الله عنه به فرمایل: مَا عَلٰى وَجْهِ الْاَرْضِ مُسْلِمٌ اِلَّا وَلَهٗ حَقٌّ فِيْ هٰذَا الْفَيْءِ اِلَّا مَا مَلَكَتْ اَيْمَانُكُمْ. په مخ د زمکه یو مسلمان نشته مګر د هغه دپاره پدې مال

Scanned by CamScanner

فیٔ کښې حق شته سوئ د غلامانو ستاسو نه۔
وَمَا آتَاكُمُ الرَّسُوْلُ : یعنی تاسو ته چه زما د رسول (ﷺ) د طرفنه څه ملاؤ شی نو په هغې راضی وسیږئ۔ ددے ډیر مصداقات دی۔
(۱) مال درته درکوی، مال غنیمت درکوی، (۲) مال فیٔ درکوی،
(۳) هر فعل او قول او ترك درکوی۔
یعنی کوم عمل او قول او ترك چه رسول الله ﷺ کړے وی نو مونږ به په هغے عمل کوو او کوم نه ئے چه منع کړی وی، یا ئے پریخودے وی نو د هغے نه به ځان ساتو۔
لنډه دا چه هر هغه شے چه شریعت مونږ ته راکړے وی، او مونږ ته په صحیح حدیث سره رارسیدلے وی، نو دا مونږ ته رسول ﷺ راکړیدے او د کوم کار نه ئے چه منع کړی یو نو د هغے نه به منع کیږو۔ او دا آیت په رد د بدعاتو کښې ډیر فائده مند آیت دے۔
علامه مهدویؒ فرمائی :
[هٰذَا يُوْجِبُ اَنَّ كُلَّ مَا اَمَرَ بِهِ النَّبِيُّ ﷺ اَمْرٌ مِنَ اللّٰهِ وَاِنْ كَانَتِ الْاٰيَةُ خَاصَّةً بِالْغَنَائِمِ]
(قرطبی)
دا آیت دا خبره لازموی چه هر هغه شے چه نبی کریم ﷺ په هغے حکم کړے وی نو هغه به د الله د طرفنه حکم وی اګرکه دا آیت خاص د غنیمتونو په باره کښې نازل دے لیکن الفاظ ئے عام دی۔
پدے تعمیم باندے دلیل حدیث د بخاری او مسلم دے د ابن مسعود ﷺ نه، چه هغه یو ځای کښې بیان وکړو : [لَعَنَ اللّٰهُ الْوَاشِمَاتِ وَالْمُسْتَوْشِمَاتِ وَالْمُتَنَمِّصَاتِ وَالْمُتَفَلِّجَاتِ لِلْحُسْنِ الْمُغَيِّرَاتِ لِخَلْقِ اللّٰهِ]
الله تعالیٰ په خال لګونکے او خالونه طلب کونکے او ورو څو ویستونکو او د حسن دپاره غاښونه نری کونکوزنانو باندے لعنت وئیلے دے چه دوی د الله پیدائش بدلونکے دی)۔
نو د بنو اسد یوے زنانه چه نوم ئے ام یعقوب وو، ورته ووئیل : چه ما ته دا خبره رارسیدلے ده چه تا فلانئ فلانئ خبرے کړیدی؟، هغه ووئیل :
[وَمَا لِيْ لَا اَلْعَنُ مَنْ لَعَنَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ وَهُوَ فِيْ كِتَابِ اللّٰهِ]
څه وجه ده ما لره چه زهٔ به په هغه چا لعنت نهٔ وایم چه رسول الله ﷺ پرے لعنت وئیلے دے او هغه د الله په کتاب کښې ذکر دے)۔ نو هغے ووئیل :

Scanned by CamScanner

[لَقَدْ قَرَأْتُ كِتَابَ اللّٰهِ مَا بَيْنَ الدُّفَّتَيْنِ فَمَا وَجَدْتُ فِيْهِ شَيْئًا مِنْ هٰذَا]
ما خو د الله کتاب د دواړو گتو ترمينځ لوستلے دے ما خو پدے کښې ددے نه هيڅ خبره نۀ ده موندلے۔ نو هغه ورته وفرمايل:
[لَئِنْ قَرَأْتِيْهِ لَوَجَدْتِيْهِ۔ اَمَا قَرَأْتِ ﴿مَا آتَاكُمُ الرَّسُوْلُ فَخُذُوْهُ وَمَا نَهَاكُمْ عَنْهُ فَانْتَهُوْا﴾]۔
که تا صحيح لوستلے وے خامخا به دِے پکښې موندلې وے، آيا تا نۀ دی لوستلی وما آتاكم الرسول۔ (هغه شے چه تاسو ته ئے رسول الله ﷺ درکوی هغه واخلئ او د څه نه مو چه منع کوی د هغے نه منع شئ)، نو هغے ووئيل: آؤ دا خو پکښې شته، نو هغه وفرمايل: [فَاِنَّهٗ قَدْ نَهٰى عَنْهُ] نو رسول الله ﷺ ددے نه منع کړيده۔
(بخاری فی تفسير سورة ٤٩، باب ٤، واللباس باب ٨٦،٨٤ ومسلم فی اللباس حديث: ١٢٠)
نو عبد الله بن مسعود ﷜ دغه حديث پدے آيت کښې داخل کړيدے۔

| لِلْفُقَرَاءِ الْمُهَاجِرِيْنَ الَّذِيْنَ أُخْرِجُوْا مِنْ |
|---|
| (دا مالونه) دپاره د فقيرانو مهاجرينو دی هغه کسان چه ويستلے شويدی د |
| دِيَارِهِمْ وَأَمْوَالِهِمْ يَبْتَغُوْنَ فَضْلًا مِّنَ اللّٰهِ وَرِضْوَانًا |
| کورونو خپلو نه او د مالونو خپلو نه لټوی دوی فضل د الله تعالىٰ او رضا (د هغهٔ) |
| وَّيَنْصُرُوْنَ اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ أُولٰٓئِكَ هُمُ الصّٰدِقُوْنَ ﴿٨﴾ وَالَّذِيْنَ |
| او دوی مدد کوی د الله او د رسول د هغهٔ دا کسان هم دوی رشتينی دی۔ او هغه کسان |
| تَبَوَّؤُوا الدَّارَ وَالْإِيْمَانَ مِنْ قَبْلِهِمْ يُحِبُّوْنَ |
| چه تيار کړے ئے دے کور او ايمان (ئے حاصل کړيدے) مخکښې د دوی نه، مينه کوی |
| مَنْ هَاجَرَ إِلَيْهِمْ وَلَا يَجِدُوْنَ فِيْ |
| دوی د هغه چا سره چه هجرت کوی دوی ته او نۀ موندهٔ کوی دوی په |
| صُدُوْرِهِمْ حَاجَةً مِّمَّا أُوْتُوْا وَيُؤْثِرُوْنَ |
| سينو خپلو کښې تنګی د هغے نه چه هغوی (مهاجرينو) ته ورکړے شی او غوره کوی |

Scanned by CamScanner

| عَلٰٓى اَنْفُسِهِمْ وَلَوْ كَانَ بِهِمْ خَصَاصَةٌ وَمَنْ |
|---|
| په خپلو ځانونو باندې (بل چا لره) اګرکه په دوی باندې لوږه وی او هغه څوك |
| يُّوْقَ شُحَّ نَفْسِهٖ فَاُولٰٓئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُوْنَ ﴿۹﴾ |
| چه اُوساتلے شو د بخل د نفس خپل نه نو دغه کسان هم دوی کامیاب دی. |
| وَالَّذِيْنَ جَآءُوْا مِنْۢ بَعْدِهِمْ يَقُوْلُوْنَ رَبَّنَا اغْفِرْ |
| او هغه کسان چه راغلی دی روستو د دوی نه وائی دوی اے ربه زمونږ! بخنه اُوکړه |
| لَنَا وَلِاِخْوَانِنَا الَّذِيْنَ سَبَقُوْنَا بِالْاِيْمَانِ |
| مونږ ته او ورونو زمونږ ته هغه کسان چه مخکښې شویدی زمونږ نه ایمان ته |
| وَلَا تَجْعَلْ فِيْ قُلُوْبِنَا غِلًّا لِّلَّذِيْنَ اٰمَنُوْا |
| او مهٔ ګرځوه په زړونو زمونږ کښې کینه د هغه کسانو سره چه ایمان ئے راوړیدے |
| رَبَّنَآ اِنَّكَ رَءُوْفٌ رَّحِيْمٌ ﴿۱۰﴾ |
| اے ربه زمونږ! یقیناً تهٔ شفقت کونکے رحم کونکے ئے. |

**تفسیر**: د مفسرینو پدے باره کښې دوه رائے دی:

(۱) یو دا چه ددے ځای نه مستقل کلام شروع دے، پدے آیت کښې د فقراء مهاجرینو صفت بیانوی، وړیسے آیت کښې د انصارو، او دریم آیت کښې د عامو مؤمنانو صفت ذکر کوی.

(۲) لیکن دے کښې راجح دا ده چه دا درے واړه ددے صحابه کرامؓ او مؤمنانو صفات هم دی او ورسره د مال فئ سره لګیږی چه په مال فئ کښې د دوئ حق زیات دے، نو دلته اصل مستحقین د مال فئ ذکر کوی چه هغه درے قسمه خلق دی. او علت د استحقاق ته اشاره کوی، چه دوی کښې ښکلے صفات دی.

نو لِلْفُقَرَآءِ: دا بدل دے د لِذِی الْقُرْبٰی نه، یا خبر د مبتداء محذوفے دے، اَیْ اَمْوَالُ الْفَیْءِ لِلْفُقَرَآءِ. دغه مال فئ به فقیرانو ته ورکولے شی الخ.

Scanned by CamScanner

او دا صفات د مهاجرینو وو په اول وخت کښې، روستو اکثر پکښې مالداره شول. او مطلب دا دے چه هر کله چه دے خلقو د الله د دین دپاره سختہ تیره کړه نو دوی د مالونو نه محروموول نهٔ دی پکار.

مِنْ دِيَارِهِمْ: اشاره ده چه د دوی کورونه او مالونه وو لیکن د هغے نه ئے هجرت کړیدے نو فقیران شویدی ځکه چه دغه مالونه د دوی د قبضے او د تصرف نه بهر شول.

يَبْتَغُوْنَ فَضْلًا: یعنی اجر او ثواب په دنیا کښې او رضوان په آخرت کښې.

وَيَنْصُرُوْنَ اللّٰهَ: یعنی د هجرت نه روستو دعوت او جهاد ئے نهٔ دے پریخودے بلکه هغه جاری ساتی.

هُمُ الصّٰدِقُوْنَ: ددے نه معلومیږی چه د هر چا سابقه او خواری پیژندل پکار دی، یو تن د دین دپاره خواری کړیده، نو د هغهٔ اکرام به کولے شی، داسے به نهٔ وائے چه د الله تعالیٰ د دین دپاره ئے خواری کړیده خپل کار به کوی، او الله به اجر ورکوی. بلکه د هغهٔ خدمت او عزت به کولے شی او په مالونو کښې به برخه ورکولے شی.

وَالَّذِيْنَ تَبَوَّؤُوا الدَّارَ: دے کښې هم دوه قوله دی، یو دا چه پدے کښې د انصارو صفت کول مقصد دے، او دویم قول دا دے چه دا هم مستحقین د مال فیٔ دی، نو دا عطف دے په (اَلْمُهَاجِرِيْنَ) باندے او پدے کښې د انصارو پنځهٔ صفات ذکر کوی.

تَبَوَّؤُوا الدَّارَ: الف لام عهدی دی یعنی دار د هجرت او د نصرت، او ددے نه مراد مدینه ده. یعنی دوی مدینه کښې د مهاجرینو دپاره تیارے کړے وو چه دلته به راځی او مونږ به ئے ځانونو سره دیره کوو.

وَالْاِيْمَانَ: تبؤ د ایمان سره تعلق نهٔ لری، نو دلته فعل پټ دے. اَیْ وَحَصَّلُوا الْاِیْمَانَ. او حاصل کړے ئے دے ایمان لره. نو دا د قبیلے د (عَلَّفْتُهَا تِبْنًا وَّمَاءً بَارِدًا) نه دے، یعنی (ما په څاروو باندے بوس او یخے اُوبه وخوړلے). اُوبه نهٔ خوړلے کیږی بلکه څکلے شی نو دلته فعل پټ دے، اَیْ وَسَقَيْتُهَا مَاءً بَارِدًا. ومے څکلے په هغے باندے یخے اُوبه.

دویم دا چه دلته ئے د ایمان سره تَبَوُّءُ ذکر کړے پدے کښې تمکن ته اشاره ده، یعنی دوی ایمان داسے مضبوط کړے گویا که د هغے نه ئے کور جوړ کړے، او کور کښې خلق مضبوط وی، نو دوی په ایمان کښې دغه شان مضبوط ناست دی، نو حال ئے په منزله د محل گرځولے دے.

Scanned by CamScanner

بعض وائی : تَبَوَّءُ مستلزم دے معنیٰ د لزوم لره.

وَلَا يَجِدُوْنَ فِيْ صُدُوْرِهِمْ حَاجَةً : د حاجت نه مراد دلته حسد او بغض او کینه او خفگان دے. ځکه چه د حاجت سره دا څیزونه لازم دی، نو دلته په طریقه د کنایه سره ذکر ملزوم دے مراد ترے نه لازم دے. رسول الله ﷺ به مهاجرینو له مال ورکولو او انصارو له به ئے نهٔ ورکولو نو د هغوی زړه به نهٔ تنکیدو چه مونږ له څنګه مالونه نهٔ راکوی. داسے به ئے نهٔ وئیل چه زمونږ هم حاجتونه دی، مونږ ته دِے هم مالونه راکړے شی. نو ځکه دلته د حاجت حاصل معنیٰ په تنګئ سره کیږی.

یا ضمیر راجع دے انصارو ته. یعنی دوی لره چه په مال فیٔ کښې هر څومره مال ورکړے شی اګرکه لږ وی لیکن دوی په هغے سره خفګان نهٔ کوی.

وَيُؤْثِرُوْنَ عَلٰٓى اَنْفُسِهِمْ وَلَوْ كَانَ بِهِمْ خَصَاصَةٌ: اَیْ حَاجَةٌ وَّفَقْرٌ.

خصاصه حاجت او غریبیٔ او لوږے ته وائی. په اصل کښې د خَصَاص البیت نه دے، د کور چاودو ته وئیلے شی.

یعنی په خپلو کورونو کښې د حاجت او لوږے باوجود همیشه دا غواړی چه د دویٔ مهاجرین ورونه په آرام اووسیږی، او د هغویٔ بال بچ ته تکلیف ونهٔ رسی.

ایثار دے ته وائی چه انسان خپله برخه پریدی او بل ته ئے ورکړی، دے ته تَفْضِيْلُ الْغَيْرِ عَلَى النَّفْسِ هم وائی، یعنی بل لره په ځان باندے غوره کول په خوراك، مکان او سورلیٔ وغیره کښې. ددے آیت شان نزول خاص واقعه وه بیا آیت عام دے.

بخاریؒ او مسلمؒ کښې روایت دے چه ﴿وَيُؤْثِرُوْنَ عَلٰٓى اَنْفُسِهِمْ وَلَوْ كَانَ بِهِمْ خَصَاصَةٌ﴾ د ابو طلحه ﷺ په باره کښې نازل شوے وو، یو میلمه راغلو رسول الله ﷺ ټولو بیبیانو کره جواب ولیږلو څه شته ؟ هغوی وویل : چه صرف اُوبهٔ دی. نو وے فرمایل : څوك به داسے وی چه دے میلمه ته نن شپه میلمستیا ورکړی، الله به پرے رحم وکړی؟.

نو ابو طلحه انصاری ﷺ وفرمایل : زهٔ به ئے ورکړم اے د الله رسوله !. نو کور ته ئے بوتللو ام سُلیم ته ئے وویل چه د رسول الله ﷺ د میلمه اکرام وکړه، څه شته ؟ هغے وویل : صرف د ماشومانو خوراك شته، وے فرمایل : ماشومان اُوده کړه او په څه چل سره ډیوه مړه کړه چه میلمه سره کینو او لاسونه خوزه وو چه میلمه خوراك وکړی، نو دواړو په لوږه شپه تیره کړه، سهار کښې چه رسول الله ﷺ ته راغے نو هغه ورته وفرمایل :

Scanned by CamScanner

[لَقَدْ عَجِبَ اللّٰهُ مِنْ صَنِيْعِكُمَا]

الله تعالیٰ ستاسو د دواړو د کار نه تعجب وکړو او دا آیت نازل شو۔ (مسلم: ٥٤٨٠)

بیا په ټولو انصارو کښې دا کمال وو چه د مهاجرینو د پاره ئې خپلې ښځې طلاقې کړې او خپلو مالونو کښې ئې شریك کړل۔

وَمَنْ يُّوْقَ شُحَّ نَفْسِهٖ : یعنې دوئ دد ے اُوچتو صفتونو او اخلاقو د وجه نه د دوئ د زړونو نه د مال غیر شرعي محبت وېستلې شوې دې، دا خلق د الله تعالیٰ په لاره کښې د خرچ کولو نه د ذرې هومره نۀ یرېږي، دې وجې نه الله تعالیٰ وعده وکړه چه هغه به دوئ له د دواړو جهانو سعادت او نیك بختي ورکوي۔

## د شح مصداقات

[شُح] په عربي ژبه کښې بُخل ته وائي۔

(١) ابن مسعود ﷺ او ابن جریرؒ وئیلي دي چه دلته دد ے نه مقصد دے (اَنْ تَاْكُلَ مَالَ اَخِيْكَ ظُلْمًا) چه تۀ د خپل وړور مسلمان مال په ناحقه وخورې۔

(٢) د سعید بن جبیرؒ وینا ده چه دد ے معنیٰ (حرام مال خوړل، او زکاة نۀ ورکول دي)۔

(٣) [اَنْ تَطْمَحَ عَيْنُ الرَّجُلِ اِلٰى مَا لَيْسَ لَهٗ] چه د سړي سترګې هغه شي ته پورته شي چه د هغه نۀ وي۔ یعنې پردي مال ته ګوري چه په څه طریقه ئې حاصل کړي۔

(٤) اَلْحِرْصُ الشَّدِيْدُ الَّذِيْ يَحْمِلُهٗ عَلَى الْحَرَامِ ۔ یعنې سخت حرص چه هغه ئې په حرامو باندې راپورته کړي۔

(٥) طاووسؒ وائي : شح دا دے چه خپل مال نۀ ورکوي او د پردي مالونو حاصلولو کوشش کوي۔

(٦) عَدَمُ اِرَادَةِ الْخَيْرِ لِلْغَيْرِ۔ چا ته د خیر اراده نۀ ساتل او د چا په ترقئ باندې خفه کېدل۔

(٧) ابن زیدؒ وائي چه چا حرام مال وانۀ خستۀ، او الله چه د کوم شئ د ورکولو حکم کړے دے هغه ئې منع نۀ کړو، هغه د [نفس د شح] نه بچ شو۔ او د شح نه د بچاؤ صورتونه په سورة النساء کښې ذکر شویدي۔

عبد الرحمن بن عوف ﷺ به په طواف کښې صرف [اَللّٰهُمَّ قِنِيْ شُحَّ نَفْسِيْ] دعاء کوله۔ چا ورته ووېل چه دا څنګه صرف یوه دعاء کوې؟ نو هغه وفرمایل : تاسو ته نۀ ده

Scanned by CamScanner

معلومه چه الله فرمائی څوك چه د شح د نفس نه وساتلے شو نو دے کامیاب شو۔ [فَاِنِّیْ اِذَا وُقِیْتُ شُحَّ نَفْسِیْ لَمْ اَسْرِقْ وَلَا اَزْنِ وَلَا اَقْتُلْ] کله چه زۀ د نفس د بخل نه بچ شم نو غلا به نۀ کوم او زنا او قتل به نۀ کوم۔

او په حدیث کښې دی: [لَایَجْتَمِعُ الشُّحُّ وَالْاِیْمَانُ فِیْ قَلْبِ عَبْدٍ اَبَدًا]

ایمان او شح دواړه د یو بنده په زړه کښې نۀ راجمع کیږی۔ (احمد: ۹۶۹۱) صحیح بطرقه والطبرانی فی الکبیر (۱۰۵۷)۔

ځکه چه ایمان د خیر خواهئ نوم دے او شح د بد خواهئ۔

انصار صحابۀ کرام رضوان الله علیهم اجمعین د الله د گواهئ مطابق ددے ایمانی او اخلاقی بیمارئ نه پاك وو۔

امام بخاریؒ ددے آیت په تفسیر کښې د عمرؓ نه روایت کړے، دا فرمائی چه زۀ د خپل ځان نه روستو راتلونکی خلیفه ته د [اولنو مهاجرینو] د حقونو د حفاظت او د هغوئ د احترام د لحاظ ساتلو وصیت کوم، او د انصارو د خیال ساتلو نصیحت کوم چه دوئ په دار الهجرت (مدینه) کښې د مخکښې نه آباد دی او د مهاجرینو د راتګ نه مخکښې ئے په خپلو زړونو کښې د ایمان شمع روښانه کړے ده۔

وَالَّذِیْنَ جَآؤُوْا مِنْ بَعْدِهِمْ: پدے کښې هم همغه دوه قوله دی، یو دا چه دا مبتداء ده او روستو ئے خبر دے، او پدے کښې د عامو مؤمنانو صفت ذکر دے۔ مګر ظاهر دا ده چه دا عطف دے په اَلْفُقَرَاءِ الْمُهَاجِرِیْنَ باندے نو دا هم مستحقین د مال فئ دی۔

ددے نه دوه قسمه مؤمنان مراد دی، یو هغه کشران صحابه کرامؓ چه کله د هجرت زمانه ختمه شوه، یعنی د مکے فتح وشوه او اسلام قوی شو نو دوی مدینے ته هجرت وکړو۔ یعنی دوئ د اولنو مهاجرینو نه پس راغلل چه هغوئ د خپلو کورونو نه د اسلام د وجے نه په اُوخکلو باندے مجبوره شوی وو۔

دارنګه ددے نه مراد هغه تمام مومنان دی چه هغه د مکے د مهاجرینو او د مدینے د انصارو نه پس قیامته پورے راځی۔

ددے دویمے رائے مصداق د سورة التوبه (۱۰۰) آیت دے، چه په هغے کښې الله تعالیٰ فرمایلی دی: ﴿وَالسّٰبِقُوْنَ الْاَوَّلُوْنَ مِنَ الْمُهٰجِرِیْنَ وَالْاَنْصَارِ وَالَّذِیْنَ اتَّبَعُوْهُمْ بِاِحْسَانٍ رَّضِیَ اللهُ عَنْهُمْ وَرَضُوْا عَنْهُ﴾ (اوکومو مهاجرینو او انصارو چه د ټولو نه مخکښې اسلام ته وړاندے

Scanned by CamScanner

والے کړے دے، او څو مره خلق چه په اخلاص سره د دوئ تابعدار دی، الله ددے تولو نه راضی شو، او دوئ ټول د الله نه راضی شول).

## شان صحابه کرام رضوان الله علیهم اجمعین

يَقُوْلُوْنَ: یعنی د اولنو مهاجرینو او د مدینے د انصارو نه پس د راتلونکو مومنانو دپاره په مال فیء کښې د حقدار کیدو دا شرط دے چه کله دا خلق د خپل رب مخے ته خپل لاسونه غزوی، نو د خپل ځان سره د خپلو تیرو شوو مسلمانانو ورونو دپاره هم دعاء کوی، او دا ددے خبرے دلیل دے چه د ایمان په صفت کښې د شرکت په وجه مومنان د یو بل په کار راځی، یو بل سره محبت کوی، او یو بل له دعاء کوی، او دا سوال کوی چه اے زمونږ ربه! زمونږ په زړونو کښې د مخکنو مؤمنانو دپاره کینه مهٔ اچوه، او زمونږ محبت د دوئ سره باقی وساته.

وَلِاِخْوَانِنَا : ددے نه مراد دینی ورونه دی. الله تعالیٰ دوی ته دا حکم وکړو چه دوی دِے خپل ځان دپاره بخنه وغواړی، او دارنګه د مخکنو مهاجرینو او انصارو دپاره.

کوم خلق چه د صحابهٔ کرامو نه نفرت کوی، د هغوئ په خِلاف په زړهٔ کښې بغض او کینه لری، دوئ نه به الله هیڅ کله راضی کیږی نهٔ، اودوئ به د دنیا او آخرت د نیک بختیا نه محرومه کړے شی، برابره خبره ده که هغه رافضی شیعه ګان وی یا نور مُلحدین چه هغوئ په زړهٔ کښې د صحابهٔ کرامو قدر نهٔ کوی.

امام مالکؒ ددے آیت نه استدلال کولو سره وئیلی دی [مَنْ كَانَ يُبْغِضُ اَحَدًا مِنْ اَصْحَابِ مُحَمَّدٍ ﷺ اَوْ كَانَ فِیْ قَلْبِهٖ غِلٌّ، فَلَيْسَ لَهٗ حَقٌّ فِیْ فَیْءِ الْمُسْلِمِیْنَ]

چه کوم رافضیان صحابه کرامو سره بغض کوی یا ورته کنځل کوی، هغوئ لپاره په مالِ فئ کښې هیڅ برخه نشته، ځکه چه په دے آیت کښې د مومنانو ذکر شوے هیڅ صفت په دوئ کښې نهٔ موندلے کیږی. (قرطبی وابن کثیر والتحریر)

ابن ابی لیلیٰ نه قرطبیؒ نقل کړیدی چه مؤمنان په درے قسمه دی کوم چه پدے درے آیتونو کښې ذکر شویدی، نو تهٔ کوشش کوه چه ددے درے واړو نه ونهٔ وځے. (یعنی د صحابه کرامو سره بغض مهٔ کوه، او د هغوی تابعداری کوه، او هغوی دپاره دعاء کوه).

او دغه شان خبره د مصعب بن سعدؒ نه هم نقل ده چه دوه ډلے تیرے شویدی او یوه پاتے ده

Scanned by CamScanner

نو دا به ډیره ښه وی چه ته پدے آخری مرتبه کښې پاتے شے۔

علی بن الحسین یو تن ته وویل چه هغهٔ د عثمان ﷺ باره کښې بدے خبرے کولے چه ته نهٔ په مهاجرینو کښې داخل ئے او نهٔ په انصارو کښې [فَاِنْ لَّمْ تَكُنْ مِنْ اَهْلِ الْآيَةِ الثَّالِثَةِ لَتَخْرُجَنَّ مِنَ الْاِسْلَامِ] نو که په دریمه ډله کښې هم داخل نشوے (والذین جاؤوا من بعدهم) نو خامخا به د اسلام نه وځے۔ (قرطبی والدر المنثور)

عائشه رضی الله عنها فرمائی : [اُمِرْتُمْ بِالْاِسْتِغْفَارِ لِاَصْحَابِ مُحَمَّدٍ ﷺ فَسَبَبْتُمُوْهُمْ] تاسو ته دا حکم شوے وو چه تاسو به صحابه کرامو له بخنه غواړئ نو تاسو هغوی ته کنځل او رد بد وئیل شروع کړل، ما ستاسو د نبی نه آوریدلی دی چه دا امت به نهٔ ختمیږی ترڅو چه روستنی خلق به په مخکنو (نیکانو) باندے لعنتونه ووائی۔

(قرطبی)

مفسر ابن عاشورؒ لیکی : [وَقَدْ دَلَّتِ الْآيَةُ عَلٰى اَنَّ حَقًّا عَلَى الْمُسْلِمِيْنَ اَنْ يَّذْكُرُوْا سَلَفَهُمْ بِخَيْرٍ، وَاَنَّ حَقًّا عَلَيْهِمْ مَحَبَّةُ الْمُهَاجِرِيْنَ وَالْاَنْصَارِ وَتَعْظِيْمُهُمْ]

دا آیت دلالت کوی چه په مسلمانانو باندے دا حقه او لازمه ده چه دوی به خپل سلف (مشران) په خیر سره ذکر کوی، او په دوی باندے حقه او لازمه ده چه د مهاجرینو او انصارو سره به محبت کوی او د هغوی اکرام او تعظیم به کوی۔ (التحریر والتنویر)

امام قرطبیؒ د شعبیؒ نه نقل کړیدی چه یهود او نصاریٰ د شیعه ګانو نه په یو خصلت کښې غوره دی، هغه دا چه د یهودیانو نه تپوس وکړے شو چه ستاسو په ملت کښې څوك غوره دی؟ نو هغوی وائی : اصحاب د موسیٰ ؑ۔

او د نصاراؤ نه تپوس وکړے شو چه ستاسو په ملت کښې څوك غوره دی ؟ نو هغوی وائی : اصحاب د عیسیٰ ؑ او د روافضو نه تپوس وکړے شو چه ستاسو په ملت کښې شریان څوك دی؟ نو دوی وائی اصحاب محمد ﷺ۔ حال دا چه دوئ ته خو حکم شوے وو چه هغوی دپاره به استغفار غواړی نو دوی ورته کنځل شروع کړل۔

(قرطبی ۱۸/۳۳ سورة الحشر)

صاحب د فتح البیان وائی : [فَمَنْ لَّمْ يَسْتَغْفِرْ لِلصَّحَابَةِ عَلَى الْعُمُوْمِ وَيَطْلُبْ رِضْوَانَ اللّٰهِ لَهُمْ فَقَدْ خَالَفَ مَا اَمَرَهُ اللّٰهُ بِهٖ فِيْ هٰذِهِ الْآيَةِ] که چا د صحابه کرامو دپاره په طریقه د عموم باندے بخنه ونهٔ غوښته، او د هغوی دپاره ئے د الله رضا طلب نکړه (یعنی رضی الله

Scanned by CamScanner

عنهم ئے هغوی ته نهٔ وئیل) نو دهٔ خلاف وکړو د هغه امر نه چه الله تعالیٰ دهٔ ته پدے آیت کښې کړیدے۔ پاتے لا دا چه هغوی سره کینه ساتی نو دهٔ ته شیطان رسیدل کړیدی او جهنم ته روان دے مګر دا چه الله تعالیٰ ته التجاء او زاری وکړی او هغهٔ ته توبه وباسی۔

نو پدے آیت کښې دا اشاره هم ده چه کوم نیکان سلف تیر شویدی د هغوی بدی وئیل او هغه په بدئ سره ذکر کول سو چه حرام دی۔ البته د هغه چا بدی د فائدے دپاره ذکر کول جائز دی چه هغه غلط خلق تیر شوی وی، مبتدعین او مشرکان وی۔

د امتِ اسلامیه همدا درے قِسمه مومنان دی چه دوئ د مالِ فیٔ حقدار دی، چه دوئ ته مال ورکول په حقیقت کښې اسلام ته نفع رسول دی۔

الله تعالیٰ نه دعاء ده چه هغه په خپل فضل او کرم سره مونږ هم په دغه خلقو کښې شامل کړی۔ آمین، یا رب العالمین۔

| |
|---|
| أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِيْنَ نَافَقُوْا يَقُوْلُوْنَ لِإِخْوَانِهِمُ |
| آیا تهٔ نهٔ ګورے هغه کسانو ته چه منافقت ئے کړیدے وائی دوی ورونو خپلو ته |
| الَّذِيْنَ كَفَرُوْا مِنْ أَهْلِ الْكِتَابِ لَئِنْ أُخْرِجْتُمْ |
| هغه کسان چه کفرئے کړیدے د اهل کتابو نه که چرته تاسو اُوویستلے شوئ |
| لَنَخْرُجَنَّ مَعَكُمْ وَلَا نُطِيْعُ فِيْكُمْ |
| خامخا اُوخو به مونږ تاسو سره او تابعداری به نهٔ کوو مونږ په باره ستاسو کښې |
| أَحَدًا أَبَدًا ۙ وَإِنْ قُوْتِلْتُمْ لَنَنْصُرَنَّكُمْ |
| د هیچا هیڅکله، او که چرته جنګ اُوکړے شو تاسو سره خامخا مدد به کوو مونږ |
| وَاللّٰهُ يَشْهَدُ إِنَّهُمْ لَكَاذِبُوْنَ ﴿۱۱﴾ لَئِنْ |
| ستاسو او الله ګواهی کوی چه یقیناً دوی خامخا دروغژن دی۔ که چرته |
| أُخْرِجُوْا لَا يَخْرُجُوْنَ مَعَهُمْ وَلَئِنْ |
| اُوویستلے شی هغوی، نهٔ اُوځی دوی (منافقان) د هغوی سره او که چرته |

Scanned by CamScanner

| قُوْتِلُوْا لَا یَنْصُرُوْنَهُمْ وَلَئِنْ |
|---|
| جنگ اُوکړے شی د هغوی سره مدد به ونکړی دوی د هغوی سره او که چرته |
| نَّصَرُوْهُمْ لَیُوَلُّنَّ الْاَدْبَارَ ثُمَّ لَا یُنْصَرُوْنَ ﴿۱۲﴾ |
| مدد اُوکړی دوی د هغوی سره خامخا اړوی به شاګانے بیا به مدد نشی کیدے د دوی سره۔ |

**تفسیر**: پدے رکوع کښې د منافقانو بدی بیانیږی ځکه چه ددے د بنو نضیرو د محاصرے او بیا د هغویٔ د وجلا وطنیٔ سره تعلق دے۔

کله چه نبی کریم ﷺ د صحابه کرامؓ په ملګرتیا کښې د هغویٔ علاقه محاصره کړه نو د منافقانو سردارانو هغویٔ ته پیغام اولیږلو چه تاسو ثابت قدم پاتے شیٔ، او د خپلو قلعه ګانو نه مهٔ را اوځیٔ، مونږ به تاسو مسلمانانو ته همداسے نهٔ پریدو، اوکه چرے د جنګ نمبر راغے نو تاسو سره به اوګه په اوګه جنګیږو، او مونږ به درته وسلے درکوو، اوکه تاسو د مدینے نه لاړیٔ نو مونږ به هم تاسو سره ځو۔

او دوی ئے پدے طریقه په جنګ باندے راپاڅول ځکه چه د رسول الله ﷺ سره ئے ډیره سخته دشمنی لرله او زړونه ئے خوټ کیدل۔

نو بنی نضیر د منافقانو ددے دروغژنے وعدے په وجه څهٔ ورځے خو مضبوط پاتے شول، لیکن کله چه دویٔ د هغویٔ د طرف نه څهٔ عملی اقدام ونهٔ لیدلو نو د الله کړو ته اُوګوره چه په دویٔ باندے د مسلمانانو سخت رعب او دبدبه پریوته، او فوراً ئے رسول الله ﷺ ته خبر وکړو چه دویٔ ډے ونهٔ وژلے شی، بلکه دلته نه ډے دویٔ ته د وتلو اجازت ورکړے شی، په دے شرط چه دویٔ به په خپلو اُوښانو باندے د اسلحے نه علاوه څومره سامانونه چه وړلے شی، وُړی به ئے۔

لِاِخْوَانِهِمْ: یعنی دواړه په کفر کښې ملګری دی، نو دا ئے باطل دینی ورونه دی۔ او ددے اهل کتابو نه مراد بنو نضیر دی، لکه چه سورت د هغوی په حق کښې نازل شویدے۔

لیکن د عموم د الفاظو د وجه نه بنو قریظه هم پکښې داخلیدے شی لکه بعض مفسرینو (بغوی، قرطبی وغیره) هغوی ته هم ضمیرونه راجع کړیدی۔ او منافقانو د دواړو ډلو سره دغه شان خبرے کړے وے۔

Scanned by CamScanner

وَلَا نُطِيْعُ فِيْكُمْ: یعنی ستاسو په باره کښې د هیڅ خبره نهٔ منو، د رسول الله ﷺ تابعداري نهٔ کوو. دومره ښکاره دشمنان وو.

لَئِنْ اُخْرِجُوْا: پدې آیت کښې د منافقانو د دروغ بیانئ، دروغ ترلو او د نفاق او بزدلئ نور وضاحت کوی، فرمائی چه دوئ کله د خپلې وعدې پابندی وکړه چه دوئ د بنی نضیر ملګرتیا کړې وې، د هغوئ سره ئې جنګ کړې وې، اوکه چرې دوئ مجبوراً هغوئ سره په جنګ کښې ملګرتیا هم کړې وې نو دوئ به هیڅ کله ثابت قدم نهٔ پاتې کیدلې، بلکه دوئ به هغوئ په میدانِ جنګ کښې تنها پرېښودلي وې او دوئ به تښتیدلي وې.

وَلَئِنْ نَّصَرُوْهُمْ: یعنی بالفرض که منافقان د بنو نضیرو د مدد دپاره راغلي وې.

ثُمَّ لَا يُنْصَرُوْنَ: دا د دواړو سره لګی. یعنی بیا به د منافقانو او یهودیانو سره هیڅ مدد نشی کیدې د طرف د الله نه. او منافقانو ته به د هغوی نفاق هیڅ فائده ورنکړی بلکه ذلیله به شی.

| |
|---|
| لَاَنْتُمْ اَشَدُّ رَهْبَةً فِيْ صُدُوْرِهِمْ مِّنَ اللّٰهِ ذٰلِكَ بِاَنَّهُمْ |
| خامخا تاسو سختې یرې والا یئ په سینو د دوئ کښې د الله نه دا پدې وجه چه دوی |
| قَوْمٌ لَّا يَفْقَهُوْنَ ﴿١٣﴾ لَا يُقَاتِلُوْنَكُمْ جَمِيْعًا اِلَّا فِيْ قُرًى |
| یو قوم دې چه نهٔ پو هیږی. جنګ نشی کولې دوی تاسو سره په یو ځائې مګر په کلو |
| مُّحَصَّنَةٍ اَوْ مِنْ وَّرَآءِ جُدُرٍ بَاْسُهُمْ بَيْنَهُمْ شَدِيْدٌ |
| مضبوطو کښې یا شاته د دیوالونو نه، جنګ د دوی په مینځ خپل کښې سخت دې، |
| تَحْسَبُهُمْ جَمِيْعًا وَّقُلُوْبُهُمْ شَتّٰى |
| ګمان به کوې تهٔ په دوی باندې یو ځائې (متفق) او زړونه د دوی یو بل نه جدا دی |
| ذٰلِكَ بِاَنَّهُمْ قَوْمٌ لَّا يَعْقِلُوْنَ ﴿١٤﴾ |
| دا پدې وجه چه دوی یو قوم دې چه عقل نهٔ لری. |

**تفسیر**: پدې آیت کښې مسلمانانو ته د یهودیانو اومنافقانو د بزدلئ او د دوئ د میدانِ

Scanned by CamScanner

جنګ پریښودلو او تښتیدلو سبب دا ښودلے شوے دے چه دوئ د الله تعالیٰ په مقابله کښې ستاسو د تورو د پریکولو نه زیات یریږی،
دوئ د الله مقام د سره پیژندلے نهٔ دے، دے وجے نه د دوئ زړونه د الله په ځای د خلقو د ویرے نه لرزیږی چه دوئ د هیڅ نفع یا نقصان قدرت نهٔ لری. ځکه چه د منافقت صفت دا دے چه همیشه د مخلوق جانب غوره کوی په جانب د الله تعالیٰ باندے.
د الله نه نهٔ یریدل، د الله پرواه نهٔ کول او د مخلوق پرواه ډیره کول. حقیقی پو هه خو دا ده چه بنده د خپل خالق مقام او مرتبه اوپیژنی، هم هغهٔ نه یریږی، هم هغهٔ نه امید لری، او د هغهٔ محبت په هر یو کس او په هر یو شئ باندے مخکښې وساتی.
لَا يُقَاتِلُوْنَكُمْ : په دے آیتِ کریمه کښې د یهودیانو او منافقانو بزدلی او مسلمانانو نه د دوئ د یریدلو حال بیان شوے چه اے مسلمانانو! په دوئ کښې تاسو سره د مخامخ مخامخ مقابلے کولو جرأت نشته. دوئ به په تاسو باندے دیوالونو پورے پناه اخستو سره یا د بندو قلعه ګانو د دننه نه د حملے کولو کوشش کوی.
لَّا يَفْقَهُوْنَ : فقه د کلام په ظاهری مفهوم او د هغے په اشاراتو او حکمتونو باندے پو هیدل دی، او دا د علم او معرفت او فهم نه اُوچته درجه ده. یعنی دوی د الله د احکامو په رازونو او حکمتونو نا پو هه دی.
لَا يُقَاتِلُوْنَكُمْ : یعنی یهودیان او منافقان به ستاسو جنګ ته ښکاره راونهٔ وځی او نهٔ پدے باندے قدرت لری.
قُرًى مُّحَصَّنَةٍ : په داسے کلو کښې به درسره جنګ کوی چه د هغے نه دیوالونه تاو دی (قلعه بند وی) چه مسلمانان په هغے نشی آوریدلے، یا د دیوالونو نه اخوا وی بلکه د هغے نه به غشی راولی. او دا خبر د الله تعالیٰ بیخی رشتینی دے چه یهودیان هیڅکله د مسلمانانو مقابلے ته مخامخ نهٔ دی راوتی.
بَاْسُهُمْ بَيْنَهُمْ شَدِيْدٌ: ددے بأس نه مراد غیظ او عداوت دے. او زړونه د دوی مختلف دی او نیتونه ئے جدا جدا دی.
سُدّیؒ وائی : ددے نه مراد اختلاف د زړونو د دوئ دے تردے چه دوئ په یوه خبره نهٔ متفق کیږی.
مجاهدؒ وائی : بَاْسُهُمْ بَيْنَهُمْ شَدِيْدٌ یعنی په کلام او د همکیانو سره. یعنی یو بل ته به

سختې خبرې او سختې دهمکیانې ورکوي چه مونږ به خامخا داسې وکړو.

او مطلب دا دے چه کله دوی یواځې شي نو ځانونه سختئ او جنګ او قوت ته منسوب کوي، او کله چه دشمنانو سره ملاؤ شي، نو بیا ذلیله شي او عاجزي وکړي او شکست وخوري.

په بل تعبیر سره: دا چه وئیلې کیږي چه دوئ ډیر قوت او همت والا دي، نو دوئ ددے مظاهره په خپلو کښې د جنګیدلو په وخت کوي، لیکن کله چه د دوئ واسطه د مسلمانانو سره راشي، نو د دوئ تمام قوت ختم شي، ځکه چه ځوك د الله او د هغهٔ د رسول (ﷺ) خِلاف جنګ کوي، الله تعالیٰ هغه بزدل او ذلیله جوړوي.

بعض وائي ددے مطلب دا دے چه د دوئ جنګ په نسبت د دوئ همزولو ته سخت وي لیکن اے مسلمانانو! ستاسو په مقابله کښې ضعیف دي ځکه چه الله تعالیٰ د دوئ په زړونو کښې رعب اچولے دے. اول مطلب غوره دے.

تَحْسَبُهُمْ جَمِيْعًا وَقُلُوْبُهُمْ شَتّٰى: یعني په ظاهره کښې خو دوی متفق ښکاره کیږي لیکن په زړونو کښې د یو بل نه مخالف دي، ځکه چه دوی د عقل او پوهې نه محروم دي ځکه خو ایمان نهٔ راوړي کوم چه د حقیقي محبت او اتحاد او قوت ذریعه ده.

قتادهٔ وائي: [فَاَهْلُ الْبَاطِلِ مُخْتَلِفَةٌ آرَاؤُهُمْ، مُخْتَلِفَةٌ شَهَادَتُهُمْ، مُخْتَلِفَةٌ اَهْوَاؤُهُمْ، وَهُمْ يَجْتَمِعُوْنَ فِيْ عَدَاوَةِ اَهْلِ الْحَقِّ].

د باطل پرستو رائے او مذهبونه مختلف دي، ګواهي ئې مختلفه ده، او خواهشات ئې مختلف دي، (ځوك د یو پسې روان او ځوك د بل پسې) لیکن د اهل حقو په دشمنئ باندے راجمع دي. حق پرستو ته اتفاق کوي.

صاحب د محاسن التنزیل لیکي چه په پورتنو درے آیتونو کښې مومنان د یهودیانو او منافقانو سره په جنګ کولو باندے راپارولے شوي دي، او دوئ له زیرے ورکړے شوے چه دوئ هغوئ سره کله هم جهاد کوي، د الله په تائید سره به دوئ ته په هغوئ باندے فتح ملاویږي. (محاسن التنزیل وفتح البیان)

Scanned by CamScanner

| كَمَثَلِ الَّذِينَ مِنْ قَبْلِهِمْ |
|---|
| (د دوی حال) پشان د حال د هغه کسانو دے چه مخکښ د دوی نه دی |
| قَرِيبًا ذَاقُوا وَبَالَ أَمْرِهِمْ وَلَهُمْ عَذَابٌ |
| په نزدے زمانه کښ، نو اُوڅکله هغوی سزا د کار خپل او هغوی لره عذاب |
| أَلِيمٌ ﴿١٥﴾ كَمَثَلِ الشَّيْطَانِ إِذْ قَالَ لِلْإِنْسَانِ اكْفُرْ |
| دردناک دے۔ پشان د حال د شیطان دے، کله چه اُووائی انسان ته کفر اُوکړه |
| فَلَمَّا كَفَرَ قَالَ إِنِّي بَرِيءٌ مِنْكَ إِنِّي أَخَافُ |
| نو هرکله چه هغه کافر شی وائی هغه، یقیناً زهٔ جدا یم ستا نه یقیناً زهٔ یریږم |
| اللَّهَ رَبَّ الْعَالَمِينَ ﴿١٦﴾ فَكَانَ عَاقِبَتَهُمَا أَنَّهُمَا فِي النَّارِ |
| د الله نه چه رب د مخلوقاتو دے۔ نو شو انجام د دواړو دا چه دواړه به په اُور کښ وی |
| خَالِدَيْنِ فِيهَا وَذَلِكَ جَزَاءُ الظَّالِمِينَ ﴿١٧﴾ |
| همیشه به وی دواړه په هغے کښ او دا سزا د ظالمانو ده۔ |

**تفسیر** : اُوس منافقانو او یهودیانو ته مثال ورکوی او هغوی ته یره ورکوی چه اے منافقانو او یهودیانو ویرېږئ، ستاسو حال به داسے شی لکه د هغه کافرانو قریشو چه په نزدے زمانه کښ هغوی د خپل کفر سزا او بد انجام په دنیا کښ وڅکله چه هغه د بدر واقعه ده ځکه چه غزا د بنو نضیرو په ربیع الاول څلورم هجری کښ وشوه، او غزا د بدر په دویم کال په رمضان کښ شوے وه۔ نو تقریباً یو نیم کال مینځ کښ تیر شوے وو۔

یا ددے نه مراد د بنی قینقاع یهودو مثال دے کوم چه اُوس یو څو ورځے مخکښ د دوئ دے لوظئ او شرارتونو د وجے نه د مدینے نه په جلا وطنئ باندے مجبوره شول۔

د بنی قینقاع بے لوظی او بیا د دوئ د جلا وطنئ تفصیل ددے سورت د تفسیر په ابتداء کښ تیر شوے دے۔

یا دلته د منافقانو تشبیه د بنو نضیرو سره ورکړے شویده چه اے منافقانو! د خپلو

Scanned by CamScanner

شرارتونو نه بند شئ کنے ستاسو حال به د بنو نضیرو په شان جوړ شي چه اُوس لړ وخت مخکښې ئے د خپل کفر سزا وڅکله.
ابن جریرؒ وائي چه ظاهر دا ده چه پدے کښې عموم دے، دے ټولو ته اشاره صحیح ده.
کَمَثَلِ الشَّیْطَانِ: اُوس د منافقانو او بنو نضیرو مثال د شیطان سره ورکوی. یعنی کومو منافقانو چه بنی نضیر د مسلمانانو په خلاف په جنګ کولو باندے راپاڅول، دوئ سره ئے دروغژنه وعده وکړه چه دوئ به د هغوئ سره ملګرتیا کوی، اوکه د مدینے د پریښودلو موقع راغله نو دوئ به هم د هغوئ سره اوځی، د دوئ مثال د شیطان دے چه هغۀ انسان له دهوکه ورکړه او وے وئیل چه تۀ د الله نه انکار وکړه، او زما تابعداری اوکړه، اوکله چه وخت راشي نو زۀ ستا د مدد دپاره تیار یم.
او کله چه انسان ددۀ په خبرو کښې راشي، او د الله نه انکار وکړی، نو ددے ویرے نه چه هسے نۀ الله دے هم په عذاب کښې شریك نۀ کړی، فورًا د دغه انسان او د هغۀ د کفر نه خپله بیزاری اعلان کړی، او ووائی چه زۀ د الله رب العالمین نه یریږم چه که ما ستاسو مدد وکړو نو هغه به ما را اونیسی، لیکن نۀ شیطان ته د دۀ بیزاری پکار راځی، او نۀ کافر ته د شیطان وعده پکار راځی. یعنی شیطان د انسان نۀ په ژوند کښې پکار راځی او نۀ ئے په وخت د مرګ کښې پکار راځی، او دواړه همیشه دپاره په جهنم کښې غورزولے کیږی. او چونکه دوی په خپلو ځانونو ظلم کړے نو پدے وجه ورته دا سزا ورکولے شي.
او داسے خبره شیطان د بدر په ورځ مشرکانو ته هم کړے وه.
د بدر په غزا کښې شیطان د سراقه بن مالك په شکل راغلے وو، نو هلته ئے چه کله جبریل علیه السلام ولیدو نو دا ئے وویل چه زۀ د الله نه یریږم. نو اول کښې ئے کافران په مسلمانانو راواچول، بیا ئے په عین موقعه کښې خپے وستلے. دا د منافق کار وی. او په آخرت کښې به هم شیطان داسے خبے راکاړی لکه سورة ابراهیم (۲۱) آیت کښې راغلی دی. ﴿فَلَا تَلُوْمُوْنِیْ وَلُوْمُوْٓا اَنْفُسَكُمْ﴾
(ما مۀ ملامته کوئ او ځانونه ملامته کړئ) یعنی ما خو تاسو ته صرف دعوت درکړے نو تاسو زما خبره ولے منله؟.
مجاهدؒ وائي: دا مثال د هر هغه انسان دے چه کفر او شرك او نفاق کوی په وسوسه د شیطان انسی یا جنیّ سره، بیا کله چه انسان په کفر کښې کلك شي نو شیطان ترینه براء

ت وکړي۔

حافظ ابن جریرؒ او ابن کثیرؒ او قرطبیؒ لیکلي دي چه دا آیت د برصیصا په باره کښ نازل وو چه دا په بني اسرائیلو کښ یو عابد (نیك) سړے وو، ډیر عبادتونه به ئے کول، چا به نشو خطاء کولے، نو ابلیس خپل ملګري راجمع کړل چه دا شخص به څوك ګمراه کړي، نو یو شیطان چه د ابیض په نوم وو هغه ووېل چه زهٔ به ئے ګمراه کړم۔

نو اَبیض د یو انسان په شکل ځان نه بزرګ جوړ کړو او دهٔ د عبادت خانے په خوا کښ ډیره شو، او ډیرے عبادتونه ئے شروع کړل، نو برصیصا ولیدل چه دا شخص خو زما نه ډیر عبادتونه کوي، نو مینه ئے ورسره پیدا شوه، نو هغه خپلے عبادتخانے ته ننویستو، ډیره موده پدے حال وو دواړو به عبادتونه کول، نو یوه ورځ ابیض ووېل چه ډیره موده شوه اُوس زهٔ درنه څم زما څه کار پیدا شویدے،

او د یارانے دوستانے تقاضا دا ده چه یوه فائده منه خبره درته ښایم، هغه دا چه دا فلانے دم واخله (یو دم ئے ورته وخودو) چه دا په کوم بیمار باندے اچوے نو سمدست به ښهٔ کیږي، او مخلوق ته فائده ورکول پکار دي،

بیا دا ابیض به تللو او په خلقو به کیناستو او بیا به ئے د هغهٔ زړه ته وسوسه واچوله چه فلانی ځای کښ برصیصا بزرګ موجود دے هغه به دریاندے دم واچوي، تیك به شے، نو خلق به راتلل او برصیصا به پرے هغه دم اچولو،

نو ابیض به ترے پاځیدو نو خلق به ښهٔ کیدل، (د شیطان د خلقو د ګمراه کولو دا طریقه هم اُوس ډیره روانه ده، کله په یو ماشوم یا زنانه باندے کیني، بیا ورته ووېل شے چه اصحاب بابا او فلانی بابا له لاړ شه نو چه هلته لاړ شي، شیطان ترے پاځي نو ښهٔ شي نو د خلقو عقیده په بابا باندے جوړه نو مشرك شي)

پدے کښ زنانه پرے راماتے شوے، پدے کښ یوه ښائسته زنانه راغله نو د برصیصا ورسره مینه پیدا شوه، نو د هغے ورونو ته ئے ووېل چه دا دلته پریدئ دوه درے ورځے به پرے دم واچوم ښه به شي۔ نو بیا ئے د هغے سره زنا وکړه، بیا شیطان ورته دعوت ورکړو دا مړه کړه، ورونه به ئے خبر شي، قتل به دِے کړي نو هغه ئے قتل کړه، ورونه ئے راغلل، جینئ څه شوه؟ دهٔ ووېل: هغه خو دلته نه وتلے ده، زهٔ ترے نهٔ یم خبر۔ شیطان هغوی ته د انسان په شکل راغے او د دغه جینئ قبر ئے ورته وخودو۔

Scanned by CamScanner

ورونو بـرصیصا راونیولو او مریٔ کښې ئې ورته پرېے واچولو چه تا مونږ وژنو، ته قاتل او زانی ئې، نو پدے وخت کښې ورته ابیض رانښکاره شو چه زهٔ دِے خلاصولے شم خو ما ته یوه سجده وکړه، نو دے د خپل مرګ نه ویریدو او هغه ته ئې سجده وکړه، نو هغوی پرے راغلل او په توره ئې قتل کړو، او ابیض ورسره په عین موقعه کښې هیڅ مدد ونکړو نو کافر او مرتد د دنیا نه تیر شو۔ دا یوه اسرائیلی قصه ده، کیدے شی چه په دے آیت کښې ورته اشاره وی او ظاهر د قرآن دا دے چه دا د بنو نضیرو سره لګیږی۔

(احمد فی الزهد والبخاری فی تاریخه والحاکم وصححه والبیهقی وابن ابی حاتم (۱۸۸۶۰) وغیرهم بالفاظ متقاربة واللفظ للحاکم) (فتح البیان وابن کثیر وابن جریر الطبری ۳۳/۲۸)

حافظ ابن کثیرؒ وائی : دا قصه ددے آیت یو مثال دے، او دا مطلب نهٔ دے چه ددے مثل نه مراد همدا قصه ده، بلکه دا هم پکښې داخلیږی۔

دے واقعے نه دا معلومیږی چه په پردو زنانو باندے په خلوت کښې دمونه مهٔ اچوه خامخا به په نقصان کښې پریوزے۔ لکه اُوس هم ډیر دمګری په دے نقصان کښې واقع دی۔

**فَكَانَ عَاقِبَتَهُمَا:** یعنی د شیطان او د کافر انسان انجام۔

**خَالِدَيْنِ فِيهَا:** ځکه چه یو داعی دے او بل مدعوٌ دے، او دواړه ګمراهان دی۔

| |
|---|
| يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اتَّقُوا اللهَ وَلْتَنْظُرْ نَفْسٌ مَّا قَدَّمَتْ |
| اے ایمان والو ! اُویریږئ د الله نه او اُوډے ګوری هر نفس چه څه ئې لیږلی دی |
| لِغَدٍ وَاتَّقُوا اللهَ إِنَّ اللهَ خَبِيرٌ بِمَا |
| مخکښې د صبا دپاره او اُویریږئ د الله نه یقیناً الله خبردار دے په هغه عملونو |
| تَعْمَلُونَ ﴿١٨﴾ وَلَا تَكُونُوا كَالَّذِينَ نَسُوا اللهَ |
| چه تاسو ئې کوئ۔ او مهٔ کیږئ پشان د هغه کسانو چه هیر ئې کړو الله تعالیٰ |
| فَأَنْسَاهُمْ أَنْفُسَهُمْ أُولَئِكَ هُمُ الْفَاسِقُونَ ﴿١٩﴾ لَا يَسْتَوِي |
| نو الله هیر کړل دوی نه نفسونه د دوی، دا کسان هم دوی نافرمان دی۔ برابر نهٔ دی |

Scanned by CamScanner

| |
|---|
| أَصْحَابُ النَّارِ وَأَصْحَابُ الْجَنَّةِ أَصْحَابُ الْجَنَّةِ هُمُ الْفَائِزُونَ ﴿٢٠﴾ لَوْ أَنْزَلْنَا |
| اُور والا او جنت والا، جنتیان هم دوی کامیاب دی۔ که چرته مونږ رالیږلے وے |
| هٰذَا الْقُرْآنَ عَلٰی جَبَلٍ لَّرَأَيْتَهٗ خَاشِعًا مُّتَصَدِّعًا مِّنْ خَشْيَةِ |
| دا قرآن په یو غر باندې خامخا لیدلے به وے تا عاجزی کونکے، چاودونکے د یرے |
| اللهِ وَتِلْكَ الْأَمْثَالُ نَضْرِبُهَا لِلنَّاسِ لَعَلَّهُمْ يَتَفَكَّرُوْنَ ﴿٢١﴾ |
| د الله نه او دا مثالونه بیانوو مونږ دپاره د خلقو دے دپاره چه دوی فکر اُوکړی۔ |

**تفسیر** : پدے رکوع کښې ایمان والو سره خبرے اترے کول دی۔ دے دپاره چه دوئ د نفاق د صفاتو نه ځان بچ کړی، او پدے کښې درے اوامر او یو نهی ذکر کوی۔

(۱) اول اِتَّقُوا اللهَ : نه مراد تقوئ د ایمانیاتو ده، یعنی د هر قسم شرك او کفر نه ځان ساتل دی، او د دویم اِتَّقُوْا نه مراد د اعمالو تقوئ ده۔ یعنی د اوامرو پابندی کول او د نواهیو نه ځان بچ کول۔

(۲) یا اوله تقوئ د آخرت نه ده، او دویمه تقوئ د الله د علم نه۔ یعنی د الله نه ځکه یره وکره چه هغه ستا د هر عمل نه خبردار دے، حساب به درسره کوی۔

(۳) یا تکرار د تاکید دپاره دے۔ ځکه چه تقوئ یو مقصودی شے دے نو ډیر تاکید ته ضرورت لری۔

(٤) یا اوله تقوئ په اداء د واجباتو او فرائضو کښې ده ځکه چه دے سره ئے ﴿وَلْتَنْظُرْ نَفْسٌ مَا قَدَّمَتْ لِغَدٍ﴾ وئیلے دے، او صبا دپاره تیاری کول په اعمالو سره کیږی۔ او دویمه تقوئ په ترك د محارمو کښې ده ځکه چه دے سره ئے اِنَّ اللهَ خَبِیْرٌ بِمَا تَعْمَلُوْنَ وئیلے دے۔

وَلَا تَكُوْنُوْا: ربط :

اَلْغَفْلَةُ تُضَادُّ التَّقْوٰی شَدِیْدًا۔ د آخرت او د الله نه غفلت کول د تقوئ نه سخت خلاف دی۔ ځکه چه متقی دے ته وائی چه الله ورته هر وخت یاد وی۔ لکه موسیٰ علیه السلام الله ته وئیلی وو: (اَیُّ عِبَادِكَ اَتْقٰی؟) ستا کوم بنده ډیرے تقوئ والا دے؟ هغه وفرمایل:

(اَلَّذِیْ یَذْكُرُ وَلَا یَنْسٰی) هغه شخص چه الله یادوی او هغه هیڅکله نهٔ هیروی۔

فَاَنْسَاهُمْ اَنْفُسَهُمْ : سوال دادے چه ځان د انسان نه څنګه هیریږی، وړے ترے شی،

Scanned by CamScanner

کرمی ئے وشی نو هغه ته خو ځان یاد وی؟
جواب دادے چه دلته مضاف پټ دے، اَیْ اَنْسَاهُمْ حُظُوْظَ اَنْفُسِهِمْ - یعنی د دوی نه ئے خپله برخه د فائدے هیره کړه، او هغه فائده ده: (مَعْرِفَةُ دَاءِ النُّفُسِ وَدَوَائِهَا)
یعنی د نفس هلاکونکے بیماری او د هغے دوائی ئے ترے هیره کړه، پدے به نهٔ پو هیږی چه زما هلاکت په څه کښې دے او نجات مے په څه کښې دے، د نفس مثال داسے دے لکه شاړ پټے چه دا به صفاء کول غواړی، که صفا نکړے شی نو هیڅ دانے پکښې نهٔ راخیژی، او دا هله کیږی چه انسان د هغے کندونه وپیژنی او بیا د هغے صفائی وکړی، ښه ګیاه (ښکلے صفات) باقی پریدی او ګنده او بے فائدے ګیاه (بد صفات) ترے وباسی۔
نو د ځان د جوړولو کوشش پکار دے، نو الله به د دوی نه د ځان جوړولو توفیق واخلی، د ځان جوړولو ته به ئے فکر هم نهٔ وی، شپیته کاله به ئے تیر شی، پدے به خبر نهٔ وی چه زهٔ څنګه ژوند تیروم، او کوم طرفته روان یم۔ او ما د الله دپاره کومه مجاهده او د هغه کومه بندګی وکړه۔
او دا لویه سزا ده چه انسان څومره الله تعالیٰ لره هیره وی نو الله به دهٔ لره د خپل ځان نه هیره وی، د ځان هیڅ فائده به ونکړی۔ او څومره چه الله ډیر یادوی نو بنده به د ځان ډیره اصلاح وکړی۔ د الله یادول په خوله هم وی او په زړه هم وی، هر ځای کښې د الله حکم ته متوجه کیدل، سفر وی او که حضر۔
یواځے سُبْحَانَ اللهِ اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ نهٔ دی مراد، منافقانو نه الله څنګه هیر دے، د کافرانو دوستی کوی، داسے نهٔ وائی چه زمونږ په سر باندے بره الله دے، داسے نهٔ وائی چه زهٔ د رسول الله ﷺ خلاف کوم، یادول د الله اصل کښې په زړه باندے وی۔
ددے ځای نه علماؤ وئیلی دی: (اَلْعِلْمُ بِاللّٰهِ اَصْلُ کُلِّ عِلْمٍ) په الله باندے علم راوستل د تولو علمونو بنیاد دے، ناشنا علمونه په انسان باندے راکولاویږی۔
د نسیان نه مراد دلته قصداً هیره ول دی چه دے ته غفلت وائی۔
اَلْفَاسِقُوْنَ: یعنی دوئ پوره فاسقان دی، او پوره فسق هغه دے چه په عقیده او عمل دواړو کښې د الله د دین نه وتلے وی، نو پدے کښې اشاره ده چه د الله تعالیٰ ذکر هیرول د فسق سبب دے۔
لَا یَسْتَوِیْ اَصْحَابُ النَّارِ وَاَصْحَابُ الْجَنَّةِ: پدے آیت کښې زیات ترغیب دے هغه

Scanned by CamScanner

شي اختیارولو ته چه بنده الله ته نژدے کوی، او د هغهٔ د کرامت کور ته ئے داخلوی۔
دارنګه دا د مخکښ دپاره علت دے، یعني مؤمنان دِے د کافرانو د مشابهت نه ځان وساتي پدے وجه د دوئ عاقبت کښ پوره فرق دے۔
دا خو هر چا ته معلومه ده چه جهنمیان او جنتیان برابر نهٔ دی نو بیا دلته ولے دا خبر ورکوی؟ جواب دا دے چه پدے آیت کښ تنبیه ده منافقانو او مؤمنانو ته، چه تاسو سخت غافلان یئ چه د جنتي او جهنمي فرق نشئ کولے، که ستاسو په نیز دواړه برابر نهٔ وے نو بیا به تاسو ضرور د جنتیانو صفات اختیارولے او د جهنمیانو د صفاتو نه به مو ځان ساتلے،
ددے مثال داسے دے چه یو تن بل ته ووائي : (اَكْرِمْ زَيْدًا فَاِنَّهٗ اَبُوْكَ) د زید اکرام کوه ځکه چه هغه ستا پلار دے، نو هغهٔ ته خو دا معلومه ده چه زید د هغهٔ دپلار دے خو پدے کښ تنبیه ورکوی چه که هغه تا پلار ګڼړلے نو تا به ئے ضرور اکرام کولے۔ نو ګویا که منافقان دومره غافلان شویدی چه دوئ د اُور او جنت فرق نشي کولے، که دوی فرق کولے شوے نو دوی کښ به تقویٰ او صحیح ایمان راغلے وے۔
لَا يَسْتَوِىْ: دا نهٔ برابروالے په درے ځایونو کښ مراد دے : (۱) لَا يَسْتَوِىْ فِى الدُّنْيَا۔
په دنیا کښ دواړه ډلے برابرے نهٔ دی، ځکه چه د جنتیانو صفات جدا او د جهنمیانو جدا دی۔ (۲) لَا يَسْتَوِىْ عِنْدَ النَّزْعِ وَفِى الْقَبْرِ۔
یعني دواړه ډلے په وخت د مرګ او په قبر کښ برابر نهٔ دی چه یوے ډلے ته کوم نعمتونه او مزے ملاویږي او بلے ډلے ته سزاګانے او عذابونه ملاویږي۔
(۳) او په آخرت کښ هم برابر نهٔ دی۔
ددے آیت نه شوافعو استدلال کړیدے چه مسلمان به د کافر په بدله کښ نشي قتل کولے، او کافر په غلبه کولو سره د مسلمان د مال مالك نشي جوړیدے۔
اَصْحَابُ النَّارِ: یعني نهٔ دی برابر هغه خلق چه هغوی خپل نفسونه کامل کړیدی نو د جنت مستحق شویدی او هغه کسان چه ځانونه ئے په مهنتونو او خواهشاتو کښ ذلیله کړیدی نو د اُور مستحق شویدی۔
**فائده** : ابو السعودؒ لیکلي دی : اصحاب النار ئے پدے وجه مخکښ ذکر کړو چه سبب د عدم مساوات (یعني کوتاهي) د دوی د جانب نه ده چه دوی په ځان کښ صفات د جنت

Scanned by CamScanner

والو نهٔ دی پیدا کړی. دارنګه اُور والا زیات دی په نسبت د جنتیانو.
لَوْ اَنْزَلْنَا: غرض د آیت دے (۱) : تَوْبِیْخٌ لِابْنِ آدَمَ عَلٰی قَسْوَةِ قَلْبِهٖ وَقِلَّةِ خُشُوْعِهٖ.
پدے کښې بنیادم ته د هغهٔ د زړه په سختوالی او په کموالی د خشوع د هغهٔ باندے زورنه ورکړے کیږی. او دا توبیخ اول کښې منافقانو ته دے، او مؤمن پرے الله یره وی.
(قاسمیؒ)
(۲) او پدے آیت کښې ضمناً عظمت د قرآن کریم دے.
(۳) او دریم غرض : مَوْعِظَةُ الْمُؤْمِنِیْنَ دے. مؤمنانو ته نصیحت ورکول دی.
هذا القرآن نه مراد دا لفظی قرآن دے کوم چه لوستلے کیږی. پدے کښې هم بعض مبتدعینو لیکلی دی چه ددے نه مراد کلام نفسی دے.
جواب دا دے چه هذا اشاره هغے ته نهٔ کیږی بلکه لفظی کلام ته اشاره ده. او په اسم اشاره قریب سره ئے ذکر کړو اشاره ده چه د قرآن حاصلول او پدے کښې تدبر کول دوی ته ډیر نزدے دی چه هیڅ تکلیف پکښې نشته. (ابن عاشورؒ)
لَرَاَیْتَهٗ خَاشِعًا : سوال دا دے چه دا قرآن خو په نبی کریم ﷺ او صحابه کرامؓ نازل وو نو آیا د هغوی زړونه داسے چاودلی دی؟
**جواب** دا دے چه دلته مقصد خشوع بیانول دی او دا مثال دے چه غر د الله نه دومره یریږی چه هغه به تق چودلے وے، هغه بیخی صبر نشی کولے، او د انسان چاودل د الله مقصود نهٔ دی بلکه هغه لره ځان کښې یره او خشوع پیدا کول دی، مشبه به کښې مبالغه زیاته ده په نسبت د مشبه باندے.
بیا مفسرین لیکی : چه دے آیت کښې ډیر زور والے دے، پدے کښې نور هم ډیر مقصدونه دی :
(۱) یو دا چه پدے کښې د قرآن کریم ثقل (دروندوالے) او په رسول الله ﷺ باندے احسان بیانیږی چه د قرآن کریم بوج او دروندوالے خو دومره ډیر دے چه غرونه د هغے برداشت نشی کولے لیکن الله تعالیٰ خپل نبی لره دومره قوت ورکړیدے چه هغه د قرآن کریم ثقل د نزول او د هغے د تبلیغ بوج برداشت کوی.
(۲) دویم دا چه پدے کښې عظمت قرآن ذکر دے، او منکرینو ته زجر دے، یعنی که یو غر ته الله تعالیٰ فهم او عقل د انسان په شان ورکړے وے، او په قرآن کریم سره ئے مکلف

Scanned by CamScanner

کړے وے، او قرآن ئے ورته آورولے وے نو هغه به د خشوع او خشیت د وجے نه ټکړے شوے وے اگر چه د ډیرو سختو ګټو نه ډك دے، لیکن انسان اعراض کونکے دومره سخت زړے دے چه په قرآن سره په دهٔ کښې اثر نهٔ پیدا کیږی۔

(۳) دریم مطلب : پدے کښې د قرآن کریم ثقل او جواب د سوال ذکر دے، مشرکانو او یهودیانو سوال کړے وو چه دا قرآن په یو ځل باندے ولے نهٔ نازلیږی ؟

نو الله جواب ورکړو چه که په یو ځل دا قرآن په غر باندے نازل شی نو هم ئے برداشت نشی کولے ځکه چه د غر د جسم قوت ډیر زیات دے نو نبی کریم ﷺ د هغے برداشت څنګه کولے شی؟ ددے وجه نه الله تعالیٰ لږ لږ نازل کړو سره ددے نه چه بیا به هم په نبی کریم ﷺ باندے په سخته یخنئ کښې خولے راتللے۔

او ددے مطلبونو حاصل دا دے چه که کافران او یهودیان او منافقان غواړی چه مونږ د اصحاب النار نه بهر شو او د دوی ګمراهی ختمه شی نو ددے شرط دا دے چه پدے قرآن کښې دے فکر وکړی او ایمان دِے راوړی او د قرآن په سبب دِے الله تعالیٰ ته خشوع او خشیت وکړی۔

(احسن الکلام والقرطبی ومحاسن التاویل والتحریر وفتح البیان)

خَاشِعًا مُّتَصَدِّعًا : خشوع سر خکته کولو او عاجزئ ته وائی، یعنی تا به لیدلے وے چه د بره نه به خکته راغلے وے۔ او تصدع : چاودلو ته وئیلے شی یعنی زلزله به پرے راغلے وے د الله د یرے نه به چاودلے وے۔ (ابن عاشورؒ)

یعنی په قرآن سره اول د الله تعالیٰ نه خشیت پیدا کیږی، بیا د خشیت نه خشوع پیدا کیږی، بیا خشوع چه ترقی وکړی نو تصدع (چاودل) پیدا کیږی۔

**فائده** : په مؤمنانو کښې ددے مصداق په ترتیب سره دا دے چه په قیام د مانځه کښې قرآن لولی پخپله او د امام نه ئے آوری په خشیت سره، نو د هغے نه روستو خشوع وکړی په رکوع سره لکه په حدیث کښې د خشوع اطلاق په رکوع باندے شویدے، او بیا د خشوع نه روستو تصدع پیدا شی په سجده کولو او په ژړا کولو سره۔ (احسن الکلام)۔

وَتِلْكَ الْاَمْثَالُ : پدے کښې اشاره ده چه د غر حالت ئے ذکر کړو نو دا بطور مثال دے۔

یَتَفَكَّرُوْنَ: دے دپاره چه دوی فکر وکړی چه ما کښې څومره خشیت او خشوع ده، او په غر کښې څومره ده، نو نصیحت به واخلی او منع به شی۔ او اشاره ده چه کافران د

Scanned by CamScanner

جماداتو نه هم بد تر دی چه هیڅ خشوع پکښې نۀ پیدا کیږی، په دومره لوی کتاب ایمان نۀ راوړی۔

| |
|---|
| هُوَ اللّٰهُ الَّذِیْ لَا اِلٰهَ اِلَّا هُوَ عَالِمُ |
| خاص الله هغه ذات دے چه نشته حقدار د بندګئ سویٰ د هغۀ نه، پوهه دے |
| الْغَیْبِ وَالشَّهَادَةِ هُوَ الرَّحْمٰنُ الرَّحِیْمُ ﴿۲۲﴾ |
| په هر پټ او ښکاره باندے، هغه بیحده مهربان دے، همیشه رحم کونکے دے۔ |
| هُوَ اللّٰهُ الَّذِیْ لَا اِلٰهَ اِلَّا هُوَ الْمَلِكُ |
| خاص هغه ذات الله دے چه نشته حقدار د بندګئ سویٰ د هغۀ نه، بادشاه دے، |
| الْقُدُّوْسُ السَّلَامُ الْمُؤْمِنُ الْمُهَیْمِنُ الْعَزِیْزُ |
| پاك دے، سلامتیا ورکونکے دے، امن ورکونکے دے، ساتنه کونکے دے، عزتمند دے، |
| الْجَبَّارُ الْمُتَکَبِّرُ سُبْحَانَ اللّٰهِ عَمَّا یُشْرِکُوْنَ ﴿۲۳﴾ |
| زورور دے، لوئی والا دے، پاك دے الله د هغے نه چه دوی ورسره برخه داران جوړوی۔ |
| هُوَ اللّٰهُ الْخَالِقُ الْبَارِئُ |
| خاص دغه ذات الله دے، پیدا کونکے دے، جدا کونکے د اندامونو دے، |
| الْمُصَوِّرُ لَهُ الْاَسْمَاءُ الْحُسْنٰی یُسَبِّحُ لَهٗ |
| شکل ورکونکے دے، خاص هغۀ لره صفتونه دی ښائسته، پاکی وائی هغۀ لره |
| مَا فِی السَّمَاوَاتِ وَالْاَرْضِ وَهُوَ الْعَزِیْزُ الْحَکِیْمُ ﴿۲۴﴾ |
| هغه څۀ چه په آسمانونو او زمکه کښې دی او هغه زورور دے، حکمتونو والا دے۔ |

**تفسیر** : په راتلونکو درے آیتونو کښې الله تعالیٰ د خپل عظمت او کبریائی صفتونه بیان کړی دی، او انسانانو له ئے نور خبردارے ورکړے چه د دوئ زړونه د الله تعالیٰ د ویرے نه څنګه خالی کیږی، په دوئ باندے لړزان څنګه نۀ راځی، هغه خو هغه حق معبود دے

Scanned by CamScanner

چه هغهٔ نه سوئ بل هیڅوك د عبادت لائق نشته، هغه خو غائب او حاضر هر څهٔ پیژندونکے دے، د هغهٔ خاص او عام رحمت خو د تمام جهان مخلوقات پټ کړی دی۔

ربط :

(۱) پدے آیتونو کښې د خشوع د پیدا کیدو طریقه بیانوی، هغه دا چه پدے کتاب کښې د الله د عظمت او کبریاء او د جلال ښکلے صفات ذکر دی۔ او مؤمن باندے ددے اثر کیږی۔

(۲) اَیْ کَیْفَ یُتْرَكُ الْخُشُوْعُ لِمَنْ هٰذِهٖ صِفَتُهٗ۔ یعنی د هغه ذات دپاره خشوع څنګه پریخودلے شی چه د هغهٔ دا ښکلے صفات وی۔

(۳) او پدے کښې په منافقانو رد دے چه منافقان دومره لوی الله تعالیٰ پریدی، د هغهٔ د رسول تابعداری نکوی، او د هغهٔ د دشمنانو سره ملګرتیا کوی۔

او خطیب شربینیؒ لیکی : مخکښې د قرآن عظمت وو چه هغه د الله تعالیٰ صفت دے نو اُوس د موصوف (چه الله تعالیٰ دے) د هغهٔ عظمت بیانیږی ځکه چه عظمت د صفت د وجه د عظمت د موصوف نه دے۔

پدے آیتونو کښې بغیر د تکرار نه د الله تعالیٰ شل صفات ذکر دی۔

هُوَ اللهُ: هُوَ ضمیر راجع دے مخکښې نازلونکی د قرآن ته، یا هغه ذات چه موجود دے په ذهنونو او فکرونو کښې او غائب دے په اعتبار د عظمت شان خپل۔ (فتح البیان)

اللهُ: یعنی هغه معبود دے چه په صفت د عبودیت کښې خاص دے۔ دلیل پرے د الله تعالیٰ علم دے په هر شی باندے۔

عَالِمُ الْغَیْبِ وَالشَّهَادَةِ: یعنی کوم څیزونه چه زمونږ د سترګو او حس او علم نه غائب دی په هغے هم پوهه دے، او کوم څیزونه مونږ ته ښکاره او حاضر دی په هغے هم پوهه دے۔

یا ددے نه مَاکَانَ او مَا یَکُوْنُ دی، یا آخرت او دنیا مراد ده۔ یا معدوم او موجود مراد دی۔

هُوَ اللهُ الَّذِیْ: دائے بیا ذکر کړو یا د تاکید او د خبرے د مضبوالی دپاره ځکه چه د الله توحید ډیر اهم شے دے نو د تاکید لائق دے۔

یا پدے کښې ذکر د توحید دے د الله دپاره په دلیل د قدرت او تصرف د هغهٔ سره په هر څیز کښې، په هر جهت سره۔ ددے وجه نه ئے روستو صفتونه د تصرف ذکر کړیدی، نو

Scanned by CamScanner

معلومه شوه چه د اُلوهيت د اثبات دپاره دوه قسمه صفتونه ضروري دي، يو دا چه عالم دے په هر شي باندے، او دويم دا چه قدرت په هر شي لري۔ او همدا دواړه د ټولو صفتونو خلاصه ده۔
اَلْمَلِكُ: داسے بادشاه دے چه د هغه بادشاهي نهٔ زائله كيږي، او په ټول مخلوق كښې د امر او نهي واكدار او تصرف كونكے دے۔ ټول كائنات د هغهٔ د بادشاهئ او غلبے نه لاندے دي۔
اَلْقُدُّوْسُ : ډير پاك دے د هر نقصان او عيب نه په ذات او تمامو صفاتو كښې او خصوصًا په بادشاهئ چلولو كښې۔ يا قدوس هغه ذات دے چه د هغه بركت زيات وي۔
اَلسَّلَامُ: (۱) سلامتيا والا دے، يعني د هر قسم نقصان او عيب نه په ذات او صفاتو كښې بچ او سالم دے۔
(۲) يا سلامونه اچونكے دے په بندګانو خپلو په جنت كښې۔
(۳) يا سلامتيا وركونكے دے بندګانو ته كله چه هغوي غواړي۔
(٤) يا سلامتيا وركونكے دے د ظلم كولو نه۔ يعني په هيچا ظلم نكوي۔ (خطابيؒ) او دا قول د اكثرو دے۔
په اوله معنیٰ سره د سلام او قدوس فرق دا دے چه قدوس هغه دے چه ذاتي نقصان او عيب هم پكښې نشته، او سلام دا دے چه عارضي نقصان هم پكښې نشته۔ نو قدوس كښې پاكي د ذات او سلام كښې پاكي د صفاتو ته اشاره ده۔
اَلْمُؤْمِنُ: (۱) امن وركونكے دے دوستانو خپلو ته د عذاب نه، او ټولو خلقو ته د خوف د ظلم كولو نه۔ نو د مؤمن او د سلام فرق دا شو چه سلام هغه ذات دے چه د هيچا سره د ظلم معامله نكوي، او مؤمن دا دے چه د خوف د ظلم نه ئے امن وركړيدے۔
(۲) يا مؤمن : تصديق كونكے دے د رسول خپل په اظهار د معجزاتو سره۔
اَلْمُهَيْمِنُ: يعني نګهبان، نګراني او نظر ساتونكے دے په بندګانو خپلو او د هغوي په عملونو۔ او دا علت د ماقبل دے يعني سلامتيا او امن ددے وجه نه وركولے شي چه هغه حافظ او ساتنه كونكے د مخلوق دے۔
اَلْعَزِيْزُ : غالب دے، هيڅ كله نشي مغلوب كيدے، او هغه څوك د خپلے ارادے نه نشي منع كولے / بے مثله دے / عزت مند او عزت وركونكے دے۔

Scanned by CamScanner

اَلْجَبَّارُ : ١- د جبر یوه معنیٰ ده اصلاح کول۔ یعنی د خپل مخلوق د کمزوریٔ او د بیمارو اصلاح کوی۔
٢- زورَ آور دے په ټول مخلوق چه په زور سره په مخلوق کښې خپله اراده نافذ کولے شی۔
٣- هُوَ الَّذِیْ لَا یُنَالُ وَلَا یُدَانٰی ۔ اُوچت دے د ټول مخلوق نه چه د چا لاس او طاقت ورته نشی رسیدے۔ (جباره هغه اُوچتے ونے ته وائی چه انسان ورته نشی رسیدلے)
٤- اَلْجَبَّارُ الَّذِیْ لَا تُطَاقُ سَطْوَتُهٗ۔ جبار هغه ذات دے چه د هغه د حملے طاقت څوك نشی لرلے۔
(٥) ابن عباسؓ وائی : اَلْعَظِیْمُ۔ لوی ذات او شان والا دے۔
(٦) اَلْعَالِیْ۔ د ټولو نه پورته۔
اَلْمُتَکَبِّرُ: ١- کبریاء او لوی رابنکاره کونکے دے په عقلی او وحیی دلیلونو سره۔
٢- ډیر لوی دے په ټول مخلوق باندے په ذات او صفتونو سره۔
٣- لوی دے د هر نقصان او د هر هغه شی نه چه د هغهٔ سره لائق نهٔ وی۔ لوئی کول د الله صفت د کمال دے او په مخلوق کښې نقصان دے۔

## متکبر او مستکبر فرق

د متکبر او مستکبر فرق دا دے چه استکبار همیشه په ناحقه لوئی کښې استعمالیږی ددے وجه نه دا په صفت د الله تعالیٰ کښې نهٔ راځی، او تکبر کله په حق سره وی لکه په صفت د الله تعالیٰ کښې، او کله په ناحقه سره وی لکه په صفت د مخلوق کښې۔
سُبْحَانَ اللهِ : یعنی په دغه صفتونو او نورو صفتونو د الله تعالیٰ کښې د هغهٔ سره هیڅوك شریك نشته، او نهٔ پدے کښې نقصان شته۔

## د خالق او باریٔ او مصور فرقونه

١- هُوَ اللهُ الْخَالِقُ: خلق، معدوم شے وجود ته راوستو ته وئیلے شی، یعنی یو شے د نیشت نه شته کوی۔ او کله په معنیٰ د تقدیر سره استعمالیږی۔ لکه خَلَقَ الْمَوْتَ وَالْحَیَاةَ۔ یعنی مقرر کړی ئے دی مرګ او ژوند۔ یا خلق دا دے چه د نطفے نه بدن جوړول۔

Scanned by CamScanner

اَلْبَارِئُ: اندامونه جدا جدا کونکے، ځکه چه ماده د برء په انفصال او تميز (جدائی) باندے دلالت کوی. نو خلق کښې صرف د غوښتے تو ته پیدا کول دی، او په باریٔ کښې اشاره ده چه بیا ورله جدا جدا اندامونه ورکړی. او دے فرق ته مقاتل بن سلیمان په خپل تفسیر (۳/۳٤٥) کښې اشاره کړیده.

اَلْمُصَوِّرُ: بیا په دے جدا کولو کښې هر اندام ته خاص ښکلے شکل ورکوی، او د یو شی مخ لره صورت ورکونکے دے.

۲- حافظ ابن کثیرؒ داسے فرق کوی: خالق د خلق نه دے، تقدیر یعنی اندازه کولو ته وئیلے شی. او باریٔ د برء نه دے، تنفیذ (نافذ کول) او کوم شے ئے چه وجود ته د راوستو دپاره اندازه کړے دے هغه وجود ته راښکاره کړی، او هر څوك چه یو شے اندازه کړی، هغه ئے په نافذ کولو باندے قادر نهٔ وی سوئ د الله تعالیٰ نه. او مصور دا دے چه هغه شے په هغه صورت او صفت باندے پیدا کړی کوم باندے ئے چه اراده کړی وی. نو خالق اندازه کونکے او باریٔ وجود ته راوستونکے او مصور شکل ورکونکے دے.

۳- ابوحیانؒ په البحر المحیط کښې او قرطبیؒ داسے تعبیر کوی:

اَلْبَارِئُ هُوَ الْمُبْدِعُ الْمُحْدِثُ. وَالْخَالِقُ: هُوَ الْمُقَدِّرُ النَّاقِلُ مِنْ حَالٍ إِلٰى حَالٍ.

باریٔ هغه ذات دے چه ناشنا پیدا کونکے وی، بغیر د مخکنئ نمونے نه پیدائش کوی. او خالق: هغه ذات دے چه اندازه کونکے وی او د یو حال نه بل حال ته نقل کونکے وی.

(البحر المحیط ۱/ ۳۳۰)

۳- خالق نفس پیدا کونکے دے، او باریٔ: هُوَ الَّذِیْ خَلَقَ الْخَلْقَ بَرِیْئًا مِنَ التَّفَاوُتِ. هغه ذات دے چه مخلوق ئے د نقصان او د ګډوډوالی نه جدا پیدا کړیدے. لکه چه فرمائی: ﴿مَا تَرٰى فِیْ خَلْقِ الرَّحْمٰنِ مِنْ تَفٰوُتٍ﴾ (الملك: ۳) تهٔ به د رحمٰن په پیدائش کښې هیڅ نقصان نهٔ وینے. (مفاتیح الغیب ۵۱۶/۳ والکشاف والبحر المحیط)

بیا ئے خالق په باریٔ باندے مقدم ذکر کړو ځکه چه خالقیت راجع دے صفت د ارادے ته، او په باریٔ کښې تاثیر د قدرت ته اشاره ده ځکه چه د باریٔ معنیٰ ده صانع او موجد او مخترع. او اراده مقدم وی په تاثیر د قدرت باندے. او باریٔ ئے په مصور باندے مقدم کړو ځکه چه ایجاد د ذواتو مقدم وی په ایجاد د صفاتو. (مفاتیح الغیب ۵۱٤/۲۹)

٤- ابن عاشورؒ لیکی: کشاف کښې ئے وئیلی دی: اَلْبَارِئُ: اَلْمُمَیِّزُ لِمَا یُوْجِدُهٗ بَعْضَهٗ مِنْ

Scanned by CamScanner

بَعْضٍ بِالْأَشْكَالِ الْمُخْتَلِفَةِ آه. باریٔ هغه ذات دے چه کوم شے موجودوی نو هغه جدا جدا کوی یعنی بعض د بعضو نه په مختلفو شکلونو سره. آه. نو پدے معنیٰ سره باریٔ خاص دے د خالق نه. او په حدیث کښ دی: (مِنْ كُلِّ مَا خَلَقَ وَذَرَأَ وَبَرَأَ) (یعنی زهٔ پناه غواړم (په الله پورے) د هر هغه څیز نه چه الله پیدا کړیدے او هغه موجود کړیدے. او مختلفو شکلونو سره ئے پیدا کړیدی. او علی ؓ فرمائی: (لَا وَالَّذِيْ فَلَقَ الْحَبَّةَ وَبَرَأَ النَّسَمَةَ) قسم په هغه ذات چه دانه ئے چولے ده او نفس ئے پیدا کړیدے. نو پدے اعتبار سره د بریه لفظ به د انسانانو پورے خاص نهٔ وی. کوم چه په ﴿أُولَٰئِكَ هُمْ شَرُّ الْبَرِيَّةِ﴾ کښ راغلے دے. او راغبؒ وائی چه: بریه، مخلوق ته وائی.

او ابن عربیؒ په "العارضه" کښ لیکی: اَلْبَارِئُ: خَالِقُ النَّاسِ مِنَ الْبَرَىٰ وَهُوَ التُّرَابُ خَاصًّا بِخَلْقِ النَّاسِ وَعَلَيْهِ يَكُوْنُ اسْمُ الْبَرِيَّةِ خَاصًّا بِالْبَشَرِ. باریٔ هغه ذات دے چه خلق ئے د بریٰ نه یعنی د خاورے نه پیدا کړیدی نو پدے اعتبار سره به بریه لفظ خاص وی د انسانانو د پیدائش پورے. ځکه چه صرف هم دوی د خاورے نه پیدا کړے شویدی.

انتهیٰ ترجمة کلام ابن عاشور فی التحریر والتنویر (۱۱۱/۲۸)

لَهُ الْأَسْمَاءُ الْحُسْنٰى: د اسماء نه مراد صفتی نومونه دی چه دا په قرآن کریم کښ غیر اضافی (۹۲) دی، او اضافی (۲۶) دی، او ددے نه علاوه په صحیح احادیث کښ راغلی دی او د اهل السنة والجماعة په نیز بانده دا ټول نومونه او صفتونه د الله تعالیٰ توقیفی دی، یعنی په قرآن او په صحیح حدیث کښ چه کوم نومونه د الله دپاره ثابت دی یا په هغے کښ سلب شوی وی نو د هغے په ثبوت بانده یا په سلب بانده عقیده ساتل ضروری دی. او ددے دپاره یو خاص عدد نشته.

او کوم حدیث کښ چه یو کم سل راغلی دی نو د هغے مطلب دا دے چه دغه خاص ثواب (مَنْ أَحْصَاهَا دَخَلَ الْجَنَّةَ) په یو کم سلو نومونو بانده حاصلیږی.

او دے اسماء ته حسنیٰ ولے وائی؟ نو ددے وجوهات په تفسیر د سورة الاعراف (۱۸۰) آیت کښ وګوریٔ.

او علامه قاسمیؒ لیکی: سید ابن المرتضیؒ په "ایثار الحق" کښ لیکلی دی چه د الله تعالیٰ د توحید د کمال نه دا ده چه د هغهٔ معرفت وکړے شی په صفاتو او کمالاتو او ښکلے نومونو سره. ځکه چه د یو ذات کمال د هغهٔ په ښکلے صفاتو سره او مزیدارو

Scanned by CamScanner

نو مونو سره کیږي، او د هغه ذات هیڅ کمال نشته چه د هغهٔ صفت او نوم نهٔ وي. ددے وجه نه د ملاحده ؤ مذهب په مدح د رب کښې په نفی د صفاتو سره دے، چه دا د اسلام دپاره د دوی ډیره لویه دسیسه ده. ځکه چه دوی هغه شے اُلټه کړیدے کوم چه عقلًا او سمعًا معلوم دے نو دوی د محمود شی بدی بیان کړه او د مذموم مدح ئے وکړه. او د الله تعالیٰ د کتاب او د هغهٔ د روښانه نصوصو ضد او خلاف ئے وکړو.

يُسَبِّحُ لَهٗ: پدے کښې هم د الله تعالیٰ عظیم شان او صفت ذکر دے چه د هغه په پاکۍ بیانولو باندے ټول کائنات ګویا دی، څوك د وینا په ژبه سره او څوك د حال په ژبه سره.
نو اے یهود او منافقانو د داسے لوی الله مخالفت مهٔ کوئ ګنے ذلیله به مو کړي.
ددے آخری درے آیتونو په فضیلت کښې څلور روایات راغلی دی، صاحب د فتح البیان وغیره ذکر کړیدی لیکن د سند په اعتبار سره ټول ضعیف دی. وبالله التوفیق.

## د سورت الحشر امتیازات

١- د بنی نضیرو واقعه.
٢- د مال فیء حکم او د مؤمنانو درے ډلے.
٣- په آخری رکوع کښې د قرآن کریم عظمت ذکر شو.
٤- د قیامت ورځ ته ئے د غد (صبا ورځ) نوم کیخودو.
٥- د الله تعالیٰ ښکلے شل صفات ئے ذکر کړل.

ختم شو تفسیر د سورة الحشر په توفیق د رب العالمین سره په ١١ شعبان ١٤٣٧ هـ
موافق: (١٧/٥/٢٠١٦)

❁❁❁

Scanned by CamScanner

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ط

| آیاتها (۱۳) | (٦٠) سورة الممتحنة مدنية (٩١) | رکوعاتها (٢) |
| --- | --- | --- |

سورة الممتحنه مدني دے، په دے کښې دیارلس آیتونه او دوه رکوع دي

## تفسیر سورة الممتحنه

نوم: (۱) دے ته اَلْمُمْتَحِنَةُ (د حاء په زیر سره) (امتحان اخستونکے) سورت وائي، یعنی دے سورت د هغه نوو مسلمانانو ښځو د ایمان امتحان اخستے چه هغوئ د صُلح حُدیبیه نه پس مدینے ته هجرت کولو سره راغلے وے،

او اَلْمُمْتَحَنَةُ (د حاء په زور سره) (هغه ښځه چه د هغے امتحان اخستے شوے وی) یعنی د صلح حُدیبیه نه روستو راتلونکے مسلمانه ښځه چه د هغے نوم اُمِّ کلثوم بنت عُقبه بن ابی معیط وه، چه د هغے په باره کښې دغه آیت نازل شوے وو.

او دا نوم ددے آیت (۱۰) ﴿ يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اِذَا جَآءَ كُمُ الْمُؤْمِنَاتُ مُهَاجِرَاتٍ فَامْتَحِنُوْهُنَّ اَللّٰهُ اَعْلَمُ بِاِيْمَانِهِنَّ ﴾ نه اخستے شوے دے.

(۲) دے ته سورة الْمَوَدَّة. (۳) سورة الامتحان. (٤) سورة الْمَرْاَة هم وائي.

د نازلیدو زمانه: قرطبیؒ لیکلی دي چه دا سورت د ټولو په نیز مدني دے.

## مناسبت

۱- مخکښې سورت کښې ئے د کافرانو (یهودو او منافقانو) حال بیان کړو، نو دلته وائي چه دوی د الله تعالیٰ دشمنان دي نو ددوئ نه براءت (بیزاری) اعلان کړئ، دوستانے ورسره مهٔ کوئ.

۲- سُبْحَانَ اللّٰهِ عَمَّا يُشْرِكُوْنَ سره ئے هم مناسبت دے چه دا مشرکان ستاسو د الله بے ادبي کوی نو دوی پریدئ.

Scanned by CamScanner

۳- مخکښې سورت کښې ئې د مؤمنانو اقسام ذکر کړل، نو دے سورت کښې د کافرانو اقسام ذکر کوی۔

٤- مخکښې ئې د مؤمنانو صفات ذکر کړل نو دلته ورته وائی چه د ایمان تقاضا دا ده چه د الله دپاره به دوستی او دشمنی کوئ۔

## د سورت موضوع او مقصد

اَلْبَرَاءَةُ مِنْ اَعْدَاءِ اللّٰهِ ۔ د الله تعالیٰ د دشمنانو نه براءت او بیزاری کول دی۔ د براءت مختلف او زیات صورتونه دی دلته درے څلور ذکر دی، په څلورم آیت کښې ذکر ده۔

دے کښې داسے هم وئیلے شی چه ددے سورت موضوع اَلْمُوَالَاةُ وَالْمُعَادَاةُ ده۔ یعنی د الله تعالیٰ دپاره دوستی او د الله تعالیٰ دپاره دشمنی ده۔

ددے وجه نه دے سورت د کافرانو تقسیم هم کړیدے چه یو کافر حربی او بل غیر حربی دے، د کافر حربی سره به هیڅ معامله نشی کولے، او د کافر غیر حربی سره معاملات او احسانات کولے شی۔ او د براءت معنیٰ دا نهٔ ده چه د کافر په خوا به هم نهٔ ورتیریږے بلکه دے کښې تفصیل دے، ددے وجه نه د مؤمنو زنانو د هجرت مسئله به هم بیانوی چه دوئ به کافرانو ته نشی واپس کولے کله چه دوی د کافرانو نه راتبنتیدلی وی څکه چه دا واپس کول هم د کافرانو سره یو قسم موالات دے۔

او د براءت دا شکل به هم بیان کړی چه د کافرانو نه خورلور مهٔ کوئ که تاسو کړی وی نو طلاق ورکړئ او خپله هم خورلور مهٔ ورکوئ

| يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَتَّخِذُوا عَدُوِّي وَعَدُوَّكُمْ أَوْلِيَاءَ تُلْقُونَ |
|---|
| اے ایمان والو! مهٔ نیسئ دشمن زما او دشمن ستاسو دوستان چه غورزوئ تاسو |
| إِلَيْهِم بِالْمَوَدَّةِ وَقَدْ كَفَرُوا |
| هغوی ته دوستی (پیغام د مینے) (خبرے د دوستانے) او حال دا چه کوی کفر کړیدے |
| بِمَا جَاءَكُم مِّنَ الْحَقِّ يُخْرِجُونَ الرَّسُولَ وَإِيَّاكُمْ أَنْ |
| په هغه څهٔ چه راغلے دے تاسو ته د حق نه، اُویاسی دوی رسول لره او تاسو لره ددے نه |

Scanned by CamScanner

| تُؤْمِنُوْا بِاللّٰهِ رَبِّكُمْ اِنْ كُنْتُمْ خَرَجْتُمْ |
|---|
| چه تاسو ایمان اُولرئ په الله باندے چه رب ستاسو دے، که چرته تاسو راوتلی یئ |
| جِهَادًا فِيْ سَبِيْلِيْ وَابْتِغَاءَ مَرْضَاتِيْ تُسِرُّوْنَ اِلَيْهِمْ |
| دپاره د جهاد کولو په لاره زما کښې او دپاره د لټولو د رضا زما، پټه لیږئ تاسو دوی ته |
| بِالْمَوَدَّةِ وَاَنَا اَعْلَمُ بِمَا اَخْفَيْتُمْ وَمَا اَعْلَنْتُمْ |
| دوستی او زۀ ښه پو هیږم په هغه څۀ چه تاسو ئے پټوئ او هغه چه تاسو ئے ښکاره کوئ |
| وَمَنْ يَّفْعَلْهُ مِنْكُمْ فَقَدْ ضَلَّ سَوَاءَ السَّبِيْلِ ﴿۱﴾ |
| او چا چه اُوکړو دا کار ستاسو نه نو یقیناً گمراه شو د نیغے لارے نه۔ |

**تفسیر:**

## د سورت شان نزول

په دے خبره د تمامو محدثینو او مفسرینو اتفاق دے چه ددے سورت د ابتدائی آیتونو د نازلیدو سبب د حاطب بن ابی بلتعه ﷛ واقعه ده، چه دا د اولنو مهاجرینو او د بدری صحابه کرامو نه دے۔

امام احمدؒ، بخاریؒ او مسلمؒ او محمد بن اسحاقؒ په خپل صحیح سندونو سره په دے باره کښې چه کوم روایتونه د علی بن ابی طالب ﷛، عروه بن الزبیرؒ او د سیرت او تاریخ د نورو علماؤ نه نقل کړی دی، د هغے خلاصه دا ده چه د صلح حُدیبیه نه پس کله چه مکے والو د معاهدے پابندی ونۀ کړه په دوه کاله کښې دننه، پدے طریقه چه قریشو د بنو بکر قبیلے سره د خزاعه په مقابله کښې مدد وکړو کوم چه د رسول الله ﷺ حلفاء وو، نو خزاعه راغلل رسول الله ﷺ ته ئے شکایت وکړو نو رسول الله ﷺ اراده وکړه چه په پټه سره په مکه باندے حمله وکړی (ځکه چه دوی وعده ماته کړے وه) نو د الله تعالیٰ نه ئے دعاء طلب کړه چه اے الله ! چه مشرکانو ته زمونږ ددے حملے پته ونۀ لگی دے دپاره چه مونږ پرے ناڅاپی په غفلت کښې ورشو،

ددے وجه نه رسول الله ﷺ به مدینے ته خلق راپریخودل چه راننوزی لیکن د مدینے نه

Scanned by CamScanner

بهر به ئے نهٔ پریخودل دے دپاره چه څوك مشركانو ته خبر يو نهٔ سی۔
ددے نه لږ مخکښ ابوسفيان راغلے وو دے دپاره چه د رسول الله ﷺ سره دغه وعده بيرته تازه کړی چه غلطی شويده ليکن رسول الله ﷺ هيڅ جواب ورنکړو نو هغه د ډيرے يرے په حالت کښ واپس مکے ته لاړو۔ مکے والو ورته ووېل چه څه دِے وکړل؟ هغه ووېل چه ما له ئے هيڅ جواب رانکړو صرف ما مسجد کښ اعلان وکړو چه ما صلح وکړه، هغوی ورته ووېل چه محمد (ﷺ) ئے تائيد وکړو؟ هغه ووېل نهٔ، غلے پاتے شو، مکے والو ورته ووېل چه تهٔ خو ئے شرمولے ئے۔
نو پدے کښ رسول الله ﷺ د ملګرو تياری شروع کړه، د مختلفو ځايونو نه ئے لس زره مجاهدين راوغوښتل (چه دومره فوج تياروِل ګران کار وو) او دا خبره ئے صرف يو څو صحابو ته اوښودله چه د هغهٔ اراده د مکے فتح کول دی۔
پدے کښ يوه زنانه چه ساره نوم ئے وه د بنی عبد المطلب وينزه وه او مشرکه وه، او د نبی کريم ﷺ خواته د مکے نه د مالی مدد طلب کولو دپاره راغلے وه۔
نو حاطب بن ابی بلتعه رضی الله عنه هغے له يو خط ورکړو او په هغے کښ ئے دا ليکلی وو چه محمد رسول الله ﷺ په تاسو باندے حمله کوی۔
حاطب بن ابی بلتعه رضی الله عنه د مکے اوسيدونکے نهٔ وو، هغه د بل کوم ځای نه راغلے وو، او هلته د عثمان بن عفان رضی الله عنه د حليف (دوستانه تعلقات لرونکی) په حيثيت سره اوسيدلو۔ دهٔ خو خپله هجرت کړے وو او مدينے ته راغلے وو، ليکن ددهٔ اولاد او ددهٔ وروړ او تړهٔ وغيره لا اوسه پورے په مکه کښ وو۔ دهٔ سوچ وکړو چه که مسلمانانو په مکه باندے حمله وکړه نو د نورو مهاجرينو صحابوؓ خاندان هلته موجود دے چه دویٔ به په مکه کښ خپل موجوده بال بچ د قتل کيدو نه بچ کړی، ددهٔ خاندان والا هلته موجود نهٔ دی، دے وجے نه که چرے دے د قريشو بعضِ خاص کسان د نبی کريم ﷺ ددے ارادے نه خبر کړی، نو هغویٔ به د ضرورت په وخت ددهٔ بچی او رشته دار د قتل نه بچ کړی۔
الله تعالیٰ نبی ﷺ ته د وحی په ذريعه ددے اطلاع ورکړه۔ هغهٔ فورًا علی، ابو مرثد غَنَوی او زبير بن العوام رضی الله عنهم درے مشهور شهسوارانو لره د هغے نه د خط اخستو دپاره اوليږل، او وے فرمايل چه دغه ښځه به تاسو ته په (روضهٔ خاخ) علاقه کښ ملاوِ شی۔ که هغه تاسو له خط درکړی نو هغه پريدئ، ګنے هغه اُووژنئ۔ هغویٔ

هغه په (روضهٔ خاخ) کښې وموندله،
(څکه چه دا رشتینې وحې وه، د هغې مطابق راووته) ښځې ته ئې ووېل چه خط راکړه، هغې انکار وکړو، بیا ئې ورته زور او زارئ سره ووېل لیکن هغې انکار کولو، هغوی ورله تــالاشې شروع کړه، هغه پو هه شوه نو د بدې نه ئې خط په څه طریقې سره راویستو او په ویښتو کونځئ کښې ئې کیخودو،
(ددې وجه نه حدیث کښې کله د بدې لفظ او کله د ویښتو ذکر کیږي)
بعض ملګرو ووېل چه خط به ورسره نهٔ وي نو علي ﷺ ورته په غصه شو چه رسول الله ﷺ فرمایلي دي چه خط ورسره دې، او نهٔ وائي نهٔ به وي، نو د هغوی ذهن هم کولاؤ شو (معلومه شوه چه یو شے به د مشاهدې خلاف وي لیکن د الله رسول چه وائي چه شته نو همغه شان به وي) نو دې ته ئې ووېل چه یا به خط راوباسې یا به درنه جامې ویاسو۔
نو هغه ویریده او خط ئې ورله ورکړو۔ هغه مدینې ته راورسولو، بیا رسول الله ﷺ علي ﷺ ته وفرمایل : چه دا خط ولوله نو هغه ئې چه ولوستو په هغې کښې حاطب د مکې ځینې مشرکانو ته د نبي کریم ﷺ د ارادې خبر ورکړے وو۔
نبي ﷺ حاطب نه تپوس وکړو چه دا کار تا ولې کړے؟ هغهٔ ووئیل : اے د الله رسوله ! تهٔ زما په باره کښې په څهٔ فیصلې کولو کښې تادي مهٔ کوه، بیا هغهٔ د خط لیکلو اصل سبب بیان کړو، چه زهٔ یو سړے وم چه په قریشو پورې ملصق (پیوسته شوې یم) او د هغوی د قوم نه نهٔ یم او تا سره چه کوم مهاجرین دي، نو د هغوی په مکه کښې خپلوان شته چه په هغې سره د هغوی اهل او مالونه ساتي نو ما وغوختل چه زهٔ د هغوی سره یو احسان وکړم چه په هغې سره هغوی زما د خپلوانو حفاظت وکړي څکه چه ما نه د هغوی خپلولي فوت شویده (وَمَا فَعَلْتُ كُفْرًا وَلَا ارْتِدَادًا وَلَا رِضًا بِالْكُفْرِ بَعْدَ الْإِسْلَامِ)
او ما دا کار د کفر او د ارتداد د وجه نه او نهٔ د اسلام نه روستو په کفر باندې د راضي کیدو په وجه نهٔ دې کړے۔ (او الله تعالیٰ خو هسې هم د خپل رسول حفاظت کوي، مشرکان هغه ته هیڅ ضرر نشي ورکولے)
نو رسول الله ﷺ صحابو ته ووئیل چه دا رشتیا وائي۔ نو عمر ﷺ ووئیل : اے د الله رسوله ! ماله اجازت راکړه چه ددې منافق څټ اُووهم،
(پدې باندې سوال دے چه رسول الله ﷺ وفرمایل چه حاطب ﷺ رشتیا وائي او عمر ﷺ

Scanned by CamScanner

وائی چه منافق دے زهٔ ئے څټ وهم؟، ددے دوه وجے دی:
یو دا چه عمر فاروق ﷺ د الله دپاره په دومره غصه کښې وو چه د رسول الله ﷺ خبرے ته ئے توجه پیدا نشوه۔ دویم دا چه عمر فاروق ﷺ پدے موقعه کښې وړاندے ناست وو، د رسول الله ﷺ خبره ئے وانهٔ وریده)
نو نبی ﷺ وفرمایل : [اِنَّهُ قَدْ شَهِدَ بَدْرًا، وَمَا يُدْرِيكَ لَعَلَّ اللّٰهَ اَنْ يَّكُوْنَ قَدِ اطَّلَعَ عَلٰى اَهْلِ بَدْرٍ فَقَالَ اِعْمَلُوْا مَا شِئْتُمْ فَقَدْ غَفَرْتُ لَكُمْ]۔
حاطب د بدر په غزا کښې برخه اخستے ده، او تاته څهٔ معلومه ده چه الله تعالیٰ د بدری صحابو د زړونو نه ښهٔ خبر وو، نو هغه فرمایلی دی چه اے بدری صحابو ! اوس چه تاسو هر څنګه عمل کوئ، ما تاسو ته بخښنه کړے ده)۔ د نبی کریم ﷺ دے خبرے آوریدو سره د عمر ﷺ سترګے د اوښکو نه ډکے شوے، او وے وئیل چه الله او د هغهٔ رسول ښهٔ پو هیږی۔ (بخاری باب الجاسوس : رقم : ۳۰۰۷)
(د عمر ﷺ ژړا یو پدے وجه وه چه زهٔ هم بدری یم، الله به ما ته هم جنت راکوی، او دویم دا چه ما د یو مسلمان په باره کښې سخته خبره وکړه)
(بیا دا د جاسوس حکم دے چه کله یو تن د مسلمانانو په خلاف جاسوسی وکړی، نو اسلامی بادشاه به هغهٔ لره وژنی۔ او هر چه حاطب ﷺ دے نو دهٔ دا کار په اجتهاد سره کړیدے، کفر ئے نهٔ دے کړے، نهٔ ئے کفر خوښ کړیدے بلکه صرف یو راز ترے افشاء شویدے او هغه هم د بدری کیدو په وجه معاف شویدے)۔

## د آیت مطلب :

ددے واقعے نه پس ددے سورت اولنی آیتونه نازل شو، چه په دے کښې الله تعالیٰ وفرمایل چه اے ایمان والو ! تاسو هغه کافران او مشرکان خپل دوستان مهٔ جوړوئ چه هغوئ زما او ستاسو دشمنان دی۔ تاسو دوئ ته د نبی کریم ﷺ جنګی رازونه ښایئ، حالانکه هغوئ ستاسو د حق دین نه منکر دی، او دوئ رسول الله ﷺ او تاسو لره ستاسو د کورونو نه اوخکلی دی، حال دا چه ستاسو ددے نه سوئ بل هیڅ قصور نهٔ وو چه تاسو په خپل رب ایمان راوړے وو۔
دا ظالمان کافران ددے لائق نهٔ دی چه تاسو دوئ خپل دوستان جوړ کړئ۔

Scanned by CamScanner

که چرې تاسو د مکې نه زما په لاره کښې د جهاد کولو دپاره او زما د رضا تالاش کولو دپاره راوتـي يئ نـو تـاسـو بـه هـغـه کـافـران خپل دوستان نهٔ جوړوئ چه هغوئ زما او ستاسو دشمنان دی۔ ځکه چه جهاد دپاره راوتل او د الله رضا لټول او بیا د کافرانو سره دوستي کول دواړو کښې تناقض دے۔

تاسو دوئ سره د دوستئ ښکاره کولو دپاره په پټه باندے د رسول الله ﷺ خبرونه دوئ ته رسوئ، حالانکه زهٔ خو ستاسو پټ او ښکاره هر څهٔ پیژنم۔ او تاسو ولیدل چه ما خپل رسول ته ددے خط اطلاع ورکړه کوم چه تاسو د مکې مشرکانو ته لیږلے وو۔

نو پدے آیت کښې مؤمنان منع کړے شو د دوستانے د کافرانو نه، او د هغوی په دشمنئ باندے راپورته کړے شول، او د هغے دپاره ئې څلور وجې د هغوی د دشمنئ د مؤمنانو سره ذکر کړے، او د مؤمنانو درے صفات ئې ذکر کړل ایمان، جهاد، او طلب د رضا د الله تعالیٰ چه دا صفتونه د کافرانو سره د دوستانے نه منع کونکی دی۔

اَوْلِيَاءَ: د ولایت درے مرتبے دی، اوله مرتبه د کافرانو سره ملګرتیا کول په عقیده او په کار د کفر او شرك کښې، دا خو کفر دے، دویمه مرتبه د هغوی سره په کارونو د کفر کښې مالي یا بدنی امداد کول اګرکه په کفر او شرك کښې ورسره شرکت نهٔ کوی، دا کبیره ګناه ده۔ دریمه مرتبه د هغوی توقیر او عزت کول د هغوی نه مشر جوړول او د هغوی د اکرام دپاره اُودریدل وغیره۔ دا هم ګناه ده او دا ټولے مرتبے پدے نهی کښې داخل دی۔

اِنْ كُنْتُمْ خَرَجْتُمْ: ددے جزاء پټه ده (فَلَا تُلْقُوْنَ اِلَيْهِمْ بِالْمَوَدَّةِ) نو دوئ ته مینے مهٔ لیږئ۔

تُلْقُوْنَ اِلَيْهِمْ بِالْمَوَدَّةِ: باء زیاتی ده، او مفعول د تُلْقُوْنَ دے، یا باء سببیه ده، او مفعول پټ دے یعنی تُلْقُوْنَ اِلَيْهِمُ الْاَسْرَارَ ۔ (لیږئ تاسو هغوی ته پټ رازونه)۔ په سبب د هغه مینے چه ستاسو او د دوئ ترمینځ ده۔

علامه قرطبیؒ لیکی چه د مودت نه مراد ظاهری تعلق دے ځکه چه د حاطب بن ابی بلتعه ﷜ په زړه کښې د هغوی د دوستانے هیڅ خیال هم نهٔ وو، لکه رسول الله ﷺ د هغهٔ تصدیق وکړو۔

يُخْرِجُوْنَ الرَّسُوْلَ: دا بل علت د ماقبل (وَقَدْ كَفَرُوْا) دے، دا د هغوی د کفر تفسیر دے۔

اَنْ تُؤْمِنُوْا بِاللهِ: دلته لام اجلیه پټ دے (اَىْ لِاَجْلِ اِيْمَانِكُمْ) یعنی د وجه د ایمان ستاسو

Scanned by CamScanner

نه تاسو وباسي. یعنی ستاسو بل جرم نهٔ وو سوئ ددے نه چه تاسو موحدین یئ، او دا دلیل دے چه څوك یو مؤمن لره د هغهٔ د ایمان او د توحید او د حق پرستئ او د اتباع د سنت د وجه نه د ملك نه شړي، یا ورته څه تکلیف ورکوي نو هغه لوی مجرم دے.

تُسِرُّوْنَ اِلَيْهِمْ بِالْمَوَدَّةِ: دوباره ئے راوړو پدے کښې زیات توبیخ او رټنے ته اشاره ده. د مودت نه مراد خیرخواهي ده.

وَمَنْ يَّفْعَلْهُ مِنْكُمْ: صیغه د مضارع راوړو کښې اشاره ده چه چا دا کار ددے وخت نه مخکښې کړے وی لکه حاطب بن ابی بلتعه ﷺ نو هغه ګمراه او ګنهګار نهٔ دے. ځکه چه هغه په اجتهاد کښې خطاء شوے وو، او مجتهد اګرکه خطاء شی بیا هم د هغهٔ یو اجر کیږي. خو د هغهٔ تابعداري به نشي کیدے.

علامه قرطبیؒ لیکی: چه دا ټول عتاب دے لکه یو دوست چه ئے بل دوست ته کوی نو پدے کښې د حاطب ﷺ په فضیلت او شرافت باندے دلیل دے.

| |
|---|
| اِنْ يَّثْقَفُوْكُمْ يَكُوْنُوْا لَكُمْ اَعْدَآءً وَّيَبْسُطُوْا ط |
| که چرته اُومومي دوی تاسو لره کیږي به دوی تاسو لره دشمنان او اُوږدوی دوی |
| اِلَيْكُمْ اَيْدِيَهُمْ وَاَلْسِنَتَهُمْ بِالسُّوْءِ وَوَدُّوْا لَوْ |
| تاسو ته لاسونه خپل او ژبے خپلے په بدئ سره او خوښوی دوی ارمان |
| تَكْفُرُوْنَ ﴿۲﴾ لَنْ تَنْفَعَكُمْ اَرْحَامُكُمْ |
| چه تاسو کافر شئ. هیڅرے فائده به درنکړي تاسو ته خپلولیانے (رشتے) ستاسو |
| وَلَا اَوْلَادُكُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ يَفْصِلُ بَيْنَكُمْ |
| او نهٔ اولاد ستاسو په ورځ د قیامت، جدائي به راولی الله په مینځ ستاسو کښې |
| وَاللّٰهُ بِمَا تَعْمَلُوْنَ بَصِيْرٌ ﴿۳﴾ |
| او الله په هغه عملونو چه تاسو ئے کوئ لیدونکے دے. |

**تفسیر**: الله تعالیٰ د کافرانو او مشرکانو په حالت باندے نوره رڼړا اچوی، او د هغوی نه د براءت کولو دپاره درے علتونه یعنی د هغوی درے صفات ذکر کوی، مسلمانانو ته

Scanned by CamScanner

فرمائی چه دا خلق ستاسو زبردست دشمنان دی، که دوئ تاسو په یوه موقعه کښ ومومی او په تاسو باندے کامیاب شی، نو تاسو هیڅ کله نهٔ پریدی، خپلو ژبو سره هم تاسو ته تکلیفونه رسوی، او خپلو لاسونو سره هم، یعنی کنځلے کوی، وهل او وژل کوی، د دوئ خو د زړهٔ آرزو ده چه تاسو ټول د اسلام نه آوړیدلی وے او دوباره مو کفر قبول کړے وے۔

إِنْ يَثْقَفُوكُمْ : ثقف وائی، موندل په غلبے او کامیابیدو سره۔

أَيْدِيَهُمْ : ئے مخکښ راوړو اشاره ده د دوئ زیاتے دشمنئ ته۔

وَوَدُّوا : یعنی دوئ د مخکښ نه په زړه کښ دا آرمانونه کوی او کړی ئے دی چه تاسو هم کافران شئ۔

لَنْ تَنْفَعَكُمْ : تاسو چه د کوم اولاد او رشته دارانو د وجے نه کافرانو سره دوستی کول غوښتلی دی، هغه به د قیامت په ورځ د جهنم د عذاب نه تاسو بچ نهٔ کړے شی، په دے ورځ به ټول د یو بل نه جدا شئ، هیڅوك به د هیچا د حال تپوس کونکے نهٔ وی، نو بیا د بل چا د وجے نه خپل انجام خرابوئ۔ تاسو دے په دے خبره پوهه یئ چه د الله د نظر نه ستاسو هیڅ عمل غائب نهٔ دے، دے وجے نه د هغهٔ نه یریږئ، او هغه کار کوئ چه هغے سره هغه راضی کیږی۔

د مفسر الکیا هراسیؒ نه نقل دی هغه فرمائی : چه ددے آیت نه معلومه شوه چه د مال او د اولاد د خوف د وجه نه د دین فتنه قبلول نشی جائز کیدے۔

أَرْحَامُكُمْ: په اسلام کښ خپلولی پالل شته لیکن د اسلام او د دین په خلاف باندے د هغے پالل هلاکت دے۔

يَوْمَ الْقِيَامَةِ : دا ظرف دے د (لَنْ تَنْفَعَكُمْ) دپاره۔ او يَفْصِلُ مستقل کلام دے۔ یا يَوْمَ الْقِيَامَةِ د يَفْصِلُ دپاره ظرف دے، او ددے نه مستقله جمله شروع شویده۔

يَفْصِلُ بَيْنَكُمْ : یعنی الله به ستا نه اولاد او خپلوان جدا کړی، نیکان به جنت ته داخل کړی او مجرمان به اور ته۔ یا د جدایئ مطلب دا دے چه هر یو به د بل نه تیخته کوی ځکه چه یره به ډیره سخته وی۔

Scanned by CamScanner

قَدْ كَانَتْ لَكُمْ أُسْوَةٌ حَسَنَةٌ فِي إِبْرَاهِيمَ وَالَّذِينَ

یقیناً شته تاسو لره تابعداری ښائسته په ابراهیم (علیه السلام) او په هغه کسانو

مَعَهُ إِذْ قَالُوا لِقَوْمِهِمْ إِنَّا بُرَءَاؤُ

کښې چه د هغهٔ سره وو کله چه اُووئیل هغوی قوم خپل ته یقیناً مونږ جدا یو

مِنكُمْ وَمِمَّا تَعْبُدُونَ مِن دُونِ اللّٰهِ كَفَرْنَا

ستاسو نه او د هغې نه چه بندګی ئې کوئ تاسو سوئ د الله نه، انکار کړے مونږ

بِكُمْ وَبَدَا بَيْنَنَا وَبَيْنَكُمُ الْعَدَاوَةُ

ستاسو (د طریقې) نه او ښکاره شویده په مینځ زمونږ او مینځ ستاسو کښې دشمنی

وَالْبَغْضَاءُ أَبَدًا حَتَّىٰ تُؤْمِنُوا بِاللّٰهِ وَحْدَهُ إِلَّا قَوْلَ

او کینه همیشه، تردے پورے چه تاسو ایمان راوړئ په الله باندے یواځې مګر وینا

إِبْرَاهِيمَ لِأَبِيهِ لَأَسْتَغْفِرَنَّ لَكَ وَمَا أَمْلِكُ

د ابراهیم (علیه السلام) خپل پلار ته خامخا زهٔ به بخنه غواړم تا لره او اختیار نهٔ لرم

لَكَ مِنَ اللّٰهِ مِن شَيْءٍ رَّبَّنَا عَلَيْكَ تَوَكَّلْنَا

زهٔ تا لره د الله نه د هیڅ شي، اے ربه زمونږ! خاص په تا مونږ خان سپارلے دے

وَإِلَيْكَ أَنَبْنَا وَإِلَيْكَ الْمَصِيرُ ﴿٤﴾

او خاص تا ته مونږ درګرځو (په بندګئ سره) او خاص تا ته درګرځیدل دی۔ (دپاره د جزا)

رَبَّنَا لَا تَجْعَلْنَا فِتْنَةً لِّلَّذِينَ كَفَرُوا

اے ربه زمونږ! مهٔ ګرځوه مونږ فتنه (امتحان) دپاره د هغه کسانو چه کافران دی

وَاغْفِرْ لَنَا رَبَّنَا إِنَّكَ أَنتَ الْعَزِيزُ الْحَكِيمُ ﴿٥﴾

او بخنه اُوکړه مونږ ته اے ربه زمونږ! یقیناً ته زورور حکمتونو والا ئې۔

Scanned by CamScanner

**تفسير** : اُوس مثال د ابراهيم ﷺ راوړی چه هغهٔ د خپل پلار او د خپلوانو د الله په مقابله کښې هيڅ لحاظ نهٔ وو ساتلے نو تاسو به هم د هغهٔ اقتداء کوئ، او د هغهٔ په شان به د مشرکانو نه د بيزارئ اعلان کوئ۔

د ابراهيم ﷺ او د هغهٔ د مومنانو ملګرو ژوند ستاسو دپاره بهترينه نمونه ده، چه هغوئ د خپل کموالي او کمزورئ او د دشمنانو د ډيروالي او قوت باوجود، د الله د دشمنانو سره د بيزارئ په ښرګندولو کښې د ذرے هومره سوچ نه کار نهٔ دے اخستے، او د هيڅ رشته دارئ خيال ئے نهٔ دے کړے،

او د ټول قوم مخامخ ئے اعلان وکړو چه مونږ ستاسو نه او ستاسو د بتانو نه لرے او بے تعلقه يو، مونږ ستاسو د دين او معبودانو نه انکار کوو، او ز مونږ او ستاسو ترمينځه اوس ښکاره دشمنی پيدا شوے ده، ځکه چه مونږ موحدين يُو او تاسو مشرکان خلق يئ، او دا دشمنی به هغه وخته پورے باقی پاتے کيږی تر څو پورے چه تاسو په يو الله باندے ايمان رانهٔ وړئ۔

وَالَّذِيْنَ مَعَهٗ: ددے نه مراد يا د هغهٔ تابعداران وو۔ يا ټول رسولان او اولياء مراد دی ځکه چه ټول رسولان د هغهٔ ملګری دی په دين کښې، او په براء ت کولو کښې د د دين د دشمنانو نه۔

إِنَّا بُرَءٰٓؤُا مِنْكُمْ : يعنی مونږ ستاسو نه بيزاره او جدا يو، ز مونږ او ستاسو هيڅ تعلق نشته، نهٔ خپلولی او نهٔ دوستانه کول، او نهٔ غم ښادی کول۔ پکار ده چه مؤمن دغه شان د مشرکانو سره غم ښادی پريدی، داسے دينی غيرت د الله تعالیٰ ډير خوښ وی۔

كَفَرْنَا بِكُمْ: ۱ - كَفَرْنَا بِاَوْثَانِكُمْ اَوْ بِدِيْنِكُمْ اَوْ بِاَفْعَالِكُمْ۔

مونږ ستاسو د بتانو او ستاسو د دين او ستاسو د کارونو نه منکر يو۔ يعنی ستاسو سره به هيڅ تعلق نهٔ ساتو۔ دا مونږ ته غلط ښکاره کيږی۔

۲- لَا نَعْتَدُّ بِشَأْنِكُمْ۔ مونږ ستاسو نه منکر يو، يعنی ستاسو هيڅ شے نهٔ منو، نهٔ درسره محبت کوو، نهٔ ستاسو عزت او شان او شوکت منو۔ دا قول غوره دے۔ ځکه چه کله يو تن د چا نه جدا شی ليکن په زړه کښې ئے ورسره مينه باقی وی، نو د برء اء معنیٰ دا چه د هغوی د اعمالو او د بتانو نه جدا شی، او د كَفَرْنَا معنیٰ دا چه په زړه کښې ورسره مينه هم نهٔ ساتی۔

Scanned by CamScanner

وَبَدَا بَيْنَنَا وَبَيْنَكُمُ الْعَدَاوَةُ: دا د براء ت تشریح ده. او بَدَا لفظ راوړو کښې اشاره ده چه د مشرکانو سره د دشمنئ راښکاره کول لازم دی.

ددے وجه نه ئے اَلْعَدَاوَة مخکښې راوړو ځکه چه عداوت عملی دشمنئ ته وائی او اَلْبَغْضَاءُ په زړه کښې کینه ساتل دی. او دا بغض فِی الله دے چه دے ته کامل ایمان وائی.

حَتّٰی تُؤْمِنُوْا: پدے کښې اشاره ده چه د براء ت سبب د توحید نه انکار کول دی، نو معلومه شوه چه د موحد سره براء ت کول حرام دی.

اِلَّا قَوْلَ اِبْرَاهِيْمَ: دا استثناء متصل ده د لفظ د (اُسْوَةٌ) نه یا د (اِبْرَاهِيْمَ) نه. یعنی د ابراهیم ﷺ اقتداء په ټولو اقوالو او افعالو کښې ضروری ده مګر پدے قول کښې تابعداری مهٔ کوئ، یعنی د مشرك دپاره د استغفار وعده مهٔ کوئ، او استغفار ورله مهٔ غواړئ لکه هغه چه ورله غوختلے وو،

او هغه چه استغفار غوختلے وو نو د هغے یوه خاص وجه وه چه هغه مخکښې په سورة توبه (۱۱٤) آیت کښې ذکر شویده چه ابراهیم ﷺ ته د خپل پلار د شرك پته نهٔ وه نو هغه سره ئے وعده کړے وه چه ستا دپاره به بخښنه غواړم. خو کله چه پوهه شو چه هغه د الله دشمن دے نو بیا ئے ترے براء ت وکړو.

علامه قرطبیؒ لیکی چه دا آیت دلیل دے په فضیلت د رسول الله ﷺ په ټولو انبیاؤ علیهم السلام باندے ځکه چه د ابراهیم ﷺ په اتباع کښې استثناء شته او د نبی کریم ﷺ په اتباع کښې استثناء نشته.

وَمَا اَمْلِكُ: دا د مخکښې استغفار سره متعلق دے، یعنی ابراهیم ﷺ خپل پلار ته دا هم وئیلی وو چه زهٔ به درله بخښنه غواړم مګر بیا هم که تهٔ شرك کوے، نو زهٔ د الله د عذاب نه ستا دپاره د هیڅ شی اختیار نهٔ لرم.

دا دلیل دے چه انبیاء علیهم السلام هم څوك په زوره د الله تعالیٰ د عذابونو نه نشی بچ کولے، هغوی هم الله ته محتاج بندګان دی.

رَبَّنَا عَلَيْكَ تَوَكَّلْنَا: سوال پیدا شو چه کله مونږ ددے خلقو نه جدا شو نو بیا به مو مرۍ څوك خخوی، مصیبتونه او تکلیفونه راځی، نو د خپلوانو نه جدائی خو ډیر ګران کار دے، نو الله تعالیٰ دلته طریقه ښائی چهٔ د ابراهیم ﷺ تابعدارو داسے خبره کړیده تاسو هم دغه شان ووایئ چه اے ربه زمونږ! مونږ خاص تا ته تول کارونه سپارلی دی.

Scanned by CamScanner

نو الله زمونږ. شته، کافرانو ته هیڅ ضرورت نشته۔
رَبَّنَا لَا تَجْعَلْنَا: دا هم د ابراهیم علیه السلام او د هغهٔ د تابعدارو دعاء ده، یا الله تعالیٰ ددے امت مؤمنانو ته حکم کوی چه تاسو داسے ووایئ۔
او ددے دعاء تعلیم ځکه ورکوی چه هسے نهٔ چه یو بنده باندے د هغهٔ د گناه د وجه نه امتحان راشی نو مشرکان بهانه جوړه کړی چه وګورئ مونږ. سره ئے ورانه کړه نو ځنګه مصیبتونه پرے راغلل۔
لَا تَجْعَلْنَا فِتْنَةً: د کافرانو دپاره د فتنے (او امتحان) ګرځیدو دوه صورتونه دی، یو دا چه په مونږ. مصیبت راشی ستا د طرفنه، یا د کافرانو د طرفنه نو د کافرو دپاره به مونږ. امتحان شو، وائی به که دوی په حق وے نو په دوی به مصیبتونه نهٔ راتللے۔
او امتحان د ګناهونو د وجه نه راځی نو ورپسے وائی (وَاغْفِرْ لَنَا) مونږ. ته بخنه وکړه او د ګناه اثر رانه زائله کړه۔
دویم صورت: فتنه په معنیٰ د مُعَذَّبْ سره اَیْ مُعَذَّبِیْنَ بِاَیْدِی الْکَافِرِیْنَ ۔ یعنی مونږ. ته د کافرانو په لاسونو باندے عذاب مهٔ راکوه) ګنے بیا به دوی وائی چه مونږ. په حقه یو ځکه مونږ. په مؤمنانو باندے مسلط او غالبه شولو۔ نو د دوئ کفر به نور زیات شی۔
یا مطلب دا دے چه زمونږ. نه د کافرانو سره د دوستانے ساتلو کار مهٔ ښکاره کوه ځکه چه دا به سبب جوړ شی د کافرانو د فتنے دپاره یعنی هغوی به وائی چه مونږ. په حقه یو ځکه مونږ. سره مؤمنان دوستانه ساتی۔

| لَقَدْ كَانَ لَكُمْ فِيْهِمْ أُسْوَةٌ |
| --- |
| یقیناً تاسو لره شته په دوی کښں (پدغه ذکر شوے ډله کښں) اقتداء (تابعداری) |
| حَسَنَةٌ لِمَنْ كَانَ يَرْجُو اللّٰهَ وَالْيَوْمَ الْآخِرَ |
| ښائسته دپاره د هغه چا چه امید لری د الله او د ورځے روستنئ |
| وَمَنْ يَتَوَلَّ فَإِنَّ اللّٰهَ هُوَ الْغَنِيُّ الْحَمِيْدُ ﴿٦﴾ |
| او څوک چه مخ اړوی، نو یقیناً الله بے حاجته ستائیلے شویدے۔ |

**تفسیر: لَقَدْ:** پدے کښں د ابراهیم علیه السلام او د هغهٔ د مؤمنانو ملګرو (ساره او لوط علیه السلام

Scanned by CamScanner

وغیره) په نقش قدم باندې د تللو تاکید ذکر کوي، او دا خبره ښائي چه دده خلقو اقتداء هغه څوك كولے شي چه څوك د الله او د آخرت امید لري. هر چا ته دا کار آسان نهٔ دے (سعدی)

اُسْوَةٌ حَسَنَةٌ: دائے دوباره راوړو:

(۱) پدے کښې تاکید مقصود دے څکه چه د فسادیانو سره دوستي او تعلق ساتل حق دین ته او ددے مننونکو ته نقصان ورکول دي، د کافرانو همیشه دا کوشش دے چه د دین جرړے کمزورے کړي، کمزوري ایمان والا خلق په شکونو او شبهاتو کښې اخته کړي، او د دعوت په لاره کښې خنډونه رامخے ته کړي، او مؤمنان په آزمائش کښې واچوي،

نو پدے وجه د مشرکانو نه نفرت کول د ایمان یوه اعلیٰ درجه ده څکه چه ترڅو پورے اهل حق د حق دپاره متعصب (کلك او سخت) نشي او متحد کیدو سره د دشمن مقابله ونکړي نو حق ته قوت نشي ملاویدے.

لِمَنْ كَانَ يَرْجُوا: دا دلیل دے چه د ابراهیم ﷺ او د هغهٔ ملګري خپل پیشوا او مقتدیٰ نهٔ جوړول بده عقیده ده، او د خپل ځان نقصان دے څکه روستو وائي چه (وَمَنْ يَتَوَلَّ) څوك چه د دوئ د اقتداء نه واوړي نو هغه هلاك شو، الله تعالیٰ ته د هغهٔ هیڅ ضرورت نشته، خپل نقصان ئے وکړو، الله تعالیٰ خو ددهٔ د ایمان او بندګئ نه بے حاجته او بے نیازه دے.

(۲) او ددے دوباره راوړو کښې بله اشاره ده چه دا اقتداء په صحیح عقیده او نیت سره پکار ده نو هله به فائده ورکوي.

(۳) دریم دا چه مخکښې د اقتداء حکم وو په برائت کولو سره د مشرکانو نه او دلته ترغیب دے اقتداء کولو ته د ټول ملت ابراهیمي چه هغه پوره توحید دے.

(احسن الکلام)

Scanned by CamScanner

عَسَى اللّٰهُ أَنْ يَّجْعَلَ بَيْنَكُمْ وَبَيْنَ الَّذِيْنَ

امید دے چه الله به اُوګرځوی په مینځ ستاسو کښې او په مینځ د هغه کسانو کښې

عَادَيْتُمْ مِّنْهُمْ مَّوَدَّةً وَاللّٰهُ قَدِيْرٌ وَّاللّٰهُ غَفُوْرٌ

چه دشمنی کوئ تاسو د دوی نه دوستانه او الله پوره قدرت لرونکے دے او الله بخونکے

رَّحِيْمٌ ﴿۷﴾ لَا يَنْهَاكُمُ اللّٰهُ عَنِ الَّذِيْنَ

رحم کونکے دے۔ نۀ منع کوی تاسو لره الله تعالیٰ د هغه کسانو نه

لَمْ يُقَاتِلُوْكُمْ فِي الدِّيْنِ وَلَمْ يُخْرِجُوْكُمْ مِّنْ

چه جنګ ئے نۀ دے کړے تاسو سره په دین کښې او نه ئے ویستلی یئ تاسو د

دِيَارِكُمْ أَنْ تَبَرُّوْهُمْ وَتُقْسِطُوْا إِلَيْهِمْ

کورونو ستاسو نه چه احسان اُوکړئ تاسو د دوی سره او انصاف اُوکړئ د دوی سره،

إِنَّ اللّٰهَ يُحِبُّ الْمُقْسِطِيْنَ ﴿۸﴾ إِنَّمَا يَنْهَاكُمُ اللّٰهُ عَنِ الَّذِيْنَ

یقیناً الله مینه کوی د انصاف کونکو سره۔ یقیناً منع کوی تاسو لره الله د هغه کسانو

قَاتَلُوْكُمْ فِي الدِّيْنِ وَأَخْرَجُوْكُمْ مِّنْ دِيَارِكُمْ

نه چه جنګ ئے کړے تاسو سره په دین کښې او ویستلی ئے تاسو د کورونو ستاسو نه

وَظَاهَرُوْا عَلٰى إِخْرَاجِكُمْ أَنْ تَوَلَّوْهُمْ

او مدد ئے کړے ستاسو په ویستلو باندے ددے نه چه تاسو دوستی اُوکړئ د دوی سره

وَمَنْ يَّتَوَلَّهُمْ

(چه واورئ تاسو دوی ته) او چا چه دوستی وکړه د دوی سره (او خوك چه واوریدو دوی ته)

فَأُولٰئِكَ هُمُ الظَّالِمُوْنَ ﴿۹﴾

نو دغه کسان هم دوی ظالمان دی۔

Scanned by CamScanner

**تفسیر** : پدے رکوع کښې تر آخره پورے تسلي او زیرے دے په لرے کولو د دشمنئ د کافرانو، بیا د کافرانو دوه قسمونو ته تقسیم دے اول قسم سره دنیوی تعلق ساتل جائز او د دویم قسم سره مطلق تعلق ساتل منع خودلے شویدی، بیا دوه قانونه دی دپاره د دخول د زنانو په اسلام کښې، اول قانون په وخت د مصالحت پورے خاص دے، او دویم عام دے، او په آخری آیت کښې براء ت دے د کافرانو نه.

په دے آیتِ کریمه کښې مومنانو له زیرے ورکړے شوے چه نن چه تاسو د کومو کافرو رشته دارانو سره خاص د الله له خاطره د جدایئ اعلان کوئ، په دوئ کښې به ډیر خلق نزدے راتلونکی وخت کښې ایمان راوړی، بیا به ستاسو دشمنی، په دوستئ او محبت بدله شی. او کله چه دشمنی ختمه شی نو ژوند آسان شی.

او همدغسے اوشوه، دا پیشنګوئی رشتینی شوه چه د قریشو کافران د مکے د فتح نه پس د صفا په غونډئ باندے ډلے ډلے راغلل، او د نبی کریم ﷺ په لاس ئے بیعت وکړو او د مومنانو په ډله کښې شامل شول.

**عَسَى اللهُ**: یعنی د الله تعالیٰ نه دا امید وساتئ.

**مَوَدَّةً**: اَیْ بِتَوْفِيْقِ الْاِيْمَانِ اِيَّاهُمْ. یعنی دوی ته به د ایمان توفیق ورکړی.

**لَا يَنْهٰكُمُ**: دلته الله تعالیٰ د کافرانو دوه قسمونه بیانوی، وجه دا ده چه هرکله مؤمن د کافرانو سخته دشمنی واوریده، او د هغوی نه د براء ت مسئلے نه خبر شو، بیا د کافر په خوا هم نهٔ ورتیریدی او بل څوك چه د کافر خوا ته ورشی نو هغه ته هم کافروائی نو په غلو کښې واقع شی، نو الله دلته دغه غلو دفع کوی، چه کافران دوه قسمه دی، د هغوی نه د براء ت بیلا بیل شکلونه دی، د هر کافر نه خپل خپل براء ت دے، یو حربی کافر دے هغه روستو ذکر کیږی، او بل غیر حربی کافر دے چه د مسلمانانو سره په معاشره او چم ګاونډ کښې وسیږی نو د دوی حکم دا دے چه د دوئ سره دنیاوی تعلقات، احسان او معاملات ساتل ناروا نهٔ دی.

**اَنْ تَبَرُّوْهُمْ** : یعنی غیر حربی کافر ته لاره وښائی چه پدے لاره لاړ شه، د هغه سره بوج اوچت کړی، هغهٔ باندے خوراك څکاك وکړی، هغه په کرسئ باندے کینوی، د هغهٔ هدیه قبوله کړی، هغه سره راشه درشه وکړی.

بخاریؒ او مسلمؒ د اسماء بنت ابی بکر صدیق رضی الله عنهما نه نقل کړیدی هغه

Scanned by CamScanner

فرمائي : زما مور مشرکه وه مګر هغه د اسلام سره مينه کونکے وه، ما کره د صلح د حديبيه په زمانه کښې راغله کله چه قريشو د رسول الله ﷺ سره معاهده کړے وه،
نو ما د نبي کريم ﷺ نه تپوس وکړو چه آيا زهٔ د مور سره صله رحمي وکړم؟ نو الله تعالیٰ دا آيت (لَا يَنْهٰكُمُ اللّٰهُ) نازل کړو۔ نو رسول الله ﷺ وفرمايل :

(صِلِيْ اُمَّكِ) د مور سره صله رحمي کوه۔

(بخاري في الجزية باب ۱۸، والادب باب ۷، ۸) ومسلم في الزکاة حديث : ۵۰)

وَتُقْسِطُوْا اِلَيْهِمْ : او انصاف د هغوي سره وکړئ، يعني د هغوي سره د لوظ حفاظت وکړئ، په هغوي ظلم مهٔ کوئ او کله چه د هغوي سره تجارت او لين دين کوئ نو په هغے کښې ورسره خيانت مهٔ کوئ۔ دا څکه وائي چه کله نا کله انسان د کافر سره لين دين کوي نو هغه کافر ګنړلو سره د هغهٔ نه غلا کوي، او د هغهٔ په مال کښې خيانت کوي، نو الله فرمائي چه دوئ سره به هم عدل او احسان کوئ۔

مفسرين ليکي کله چه الله تعالیٰ د مشرك په حق کښې انصاف ضروري کړو او د ظلم نه ئے منع وکړه نو د مسلمان د حق په باره کښې ډے څه ګمان دے؟!۔

بعض اهل علم وائي : اِقساط معنیٰ ده هغوي ته د احسان يا صله رحمئ په طور د مال څه حصه ورکول دي۔ او عدل نهٔ دے مراد څکه چه عدل خو د ټولو کافرانو سره واجب دے۔ مګر دا خو په بر کښې داخل دے۔ نو ظاهر دا ده چه دلته انصاف مراد دے او وجه ئے مخکښې بيان شوه چه د داسے قسم کافرانو سره غالباً خلق انصاف نکوي، په دوي ظلم کوي او مالونه ئے وهي۔

او ددے آيت په حکم کښې اهل ذمه کافران داخل دي، دارنګه هغه زنانه او بوډاګان او بچي د کافرانو چه قتال نشي کولے هغه هم داخل دي۔

کومو علماؤ چه دا خبره کړيده چه دا حکم په ﴿ فَاقْتُلُوا الْمُشْرِكِيْنَ كَآفَّةً ﴾ سره منسوخ شويدے نو دا خبره د مخکښې حديث د اسماء رضي الله عنها د وجه نه ضعيفه ده۔ لکه ابن جريرؒ او قرطبيؒ پدے رد کړيدے۔ او د آيت د نازليدو سبب اګرکه د مکے مشرکان دي، ليکن دا حکم تمامو کافرانو دپاره عام دے۔

ابن جريرؒ او قرطبيؒ وغيره همدے رائے له ترجيح ورکړے ده۔

اِنَّمَا يَنْهٰكُمُ اللّٰهُ : اُوس دويم قسم يعني د حربي کافرانو حکم بيانيږي يعني د قريشو

Scanned by CamScanner

کومو سردارانو او مشرانو چه د مسلمانانو خلاف په جنګونو کښې برخه اخستې وه، او دوئ ئې د دوئ د کورونو نه ویستلی وو، نو د دوی سره ئې د تعلق پریکولو حکم وکړو۔

**اَنْ تَوَلَّوْهُمْ:** دا بدل دے د اَلَّذِیْنَ نه۔

او د تَوَلِّی نه مراد د کافرانو سره محبت ساتل، د هغوی دین اختیارول، د مسلمان په مقابله کښې د هغوی مدد کول، او د هغوی په کفری کارونو راضی کیدل دی۔ او ددے صورتونو په حکم کښې تفصیل شته۔

**الظّٰلِمُوْنَ:** یعنی دوی په خپل حق کښې ظلم کوی، او د الله د غضب حقدار جوړیږی۔

| |
|---|
| يَا أَيُّهَا الَّذِيْنَ آمَنُوْا إِذَا جَاءَكُمُ الْمُؤْمِنَاتُ مُهَاجِرَاتٍ فَامْتَحِنُوْهُنَّ |
| اے ایمان والو! کله چه راشی تاسو ته مؤمنے ښځے هجرت کونکے نو امتحان اُوکړئ |
| اللهُ أَعْلَمُ بِإِيْمَانِهِنَّ فَإِنْ عَلِمْتُمُوْهُنَّ |
| په دوی باندے، الله ښهٔ پو هه دے په ایمان د دوی، نو که چرته پته اُولګیده تاسو ته |
| مُؤْمِنَاتٍ فَلَا تَرْجِعُوْهُنَّ إِلَى الْكُفَّارِ لَا هُنَّ حِلٌّ |
| چه دوی مؤمنے دی نو مهٔ واپس کوئ دوی کافرانو ته، نهٔ دی دوی حلالے |
| لَّهُمْ وَلَا هُمْ يَحِلُّوْنَ لَهُنَّ وَآتُوْهُمْ مَّا |
| هغوی لره او نهٔ هغوی حلال دی دوی لره، او ورکړئ دوی (کافرو) ته هغه مال |
| أَنْفَقُوْا وَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ أَنْ تَنْكِحُوْهُنَّ |
| چه خرچ کړیدے دوی او ګناه نشته په تاسو باندے چه تاسو نکاح اُوکړئ د دوی سره |
| إِذَا آتَيْتُمُوْهُنَّ أُجُوْرَهُنَّ وَلَا تُمْسِكُوْا بِعِصَمِ الْكَوَافِرِ |
| کله چه تاسو ورکړئ دوی ته مهرونه د دوی او مهٔ ساتئ نکاحونه د کافرو ښځو |
| وَاسْأَلُوْا مَا أَنْفَقْتُمْ وَلْيَسْأَلُوْا |
| او اُوغواړئ هغه مالونه چه خرچ کړی وی تاسو او اُودے غواړی دوی (کافران) |

Scanned by CamScanner

| مَا أَنْفَقُوا ذٰلِكُمْ حُكْمُ اللهِ يَحْكُمُ |
|---|
| هغه مالونه چه دوی خرچ کړيدی، دا فيصله د الله ده، فيصله کوی |
| بَيْنَكُمْ وَاللهُ عَلِيْمٌ حَكِيْمٌ ﴿۱۰﴾ |
| په مينځ ستاسو کښې او الله پوهه حکمتونو والا دے۔ |

**تفسير**: مخکښې مونږ ليکلی وو چه د صلح حُديبيه په شرائطو کښې يوه خبره دا وه چه که يو کافر د مکے نه اُوتښتی يعنی مسلمان شی او مدينے ته راشی، نو رسول الله ﷺ به دا واپس مکے ته ليږی، اوکه يو مشرك د مدينے نه مکے ته لاړ شی نو د مکے کافران به دا نۀ واپس کوی، ليکن د الله تعالیٰ حکمت ته اُوګوره چه په دے کښې د هغه مسلمانو ښځو په باره کښې هيڅ خبره نۀ وه شوے کومو چه هجرت وکړو او مدينے ته راغلے۔ لکه اُمِّ کلثوم بنت عقبه بن ابی معيط، سُبَيْعه بنت الحارث اسلميه، او اُميمه بنت بِشر او نورو مسلمانو ښځو چه کله هجرت اوکړو او مدينے ته راغلے، نو (۱۰/ ۱۱) آيتونه نازل شو، چه ددے مطابق رسول الله ﷺ دوئ لره واپس مکے ته ونۀ ليږلے۔

د اُمِّ کلثوم دوه ورونه عماره او وليد په دے غرض مدينے ته راغلۀ، ليکن نبی ﷺ هغه واپس نۀ کړه۔

امام بغویؒ روايت راوړيدے چه کله سبيعه بنت الحارث اسلميه راغله نو خاوند صيفی بن الراهب چه دغه زمانه کښې مشرك وو وريسے راغے، وے وئيل : [يَا مُحَمَّدُ ! رُدَّ عَلَیَّ امْرَأَتِیْ فَإِنَّكَ قَدْ شَرَطْتَ أَنْ تَرُدَّ عَلَيْنَا مَنْ أَتَاكَ مِنَّا وَهٰذِهٖ طِيْنَةُ الْكِتَابِ لَمْ تَجِفَّ بَعْدُ] اے محمده (ﷺ) ما ته خپله ښځه راواپس کړه ځکه چه تا مونږ سره شرط لګولے دے چه زمونږ چه څوك تا ته راشی نو مونږ ته به ئے واپس کوے، او دا ده سياهی د خط لا وچه شوے نۀ ده۔ نو الله تعالیٰ دا آيت نازل کړو۔ (بغوی ۹۷/۸)

(چه زنانه ورته مۀ واپس کوئ۔ ددے وجه دا ده چه مؤمنه زنانه د کافر دپاره حلاله نۀ ده ځکه چه اسلام ددے د کافر خاوند سره نکاح ماته کړيده، بله دا چه زنانه نازکے وی، ډير صبر په وهلو ټکولو نشی کولے، په واپس کولو کښې ئے د مرتد کيدو امکان شته۔ او هرچه سړی دی نو هغوی صبر کولے شی او د تيښته لاره به پيدا کړی)۔

Scanned by CamScanner

نو رسول الله ﷺ د هغې نه امتحان واخستو او قسمونه ئې ورکړل چه هغه روستو ذکر کیږي بیا د هغې نه روستو عمر بن الخطاب رضی الله عنه په نکاح واخسته.

او اُمیمه بنت بشر انصاریه چه د ثابت بن الشَّمْرَاخ یا د حسان بن دَحْداحه ښځه وه کله چه دا مسلمانه شوه او د خپل کافر خاوند د خوا نه اوتښتیده او مدینې ته راغله، نو نبي ﷺ د هغې واده د سهل بن حنیف رضی الله عنه سره وکړو.

مُهَاجِرَاتٍ: د یعنی مکې نه ئې هجرت وکړو یا د بل ځای نه.

فَامْتَحِنُوْهُنَّ: رسول الله ﷺ به د دوئ نه کوم امتحان اخستو؟ نو دې کښې اختلاف دے

(۱) ابن جریرؒ د ابن عباس رضی الله عنه نه نقل کړیدی چه: كَانَتِ الْمَرْأَةُ إِذَا أَتَتْ رَسُوْلَ اللّٰهِ ﷺ حَلَّفَهَا بِاللّٰهِ مَا خَرَجَتْ مِنْ بُغْضِ زَوْجٍ، وَبِاللّٰهِ مَا خَرَجَتْ رَغْبَةً عَنْ أَرْضٍ إِلَى أَرْضٍ، وَبِاللّٰهِ مَا خَرَجَتْ اِلْتِمَاسَ دُنْيَا، وَبِاللّٰهِ مَا خَرَجَتْ إِلَّا حُبًّا لِلّٰهِ وَلِرَسُوْلِهٖ.

چه کله به یوه زنانه رسول الله ﷺ ته راغله نو هغهٔ به ورته په الله تعالیٰ باندې داسې قسم ورکولو چه د خاوند سره د بُغض په وجه یا د یوې زمکې نه بلې زمکې سره د مینې په وجه، یا د دنیا د طلب کولو دپاره نهٔ دی راوتې، او قسم په الله چه صرف د الله او د رسول د محبت په وجه راوتې دې، او د هغهٔ د دین سره ئې مینه ده. نو کله چه به یوې زنانه دغه قسم وکړو نو نبي کریم ﷺ به د هغې کافر خاوند ته د هغې مهر او هغهٔ چه پرې کومه خرچه کړې وه هغه بیرته ورکړه مګر هغه به ئې ورته نهٔ واپس کوله. او دا قسم به عمر بن الخطاب رضی الله عنه ورکولو. (رواه ابن جرير والطبراني وغيرهما وفيه قيس بن الربيع مختلف فيه وقال الشوكاني والسيوطي بسند حسن وضعفه الالباني)

(۲) بعض وائي: امتحان دا وو چه دا ګواهي وکړي (أَشْهَدُ أَنْ لَّا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ وَأَنَّ مُحَمَّدًا رَّسُوْلُ اللّٰهِ) نو کله چه به صحابه کرامؓ پوهه شو چه دائې په رشتینې زړهٔ سره ووئیله نو بیا به ئې کافرانو ته نهٔ واپس کوله.

او ددې هغه خاوند ته کوم چه په کافرانو کښې به وو هغه ته به ئې د هغهٔ هغه مهر واپس کړو کوم چه به هغه دې ښځې ته ورکړې وو او بیا به ئې دغه زنانه مؤمنانو دپاره حلالې کړې کله چه دوی ورته مهرونه ورکړي. (ابن عباس رضی الله عنه)

(۳) عائشه رضي الله عنها وائي: امتحان دا وو چه رسول الله ﷺ پرې روستو آیت ﴿يَا أَيُّهَا النَّبِيُّ إِذَا جَاءَكَ الْمُؤْمِنَاتُ﴾ تر آخره پورې ولوستو. یعنی روستو آیت د بیعت به ئې

Scanned by CamScanner

ورتـه ولوستـلو. او دغـه بيـعـت بـه ئـې ترې واخستو، كه چا به پدې اقرار وكړو نو دا به مؤمنه حسابيده. (بخاري: ۵۲۸۸) او دا درې واړه طريقې صحيح دي.

اَللهُ اَعْلَمُ بِاِيْمَانِهِنَّ: يـعـنـي پـدې امتـحـان اخسـتـو كښې فائده دا ده چه ستاسو يقين حاصل شي، ورنه الله تعالىٰ خو د هغوي په ايمان باندې د مخكښې نه عالِم دې.

فَاِنْ عَلِمْتُمُوْهُنَّ: دلتـه بـل جانب عبارت پټ دې، يعنى كه تاسو ته معلومه شى چه د دوئ هـجـرت د ايـمـان دپاره نهٔ دې، بلكه دنياوى خواهش دې، نو بيا ئې كافرانو ته واپس كړئ. او كـه درتـه مـعـلـومـه شي چه دوئ مؤمنانې دي په ذريعه د قسم يا د شهادت يا د بيعت په اخستو، يا په نورو علاماتو سره چه هغې ته ظن غالب وائى نو بيا ئې كافرانو ته مهٔ واپس كوئ.

فَلَا تَرْجِعُوْهُنَّ: دا دليـل دې چـه د كـافـرانـو نه ددې زنانو د جدائى علت ايمان دې، نهٔ يـواځې هـجـرت. يـعـنـي د ايمان د وجه نه دا زنانه كافرانو دپاره حلالې پاتې نشوې. الله ته پدې باندې غيرت ورځي چه ښځكه يوې پاكې مؤمنې سره ناپاكه كافر نزديكت وكړي.

لَا هُنَّ حِلٌّ لَّهُمْ وَلَا هُمْ يَحِلُّوْنَ لَهُنَّ: پـه ابـتـداء د اسلام كښې د مشركانو سره د مؤمنو ښـځـو نـكـاح جائز وه پدې وجه د نبى كريم ﷺ بـعـض لونړه مشركانو ته وادهٔ شوې وې نو په دې آيت سره د هغې حرمت راغې.

وَآتُوْهُمْ مَّا اَنْفَقُوْا: دا خـطـاب دې مشرانو او حاكمانو ته، او امر د وجوب دپاره دې، او دا حكم خاص دې په حالت د صلح پورې په مينځ د مؤمنانو او د كافرانو كښې لكه په وخت د صـلـح حـديـبيـه كـښې يـا په باره د زنانو د اهل ذمه ؤ كښې دې، او هر چه د حربى كافرانو ښـځـې دي چه د هغوى سره هيڅ عهد او لوظ او صلح نهٔ وي، او ښځې ئې ايمان راوړى نو خاونـدانـو تـه ئې مهرونه واپس كول نهٔ واجب دي، او نهٔ منسون دي په اتفاق د علماؤ سره او دا قول د قتادة دې او همدا صحيح دې. (فتح البيان)

او پدې مهر واپس كولو كښې به دې ته اشاره وى چه مؤمن كافرانو ته وښائى چه زمونږ عقيدې ته ضرورت دې، ستاسو مالونو ته محتاج نهٔ يو. بلكه عقيدې والا يو جسم والا خلق دې.

وَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ اَنْ تَنْكِحُوْهُنَّ: يـعـنـي مؤمنانو لره دا جائز دي چه د دوئ سره نكاح وكړي، او پكار ده چه د دوئ سره نكاح وكړى دې دپاره چه هغه معلق ژوند تير نكړي، او

Scanned by CamScanner

سکون ورته ملاؤ شي، خو دے سره دا شرط دے چه کله د هغے سره دخول شوے وي، نو د هغے عدت به تير شوے وي. او دا زنانه مسلمانانو له په شرعي نکاح سره جائز کيږي اګرکه خاوندانو ورته طلاق نهٔ وي ورکړے ځکه چه د دوئ دواړو ترمينځ عقد نکاحي په اسلام سره ختم شو.

**فائده** : دلته دوه قسمه مهرونه دي، يو دا چه د دوئ کافرانو خاوندانو ته د هغوي مهرونه واپس کړي، دا به غالباً بادشاه او امير ادا کوي، يا څوک ئے چه په نکاح اخلي. او دويم مهر دے په وخت د نکاح کښ ددے ښځے سره.

وَلَا تُمْسِكُوا بِعِصَمِ الْكَوَافِرِ : (يعني مهٔ نيسئ عصمتونه (نکاحونه) د کافرو ښځو). عِصَم جمع د عِصْمَةٌ ده، ساتنے، بچاؤ او عقد ته وئيلے شي، دلته عصمة د نکاح مراد دے. يعني کافرانے ښځے په نکاح کښ مهٔ ساتئ. مطلب دا چه لکه څرنګ چه د مؤمنے ښځے د کافرے سره نکاح ماته شوه، نو دغه شان د کافرے ښځے د مؤمن سره هم نکاح ختمه شوه. نو مسئله دا شوه چه که د يو مؤمن سړي کافره ښځه په دار حرب کښ پاتے شي، او سړے هجرت وکړي يا ددهٔ په نکاح کښ روستو د هجرت کولو نه يوه مشرکه ښځه وي چه ايمان نهٔ راوړي نو نکاح د دوي ختمه شوه.

او ددے حکم نه د اهل کتابو کافرے ښځے بهر دي، دا صرف د مشرکو غير کتابيو پورے خاص دے.

ابن جريرؒ د ﴿ وَلَا تُمْسِكُوا بِعِصَمِ الْكَوَافِرِ ﴾ د تفسير په ضمن کښ ليکلي دي چه په دے کښ الله تعالیٰ صحابه کرامو ته حکم کړے چه اُوس دوئ د خپلو کافرو ښځو سره هر قِسم تعلق ختم کړي، او آينده مشرکانو ښځو سره نکاح اونهٔ کړي.

دے نه پس ئے د مجاهدؒ قول نقل کړے چه صحابه کرامو ته حکم شوے وو چه هغوئ خپلو هغه کافرانو ښځو له طلاق ورکړي چه هغوئ په مکه کښ د کافرانو سره پاتے شوے وے.

امام زهريؒ د مسور بن مخرمةؓ او مروانؒ نه نقل کوي چه کله دا آيت نازل شو نو عمر ﷺ خپلو دوه کافرو ښځو له چه په مکه کښ وے او مشرکے وے طلاق ورکړو، (د يوے نوم قُريبه بنت ابي اميه وه چه) دا معاويه بن ابي سفيان ﷺ په نکاح واخستله (پدے وخت کښ دے لا په اسلام مشرف شوے نهٔ وو) او بله (ام کلثوم بنت عمرو الخزاعيه ام

Scanned by CamScanner

عبد الله بن عمر) نو صفوان بن امیه (په حالت د شرك كښې) په نكاح واخسته.
(صحیح بخاري: ۲۷۳۲ باب اذا اشترط فی المزارعة اذا شئت اخرجتك) او ابن جریر وئیلی دی چه دویمه ابو جهم بن حذافه په نكاح واخسته.
او طلحه بن عبید الله رضی الله عنه خپلے کافرے ښځے (أَرْوَیٰ بنت ربیعة بن الحارث بن عبد المطلب) له طلاق ورکړو چه هغه په مکه کښې پاتے شویے وه. بیا په اسلام کښې د طلحه رضی الله عنه نه روستو خالد بن سعید بن العاص رضی الله عنه په نکاح واخسته.
(تفسیر ابن ابی حاتم: ۱۸۸۶۸ وابن جریر ۳٤۲۹۸)

وَاسْأَلُوا مَا أَنْفَقْتُمْ: دا حکم د صلح حدیبیه پورے خاص وو، او مطلب دا دے چه مالونه یو بل ته واپس کوئ لیکن د ښځو واپسی نشته. دا ددے دپاره چه کافرانو ته پته ولګی چه مسلمانان پیسو والا خلق نهٔ دے بلکه د دوئ ایمان مطلوب دے.

ذٰلِكُمْ حُكْمُ اللّٰهِ: یعنی دا پورته چه کوم حکم بیان شو دا د الله تعالیٰ حکم دے، او ددے په تابعداریٔ کښې هر چاله خیر او ښیګړه ده.

| |
|---|
| وَإِنْ فَاتَكُمْ شَيْءٌ مِّنْ أَزْوَاجِكُمْ إِلَى الْكُفَّارِ فَعَاقَبْتُمْ |
| او که چرته پاتے شی ستاسو نه څه مال د بیبیانو ستاسو نه کافرانو ته بیا نمبر راشی |
| فَآتُوا الَّذِينَ ذَهَبَتْ أَزْوَاجُهُمْ مِّثْلَ مَا |
| ستاسو نو ورکړئ هغه کسانو ته چه تلی دی ښځے د هغوی په شان د هغے |
| أَنْفَقُوا وَاتَّقُوا اللّٰهَ الَّذِي أَنْتُمْ بِهِ |
| چه دوی خرچ کړیدی او اُویریږئ د هغه الله نه چه تاسو په هغهٔ باندے |
| مُؤْمِنُونَ ﴿۱۱﴾ يَا أَيُّهَا النَّبِيُّ إِذَا جَاءَكَ الْمُؤْمِنَاتُ يُبَايِعْنَكَ |
| ایمان لرونکی یئ. اے نبی! کله چه راشی تا ته مؤمنے ښځے بیعت کوی تا سره |
| عَلَىٰ أَنْ لَا يُشْرِكْنَ بِاللّٰهِ شَيْئًا وَلَا يَسْرِقْنَ |
| پدے خبره چه دوی به برخه داران نهٔ جوړوی د الله سره هیڅ شے، او نهٔ به غلا کوی |

Scanned by CamScanner

| وَلَا يَزْنِيْنَ وَلَا يَقْتُلْنَ اَوْلَادَهُنَّ وَلَا يَاْتِيْنَ بِبُهْتَانٍ |
| --- |
| او نهٔ به زنا کوی او نهٔ به وژنی اولاد خپل، او راتلل به نهٔ کوی په بهتان سره |
| يَّفْتَرِيْنَهٗ بَيْنَ اَيْدِيْهِنَّ وَاَرْجُلِهِنَّ |
| چه جوړوی ئے په مابین د لاسونو کښ او په مابین د خپو کښ |
| وَلَا يَعْصِيْنَكَ فِيْ مَعْرُوْفٍ فَبَايِعْهُنَّ |
| او نافرمانی به نهٔ کوی ستا په نیکیو کښ نو بیعت اُوکړه د دوی سره |
| وَاسْتَغْفِرْ لَهُنَّ اللّٰهَ اِنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ﴿۱۲﴾ |
| او بخنه غواړه دوی لره د الله نه، یقیناً الله بخونکے رحم کونکے دے۔ |

**تفسیر** : وَاِنْ فَاتَكُمْ : دا بل حکم دے، که دیو مسلمان سړی ښځه کافره شی او کافرانو خواته لاړه شی، او کوم کافر سره وادهٔ وکړی، او مسلمان ورپسے جواب ولیږی چه ددے مهر راولیږه او هغه انکار وکړی او مال واپس نهٔ کړی، نو الله فرمائی چه که کافر ورنکړو نو اے مسلمانانو! تاسو د غنیمت نه دے مسلمان ته څه برخه ورکړئ، یعنی روسته مسلمانان د دغه کافرانو سره جنګ وکړی، چه په هغے کښ مسلمانانو ته مالِ غنیمت حاصل شی، نو دے مسلمان خاوند له دِے ددے نه هغه مال ورکړے شی کوم چه هغهٔ د مهر په توګه ښځے ته ورکړے وو۔

قتادةؒ وائی چه د رسول الله ﷺ د کومو صحابوؓ ښځے چه مرتدے شوے او کافرانو خواته لاړے، او بیا به مالِ غنیمت حاصل شو، نو دے خلقو ته به د مجموعی مالِ غنیمت نه د مهر رقم اداء کولے شو، بیا بهٔ باقی مالِ غنیمت تقسیمدلو۔

امام زهریؒ وائی چه زما ګمان نهٔ دے چه د مسلمانانو نه کومه ښځه مرتده شوی وی، او د کافرانو خواته تلی وی سوئے د یوے زنانه نه۔

ام الحکم بنت ابی سفیان چه دا مرتده شوه، او خپل خاوند عیاض بن غنم الفهری القرشی ئے پریخودو، بیا بیرته اسلام ته راغله، د ثقیف قبیلے د اسلام سره ئے بیرته اسلام راوړو۔ او په قریشو کښ صرف دے یوه زنانه باندے دا حالت راغلے وو۔

Scanned by CamScanner

مگر راجح دا ده چه هغې ته ئې طلاق ورکړے وو، او بیا عبد الله بن عثمان ثقفی په نکاح اخستے وه. یعنې دا مشرکه وه نو عیاض بن غنم په آیت (وَلَا تُمۡسِكُوا۟ بِعِصَمِ ٱلۡكَوَافِرِ) باندے عمل وکړو. (بخاري: ٥٢٨٧) وفتح الباري (٩/٤٢٢)

پدے کښې اختلاف دے چه دا حکم اُوس باقی دے او که نهٔ؟

د مجاهدؒ او قتادهؒ رائے ده چه دا حکم عام دے که دغه کافرانو سره عهد وی او که نهٔ وی. یعنې اُوس هم دا حکم باقی پاتے دے او منسوخ شوے نهٔ دے.

او بعض علماء وائی چه دا په وخت د عهد پورے خاص دے. لیکن ظاهر د آیتونو نه دا معلومیږی چه دا حکم اُوس هم باقی پاتے دے.

فَعَاقَبۡتُمۡ: دا د عِقاب یا عقوبت نه دے، سزا ورکولو ته وئیلے کیږی، یعنې تاسو سزا ورکړئ هغوی ته تردے چه غنیمتونه ترے ونیسئ. ددے نه مراد د هغوی جنګ او قتال کول دی کله چه ورسره عهد نهٔ وی کړے، یا عهد مات کړی.

یا د عُقۡبَةٌ نه ماخوذ دے، نوبت او نمبر راتللو ته وئیلے شی، یعنې ستاسو نمبر راشی په هغوی باندے یعنې د دغه کافرانو زنانه تاسو ته راشی، او مهر د خان سره راوړی نو دغه مهر هغه کافرانو ته واپس مهٔ ورکوئ.

یا د عَقِبٌ نه دے، روستو راتللو ته وئیلے شی. یعنې تاسو ورپسے روستو راشئ. او غنیمت ترے ونیسئ.

(الصحاح فی اللغة وتاج العروس کلمة عقب)

يَا أَيُّهَا النَّبِيُّ: دے آیتِ کریمه ته [بَيۡعَةُ النِّسَاءِ] والا آیت وائی (یعنې د ښځو د بیعت آیت) ځکه چه په دے کښې الله تعالیٰ د مکے د فتح په وخت خپل رسول ﷺ ته د ښځو سره د بیعت کولو اجازت کړے، نو نبی ﷺ په صفا غونډئ کیناستهٔ او د هغه ښځو نه ئې بیعت واخستهٔ کومے به چه نبی ﷺ خواته ډلے ډلے راتللے او په اسلام کښې به داخلیدلے.

بخاریؒ، ترمذیؒ او نورو محدثینو د عائشے رضی الله عنها نه روایت کړے چه مسلمانانے ښځے د مکے نه هجرت وکړو او مدینے ته راغلے وے، نبی ﷺ به د هغوئ د ایمان امتحان اخستلو، او کله به چه نبی ﷺ ته د هغوئ د ایمان د طرف نه اطمینان اوشو، نو هغوئ ته به ئې وئیلے چه ما تاسو نه د خبرو په ذریعه بیعت واخستهٔ. قسم په الله! د نبی ﷺ لاس د هیڅ بیعت کونکے ښځے د لاس سره هیڅ کله لګیدلے نهٔ وو، نبی ﷺ به هغوئ نه

Scanned by CamScanner

صرف په ژبه بیعت اخستلو او وئیل به ئې چه ما تاسو نه بیعت واخستهٔ۔
نسائیؒ، ترمذیؒ او ابن ماجهؒ او نورو د اُمیمه بنت رُقیقه رضی الله عنها نه روایت کړے چه دا د څهٔ ښځو سره د رسول الله ﷺ خواته د بیعت لپاره راغله، نو د بیعت کولو په وخت ئې ووئیل : [هَلُمَّ نُبَایِعُكَ یَا رَسُوْلَ اللّٰهِ !] اے د الله رسوله ! راشئ چه مونږ تا سره بیعت (یعنی مصافحه) وکړو۔ نو نبی کریم ﷺ وفرمایل :
[اِنِّیْ لَا اُصَافِحُ النِّسَاءَ اِنَّمَا قَوْلِیْ لِمِائَةِ امْرَأَةٍ کَقَوْلِیْ لِامْرَأَةٍ وَاحِدَةٍ] چه زهٔ ښځو سره مصافحه نهٔ کوم، زما وینا سلو ښځو سره داسے ده لکه یو یے ښځے سره وینا، الحدیث۔
(الموطأ : ۱۷۷۵، نسائی : ۴۱۸۱) ابن ماجه (۲۸۷۴) صحیح)
او دا بیعت اګرکه اول کښې د زنانو په باره کښې نازل شوے وو لیکن رسول الله ﷺ به د سړو نه هم په دغه څیزونو باندے بیعت اخستو۔
بخاریؒ او مسلمؒ د عباده بن صامت ﷺ نه روایت کړے چه مونږ د نبی کریم ﷺ په خوا کښې وو نو وے فرمایل :[بَایِعُوْنِیْ عَلٰی اَنْ لَّا تُشْرِکُوْا بِاللّٰهِ شَیْئًا وَّلَا تَسْرِقُوْا، وَلَا تَزْنُوْا، وَلَا تَقْتُلُوْا اَوْلَادَکُمْ، وَلَا تَاْتُوْا بِبُهْتَانٍ تَفْتَرُوْنَهٗ بَیْنَ اَیْدِیْکُمْ وَاَرْجُلِکُمْ، وَلَا تَعْصُوْا فِیْ مَعْرُوْفٍ]
(ما سره بیعت وکړئ پدے خبره چه د الله سره به هیڅ نهٔ شریکوئ او نهٔ به غلا کوئ او نهٔ به زنا کوئ او نهٔ به اولاد وژنئ او نهٔ به بهتان جوړه وئ۔ او نهٔ به په نیك کار کښې نافرمانی کوئ، (یعنی دا آیت د بیعت د زنانو ئې ولوستو) بیا ئې وفرمایل :
[فَمَنْ وَفٰی مِنْکُمْ فَاَجْرُهٗ عَلَی اللّٰهِ وَمَنْ اَصَابَ مِنْ ذٰلِكَ شَیْئًا فَعُوْقِبَ فِی الدُّنْیَا فَهُوَ کَفَّارَةٌ لَهٗ وَمَنْ اَصَابَ مِنْ ذٰلِكَ شَیْئًا فَسَتَرَهُ اللّٰهُ فَهُوَ اِلَی اللّٰهِ اِنْ شَاءَ عَذَّبَهٗ وَاِنْ شَاءَ غَفَرَ لَهٗ، فَبَایَعْنَاهُ عَلٰی ذٰلِكَ] (بخاری فی الاحکام باب ۴۹، وتفسیر سورة ۶۰، باب ۳ ومسلم فی الحدیث حدیث ۴۱)
چا چه ستاسو نه ددے وفاداری وکړه نو اجر ئې په الله دے، او چا چه ددے نه کوم کار وکړو او دنیا کښې ورته سزا ورکړے شوه (سوئ د شرك نه) نو دا به د هغهٔ دپاره کفاره (ګناه ختمونکی) شی، او چا چه ددے نه کوم کار وکړو او الله پرے پرده واچوله نو دے الله ته سپارلے شویدے، د هغهٔ خوښه ده چه عذاب ورکوی او که بخنه ورته کوی۔ نو مونږ ورسره پدے کارونو بیعت وکړو۔
شوکانیؒ ددے آیت په تفسیر کښې لیکی چه د مکے والو ښځے نبی ﷺ ته د بیعت دپاره راغلے نو الله تعالیٰ هغهٔ ته حکم وکړو چه هغه دغه ښځو سره په دے لاندینو خبرو بیعت

Scanned by CamScanner

اوکړی:
عَلٰى اَنْ لَّا يُشْرِكْنَ: يعنی د الله سره به هيڅوك شريك نهٔ جوړوی،
پدې کښې هِنده بنت عُتبه هم راغله چه مخ ئې پټ کړے وو، د نبی کريم ﷺ نه يريدله
چه وې نهٔ پيژنی ځکه چه دې د اُحُد په ورځ د هغهٔ د تره حمزه رضی الله عنه زړه ځيری کړے وو۔
کله چه رسول الله ﷺ وفرمايل: شرك به نهٔ کوئ۔ نو هغې ووېل: (وَهَلْ اَغْنَتْ عَنَّا شَيْئًا)
دې بتانو او باباګانو خو مونږ ته هيڅ فائده رانکړه او ز مونږ نه ئې هيڅ تکليف لرې
نکړو۔ (شرك مونږ ته څه فائده راکړه)۔
وَلَا يَسْرِقْنَ: او غلا به نهٔ کوئ۔ نو هندې ووېل: ابوسفيان بخيل دے او زهٔ د هغهٔ د
مال نه په پټه د خپل خوراك مطابق مال راخلم۔ نبی کريم ﷺ ورته وفرمايل:
[خُذِىْ مِنْ مَالِهٖ مَا يَكْفِيْكِ وَوَلَدَكِ بِالْمَعْرُوْفِ]
د هغهٔ د مال نه دومره مال اخله چه ستا او ستا د اولادو کافی کيږی د عرف مطابق۔ دا
اختــــل به هله جائز وی چه خاوند هيڅ خرچه ښځې ته نهٔ ورکوی او د هغوی د خوراك
څکاك بندوبست نهٔ کوی، (دې ته ظفر بالحق وائی) ددې نه علاوه د خاوند نه غلا کول
هم حرام دی۔ (مسلم: ٤٥٧٤)
پدې وخت کښې رسول الله ﷺ وخاندل او هنده ئې وپيژندله ورته ئې ووېل: آيا ته هنده
ئې؟ هغې ووېل: (عَفَا اللّٰهُ عَمَّا سَلَفَ) آؤ زهٔ هنده يم، خو الله مخکنی ګناهونه معاف
کړيدی۔ بيا رسول الله ﷺ وفرمايل:
وَلَا يَزْنِيْنَ: زنا به نهٔ کوی۔ نو هندې ووېل: (اَوَ تَزْنِى الْحُرَّةُ)
آيا آزاده (شريفه) ښځه هم چرې زنا کوی؟! يعنی دا تعجب ئې وکړو، وجه دا وه چه په
عربو کښې به زنا اکثر وينځو کوله۔
وَلَا يَقْتُلْنَ اَوْلَادَهُنَّ: (اولاد به نهٔ وژنی)۔ نو هندې ووېل:
(رَبَّيْنَاهُمْ صِغَارًا وَقَتَلْتُمُوْهُمْ كِبَارًا، فَاَنْتُمْ وَهُمْ اَبْصَرُ)
مونږ خو د هغوی په وړوکوالی تربيت وکړو او تاسو په بدر کښې هغه قتل کړل نو تاسو
او هغوی ښه پوهه وئ۔ (مزاحيه خبره ئې وکړه) او په بدر کښې ددې ځوان ځوی حنظله
بن ابی سفيان قتل شوے وو۔ پدې کښې عمر رضی الله عنه ولاړ وو هغه په خندا شو۔ (قرطبیؒ)
حافظ ابن کثيرؒ ليکی چه د وژلو ممانعت، د ماشوم د موجوديدو نه پس، او د ولادت نه

Scanned by CamScanner

مخکښې کله چه ماشوم د مور په رَحم کښې وي، دواړو حالتونو ته شامل دے۔ انتهیٰ۔
زنانه په نورو قتلونو باندے اکثر قدرت نهٔ لري صرف د خپل اولاد په قتل باندے قادره وي نو ځکه ئے هغه ذکر کړو۔

وَلَا يَأْتِيْنَ بِبُهْتَانٍ يَفْتَرِيْنَهٗ بَيْنَ اَيْدِيْهِنَّ وَاَرْجُلِهِنَّ: (او خپلو خاوندانو طرفته به د بل چا اولاد نهٔ منسوب کوي)۔ قرآن کریم دے دروغ تړلو ته د هغه بُهتان نوم ورکړے چه هغه ښځه د خپلو دواړو لاسونو او دواړو خپو ترمینځه جوړوي، ځکه چه د هغې خیټه چه په هغې کښې هغه ماشوم باروي د هغې د دواړو لاسونو ترمینځه وي، او هغه شرمګاه د کوم ځاې نه چه ماشوم زیګوي، د هغې د دواړو خپو ترمینځه وي۔

(۱) فراء وائي: [ كَانَتِ الْمَرْاَةُ تَلْتَقِطُ الْمَوْلُوْدَ فَتَقُوْلُ لِزَوْجِهَا، هٰذَا وَلَدِيْ مِنْكَ]
یوے زنانه به یو ماشوم وموندلو نو بیا به ئے خپل خاوند ته ونیل چه دا زما بچے دے ستا نه۔ نو دا هغه بهتان دے چه د لاسونو او د خپو ترمینځ ئے جوړوي۔ ځکه چه ماشوم په وخت د پیدائش کښې د مور د دواړو لاسونو او خپو ترمینځ پروت وي۔

(۲) یا ددے نه مراد د زنا نه پیدا شوے بچے دے، یعني زنانه زنا وکړي او د هغې نه چه کوم بچے پیدا کیږي نو د هغې نسبت خپل خاوند ته وکړي چه دا زما د خاوند نه پیدا شویدے۔ نو دا بهتان دے چه ددے د لاسونو او خپو ترمینځ پیدا شویدے ځکه چه بچے په خیټه کښې وي او خیټه د دواړو لاسونو او خپو ترمینځ وي۔ اول قول غوره دے۔ ځکه چه د زنا بچي نسبت کول خاوند ته هغه خو په زنا کښې منع شو۔

(۳) یا ددے بهتان نه مراد په چا باندے د یوے ګناه بدنامه لګول دي چه د ځان نه ئے جوړوي چه هیڅ دلیل ورسره نهٔ وي، نو ددے نه تعبیر کیږي په (بَيْنَ اَيْدِيْهِنَّ وَاَرْجُلِهِنَّ) سره۔ او پدے کښې دروغ، غیبت، چغلي کول، د زنا کنځل کول وغیره ټول داخل دي۔

ظاهر دا ده چه دا کنایه وي د ځان نه جوړولو نه، لکه دا خبره د سړو په باره کښې هم راغلے ده (وَلَا تَاْتُوْنَ بِبُهْتَانٍ تَفْتَرُوْنَهٗ بَيْنَ اَيْدِيْكُمْ وَاَرْجُلِكُمْ) تاسو به داسے بهتان ته راتلل نکوئ چه تاسو د ځان نه ایجاد کړے وي او هیڅ حقیقت ئے نهٔ وي۔

وَلَا يَعْصِيْنَكَ فِيْ مَعْرُوْفٍ: آخري خبره داده چه هغوئ به ستا د امرونو او منع کړو څیزونو نافرماني نهٔ کوي۔ د معروف نه مراد د الله او د رسول طاعت دے، او مخلوق سره احسان کول دي او هر هغه شے چه شریعت په هغې امر کړے وي، او کوم نه ئے چه منع

Scanned by CamScanner

کړی وی، د هغې نه منع کیدل.
عطاءؒ وائی: (فِیْ کُلِّ بِرٍّ وَّتَقْوٰی) په هره نیکئ او تقوٰی کښې به مخالفت نهٔ کوی.
مقاتلؒ وائی: په معروف کښې دا هم داخلیږی چه په مړو به ژړا نهٔ کوی، کپړے به نهٔ څیری کوی، ویښته به نهٔ خریوی، ګریوانونه به نهٔ شوکوی، مخونه به نهٔ وهی، او واویلا به نهٔ کوی (قتادهؒ، سعید بن المسیبؒ وزید بن اسلمؒ)
فِیْ مَعْرُوْفٍ: لفظ ئے ذکر کړو سره ددے نه چه د رسول الله ﷺ هره خبره معروف وه پدے کښې تنبیه ده پدے خبره چه د الله تعالیٰ په مخالفت کښې د هیڅ مخلوق طاعت (تابعداری) نشته. معروف دلته په بله معنیٰ دے (مَا عُرِفَ فِی الشَّرْعِ حُکْمُهٗ) چه په شریعت کښې د هغې حکم معلوم وی نو پدے کښې مامورات او منهیات ټول داخل دی.
بخاریؒ او مسلمؒ وغیره د ام عطیه رضی الله عنها نه روایت کړیدے چه مونږ سره رسول الله ﷺ بیعت وکړو نو دا آیت ئے په مونږ ولوستلو (اَنْ لَّا یُشْرِکْنَ) چه مونږ به د الله سره هیڅوك نهٔ شریکوو، او مونږه ئے د نیاحت (ژړا) نه منع کړو نو زمونږ نه یوے زنانه لاس راخکلو (یعنی د بیعت نه ئے انکار وکړو) او وے ویل اے د الله رسوله!
(اِنَّ فُلَانَةَ اَسْعَدَتْنِیْ وَاَنَا اُرِیْدُ اَنْ اَجْزِیَهَا)
فلانئ ښځے ما سره په ژړا کښې مدد کړیدے نو زهٔ غواړم چه د هغے بدله خلاصه کړم، نو رسول الله ﷺ ورته هیڅ ونهٔ ویل. نو هغه لاړه او بیرته راواپس شوه او بیعت ئے وکړو.
(ددے یو مطلب دا دے چه رسول الله ﷺ ورته اجازت ورنکړو، بیا ئے فکر وکړو نو راواپس شوه او بیعت ئے وکړو. لکه دا د امام بیهقیؒ د عبارت نه معلومیږی، یا ددے مطلب دا دے چه دا زنانه لاړه د خپلے ملګرے سره ئے په یو مړی باندے په ژړا کښې مدد وکړو بیا راغله او بیعت ئے وکړو، او رسول الله ﷺ ورته څکه څه ونهٔ ویل چه دا نوے مسلمانه وه، او همدا مطلب صحیح دے څکه چه په حَسَن روایت د ترمذیؒ کښې دی:
[فَاَبَیْ عَلَیَّ فَاَتَیْتُهٗ مِرَارًا فَاَذِنَ لِیْ فِیْ قَضَائِهِنَّ فَلَمْ اَنُحْ بَعْدَ قَضَائِهِنَّ وَلَا عَلٰی غَیْرِهٖ حَتَّی السَّاعَةِ وَلَمْ یَبْقَ مِنَ النِّسْوَةِ امْرَاَةٌ اِلَّا وَقَدْ نَاحَتْ غَیْرِیْ]
هغه وائی چه ما ته رسول الله ﷺ انکار وکړو نو زهٔ ورته بار بار راغلم نو ما ته ئے د هغوی د قرض په پوره کولو اجازه راکړه نو ددے نه روستو ما هیڅ کله په هیچا نهٔ دی

Scanned by CamScanner

ژړلی تر نن وخت پورے او زمانه علاوه نورو زنانو ژړا کړیده۔

الترمذی فی تفسیر سورة ٦٠ باب٣ رقم (٣٣٠٧) وحسن اسناده الالبانیؒ)

ام عطیه رضی الله عنها وائی : مونږ کښې ام سلیم او ام العلاء او بنت ابی سبره چه د معاذ بن جبل ﷺ ښځه ده، ددے بیعت وفاداری وکړله۔

بخاری فی تفسیر سورة ٦٠باب٣، والاحکام باب ٤٩)

**فائده ۱:** قرطبیؒ لیکلی دی چه دلته ئے د منهیاتو ذکر په تفصیل سره وکړو او د معروف تفصیل ئے ونکړو ځکه چه انسانان او خصوصًا زنانو کښې ددے منهیاتو ارتکاب زیات دے په نسبت د ترك د ماموراتو۔

**فائده ۲:** صاحب د فتح البیان لیکی : په دین اسلام کښې دا دویم بیعت په سنت کښې ثابت دے، او هغه بیعت چه صوفیه او مشائخو او جاهلانو متصوفه ؤ ایجاد کړیدے نو هغه په هیڅ شرعی دلیل سره ثابت نهٔ دے، او نهٔ هغے له هیڅ اعتبار شته بلکه هغه د کتاب او سنت سراسر مخالفت دے لکه دا خبره تا ته واضحه ده۔ (فتح البیان۷/٦١)

فَبَايِعْهُنَّ : دا جواب د (إِذَا جَاءَكَ) دپاره دے۔ یعنی کله چه دا زنانه تا سره پدے خبرو بیعت کوی نو ته ورسره بیعت وکړه، یعنی ته هم ورسره په وعده د ثواب کښې کلك شه ترڅو چه دوئ خپل ځانونه پدے کارونو (طاعتونو) باندے مضبوط ساتی۔

او مبایعه د بیع نه دے، او دے معاهدے (لوظ) ته ئے مبایعه په طریقه د تشبیه سره وئیلے ده، ځکه چه هر یو تن یو شے په بل خرڅ وی، زنانو خپل طاعت خرڅ کړو په اجر د الله تعالیٰ، او الله تعالیٰ اجر ورکړو په مقابله د طاعت کښې۔

ابن الجوزیؒ لیکی چه د بیعت کونکو تولو زنانو عدد چه شمارلے شویدے نو هغه څلور سوه اوه پنځوس (٤٥٧) ته رسیږی او دے یوے زنانه ته ئے په بیعت کښې لاس نهٔ دے ورکړے بلکه په خبرو سره به ئے پدے آیت باندے بیعت اخستو۔

وَاسْتَغْفِرْ لَهُنَّ اللّٰهَ: یعنی ددے بیعت نه روستو ددے زنانو دپاره د تیرو شوو او د راتلونکو ګناهونو بخنه غواړه۔

Scanned by CamScanner

| يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَتَوَلَّوْا قَوْمًا غَضِبَ اللَّهُ |
| --- |
| اے ایمان والو! دوستی مهٔ کوئ د هغه قوم سره چه غضب کړیدے الله تعالیٰ |
| عَلَيْهِمْ قَدْ يَئِسُوا مِنَ الْآخِرَةِ كَمَا يَئِسَ |
| په هغوی باندے یقیناً نا امیده دی دوی د آخرت نه لکه څنګه چه نا اُمیده دی |
| الْكُفَّارُ مِنْ أَصْحَابِ الْقُبُورِ ﴿١٣﴾ |
| کافران د راپورته کیدو د قبرونو والونه۔ |

**تفسیر**: اُوس آخر د سورت د اول د سورت سره په مضمون کښې یو ځای کوی لکه دا د قرآن کریم طریقه ده، همغه مضمون بیرته راواپس کوی دے دپاره چه د خلقو په دماغو کښې دا مضمون کلك کړی، نو مومنانو له ئے خبردارے ورکړے چه ستاسو ایمان تاسو نه دا غوښتنه کوی چه تاسو کافران خلق خپل دوستان مهٔ جوړوئ چه د هغوئ نه الله د هغوئ د کفر د وجے نه ناراضه دے (په هغوئ باندے ئے غضب کړے دے)۔

بعضِ مفسرینو دا آیت د یهودو سره خاص کړے دے، ځکه چه دلته وئیلے شوی دی چه د الله تعالیٰ غضب په دوئ نازل شوے، او صرف یهود هغه خلق دی چه د قرآن کریم په نورو آیتونو کښې د هغوئ دا صفت بیان شوے دے۔

شوکانیؒ لیکی چه اولنے قول غوره او اولیٰ دے، ځکه چه الله تعالیٰ تمامو کافرانو ته د غضب په حالت کښې وی۔

قَدْ يَئِسُوا مِنَ الْآخِرَةِ: ددے کافرو قومونو دویم صفت دادے چه دوئ په آخرت باندے د ذرے هومره ایمان نهٔ لری، لکه څنګه چه د دوئ نه مخکښې کافرانو په آخرت باندے ایمان نهٔ لرلو، ځکه خو د سرکشئ لاره اختیاروی او په زمکه کښې فساد خوروی۔

خلاصه دا چه په چا باندے چه الله غضب کړے وی، او هغوئ د آخرت نه منکر وی. هغوئ سره دوستی کول د مسلمانانو دپاره په هیڅ حال کښې هم جائز نهٔ دی، ځکه دوئ به په ظاهره کښې دوستان جوړ شی، او د اسلام او مسلمانانو په خِلاف به ژور سازش کوی، او د دوئ به خومره چه کیدے شی دا کوشش وی چه مسلمانان هم د دوئ پشان کافر او مُلحد شی۔

Scanned by CamScanner

مِنْ أَصْحَابِ الْقُبُوْرِ : ۱- یعنی لکه څنګه چه هغه کافران چه قبرونو ته تلی دی، نو هغوی د سعادت نه نا امیده دی، هیڅکله ئې اصلاح نۀ کیږی اګرکه هغوی به اُوس آخرت منی. نو ژوندی کافران د آخرت د منلو نه نا امیده دی، او مشرکان مړی په آخرت کښې د سعادت نه نا امیده دی. نو مِنْ اَصْحَابِ الْقُبُوْرِ بیان دے د (اَلْكُفَّارُ) دپاره.

۲- یا د غَضِبَ اللهُ عَلَیْهِمْ نه مراد یهودیان دی. او قَدْ یَئِسُوْا مِنَ الْآخِرَةِ نه مراد سعادت د آخرت دے، او اَلْكُفَّارُ نه مراد ژوندی کافران مشرکان دی،

مِنْ اَصْحَابِ الْقُبُوْرِ نه مراد مِنْ بَعْثِ اَصْحَابِ الْقُبُوْرِ دے. (یعنی د راپورته کیدو د قبرونو والو نه)

مطلب دا دے چه مشرکان بعث بعد الموت نۀ منی، او یهودیان د آخرت سعادت او نیك بختی نۀ منی، ځکه چه هغوی ته خپل کفر او ګناهونه معلوم دی. لیکن دا تفسیر دومره غوره نۀ دے بلکه د واقع خلاف دے، ځکه چه یهودیانو خو ځان ته جنتیان وئیل. وبالله التوفیق.

## امتیازات د سورة الممتحنه

۱- مسئله د ولاء براء پکښې ذکر ده.

۲- واقعه د حاطب بن ابی بلتعه رضی الله عنه.

۳- د کفارو دوه قسمونه بیان شویدی.

٤- د مهاجرینو زنانو اقسام او د بیعت مسئله پکښې ذکر ده.

ختم شو تفسیر د سورة الممتحنه په توفیق د حمید مجید په ۱۳ شعبان ۱٤۳۷ هـ موافق (۱۹/۵/۲۰۱٦). صباح یوم الخمیس. پشاور.

او پدے سره اختتام ته ورسیدو یولسم جلد ولله الحمد والمنة.

❁❁❁❁

Scanned by CamScanner

# فهرست تفسیر حکمة القرآن جلد (۱۱)


| | |
|---|---|
| سورة الفتح ........................................ | ۳ |
| د بیعة الرضوان تفصیل .......................... | ٤ |
| طاقتور قوم نه څوك مراد دے ؟ ................... | ۲٦ |
| سیما څه شے دے ؟ ................................ | ٤٦ |
| سورة الحجرات ..................................... | ٥۲ |
| د گمان اقسام ........................................ | ۷۷ |
| د غیبت صورتونه ................................... | ۷۹ |
| سورة ق ............................................... | ۹۲ |
| د تبصره او ذکری فرق ............................ | ۱۰۰ |
| سورة الذاریات ...................................... | ۱۲۳ |
| د میلمستیا آداب ................................... | ۱٤۰ |
| سورة الطور ......................................... | ۱٦۱ |
| سورة النجم ......................................... | ۱۸۸ |
| سورة القمر ......................................... | ۲۳۱ |
| سورة الرحمن ....................................... | ۲٦٥ |
| سورة الواقعة ....................................... | ۳۰٤ |
| سابقین څوك دی ؟ ................................. | ۳۱۱ |
| د اُور هیبت او د بعض خائفینو ذکر او د اُور فائدے ........ | ۳۳۳ |
| قرآن کریم ولے کریم دے ؟ ........................ | ۳۳۸ |
| سورة الحدید ........................................ | ۳٥۰ |
| د وسپنې فائدے .................................... | ۳۹۱ |


Scanned by CamScanner

| | |
|---|---|
| رهبانیت څه ته وائی ؟.............. | ۳۹۹ |
| آیا په نصرانیت کښې رهبانیت موجود وو ؟ .............. | ٤٠١ |
| سورة المجادلة .............. | ٤٠٩ |
| د ظهار معنیٰ او احکام .............. | ٤١٤ |
| د الله تعالیٰ د معیت تفصیل .............. | ٤٢٧ |
| فضیلت د علم .............. | ٤٣٨ |
| سورة الحشر .............. | ٤٥٧ |
| د مال فیء حکم .............. | ٤٦١ |
| د شح مصداقات .............. | ٤٧٨ |
| شان صحابه کرام رضی الله عنهم .............. | ٤٨٠ |
| د برصیصا واقعه .............. | ٤٨٩ |
| متکبر او مستکبر کښې فرق .............. | ٤٩٩ |
| د خالق او باریٔ او مصور ښکلے فرقونه .............. | ٤٩٩ |
| سورة الممتحنة .............. | ٥٠٣ |
| د مهاجراتو نه څنګه امتحان اخستے کیدو ؟.............. | ٥٢٢ |
| ولا یأتین ببهتان مطلبونه .............. | ٥٣٠ |
| د صوفیاؤ بیعت .............. | ٥٣٢ |
| اختتام .............. | ٥٣٤ |


وقت الاخراج: ۱۴۳۸ رجب ۱۹، الموافق: ۱۷/۴/۲۰۱۷ ۱۴ صباح یوم الجمعة

دفتر تمام گشت و بپایان رسید عمر ما همچنان در اول وصف تو مانده ایم

Scanned by CamScanner

السلام علیکم

دا تفسیر چه چا ته
ورسی نو په خپل
د واټس اپ پیج
او د فیس بک د
پیج نه دی نشر
کړی. چه فائده ئې
عامه شی جزاک الله

تفسیر القرآن شیخ آمین الله حفظه الله

Scanned by CamScanner

السلام علیکم

مکلگرو ته درخواست دے چه تفسیر حکمت القرآن

مکلگرو له او دران د پاره کتابي شکل کښې اغستل ضروري

دے ځکه چه په پښتو ژبه کښې دا سې بهترین تفسیر

بل نشته دے . . تاسو ته به دا تفسیر المکتبة

الجمهوریة کښې ملاؤ یږي

په دعاګانو کښې شیخ امین الله صاحب

او خاص کر شیخ ابو زهیر سیف الله

یاد ساتئ ځکه ستاسو د پاره ئي

ډیر محنت کړې دے .

موبائیل نمبر 03018828402

جزاک الله خیرا

Scanned by CamScanner